# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

شپږم جلد

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمه‌الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

**ځانګړتیاوي**

۱: حدیثونه د اعراب سره.

۲: تحت لفظي ترجمه.

۳: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب العتق

کتاب القصاص

کتاب الحدود

کتاب الامارة والقضاء

کتاب الجهاد

صداقت کتب خانه

بسم الله الرحمن الرحيم

# مظاهر حق

(د مشكٰوة المصابيح پښتو شرحه)

**تاليف:** نواب محمدقطب الدين خان دهلوي رحمه الله

**ترتيب او تزئين:** مولاناعبدالله جاويد غازي پوري (فاضل ديوبند)


**خپرندوی:** صداقت خپرندويه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعيد

**تصحيح کوونکي:** بسم الله رحيمي، مولوي عبدالکريم کريمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ** :۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځايونه:**

**صداقت خپرندويه ټولنه**-کندهار

اوله ناحيه، نوی سړک- کريم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندويه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴** .

**کابل:** صداقت خپرندويه ټولنه،کوټه سنگي مينه يار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی. هلمند** :تاج منور خپرندويه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندويه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتيکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق شپږم جلد فهرست

بِسمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَــابُ الْعِتْــقِ

## (د غلام او مينزي د ازادولو بيان)

د اسلام له نظره ازادي په اصل كي د يو داسي قوت حكميه نوم دى چي انسان ته د هغه فطري او پيدائشي حق وركوي چي هغه د مالك كېدو ، سرپرست كېدو او شاهدي وركولو وړ سي ، د كوم انسان چي دغه فطري او پيدائشي حق مسلوب سي په دې توګه چي هغه د يو چا په غلامۍ كي وي او بيا هغه ته د ازادۍ په صورت كي دا قوت حكميه تر لاسه كيږي نو په هغه كي نه يوازي د مالك كېدو وړتيا ، د سرپرست كېدو وړتيا او د شهادت وركولو اهليت پيدا كيږي بلكه هغه ددغه قوت حكميه يا ددغه ازادۍ په وجه پر نورو باندي په تصرف كولو او د نورو تصرف د ځان څخه پر منع كولو باندي قادر سي او هغه د ازاد او خودمختاره انسانانو په صف كي ودريږي .

**د ازادولو شرط**: د يو غلام يا مينزي د ازادولو لپاره شرط دادى چي ازادكونكى خود مختار، بالغ او عقلمند وي او كوم غلام يا مينزه چي هغه ازادوي د هغه ملک وي.

**د ازادۍ ډولونه** : د غلام ازادول په ځينو صورتو كي واجب دي لكه كفاره، او په ځينو صورتو كي مستحب او په ځينو صورتو كي ګناه هم ده لكه كله چي دا غالب ګمان وي كه چيري دغه غلام ازاد كړل سي نو هغه بهٔ دارالحرب ته وتښتي او يا مرتد به سي يا دا بيره وي چي هغه به غلا وي كوي ، او په ځينو صورتو كي د غلام ازادول مباح دي لكه د يو چا د ثواب لپاره غلام ازاد كړل سي ، او په ځينو صورتو كي عبادت دى لكه د يو غلام محض د الله ﷻ د رضا او خوښۍ لپاره ازادول .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د غلام او مينزي د ازادولو ثواب

﴿٣٢٢٧﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ أَعْتَقَ رَقَبَةً مُسْلِمَةً

أَعْتَقَ اللّٰهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنَ النَّارِ حَتّٰى فَرْجَهُ بِفَرْجِهِ . متفق عليه

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي خپل مسلمان ورور ازاد کړي نو الله جل جلاله د هغه د غلام د هر اندام په بدله کي د هغه د مالک هر اندام د دوږخ څخه ازاد کړي تردي پوري چي د هغه د شرمگاه په بدله کي به د هغه د شرم گاه هم .(بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١١\٥٩٩، رقم: ٦٧١٥، ومسلم ١١٤٧\٢، رقم: ٢٣- ١٥٠٩.

**تشريح**: په مسلمان غلام کي د اسلام قيد ځکه لګول سوی دی چي دده (ازادولو) ثواب زيات وي، مطلب دادی چي هسي خو د هر غلام ازادول د ثواب سبب دی مګر که يو مسلمان غلام يا مينزه ازاد کړل سي نو د هغه ثواب ډېر زيات دئ . د هر اندام ذکر کولو څخه وروسته د شرمګاه په خاصه توګه ذکر کول ددې لپاره چي هغه د زنا ځای دی او زنا د شرک څخه وروسته تر ټولو لويه ګناه ده نو وضاحت وکړل سو چي الله جل جلاله به د بدن دغه برخي ته هم خلاصون ورپه برخه کړي، ددې سره سم ځيني علماء وايي چي ددې څخه دا خبره معلوميږي چي ازادونکی بايد هغه غلام ازاد کړي چي خصي نه وي او دا غوره دي که ازادونکی سړی وي نو هغه دي غلام ازاد کړي او که ازادونکې ښځه وي نو هغه دي مينزه ازاده کړي .

## ګران بيه او خوښ غلام ازادول غوره دي

﴿٣٢٣٨﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ الْعَمَلِ أَفْضَلُ

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي کوم عمل

قَالَ إِيمَانٌ بِاللّٰهِ وَجِهَادٌ فِي سَبِيلِهِ قَالَ قُلْتُ فَأَيُّ الرِّقَابِ أَفْضَلُ قَالَ أَعْلَاهَا

افضل او بهتر دی ؟ نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: په الله جل جلاله ايمان راوړل او د الله جل جلاله په لاره کي جهاد کول بيا مي پوښتنه ځيني وکړه چي نور څه ؟ نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: غلام

ثَمَنًا وَأَنْفَسُهَا عِنْدَ أَهْلِهَا قُلْتُ فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ قَالَ تُعِينُ صَانِعًا أَوْ تَصْنَعُ

ازادول چي زيات قيمتي وي او د مالک زيات خوښ وي ما عرض وکړ که چيري زه داسي ونکړم نو بيا زه څه وکړم ؟نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: د کار کونکي سره کومک وکړه يا کوم

لِأَخْرَقَ قَالَ فَإِنْ لَمْ أَفْعَلْ قَالَ تَدَعُ النَّاسَ مِنَ الشَّرِّ فَإِنَّهَا صَدَقَةٌ تَصَدَّقُ

بِهَا عَلَى نَفْسِكَ . متفق عليه.

سړی چي د يو شي په جوړولو نه پوهيږي و هغه ته هغه شی جوړول ور زده کړه ما عرض وکړ که ما دا هم ونه کړه، نبي كريم ﷺ راته وفرمايل: خلكو ته د بدو او شر رسولو څخه ځان وساته دا هم يوه صدقه ده يا يوه نيكي ده چي ته يې د خپل نفس سره كوې . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٤٨\٥، رقم: ٢٥١٨، ومسلم١\٨٩، رقم: ١٣٦- ٨٤.

**د لغاتو حل**: لاخرق؛ اى من ليس في يده صنعة يكتسب بها. (هغه كس چي كسب نه سي كولاى).

**تشريح**: د ايمان غوره كېدل خو ښكاره خبره ده چي د خير او نيكۍ بنياد ايمان دي كه د ايمان نور نه وي نو بيا هيڅ عمل هم مقبول نه دی كه څه هم هغه افضل او غوره عمل وي ، او جهاد ځكه غوره عمل دی چي هغه د دين تقويت او د مسلمانانو د غوره والي او عظمت د غلبې سبب دئ.

لمونځ او روژه د نورو حيثيتو او وجوهاتو په وجه د عمل څخه غوره دي نو دلته جهاد او لمونځ ته پر روژې باندي فوقيت وركول مراد نه دي يا دا چي دلته د جهاد څخه مراد مطلق تكليف زغمل دي چي د هغه تعلق د جهاد سره هم دی او د نورو طاعتو او عباداتو سره هم ، نو پر مامورات باندي عمل كول او د منهيات څخه د ځان ساتني نفساني تكليف ته جهاد اكبر ويل سوي دي په دغه صورت كي د رسول الله ﷺ د ذكر سوي جواب خلاصه دا كيږي چي تر ټولو غوره عمل ايمان راوړل او د ايمان پر تقاضا عمل كول دي لكه چي ويل سوي دي : قل آمنت باالله ثم استقم،

د كار كونكي مرسته كوه : دلته د كار څخه مراد هر هغه شی دی چي د انسان د معاش ذريعه وي كه هغه صنعت او كسب وي يا تجارت وي ، ددې خلاصه داده چي كوم څوك په خپل يو كسب او كار كي لګيدلی وي او د هغه كسب او كار د هغه او د هغه د كورنۍ ضرورت نه پوره كوي يا هغه سړی د خپل كمزورۍ په وجه خپل كسب او كار نه سي كولای نو ته د هغه كار وكړه چي هغه ستا په مرسته د خپل ژوند اړتياوي پوره كړي ،

خلكو ته دبدۍ رسولو څخه ځان وساته : ددې مطلب دادی چي يو څوك په بد كار كي مه اخته كوه چا ته په خپل لاس او ژبه سره تكليف مه رسوه او مه چا ته تاوان رسوه ځكه چي خلكو ته د تاوان رسولو څخه ځان ساتل هم نيكي او خير دی په خاصه توګه په داسي صورت كي كله چي د بدۍ پر رسولو باندي قدرت حاصل وي . شعر : مراز خير تو اميد نيست شرمرسان .

دلته د عبارت د ظاهري طرز تقاضا داوه چي رسول الله ﷺ داسي فرمايلي واى چي دا يو ښه عادت دى چي د هغه په ذريعه ته د خلكو سره نيكي كوې مګر د خلكو سره نيكي كول په حقيقت كي د خپل ځان سره نيكي كول دي په دې توګه چي د هغه نيكۍ ګټي هغه ته تر لاسه كيږي ځكه رسول الله ﷺ وفرمايل چي د هغه په ذريعه ته د خپل ځان سره نيكي كوې .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غلام په ازادولو كي مرسته كول

﴿٣٢٣٩﴾ : عَنِ الْبَرَّاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو صحرايي د رسول الله ﷺ په خدمت كي

فَقَالَ عَلِّمْنِيْ عَمَلاً يُّدْخِلُنِيْ الْجَنَّةَ قَالَ لَئِنْ كُنْتَ أَقْصَرْتَ الْخُطْبَةَ لَقَدْ

حاضر سو او عرض يې وكړ ماته يو داسي عمل را و ښيه چي د هغه په ذريعه زه و جنت ته داخل سم نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : تا خو پوښتنه په ډير مختصر ډول سره وكړه

أَعْرَضْتَ الْمَسْأَلَةَ أَعْتِقِ النَّسَمَةَ وَفُكَّ الرَّقَبَةَ قَالَ أَوَ لَيْسَا وَاحِدًا ؟ قَالَ لاَ

مګر ډېره مهمه خبره دي و پوښتل ته ځان ازاد كړه او غلام ازاد كړه صحرائي عرض وكړ ايا دا دواړه يوه خبره نه ده ؟ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : نه !

عِتْقُ النَّسَمَةِ أَنْ تَفَرَّدَ بِعِتْقِهَا وَفَكُّ الرَّقَبَةِ أَنْ تُعِيْنَ فِيْ ثَمَنِهَا وَالْمِنْحَةُ

د ځان ازادول دادي چي پوره غلام ازاد كړې يا يوازي غلام ازاد كړې او د غلام ازادول دادي چي ته د هغه په ازادى كي د هغه سره مرسته او كومك وكړې

الْوُكُوْفُ وَالْفَيْءُ عَلٰى ذِيْ الرَّحِمِ الظَّالِمِ فَإِنْ لَّمْ تُطِقْ ذٰلِكَ فَأَطْعِمِ الْجَائِعَ

او (په جنت كي د شاملېدو والا عمل دادى چي) يو محتاج ته شيدې وركونكي حيوان د شيدو د څښلو لپاره وركړې او د هغه ظالم رشته دار سره چي په تا ظلم كوي مهرباني او احسان كوه كه داسي نسي كولاى نو په وږي باندي خوراك و خوره

وَاسْقِ الظَّمْآنَ وَأْمُرْ بِالْمَعْرُوْفِ وَانْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ فَإِنْ لَّمْ تُطِقْ ذَالِكَ فَكُفَّ

لِسَانَكَ إِلاَّ مِنْ خَيْرٍ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

او په تړي باندي اوبه و څيښنه خلک و ښو ته را بوله او د بدو څخه يې منعه کوه او که دا هم نسې کولای نو بيا د خپلي ژبي حفاظت کوه سېوا د ښو خبرو څخه بده خبره د خولې څخه مه را باسه . (بيهقي په شعب الايمان کي) .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٤\٦٥، رقم: ٤٣٣٥.

**د لغاتو حل**: الوَكُوفَ: الكثيرة اللبن. (ډېر شيدې کوونکی څاروی)

**تشريح**: د ځان ازادولو او غلام ته د خلاصون ورکول په دغه دواړو کي چي کوم فرق واضح سوی دی د هغه خلاصه داده چي د ځان ازادول خو دادي چي ته خپل يو غلام ازاد کړې او غلام ته خلاصون ورکول دادي چي ته د يو بل چا غلام ازادولو کوښښ وکړې ، د مثال په توګه زيد خپل غلام ته وويل چي ته ما ته روپۍ راکړه نو ته به ازاد سې اوس د هغه غلام په روپو سره مرسته کول چي هغه روپۍ خپل بادار ته ورکړي او ازاد سي د بل سړي د غلام د ازادولو لپاره هڅه کول دي .

د منحه څخه مراد پسه يا اوښه ده (غوا ، ګامېښه هم په دې کي داخل دي) چي يو اړ کس ته د دې لپاره په عارضي توګه ورکړل سي چي دهغه پسه، يا اوښي يا د هغو د وړيو څخه ګټه تر لاسه کړي ، وکوف زياتي شيدې ورکونکي څاروي ته وايي .

د ښه خبري څخه پرته خپل ژبه بنده ساته : دا مضمون په يو بل حديث کي داسي فرمايل سوی دی : (من کان يؤمن باالله واليوم الاخر فليقل خيرا او ليصمت): څوک چي پر الله ﷻ او د آخرت پر ورځ ايمان لري نو هغه بايد د خپل ژبي څخه د خير خبره وکړي کنه نو پټه خوله دي سي .

ددغه دواړو ارشاداتو مطلب دادی چي پر خپل ژبه باندي پوره واک وساتل سي ، د خرابو خبرو د ژبي څخه ايستل نه دي پکار ، ژبه چي کله په حرکت کي سي نو د هغه څخه د خير خبره ايستل پکار دي ځکه چي دا يو داسي نکته ده چي په هغه عمل کولو سره ډيري خرابۍ او ديني او دنياوي تاوانو څخه خوندي کيدای سي ، علماء کرام وايي چي په دغه دواړو حديثو کي د نيکۍ څخه مراد هغه شی دی چي په هغه کي ثواب وي په دغه صورت کي هغه کلام چي پر هغه د مباح اطلاق کيږي د نيکۍ په شمېر کي نه دي مګر صحيح خبره داده چي د نيکۍ څخه مراد هغه شی دی چي د خرابۍ په مقابله کي وي نو په دغه صورت کي مباح کلام د نيکۍ په شمېر کي راځي .

﴿۳۲۴۰﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ بَنٰى

د حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په دې

مَسْجِدًا لِّيُذْكَرَ اللهُ فِيهِ بُنِيَ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ وَمَنْ أَعْتَقَ نَفْسًا مُسْلِمَةً

نيت سره يو مسجد اباد کړي چي په هغه کي د الله جل جلاله ذکر وسي نو د هغه لپاره په جنت کي يو ځای جوړيږي او څوک چي يو مسلمان غلام ازاد کړي

كَانَتْ فِدْيَتَهُ مِنْ جَهَنَّمَ وَمَنْ شَابَ شَيْبَةً فِيْ سَبِيْلِ اللهِ كَانَتْ لَهُ نُوْرًا يَوْمَ

الْقِيَامَةِ. رواه في شرح السنة.

د هغه دا کار به هغه ته د دوږخ څخه نجات ورکړي او څوک چي د الله جل جلاله په لاره (جهاد) کي سپين ږيري سي نو دا سپين ږيروالی به د قيامت په ورځ د هغه لپاره نور وي. (شرح السنه).

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ٩\ ٣٥٥، رقم: ٢٤٢٠.

**تشريح**: (رواه في شرح السنه) په دغه الفاظو سره دې ته اشاره سوې ده چي د مشکوة د مصنف دغه حديث د شرح السنة څخه پرته د حديثو په نورو کتابو کي نه ستہ.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

﴿۳۲۰۱﴾: عَنِ الْغَرِيفِ الدَّيْلَمِيِّ قَالَ أَتَيْنَا وَاثِلَةَ بْنَ الْأَسْقَعِ فَقُلْنَا لَهُ حَدِّثْنَا

د حضرت غريف ابن د يلمي رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ واثله ابن اسقع رضي الله عنه ته ورغلو هغه ته مو وويل: موږ ته يو حديث بيان کړه

حَدِيثًا لَيْسَ فِيهِ زِيَادَةٌ وَلَا نُقْصَانٌ فَغَضِبَ وَقَالَ إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَقْرَأُ

چي په هغه کي کمي او زياتوالي نه وي (په دې اوريدو سره) واثله رضي الله عنه په قهر سو او وې ويل: په تاسو کي چي هر څوک قرانکريم وايي

وَمُصْحَفُهُ مُعَلَّقٌ فِي بَيْتِهِ فَيَزِيدُ وَيَنْقُصُ فَقُلْنَا إِنَّمَا أَرَدْنَا حَدِيثًا سَمِعْتَهُ مِنْ

او قران کريم د هغه په کور کي وي مگر بيا هم په هغه کي کمي او زياتوالي راځي موږ ورته

وويل زموږ مطلب دادی چي کوم حديث تا د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي وي

النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَتَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

نو هغه و موږ ته و وایه هغه وويل يوه ورځ موږ د نبي کريم ﷺ په خدمت کي د يوه قريب په

صَاحِبٍ لَنَا أَوْجَبَ يَعْنِي النَّارَ بِالْقَتْلِ فَقَالَ أَعْتِقُوا عَنْهُ يُعْتِقُ اللَّهُ بِكُلِّ عُضْوٍ مِنْهُ عُضْوًا مِنْهُ مِنَ النَّارِ. رواه ابوداؤد والنسائي

معامله کي حاضر سو چي هغه خپل ځان په خپله وژلي وو او د ځان لپاره يې دوږخ واجب کړی وو (د دې قصې په اورېدو سره) نبي کريم ﷺ وفرمايل: د هغه له لوري يو غلام ازاد کړه الله تعالي به د هغه غلام د هر اندام په بدله کي د هغه و اندام ته نجات ورکړي. (ابوداؤد نسائي)

**تخريج**: سنن ابي داود ٤\ ٢٧٣ - ٢٧٤، رقم: ٣٩٦٤، النسائي في الكبرى ٣\ ١٧٢، رقم: ٤٨٩٢.

**تشريح**: حضرت واثله رضي الله عنه پوه سو چي د غريف رضي الله عنه مراد دادی چي د حديث په ترلاسه کولو سره د رسول الله ﷺ الفاظ بعينه روايت کړل سي، هغه له دې کبله په غصه سو او ذکر سوی جواب يې ورکړ، مګر حضرت غريف رضي الله عنه د خپلي خبري په وضاحت کولو سره وويل چي زما دا مطلب نه وو کوم چي تاسو وګڼل بلکه زما مراد دادی چي د رسول الله ﷺ حديث داسي بيان کړی چي د هغه په مضمون او مفهوم کي تغير نه وي که څه هم په الفاظو کي زياتوب او کمي وي.

ددې څخه معلومه سوه چي حديث داسي بيانول چي د هغه مضمون او مفهوم بعينه نقل سي که څه هم په الفاظو کي اختلاف وي دا جائز دي.

### د يو غلام په اړه سفارش کول غوره صدقه ده

﴿٣٢٤٢﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ الشَّفَاعَةُ بِهَا تُفَكُّ الرَّقَبَةُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بهترينه صدقه سفارش کول دي هغه سفارش چي د هغه په ذريعه ځان ته ازادي يا نجات حاصل سي. (بيهقي په شعب الايمان کي).

**تخريج** البيهقي في شعب الايمان ٦\ ١٢٤، رقم: ٧٦٨٣.

**تشریح**: مطلب دادی چي په سفارش کولو سره یو غلام ازادول یا یو څوک خپل غلام وژل غواړي یا هغه وهي نو په سفارش کولو سره هغه غلام ساتل غوره صدقه ده .

=========

# بَابُ اِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ وَشِرَی الْقَرِيْبِ وَالْعِتْقِ فِي الْمَرَضِ

## (د ګډ غلام ازادولو، د قریب رانیولو او د ناروغۍ په حالت کي د ازادولو بیان)

په دغه باب کي چي د کومو مسئلو او احکامو اړوند حدیثونه نقل کیږي په هغو کي یو دادی که چیري یو غلام مشترک (په ګډه) وي مثلاً دوه کسان زید او بکر په ګډه د یوه غلام مالکان وي او په هغوی کي یو شریک خپل برخه غلام ازاد کړي نو دوهم به څه کوي نو په دې باره کي جزوي ازادي یعني د یو غلام نیمه برخه ازاده سي او نیمه برخه یې غلام وي؟ په دې باره کي خپله د حنفیه په نزد مختلف قولونه دي، امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله فرمایي چي جزوي ازادي معتبره ده مګر صاحبین یعني امام ابویوسف او امام امحمد رحمة الله علیهما وایي چي جزوي ازادي معتبره نه ده ، دغه قولونه یوازي ددغه مسئلې سره اړوند نه دي بلکه ددې څخه نور مسائل او احکام هم پیدا کیږي چي مخته به ذکر سي .

ددغه باب دوهمه برخه داده چي د هغه غلام په محض رانیولو سره ازادیږي که څه هم هغه سړی یې ازاد کړي یا ازاد یې نه کړي البته په دې باره کي اختلافي قولونه دي چي د قریبانو څخه کوم خلک مراد دي ددې تفصیل به هم مخته راسي .

د باب دریمه برخه داده که یو سړی د ناروغۍ په حالت کي غلام ازاد کړي نو دهغه څه حکم دی ددې په باره کي احکام او مسائل به هم پر خپل ځای د حدیثو د تشریح تر څنګ بیان سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مشترک غلام ازادولو په اړه یو هدایت

﴿۳۲۴۳﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَعْتَقَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د مشترک غلام

شِرْكًا لَهُ فِي عَبْدٍ وَكَانَ لَهُ مَالٌ يَبْلُغُ ثَمَنَ الْعَبْدِ قُوِّمَ الْعَبْدُ عَلَيْهِ قِيمَةَ عَدْلٍ

خپله برخه ازاده کړي (هغه ته پکار ده) که د هغه سره دومره مال وي چي په هغه سره د غلام پاته برخه رانیولای سي نو غلام دي پوره ازاد کړي نو په انصاف سره دي د غلام قیمت کښښودل

فَأَعْطَى شُرَكَاءَهُ حِصَصَهُمْ وَعَتَقَ عَلَيْهِ الْعَبْدُ وَإِلَّا فَقَدْ عَتَقَ مِنْهُ مَا عَتَقَ .

متفق عليه .

سي او شریکانو ته دي د خپلو حصو قیمت ورکول سي او که دومره مال ور سره نه وي نو یوازي دي خپله برخه ازاده کړي .(بخاري او مسلم) .

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٥\١٥١، رقم: ٢٥٢٢، ومسلم ٢\١١٣٩، رقم: ١- ١٥٠١.

**تشریح**: ددغه حدیث شریف ظاهري مفهوم پر دې دلالت کوي که چیري د یو غلام د مثال په توګه دوه مالکان وي او په هغوی کي یو شریک خپل برخه ازادول غواړي که چیري هغه ازادونکی د قدرت خاوند نه وي چي دوهم شریک ته د هغه د برخي قیمت ورکړي نو په دغه صورت کي هغه غلام به د هغه سړي دبرخي په اندازه ازاد سي او د دوهم شریک د برخي په اندازه به غلام وي .

د حدیث ظاهري مفهوم پر دې دلالت کوي چي ازادي او غلامي متجزي کیدای سي یعني د یو غلام یو برخه ازادېدل او یوه برخه غلام کېدل جائز دي او دوهم شریک پر خپل برخه ازادولو باندي نه سي مجبور کولای او نه د هغه څخه استسعاء (محنت) کیدای سي د امام شافعي رحمه الله دا مذهب دی .

امام ابوحنيفة رحمه الله سره ددې چي د ازادۍ او غلامۍ د متجزي کېدو قائل دي مګر په دغه صورت کي د هغه مذهب دادی که ازادونکی سړی د قدرت خاوند وي نو هغه دي د دوهم سړي برخه رانیسي یا دوهم شریک دي د خپل برخي په اندازه د هغه غلام څخه استسعاء کړي یا هغه شریک دي هم خپله برخه ازاده کړي او که چیري ازادونکی سړی د قدرت خاوند نه وي نو بیا هغه دي خپل شریک ته خپل برخه نه ورکوي بلکه هغه شریک دي یا خو د هغه غلام څخه د استسعاء په ذریعه د خپل برخي قیمت ورکړي یا خپل برخه دي ازاده کړي په دغه صورت کي حق

د ولاء به دواړو ته حاصل وي ، په دې باره کي صاحبين وايي که ازادونکی سړی د قدرت خاوند وي نو د دوهم شريک برخه دي وګرځوي او که چيري د قدرت خاوند نه وي نو دوهم شريک دي د هغه غلام څخه د استسعاء په ذريعه د خپل برخي قيمت تر لاسه کړي او ازادي دي متجزي نه وي ځکه چي په دغه صورت کي حق ولاء به يوازي ازادونکي ته حاصل وي .

## د صاحبينو مستدل حديث

﴿۳۲۴۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَعْتَقَ شِقْصًا فِي عَبْدٍ اعتق كله ان كَانَ لَهُ مَالٌ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ اسْتُسْعِيَ الْعَبْدُ غَيْرَ مَشْقُوقٍ عَلَيْهِ . متفق عليه

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په يوه مشترک غلام کي خپله برخه ازاده کړي که د هغه سره دومره مال وو چي د نورو شريکانو د حصو قيمت ورکولای سي نو هغه غلام دي پوره ازاد کړي او که دومره مال ورسره نه وو نو په غلام دي مزدوري وکړي او پاته برخه دي ازاده کړي مګر د غلام څخه دي دومره کار نه اخيستل کيږي چي د هغه د توان څخه وتلی وي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۳۷، رقم: ۲۵۰۴، ومسلم ۱۲\۱۱۴۰، رقم: ۳- ۱۵۰۳.

**د لغاتو حل**: شِقصا : ای نصيبا (برخه).

## د زکندن پر وخت د خپل ټولو غلامانو په ازادولو سره د وارثانو حق مه تلفوئ

﴿۳۲۴۵﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ سِتَّةَ مَمْلُوكِينَ لَهُ عِنْدَ

د عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړي د مرګ په وخت کي شپږ غلامان ازاد کړل

مَوْتِهِ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرَهُمْ فَدَعَا بِهِمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د هغه سره د دې څخه پرته نور بل څه نه وه رسول الله ﷺ هغه غلامان را وغوښتل او هغوی

فَجَزَّأَهُمْ أَثْلَاثًا ثُمَّ أَقْرَعَ بَيْنَهُمْ فَأَعْتَقَ اثْنَيْنِ وَأَرَقَّ أَرْبَعَةً وَقَالَ لَهُ قَوْلًا

يې درې حصې کړل وروسته يې د دوی په مينځ کي قرعه (پچه اچونه) وکړه په هغوی کي يې

دوه ازاد كړه او څلوريې غلامان وساتل او د ازاد كونكي لپاره يې سخت الفاظ وفرمايل او

شَدِيدًا رواه مسلم وروى النسائي عنه وذكر لقد هممت ان لا اصلي عليه

بدل وقال له قولا شديدا و في رواية ابي داؤد قال لو شهدته قبل ان يدفن

لم يدفن في مقابر المسلمين.

دنسائي په يوه روايت كي دا الفاظ دي ما اراده كړې وه چي دده په جنازه باندي لمونځ و نكړم او د ابوداؤد په يوه روايت كي دي كه زه د هغه د ښخولو په وخت كي واى نو ما د هغه قبر د مسلمانانو د هديرې څخه ايستلي واى.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٢٨٨\٣، رقم: ٥٦- ١٦٦٨، والنسائي ٦٤\٤، رقم: ١٩٥٨.

**تشريح**: دوه يې ازاد كړل ....: ددې مطلب دادى چي رسول الله ﷺ دا حكم نافذ كړ چي د كومو دوو قرعه (پچه) راوتلې ده هغه ازاد دي او پاته څلور به غلامان وي ، ددې څخه دا ثابته سوه كه چيري يو سړى د خپل مرض الموت په وخت كي خپل ټول غلامان ازاد كړي نو د هغه د ازادۍ نافذ كېدل به يوازي د هغه د غلامانو په دريمه برخه كي وي ځكه چي په مرض الموت كي د هغه په مال سره د هغه د وارثانو حق متعلق وي همدارنګه وصيت، صدقه، هبه او داسي نورو كي هم دريمه برخه مال كي نافذ كيږي.

زين العرب رحمه الله وايي چي رسول الله ﷺ دا حكم ځكه جاري كړ چي هغه وخت په عامه توګه سره غلامان يو ډول وه چي قيمت يې مساوي وو او امام نووي رحمه الله د امام ابوحنيفة رحمه الله دا قول نقل كړى دى چي په داسي صورت كي به د هر غلام دريمه برخه ازاده ګڼل كيږي او د پاته دوو برخو په اندازه به د هغه څخه خدمت اخيستل كيږي ، رسول الله ﷺ د هغه سړي څخه ځكه د ناخوښۍ اظهار وكړ چي هغه د خپل ټولو شپږو غلامانو په ازادولو سره خپل وارثان بالكل محروم كړي وه چي د رسول الله ﷺ په نزد بد عمل وو ځكه رسول الله ﷺ د هغه پر وارثانو داسي شفقت وكړ چي د هغه سړي له خوا ازادي يې په دوو غلامانو كي جاري كړل او پاته څلور غلامان يې د هغه د وارثانو حق وګرځوى.

د حديث شريف څخه معلومه سوه چي مړي ته د هغه پر نامشروع او ظالمانه عمل باندي بد ويل كيداى سي او دا ددغه ارشاد (اذكروا امواتكم بالخير) يعني خپل مړي په نيكۍ سره

يادوئ، ددې خلاف نه دئ، او همدرانګه که چيري يو سړی مړ کيږي او خپل ميراث په زامنو کي وويشي اولوڼي محرومي کړي نو د وخت حکومت دغه فيصله منسوخ کولای سي او د شريعت سره سم لوڼو ته د هغوی حق ورکولای سي.

## د غلام پلار ازادول

﴿٣٢٤٦﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَجْزِي وَلَدٌ وَالِدًا إِلَّا أَنْ يَجِدَهُ مَمْلُوكًا فَيَشْتَرِيَهُ فَيُعْتِقَهُ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅ يو زوی د خپل پلار د احساناتو بدله نسي پوره کولای خو په هغه صورت کي چي پلار يې د يو چا غلام وي هغه رانيسي او ازاد يې کړي. (مسلم).

**تخريج**: صحيح مسلم ١١٤٨/٢، رقم: ٢٥- ١٥١٠.

**تشريح**: ددغه حديث د ظاهري مفهوم څخه معلوميږي چي پلار يوازي د زوی په رانيولو سره نه ازاديږي بلکه کله چي هغه يې رانيسي او ازاد يې کړي نو بيا ازاديږي، د اصحاب ظواهر دا مذهب دئ مګر د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي پلار د خپل زوی په محض ملکيت کي راتلو سره ازاديږي، ددې وضاحت د دوهم فصل په اول حديث کي هم سوی دی او ددغه حديث معنی هم دغه ده، حضرت مظهر رحمة الله عليه وايي چي په (فيعتقه) کي حرف د فاء د سبب لپاره دی او په دغه صورت کي د حديث د آخري برخي ترجمه به دا وي چي کله هغه خپل پلار د يو چا غلام ويني او د هغه ازادولو لپاره يې رانيسي نو د رانيولو څخه وروسته ددې ضرورت نه سته چي زوی پلار ته داسي ووايي چي ما ته ازاد کړې بلکه د هغه په محض رانيولو سره ازاديږي.

## د مدبر غلام خرڅول جائز دي که يا؟

﴿٣٢٤٧﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ دَبَّرَ مَمْلُوكًا لَهُ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي يوه انصاري خپل يو غلام مدبر (چي زما د مرګ وروسته ته ازاد يې) کړ او د هغه سره د غلام پرته بل څه نه وه

غَيْرُهُ فَبَلَغَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ يَشْتَرِيهِ مِنِّي فَاشْتَرَاهُ

نبي کريم ﷺ د دې څخه خبر سو نو خلکو ته يې وفرمايل: دا غلام زما څخه څوک رانيسي؟

نُعَيْمُ بْنُ النَّحَّامِ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ . متفق عليه و في رواية لمسلم فَاشْتَرَاهُ

نعيم بن نحام هغه غلام په اته سوه درهمه باندي رانيوي .(بخاري او مسلم) او د مسلم په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي نعيم بن عبد الله عدوي

نُعَيْمُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْعَدَوِيُّ بِثَمَانِ مِائَةِ دِرْهَمٍ فَجَاءَ بِهَا النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

په اته سوه درهمه هغه غلام رانيوي او اته سوه درهمه يې و نبي کريم ﷺ ته پيش کړې

وَسَلَّمَ فَدَفَعَهَا إِلَيْهِ ثُمَّ قَالَ ابْدَأْ بِنَفْسِكَ فَتَصَدَّقْ عَلَيْهَا فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ

نبي کريم ﷺ درهم و هغه سړي ته ور کړل د چا چي غلام وو بيا يې ورته وفرمايل : تر ټولو څخه مخکي دا پيسې په خپل ځان باندي خرڅي کړه او وروسته ځيني خيرات وکړه بيا چي څه

فَلِأَهْلِكَ فَإِنْ فَضَلَ عَنْ أَهْلِكَ شَيْءٌ فَلِذِي قَرَابَتِكَ فَإِنْ فَضَلَ عَنْ ذِي

پاته سي په خپل کور والايې و خوره او د دې څخه چي هم پاته سي نو

قَرَابَتِكَ شَيْءٌ فَهٰكَذَا وَهٰكَذَا يَقُولُ فَبَيْنَ يَدَيْكَ وَعَنْ يَمِينِكَ وَعَنْ شِمَالِكَ .

په قريبانو يې خرڅ کړه او د دې څخه چي هم يو څه پاته سي نو داسي او داسي يې خرڅي کړه نبي کريم ﷺ راسته او چپه خواته اشاره وکړه .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٦٠٠، رقم: ٦٧١٦. ومسلم ٣\١٢٨٩، رقم: ٥٨- ٩٩٧.

**تشريح** د مدبر معنى داده چي يو شوک خپل غلام ته ووايي چي ته زما د مرګ څخه وروسته ازاد يې، ددغه حديث د ظاهري مفهوم سره سم داسي غلام پلورل د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما په نزد جائز دئ ، امام ابو حنيفة رحمه الله وايي چي مدبر پر دوه ډوله دی يو مدبر مطلق او دوهم مدبر مقيد ، مدبر مطلق هغه غلام دی چي د هغه مالک هغه ته داسي ووايي چي زما د مرګ څخه وروسته ته ازاد يې او مدبر مقيد هغه غلام دی چي د هغه مالک هغه ته داسي ووايي که چيري زه په دغه ناروغۍ کي مړ سوم نو ته ازاد يې، د مدبر مطلق حکم دادی چي داسي غلام ازادېږي مګر پلورل کيږي نه او نه هغه په تحفه کي ورکول کيدای سي ، مګر د هغه څخه خدمت اخيستل جائز دي، همدارنګه که چيري مينزه وي نو د هغې سره جماع کول هم جائز دي او د هغې د خوښۍ څخه پرته نکاح کول هم جائز دي، داسي غلام د خپل مالک د مرګ څخه

وروسته د هغه د دريمي برخي د مال څخه ازاديږي او كه د دريمي برخي مال څخه پوره ازاد كېداى نه سي نو بيا د دريمي برخي د مال په اندازه ازاديږي، د مدبر مطلق پر خلاف د مدبر مقيد پلورل جائز دي او كه هغه شرط پوره سي يعني مالک په هغه ناروغۍ كي مړ سي نو بيا څرنگه چي مدبر مطلق د خپل مالک د مرگ څخه وروسته ازاديږي همدارنگه مدبر مقيد هم ازاديږي، امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د دغه حديث په مفهوم كي دا تاويل كوي چي رسول الله ﷺ كوم مدبر پلورى هغه به مدبر مقيد وو.

د مشكوة شريف په ټولو نسخو كي نعيم ابن نحام ليكلى دى مگر علماء وايي چي دا د كاتب غلطي ده د نعيم بل نوم نحام دى او ددغه دوهم د تسميې وجه داده چي رسول الله ﷺ د هغه په باره كي ويلي وه چي زه په جنت كي داخل سوم نو هلته مي د نعيم آواز واوريدى نو ددې مناسبت سره هغه ته نحام وويل سول.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ذي رحم په ملكيت كي راتلو سره ازاد كيږي

﴿٣٢٤٨﴾: عَنْ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ مَلَكَ ذَا رَحِمٍ مَحْرَمٍ فَهُوَ حُرٌّ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

حسن رضي الله عنه د سمره رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د محرم قرابتدار مالک وي هغه قرابتدار محرم ازاد دى. (يعني څوک چي يو محرم قريب رانيسي يا و هغه ته په هبه او يا وصيت كي ورسيږي د هغه په ملكيت كي د راتلو سره ازاد دى.) (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه).

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٦٤٦، رقم: ١٣٦٥، وابوداود ٤\٢٥٩، رقم: ٣٩٤٩، وابن ماجه ٢\٨٤٣، رقم: ٢٥٢٤.

**تشريح**: د مثال په توگه د يو چا زوى غلام وي او پلار هغه رانيسي يا پلار غلام وي او زوى يې رانيسي يا ورور غلام وي او بل ورور يې رانيسي نو محض د رانيولو په وجه هغه غلام ازاديږي ذي رحم هغه قريبانو ته وايي چي د ولادت قرابت لري او د هغه تعلق د رحم سره وي، په ذي رحم كي زوى، پلار، ورور، اكا او داسي نور قريبان شامل دي او محرم هغه قريب ته وايي چي د هغه

سره نکاح جائز نه وي ، ددې ځخه معلومه سوه چې د اکا د زوی او داسي نور قریبان په محرم کي شامل نه دي .

علامه نووي رحمة الله علیه وایي چي په دې باره کي د قریب په محض ملکیت راتلو سره ازادیږي که یا؟ په دې باره کي د علماؤ مختلف قولونه دي د اهل ظواهر قول دادی چي په دغه قریبانو کي هیڅوک هم په محض ملکیت سره نه ازادیږي بلکه ازادول ضروري دي ، د دوي دلیل د حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی کوم چي په اول فصل کي تېر سوی دی .

جمهور علماء وایي چي محض په ملکیت کي د راتلو په وجه د اصول د درجې قریبان (لکه پلار ، نیکه ...) او د فروع د درجې قریبان (لکه زوی ، ملسی...) ازاد کیږي مګر د اصول او فروع ځخه پرته د نورو قریبانو په باره کي د جمهورو علماؤ هم مختلف قولونه دي، د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی چي دا خصوصیت یوازي د اصول او فروع قریبانو ته حاصل دی چي هغه محض د ملکیت په راتلو سره ازادیږي او امام مالک رحمة الله علیه په دغه خصوصیت کي ورور هم شامل کړی دی ، دهغه دوهم قول دادی چي ټول ذي رحم محرم ازادیږي .

او د هغه دریم روایت د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب مطابق دی ، د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه مذهب دادی چي هر قریب چي ذي رحم محرم وي هغه محض په ملکیت کي په راتلو سره ازادیږي .

## ام ولد د خپل بادار د وفات وروسته ازادوي

﴿۳۲۲۹﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا وَلَدَتْ أَمَةُ الرَّجُلِ مِنْهُ فَهِيَ مُعْتَقَةٌ عَنْ دُبُرٍ مِّنْهُ أَوْ بَعْدَهُ . رواه الدارمي .

د ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د چا مینزه چي د هغه د نطفې ځخه بچی راوړي نو هغه د هغه سړي (یعني د خپل مالک) د مرګ وروسته دي ازاده سي . (دارمي)

**تخریج**: سنن الدارمي ۲\ ۳۳۴، رقم: ۲۵۷۴.

**تشریح**: مطلب دادی چي کومه مینزه د خپل مالک ځخه کوچنی پیدا کړي هغه د مالک د مرګ ځخه وروسته ازادیږي هغه د مالک په ژوند کي ازاده نه وي مګر مالک هغه پلورلای نه سي او نه یې چا ته په تحفه کي ورکولای سي ، پر دې مسئله باندي د ټولو علماؤ اجماع او اتفاق دی ، ددې پر خلاف چي کوم روایت نقل سوی دی هغه منسوخ دی، ددې تفصیل به د راتلونکي حدیث په تشریح کي راسي .

﴿۳۲۵۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ بِعْنَا أُمَّهَاتِ الْأَوْلَادِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكْرٍ فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ نَهَانَا عنه فَانْتَهَيْنَا . رواه ابوداؤد .

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ او ابو بکر رضی اللہ عنہ په زمانه کي هغه منيځي خرڅولې چي د هغې څخه اولاد سوي وو مګر حضرت عمر رضی اللہ عنہ په خپل خلافت کي د دې څخه منعه کړو او موږ د دې څخه منعه سولو .(ابو داؤد)

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۲۷۰، ۲۷۱، رقم: ۳۹۶۲، وابن ماجه ۲\ ۸۴۵، رقم: ۲۵۲۹.

**تشريح**: د کوچنيانو د ميندو څخه مراد هغه مينزي دي چي د هغوی څخه د هغوی د مالکانو اولاد سوی وي ، دلته يو اعتراض پيدا کيږي هغه دا چي کله د رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ په زمانه کي هغه مينزي وپلورل سوې نو حضرت عمر رضی اللہ عنہ ددې څخه ولي منع وکړه ، ددې جواب دادئ چي ددې خبري قول احتمال دئ چي د هغه مينځو د پلورلو اجازه د منسوخۍ حکم به د رسول الله ﷺ په زمانه کي عامو خلکو ته نه وي رسيدلی او د هغه مينزو د پلورلو خبر به د رسول الله ﷺ څخه نه وي رسيدلی نو په دغه صورت کي د حضرت جابر رضی اللہ عنہ دغه ارشاد د داسي مينزو د پلورلو د جواز دليل نه سي کيدای ، دليل خو هغه وخت کيدای سي چي رسول الله ﷺ د هغه مينزو د خرڅولو خبر ورکړی وي او رسول الله ﷺ جائز کړی وي .

يو احتمال داهم دی چي د رسول الله رضی اللہ عنہ په زمانه کي د هغه مينزو د پلورلو واقعه د هغه د اجازې د منسوخۍ څخه مخکي وي، همدارنګه د حضرت ابوبکرصديق رضی اللہ عنہ د زمانې په باره کي هم دا احتمال دی چي د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ د خلافت زمانه ډېره لږ وه په هغه کي هم هغه په نورو کارو کي بوخت وو ځکه هغه ته به ددې علم نه وي سوی که چيري خبر سوی وای نو خامخا به يې منع کولای ، د حضرت ابوبکر صديق رضی اللہ عنہ څخه وروسته حضرت عمر رضی اللہ عنہ خليفه سو نو هغه خلک ددې څخه منع کړل ځکه چي هغه ته معلومه وه چي رسول الله ﷺ د ام ولد د پلورلو څخه منع فرمايلې وه .

### که چيري د ازادۍ پر وخت د غلام سره مال وي نو د بادار د اجازې وروسته د هغه مالک دی

﴿۳۲۵۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَعْتَقَ

عَبْدًا وَلَهُ مَالٌ فَمَالُ الْعَبْدِ لَهُ إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَهُ السَّيِّدُ . رواه ابوداؤد وابن ماجة

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :څوک چي غلام ازاد کړي او د غلام سره مال وي نو هغه مال د هغه مالک دی مګر که شرط يې کړی بادار يا ازادونکي دی خو دا چي مالک ووايي چي غلام د خپل مال هم مالک دی . (ابوداؤد ابن ماجه).

**تخريج** سنن ابي داود ۴\۲۷۰، رقم: ۳۹۶۲، وابن ماجه ۲\۸۴۵، رقم: ۲۵۲۹.

**تشريح** څرګنده ده چي هيڅ غلام د هيڅ مال مالک نه وي نو د هغه سره به مال د کومه وي او که چيري د هغه سره مال وي نو د هغه څخه مراد دادی چي هغه غلام به د خپل مالک په اجازه سره مزدوري يا تجارت کړی وي او د هغه په نتيجه کي چي کوم مال ترلاسه سوی وي که چيري هغه مال د غلام سره وي نو د هغه په باره کي هم دا حکم دی چي هغه په اصل کي د هغه غلام د بادار ملکيت دئ ځکه چي غلام او د هغه سره چي څه وي د ټولو مالک د هغه بادار دئ نو دا ګمان دي نه کيږي چي غلام د ازاد کېدو په وجه د ملکيت قائم کولو اهل سوی دی نو هغه مال چي د مخکي څخه د هغه سره موجود وو هغه د هغه په ملکيت کي راغلی دی ځکه چي هغه مال خو مخکي هم د هغه د بادار ملکيت وي د غلام به د هغه سره هيڅ کار نه وي، مګر که چيري د هغه بادار د هغه د ازادولو پر وخت دا ووايي چي دغه مال د غلام ملکيت دی نو په دغه صورت کي به هغه مال به د بادار له خوا د هغه غلام لپاره صدقه او تحفه سي او هغه به د ازاد کېدو څخه وروسته د هغه مالک وي .

## ازادي په جزوي توګه واقع کيږي که يا؟

﴿۳۲۵۲﴾ : وَعَنْ اَبِي الْمَلِيحِ عَنْ اَبِيهِ أَنَّ رَجُلًا أَعْتَقَ شِقْصًا مِنْ غُلَامٍ فَذُكِرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ لَيْسَ لِلّٰهِ شَرِيكٌ فَأَجَازَ عِتْقَهُ . رواه ابوداؤد .

ابو المليح رضي الله عنه د خپله پلاره څخه روايت کوي چي يوه سړي د خپل غلام يوه برخه دده لپاره ازاده کړه د دې ذکر يې و رسول الله ﷺ ته وکړ نبي کريم ﷺ وفرمايل: د خداي تعالي هيڅوک شريک نسته بيا نبي کريم ﷺ حکم وکړ چي غلام دي بالکل ازاد کړل سي . (ابوداؤد).

**تخريج** سنن ابي داود ۴\۱۵۱، رقم: ۲۹۳۳.

**د لغاتو حل** شِقصا : ای نصيبا . (برخه، ونډه).

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادئ چي کوم کار د الله ﷻ لپاره وکړل سي او هغه د عبادت څخه وي نو په هغه کي دي خپل برخه نه ګډوي، د يو غلام ځيني برخه ازادول او ځيني غلام ساتل مناسب نه دي.

د حديث د آخري الفاظو څخه دا ثابتيږي چي ازادي او غلامي متجزي نه وي مګر امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د متجزي قائل دئ ځکه د هغه په نزد د دغه الفاظ معنی داده چي رسول الله ﷺ د هغه غلام د ازادولو حکم وکړ په دې توګه چي د هغه مالک ته يې ترغيب ورکړ چي هغه غلام ټول ازاد کړه.

## د مشروط ازادۍ يو واقعه

﴿٣٢٥٣﴾: وَعَنْ سَفِينَةَ قَالَ كُنْتُ مَمْلُوكًا لِأُمِّ سَلَمَةَ فَقَالَتْ أُعْتِقُكَ وَأَشْتَرِطُ

د حضرت سفينه رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د بي بي ام سلمه (رض) په ملکيت کي وم (يوه ورځ) هغې ماته وويل زه تا په دې شرط ازادوم چي

عَلَيْكَ أَنْ تَخْدُمَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عِشْتَ فَقُلْتُ وَإِنْ لَمْ

تر څو پوري ژوندی يې د رسول الله ﷺ څخه به نه جلا کېږې (خدمت به يې کوې) ما وويل که

تَشْتَرِطِي عَلَيَّ مَا فَارَقْتُ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ مَا عِشْتُ فَأَعْتَقَتْنِي وَاشْتَرَطَتْ عَلَيَّ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

پر ما شرط نه ايږدې هم به د نبي کريم ﷺ څخه جلا نسم نو ام سلمه رض زه ازاد کړم او د نبي کريم ﷺ د خدمت شرط يې پر ما ولګوی. (ابن ماجه ابو داؤد).

**تخريج**: سنن ابي داود ٤\٢٥٠، رقم: ٣٩٢٢، وابن ماجه ٢\٨٤٤، رقم: ٢٥٢٦.

**تشريح**: سفينه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام وو مګر ځيني حضرات وايي چي د بي بي ام سلمه رضي الله عنها غلام وو چي د رسول الله ﷺ زوجه مبارکه وه او بيا بي بي ام سلمه رض هغه په ذکر سوو شرطو سره ازاد کړی، د سفينه اصل نوم مهران يا رومان يا رباح وو، د هغه کنيت ابوعبدالرحمن يا ابو البختري وو، سفينه د هغه لقب وو او په دغه نامه زيات مشهور وو، د دغه لقب اېښودو وجه دا وه چي د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو خدمت به يې کوی او کله چي به غزاوو ته تلل نو د خلکو سامان به يې پر خپل شا باندي په اچولو سره وړی.

سفينه کښتۍ ته وايي لکه څرنګه چې کښتۍ د بار وړلو لپاره وي همدارنګه هغه به هم د خلکو بار پورته کوی ، په دې اعتبار سره د هغه لقب سفينه سو، نقل سوي دي چې يو وار حضرت سفينه رضي الله عنه د اسلامي لښکر سره ملګری وو چې هغه د قافلې څخه جلا سو او په ځنګل کي لار ځيني ورکه سوه ، هغه د لارې په لټون کي سرګردانه وو چې ناڅاپه يو زمری را ښکاره سو او د هغه مخته راغلی ، د زمري په لېدو سره هغه ورته وويل اې ابو الحارث زه سفينه يم د رسول الله ﷺ ازاد سوی غلام يم ، ددې په اورېدو سره زمري لکۍ ښورول شروع کړل او بيا د هغه مخته سو او هغه يې خپل منزل ته ورسوی .

## مکاتبت کله ختميږي

﴿۳۲۵۴﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُكَاتَبُ عَبْدٌ مَا بَقِيَ عَلَيْهِ مِنْ مُكَاتَبَتِهِ دِرْهَمٌ . رواه ابوداؤد

عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره او هغه د خپل پلاره څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: په مکاتب غلام باندي ترڅو پوري چې يو درهم هم پاته وي هغه غلام دی . (ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۴۲، رقم: ۳۹۲۶.

**تشريح**: مکاتب هغه غلام ته وايي چې د هغه مالک دا ليکلي ورکړي وي چې کله ته دومره روپۍ راکړې نو ازاد به سې، په دې باره کي ويل سوي دي چې مالک د هغه ازادۍ لپاره څومره روپۍ ټاکلي وي ترڅو چې هغه مالک ته پوره ادا نه کړي هغه به مکاتب وي که په هغه روپو کي يوه هم پاته وي نو هغه به ازاد نه وي ، داسي نه کيږي چې هغه څومره روپۍ مالک ته ورکړي په هغه حساب سره به د هغه هغومره برخه ازاديږي او څومره روپۍ چې پاته وي د هغه حساب سره به هغه غلام وي .

## د مکاتب غلام څخه پرده

﴿۳۲۵۵﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ عِنْدَ مُكَاتَبِ إِحْدَاكُنَّ وَفَاءٌ فَلْتَحْتَجِبْ مِنْهُ . رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي چې داسي يو مکاتب غلام وي چې دومره مال ولري چې د هغه په بدله کي (د خپلي ازادي قيمت )ادا کړي

نو د هغه مالكي ته پكار ده چي د هغه څخه ستر او پرده كوي .(ترمذي ابوداؤد ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\ ٥٦٢، رقم: ١٢٦١، وابوذاود ٤\ ٢٤٤، رقم: ٣٩٢٨، وابن ماجه ٢\ ٨٤٢، رقم: ٢٥٢٠.

**تشريح**: مطلب دادی چي تر څو پوري مكاتب د كتابت پوره بدل ادا نه كړي نو غلام او محرم دی او د هغه څخه پرده كول ضروري نه دي مګر كله چي د هغه سره دومره مال وي چي په هغه سره د خپل ټول كتابت ادا كولای سي نو ګويا هغه په حقيقت كي خپل بدل كتابت ادا كړی دی .

په دې باره كي صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ دا حكم په خاصه توګه د خپلو بيبيانو مباركانو لپاره وو او د بيبيانو مباركانو پرده هم د نورو ښځو په نسبت زياته سخته وه .

## د مكاتب له خوا د بدل كتابت د جزوي اداينې مسئله

﴿٣٢٥٦﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره او هغه د خپل پلاره څخه روايت كوي چي رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَاتَبَ عَبْدَهُ عَلَى مِائَةِ أُوقِيَّةٍ فَأَدَّاهَا إِلَّا عَشْرَةَ أَوَاقٍ أَوْ

ﷺ وفرمايل: چاچي خپل غلام سل اوقيه مكاتب جوړ كړ او په هغه يوازي لس اوقيه پاته وي

قَالَ عَشَرَةَ دَنَانِيرَ ثُمَّ عَجَزَ فَهُوَ رَقِيقٌ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة

او يا يې وويل چي لس اشرفی. او نيوي يې ادا كړي وي او د هغه څخه وروسته د قيمت د ادا كولو څخه عاجزه سو نو هغه غلام دي (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه)

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\ ٥٦١، رقم: ١٢٦٠، وابوداود ٤\ ٢٤٤، رقم: ٣٩٢٧، وابن ماجه ٢\ ٨٤٢، رقم: ٢٥١٩.

**تشريح**: ابن مالک رحمه الله وايي چي دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي مكاتب د خپل بدل كتابت د يو برخي د ادا كولو څخه عاجز كېدل د ټول بدل كتابت د ادا كولو څخه عاجز كېدل دي نو په داسي صورت كي مالک ته د هغه د كتابت فسخ كولو حق دی او د فسخ كتابت څخه وروسته به هغه غلام وي او د حديث د الفاظو (فهو رقيق) څخه دا ثابتيږي چي هغه مكاتب د خپل بدل كتابت كومه برخه چي مالک ته وركړې وه هغه به د هغه مالک ملكيت وي .

﴿٣٢٥٧﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَصَابَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :كله چي يوه مكاتب ته د

الْمُكَاتَبُ حَدًّا أَوْ مِيرَاثًا وَرِثَ بِحِسَابِ مَا عَتَقَ مِنْهُ . رواه ابوداؤد والترمذي

خپل قریب وینه بهېدل حاصل سي یا هغه د چا د مال وارث سي نو هغه ته به یوازي دومره مال ورکول کیږي څومره چي هغه په ازادیږي.(ابوداؤد ترمذي)

و في رواية له قال يؤدي المكاتب بحصة ما ادى دية حر ومابقي دية عبد وضعفه .

او د ترمذي په یو بل روایت کي دا الفاظ دي چي حضرت ویلي دي چي دیت به ورکول کیږي مکاتب ته په حصه د هغه چي ادا کړی وي دیت د اصیل او هغه چي باقي دیت وي د مریي . (ترمذي و دې حدیث ته ضعیف ویلي دي) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۷۰٦–۷۰۷، رقم: ۴۵۸۲، والترمذي ۳\ ٥٦٠، رقم: ۱۲۵۹.

**تشريح**: د دیت یا مېراث وړ سي: ددې مطلب دادی که چیري یو مکاتب د دیت یا مېراث حقدار سي د هغه دیت یا مېراث څخه به هغه ته په دومره اندازه تر لاسه کیږي په څومره چي هغه ازاد سوی دی د مثال په توګه زید د یو سړي غلام و او د هغه مالک هغه مکاتب کړی او زید اوس د خپل بدل کتابت څخه نیمه برخه خپل مالک ته ورکړې ده چي د هغه پلار مړ سو کوم چي ازاد سړی وو مګر هغه د خپل دغه مکاتب زوی یعني زید څخه پرته بل څوک وارث نه وو نو په دغه صورت کي به زید د خپل پلار د وراثت څخه یوازي د نیمي برخي حقدار وي ، او یا دوهم صورت به دا وي چي هغه مکاتب د خپل بدل کتابت څخه نیمه برخه خپل مالک ته ادا کړې وه چي هغه قتل کړ په دغه صورت کي به قاتل د هغه مکاتب د نیمي ازادۍ برخي دیت د هغه وارثانو ته ورکوي او د هغه د نیمي برخي غلام دیت چي د هغه د قیمت نیمه برخه ده د هغه مالک ته ورکوي د مثال په توګه بکر خپل غلام زید د زرو روپو په بدل کي مکاتب کړ ، او زید د غلام کېدو په حیثیت سره د سلو روپو د قیمت وو او د مکاتب کېدو څخه وروسته زید خپل مالک ته د خپل بدل کتابت تر کل سوي زر روپو څخه پنځه سوه روپۍ ادا کړی وې چي یو سړي هغه ووژی نو په دغه صورت کي به قاتل د زید وارثانو ته پنځه سوه روپۍ ورکوي چي د هغه د ازادۍ د قیمت نیمه برخه ده او د هغه مالک ته به پنځوس روپۍ ورکوي چي د هغه د اصل قیمت نیمه برخه ده .

د دغه حديث څخه دا ثابتيږي چي مكاتب د خپل بدل كتابت څخه كوم مقدار چي مالك ته وركړی وي د هغه په اندازه به هغه ازاد سي او كوم مقدار چي يې ادا كړی نه دی د هغه په اندازه به غلام وي ، په دغه حديث باندي يوازي امام نخعي رحمه الله عمل كړی دی مگر جمهور علماء وايي چي نه يوازي دا چي دا حديث ضعيف دی چي د يو مذهب بنياد نه سي كيدای بلكه دا د هغه دواړو صحيحو حديثو معارض هم دی كوم چي تر دې مخكي نقل سوي چي د هغه څخه په صراحت دا ثابتيږي چي د مكاتب پر ذمه تر څو د بدل كتابت يوه برخه هم پاته وي نو هغه به غلام وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مالي عبادت ثواب مړي ته رسيږي

﴿٣٢٥٨﴾: عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عُمْرَةَ الْاَنْصَارِيِّ اَنَّ اُمَّهُ اَرَادَتْ اَنْ تُعْتِقَ

د حضرت عبد الرحمن بن ابی عمره انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي زما مور د يوه غلام د ازادلو اراده وكړه

فَاَخَّرَت ذَالِكَ اِلٰى اَنْ تُصْبِحَ فَمَاتَتْ قَالَ عَبْدُالرَّحْمٰنِ فَقُلْتُ لِلْقَاسِمِ بْنِ

او په ازادولو كي يې ځنډ وكړ تر صبا پوري تر دې پوري چي مړه سوه ما (د هغې د مرګ څخه

مُحَمَّدٍ اَيَنْفَعُهَا اَنْ اُعْتِقَ عَنْهَا فَقَالَ الْقَاسِمُ اتى سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ رَسُوْلَ اللهِ

وروسته) د قاسم بن محمد څخه پوښتنه وكړه كه زه د خپلي مور له طرفه (غلام) ازاد كړم نو ايا هغې ته به يو څه فائده ورسيږي ؟ قاسم وويل يو وار حضرت سعد بن عباده د رسول الله ﷺ په

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال إِنَّ أُمِّي هَلَكَتْ فَهَلْ يَنْفَعُهَا أَنْ أُعْتِقَ عَنْهَا

فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ . رواه مالك

خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ زما مور مړه سوې ده كه زه د هغې له طرفه څوک ازاد كړم نو هغې ته به څه ګټه ورسيږي ؟ نبي ﷺ وفرمايل: هو ! (يعني نفعه به ورته وكړي) . مالک

**تخريج**: الموطا ٢\٧٧٩، رقم: ١٣. بلفظ فيه اختلاف يسير.

**تشريح**: حضرت قاسم ابن محمد رحمه الله د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ملسی وو ، په مدينه

منوره کي چي کوم اووه فقهاء مشهور وو په هغو کي يو دی هم وو.

گټه به ور ته ورسيږي: ددې مطلب دادی چي ته د هغې له خوا يو غلام ازاد کړې نو ثواب به يې ستا مور ته ورسيږي د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي د مالي عبادت ثواب مړي ته رسيږي البته د بدني عبادت ثواب په رسيدو کي اختلاف دی مګر صحيح قول دادی چي د بدني عبادت ثواب هم رسيږي.

﴿۳۲۵۹﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ قَالَ تُوُفِّيَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ فِي نَوْمٍ نَامَهُ فَأَعْتَقَتْ عَنْهُ عَائِشَةُ اخته رِقَابًا كَثِيرَةً. رواه مالك.

د حضرت يحيي بن سعيد رحمه الله څخه روايت دی چي عبدالرحمن ناڅاپه په خوب خوب کي مړ سو د هغه د مرګ څخه وروسته د هغه خور حضرت عائشې رض ډېر غلامان ازاد کړل. (مالک)

**تخريج**: الموطا ۲\ ۷۷۹، رقم: ۱۴.

**تشريح**: بي بي عائشې رضي الله عنها ډير غلامان او مينزي ازاد کړي دي، ددې سبب يا خو دا وو چي پر حضرت عبدالرحمن باندي په يو وجه د غلامانو ازادول واجب وه چي په خپل ژوند کي په هغه عمل ونه کړل سو نو بي بي عايشې رضي الله عنها خپله د هغه له خوا غلامان ازاد کړل يا دا چي په ځينو حالاتو کي ناڅاپه مرګ ښه نه ګڼل ځرګند دي چي په دغه صورت کي بي بي عائشه رضي الله عنها ډېره غمجنه سوه ځکه هغې ډېر غلامان ازاد کړل چي په دغه صورت کي تاوان دفع سي.

## په غير مشروط توګه د غلام رانيوتکی د هغه غلام د مال حقدار نه دی

﴿۳۲۶۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اشْتَرَى عَبْدًا فَلَمْ يَشْتَرِطْ مَالَهُ فَلَا شَيْءَ لَهُ. رواه الدارمي.

د عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي يو غلام رانيسي او د هغه د مال شرط و نه کړي نو رانيونکي ته د هغه غلام د مال هيڅ برخه نسته. (دارمي)

**تخريج**: سنن الدارمي: ۲\ ۳۳۰. رقم: ۲۵۶۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم کس يو غلام رانيوی او د رانيولو په معامله کي هغه مال شامل نه کړ کوم چي د غلام سره دی نو هغه ددې مال حقدار نه جوړيږي ځکه هغه مال په اصل کي د مالک په ملکيت کي دی د کوم څخه چي يې هغه غلام رانيولی دی.

# بَابُ الْاَيْمَانِ وَالنّذُوْرِ

## (د قسمو او نذرو بيان)

د قسمو درې ډولونه دي ۱: غموس، ۲: لغو، ۳: منعقده.

يمين غموس هغه قسم ته وايي چې پر تېره يا اوسنۍ خبره باندې قسم وکړل شي مثلا داسې وويل شي چې قسم په خداى ما دا کار کړى وو حال دا چې هغه کار يې نه وو کړى يا داسې وويل شي چې قسم په خداى ما دا کار نه وو کړى حال دا چې هغه کار يې کړى وو ، همدارنګه زيد ووايي چې قسم په خداى د خالد پر ذمه زما زر روپۍ دي ، يا قسم په خداى زما پر ذمه د خالد زر روپۍ نه سته حال دا چې په حقيقت کې د خالد پر ذمه د هغه زر روپۍ نه سته يا د هغه پر ذمه د خالد زر روپۍ وي ، د يمين غموس حکم دادى چې په داسې ډول د درواغو قسم اخيستونکى ګناه کار دى مګر پر هغه باندې کفاره واجب نه ده البته توبه او بخښنه ضروري ده .

لغو : لغو هغه قسم ته وايي چې پر تېر يا اوسنۍ خبره باندې قسم وکړل شي او قسم کونکي ته دا ګمان وي چې هغه خبره داسې ده لکه څرنګه چې زه وايم مګر په حقيقت کې هغه خبره داسې نه وي لکه څرنګه چې دى وايي د مثال په توګه يو سړى داسې ووايي چې و الله دا کار ما نه دى کړى حال دا چې هغه سړي دا کار کړى وي مګر هغه ته دا ګمان وي چې ما هغه کار نه دى کړى يا هغه سړى د ليرې څخه يو سړى ووينې او ووايي قسم په خداى دا زيد دى حال دا چې هغه زيد نه وي بلکه خالد وي مګر دا قسم د هغه سړي د ګمان کولو سره کړى وي چې هغه زيد دى ، ددغه قسم حکم دادى چې د داسې قسم اخيستونکى په باره کې دا اميد دى چې د هغه څخه به مؤاخذه نه کيږي .

منعقده : منعقده قسم هغه قسم ته وايي چې د راتلونکي کار د کولو يا نه کولو په باره کې وکړل شي ، ددې حکم دادى که چيرې د قسم خلاف وکړل شي نو ګناه واجبيږي د مثال په توګه زيد داسې ووايي چې قسم په خداى زه به خالد ته سبا سل روپۍ ورکوم ، اوس که چيرې هغه سبا خالد ته سل روپۍ ور نه کړي نو پر هغه باندې د قسم د ماتولو کفاره واجبيږي، د منعقده قسم ځيني صورتونه داسې دي چې په هغه کې قسم پوره کول واجب وي لکه د فرض کولو يا د ګناه پرېښودلو قسم وکړل شي مثلا داسې وويل شي چې قسم په خداى زه به د ماپښين لمونځ کوم يا قسم په خداى زه به زنا کول پرېږدم نو په دغه صورتو کې قسم پوره کول واجب دي .

او په ځينو صورتو كي داسي دي چي په هغه كي قسم ماتول واجب دي لكه يو ناپوه سړی د ګناه پر كولو يا پر واجب باندي د عمل نه كولو قسم وكړي نو د هغه قسم ماتول واجب دي ، همدارنګه د منعقده قسم په ځينو صورتو كي ماتول واجب نه دي مګر غوره دی لكه يو څوک چي ووايي قسم په خدای زه به د هيڅ مسلمان سره ملاقات نه كوم نو دا قسم نه پوره كول غوره دي ، ددې څخه پرته په نورو صورتو كي د قسم د ساتني سره سم قسم پوره كول غوره دي .
د كفارې په باره كي دا بايد په ذهن كي وي چي د منعقده قسم پر ماتولو باندي په هر صورت كي كفاره واجبيږي كه په قصد سره يې كړی وی او كه قسم اخيستونكی پر قسم كولو باندي مجبور سوی وي .

## د قسم كفاره

د قسم ماتولو كفاره داده چي غلام ازاد كړل سي يا لس مسكينانو ته خوراک وركړل سي ، په دغه دواړو صورتو كي هغه شرطونه او احكام مختنه اېښودل پكار دي كوم چي د ظهار په كفاره كي د غلام ازادلو يا مسكينانو ته د خوراک وركولو په باره كي نقل سوي دي او يا دي لسو مسكينانو ته د اغوستلو جامې وركړل سي او هر يوه ته دي داسي جامې وركړل سي چي په هغه سره د بدن اكثره برخه پټه سي ، كه يوازي پرتوګ وركړل سي نو دا به كافي نه وي ، او كه څيري يو سړی په دغه درو سره صورتو كي پر يوه هم قادر نه وي يعني نه غلام ازادولای سي او نه لس مسكينانو ته خوراک وركولای سي او نه لسو مسكينانو ته جامې وركولای سي نو بيا دي هغه پر له پسې درې ورځي روژې ونيسي ، د قسم ماتولو څخه مخكي كفاره وركول جائز نه دي ، د كافر په قسم كي كفاره نه واجبيږي كه څه هم هغه د اسلام په حالت كي مات كړی وي همدارنګه د كوچني، بېده سړي او ليوني قسم نه صحيح كيږي ځكه نو پر هغوی د قسم ماتولو كفاره هم نه واجبيږي .

## د قسم نور ټولونه او مسائل

په عربي ژبه كي د قسم لپاره درې حرفونه دي ۱: و ، ۲: ب، ۳: ت، د مثال په توګه داسي وويل سي : والله، باالله، تاالله، ددغه درو سره مفهوم دادی چي زه په الله ﷻ سره قسم اخلم ، د عربي ژبه د طرز سره سم ډېر واره دغه حرفونه مقدر وي يعني په الفاظو كي ددغه حروفو ذكر نه وي مګر په حقيقت كي ددې معنی مراد وي كه داسي وويل سي چي : الله افعله نو ددې معنی به دا وي چي : والله افعله .

قسم د الله په اسم ذات (الله ﷻ) سره يا د هغه په نورو نومونو كي په يو بل نامه سره مثلا رحمن، رحيم، حق او داسي نورو سره كول كيږي او په دغه نومو كي نيت ضروري نه وي مګر په داسي نومو سره قسم اخيستل چي د الله تعالى ځخه پرته د نورو لپاره هم استعماليږي لكه عليم ، حكيم او داسي نور نو په هغه كي د نيت ضرورت سته همدارنګه د الله تعالى په هغه صفاتو سره قسم خوړل هم صحيح دي كوم چي په عامه توګه سره د قسم كولو لپاره رواج وي لكه د الله ﷻ په عزت او جلال سره قسم ، د الله ﷻ په عظمت او قدرت سره قسم ، مګر په هغه صفاتو سره قسم كول ضروري نه دى چي په هغه د قسم كولو عام رواج نه وي لكه رحمت، علم، رضا، غضب...

د الله ﷻ ځخه پرته د بل چا په نامه قسم كول جائز نه دى لكه په پلار، نيكه، قرآن، انبياء، ملائكو، كعبه، لمونځ، روژه، په ځان، په زمزم، او په نورو تولو شعائرو باندي همدارنګه ځيني خلك داسي قسم اخلي چي په خپل ځواني دي مي قسم وي يا په خپل سر دي مي قسم وي ، يا ستا په ځان دي مي قسم وي يا په خپل اولاد دي مي قسم وي دا ټول ناجائز دي مګر كه چيري يو ځوك داسي قسم وكړي او بيا د هغه خلاف وكړي نو د قسم ماتولو كفاره به ادا كوي.

په عربي ژبه كي (لعمر الله) قسم دى همدارنګه (قسم په خداى) هم قسم دى او د عهد الله ، ميثاق الله او اشهد دا ټول هم قسمونه دي.

همدارنګه داسي ويل چي پر ما نذر دى، پر ما يمين دى يا پر ما باندي عهد دى كه ځه هم ددې اضافت الله ﷻ ته ونه كړي نو دا هم قسمونه دي ، همدارنګه كه يو سړى ووايي كه زه فلانى كار وكړم نو كافر به سم يا يهودي به سم يا عيسائي به سم ، يا داسي ووايي كه زه فلانى كار وكړم نو زه په د الله ﷻ ځخه بري سم نو په داسي ويلو سره هم قسم كيږي ددې په خلاف كولو سره د قسم ماتولو حكم ثابتيږي مګر د خپل وينا مطابق هغه كافر، يهودي يا عيسائي نه كيږي كه ځه هم د هغه كار تعلق د تيري زماني سره وي يا د راتلونكي زماني سره وي په شرط ددي چي هغه ته دا علم وي چي داسي ويل قسم دى مګر كه چيري د داسي ويلو پر وخت د هغه قسم مقصد نه وي بلكه په حقيقت كي د كفر تصوريې وي نو بيا په دغه صورت كي په دې وجه چي هغه كفر اختيار كړى دى كافر كيږي.

كه چيري داسي وويل سي چي فلانى سړى دا كار وكړي نو پر هغه دي د الله ﷻ غضب وي يا پر هغه دي د الله ﷻ لعنت وي يا داسي وويل سي كه فلانى سړى دا كار وكړي نو هغه زناكونكى دى يا غل دى يا شرابي دي نو دې ته قسم نه ويل كيږي ، همدارنګه حقا او وحق الله

هم قسم نه دی مگر په دې کي د امام ابويوسف رحمة الله عليه اختلاف دی .

همدارنگه داسي ويل چي زه په خدای قسم کوم يا د ښځي د طلاق قسم کوم دا هم قسم نه دی ، که چيري يو څوک خپل مملوکه شی پر ځان باندي حرام کړي نو هغه شی نه پر حراميږي مگر د هغه په استعمال سره کفاره واجبيږي، د مثال په توگه يو سړی داسي ووايي چي ما ډوډۍ پر ځان حرامه کړې ده نو په داسي ويلو سره پر هغه ډوډۍ نه حراميږي مگر که چيري هغه ډوډۍ وخوري نو د قسم کفاره به پر لازم وي .

که يو سړی داسي ووايي چي ټول حلال شيان پر ما حرام دي نو ددې اطلاق به د خوراک او څښاک پر ټولو شيانو وي يعني که چيري هغه يو حلال شی وخوري نو پر هغه به د قسم کفاره واجب وي او پر دې فتوا ده چي په داسي ويلو سره ښځه هم پر طلاقه کيږي که څه هم هغه ددې نيت نه وي کړی ، همدارنگه داسي ويل چي حلال شی پر ما حرام دی يا داسي ويل چي په خپل راسته لاس سره کوم شی را اخلم هغه پر ما حرام دی نو ددې هم دا حکم دی .

که يو سړی د قسم سره لفظ د انشاء الله هم ووايي نو هغه به حانث (قسم ماتونکی) نه وي يعني هغه بالکل قسم نه دی کړی ځکه نو د هغه په خلاف کولو سره کفاره هم نه واجبيږي .

دا د قسمو په باره کي څه تفصيل وو اوس د باب د دوهمي برخي اړوند هم يو څو خبري په ذهن کي راولئ .

## نذر او د هغه احکام

نذر د يو شي پر ځان منلو ته ويل کيږي يعني يو داسي شی پر ځان واجبول چي هغه واجب نه وي ، د مثال په توگه يو سړی داسي ووايي چي اې الله ! که زما دغه فلانی کار وسو نو زه به پنځه روژې نيسم ،

ځيني علماء وايي چي د ټولو علماؤ پر دې اجماع او اتفاق دی چي نذر منل صحيح دی او د هغه نذر پوره کول واجب دي په شرط ددې چي هغه نذر د گناه يو کار نه وي او که چيري د هغه نذر تعلق د گناه د يو شي سره وي نو د امام شافعي رحمة الله عليه او جمهورو علماؤ په نزد هغه نذر صحيح نه دی او امام اعظم ابوحنيفة او امام احمد رحمة الله عليهما وايي نه يوازي دا چي هغه نذر به صحيح نه وي بلکه پر داسي نذر منونکي به د قسم کفاره واجب وي ځکه چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد دئ :

لا نذر في معصية وكفارته كفاره يمين : د معصيت (گناه) د نذر هيڅ اعتبار نه سته مگر پر هغه باندي د قسم کفاره واجبيږي .

په ملتقی کي ليکلي دي چي کوم څوک مطلق نذر ومني يعني هغه نذر يې په يو شرط سره معلق نه کړ د مثال په توګه داسي ووايي چي زه به د الله ﷻ د رضا لپاره روژې نيسم يا داسي نذر ومني چي په يو شرط سره متعلق وي او هغه شرط هم داسي وي چي د هغه پوره کولو خواهش او اراده وي د مثال په توګه داسي ووايي چي زه روغ سم نو روژې به نيسم او بيا هغه شرط پوره سي يعني هغه روغ سي نو په دغه دواړو صورتو کي د هغه نذر پوره ضروري دي او که چيري هغه خپل نذر په يو داسي شرط سره متعلق کړ چي د هغه د پوره کولو خواهش نه وي مثلا داسي ووايي که زه زنا وکړم نو پر ما باندي به د يوه غلام ازادول واجب وي نو په دغه صورت کي هغه اختيار دی که غواړي د قسم کفاره دي ورکړي او که غواړي نو هغه نذر دي پوره کړي.

د نذر په باره کي نور مسائل او احکام د فقهي په کتابو کي او فتاوی عالمګيري کي په تفصيل سره ذکر سوي دي هلته يې کتلای سئ، البته دلته د نذر په باره کي يو لويه او ارزښتناکه خبره ذکر کيږي او هغه دا چي د الله ﷻ څخه پرته د بل چا نذر منل جائز نه دي نه د نبي، نه د ملائکي، نه د ولي او نه د بل چا، د مثال په توګه داسي وويل سي که زما فلانی کار وسو نو د فلاني بزرګ يا پير پر قبر به څادر هوار کړم يا که زما فلانی کار وسو نو د فلاني لپاره به روژه ونيسم، همدارنګه د غير الله نذر منل لويه ګناه ده، په دې باره کي د حضرت مولانا محمد اسحاق رحمه الله په خپل کتاب مائة مسائل کي د معتبر او مستند کتابو په حوالو سره ګڼوري خبري ليکلي دي چي د هغو دلته نقل ضروري دي:

مولانا صاحب وايي چي داسي نذر منل که الله ﷻ زما فلانی حاجت پوره کړي نو زه به د فلاني بزرګ يا پير پر مزار باندي دومره روپۍ يا خوراک نذر کړم دا صحيح نه دی ځکه چي د الله ﷻ په نذر منلو کي څو شرطونه دي که هغه موجود سي نو نذر صحيح کيږي او که هغه شرطونه نه پوره کيږي نو بيا هغه نذر نه صحيح کيږي يو شرط خو دادی چي کوم شی د خپل طرف څخه نذر ومنل سي هغه بايد داسي وي چي د هغه جنس په شرعي توګه واجب وي لکه لمونځ، روژه او داسي نور، ځکه که يو سړی د ناروغ د عيادت کولو نذر ومني يعني داسي ووايي که زما فلانی کار وسو نو زه به د فلاني فلاني ناروغ عيادت کوم نو د هغه نذر صحيح نه دی ځکه چي د ناروغ عيادت داسي جنس نه دی چي شرعا واجب دی.

دريم شرط دادی چي کوم شی نذر ومنل سي هغه في الحال يا ثاني الحال پر هغه واجب نه وي لکه لمونځ، روژه او داسي نور.

څلور م شرط دادی چي کوم شی نذر ومنل سي هغه د يو ګناه شی نه وي ، ددغه شرطونو په نظر کي نيولو سره دا ثابته سوه چي داسي نذر منل چي د فلاني بزرګ پر قبر به دومره روپۍ يا دومره خوراک نذر کوم صحيح نه دی ځکه چي يو ځای ته روپۍ يا خوراک رسول عبادت نه دی مګر که چيري داسي نذر ومنل سي که الله تعالی زما فلانی حاجت پوره کړ نو زه به د فلاني بزرګ د قبر خادمانو او مسکينانو ته خوراک ورکوم نو دا نذر به صحيح وي او ددې پوره کول به لازم وي مګر د نذر پوره کولو لپاره د هغه قبر دخادمانو او فقيرانو په صيغ کي تخصيص کول ضروري نه دی په کوم يو خادم او مسکين چي خوراک وخوري سي نذر به پوره سي او که داسي ووايي که زما فلانی حاجت پوره سي نو زه به د فلاني بزرګ په نامه يا د فلاني بزرګ لپاره دومره روپۍ يا خوراک ورکړم دا ناجائز دي داسي نذر نه يوازي دا چي باطل او لغو دی بلکه د داسي نذر روپۍ او خوراک استعمالول هم حرام دی دا مسئله په بحر الرائق کي په تفصيل سره بيان سوې ده :

واما النذر الذي ينذره اکثر العوام علی ما هو مشاهد کان يکون الانسان غائب او مريض او له حاجة ضرورية فياتي في بعض مزارات الصلحاء فيجعل ستره علي راسه ويقول يا سيدي فلان ان رد غائبي او عو في مريضي او قضيت حاجتي فلک من الذهب کذا او من الفضة کذا او من الطعام کذا او من الماء کذا او من القمع کذا او من الزيت کذا فهذه النذر باطل بالاجماع لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لايجوز لانه عبادة والعبادة لايکون لمخلوق ومنها ان المنذور له ميت والميت لا يملک ومنها ان ظن ان الميت يتصرف في الامور دون الله فاعتقاده به ذالک کفر . اللهم الا ان يقال يا الله اني نذرت لک ان شفيت مريضي او رددت غائبي او قضيت حاجتي ان اطعم الفقراء الذين بباب السيدة نفيسة او الفقراء الذين بباب الامام الشافعي او الامام ابي الليث او اشتری حصيرا لمساجدهم او زيتا بوقودها او دراهم لمن يقوم بشعائرها الی غيرذالک مما يکون فيه النفع للفقراء والنذر لله عزوجل وذکر الشيخ انما هو لبيان محل تصرف النذر لمستحقيه القانطين برباطه او مسجده او جامعه فيجوز بهذا الاعتبار اذا مصرف النذر الفقراء وقد وجد المصرف ولايجوز ان يصرف ذالک لغني غير محتاج ولا لشريف النسب لانه لايحل له الاخذ ما لم يکن محتاج ولا لذي منصب لاجل منصبه ما لم يکن فقيرا ولا لذي علم لاجل علمه ما لم يکن فقيرا و لم يثبت في الشرع جواز التصرف للاغنياء للاجماع علی حرمة النذر للمخلوق ولا ينعقد ولا يشتغل الذمة به وانه حرام بل سحت فلا يجوز لخادم الشيخ اخذه ولا اکله ولا التصرف فيه بوجه من الوجوه الا ان يکون فقيرا وله

عیال فقراء عاجزون عن الکسب وهم مضطر فیاخذونه علی سبیل الصدقة المبتداة واخذه ایضا مکروه ما لم یقصد به الناذر التقرب الی الله تعالی وصرفه الی الفقراء ویقطع النظر عن نذر الشیخ فاذا علمت هذا فما یوخذ من الدراهم والشمع والزیت وغیرها وینقل الی ضرائح الاولیاء تقربا الیهم فحرام باجماع المسلمین مالم یقصد و بصرفها الفقراء الاحیاء قولا واحدا وکذا في النهر والدر.

ژباړه : او هغه نذر کوم چي اکثر عام خلک یې کوي چي داسي نذر مني که د یو چا قریب ورک سي یا ناروغ سي یا د هغه ضروري مراد وي نو هغه د یو بزرګ مزار ته ولاړ سي او د هغه پرده پر سر باندي په اچولو سره یا د قبر د څادر په نیولو سره داسي وایي چي اې زما فلانی پیره ! که زما قریب کوم چي ورک سوی دی بېرته راسي یا هغه ناروغ ته روغتیا تر لاسه سي یا زما فلانی مراد پوره سي نو زه به ستا پر نامه دومره زر یا دومره خوراک نذر کړم یا دومره اوبه به نذر کړم یا دومره شمع یا زیتون تېل به نذر کړم نو داسي نذر منل د ټولو علماؤ په نزد باطل دی او د هغه د باطل کېدو څو سببونه دي او د غیر الله نذر جائز نه دی ځکه چي نذر په اصل کي عبادت دی او د مخلوق عبادت جائز نه دی او دوهم دا چي د چا په نامه نذر منل سوی وي هغه یو بې روحه دی او بې روحه مالک نه وي ، دریم دا که چیري د داسي نذر منلو په وخت کي یې دا ګمان کړی وي چي د الله تعالی څخه پرته دغه مړی هم د بندګانو په معامله کي تصرف کوي نو داسي عقیده درلودل کفر دینو هغه ته دي الله تعالی هدایت وکړي چي د داسي نذر منلو پر ځای داسي نذر ومنل سي چي اې الله ! زه ستا نذر منم که ته زما ناروغ ته روغتیا ورکړې یا زما ورک سوی قریب بېرته راولې یا زما فلانی مراد پوره کړې نو زه به د مثال په توګه هغه فقیرانو او خادمانو ته خوراک ورکوم کوم چي د بي بي نفیسه په دربار کي وي یا هغه فقیرانو او خادمانو ته به خوراک ورکوم کوم چي د امام شافعي یا امام ابو اللیث پر دروازه دي یا زه به د هغه مسجدونو لپاره پوړني یا د هغه مسجدونو د رڼا لپاره تېل ورکوم یا زه به هغه خلکو ته روپۍ ورکړم چي د دغه بزرګانو د مسجدونو شعائر قائم ساتي یا د دوی څخه پرته د یو داسي شی ذکر وکړي چي په هغه کي د فقیرانو او مسکینانو ګټه وي نو په داسي نذر منلو کي نذر په اصل کي د الله تعالی لپاره وي او د بزرګ ذکر کول محض د نذر د مصرف بیانولو لپاره وي او هغه مصرف د نذر هغه مستحق دی چي د هغه بزرګانو د دربار یا د هغوی په مسجدو کي اوسیږي ، نو داسي نذر منل صحیح دی ځکه چي د نذر مصرف فقیران دي او هغه مصرف دلته تر لاسه سو او د نذر شی په غیر محتاج باندي مصرف کول جائز نه دي او نه یو شریف النفس ته ورکول جائز دي ځکه چي

كله هغه محتاج نه وي نو د هغه لپاره د نذر سوي شي اخيستل صحيح نه دي او نه يو منصب والا ته وركول جائز دي چي د هغه منصب په وجه هغه محتاج نه وي او نه اهل علم ته وركول جائز دي چي د هغه علم په وجه هغه مستحق نه وي او په شريعت كي د نذر سوي شي د مصرف كولو جواز ثابت نه دی او پر دې باندي د علماؤ اجماع او اتفاق دی چي د مخلوق نذر منل حرام دی.

او كه چيري يو څوک د يو مخلوق نذر ومني نو هغه نذر نه صحيح كيږي او نه د هغه نذر پوره كول پر هغه واجب دي او هغه نذر نه يوازي حرام بلكه د رشوت په حكم كي داخل دی او په هغه كي تصرف كول هم جائز نه دی مگر كه چيري يو خادم محتاج وي او د خپلو كوچنيانو كفيل وي كوم چي د گټي كولو څخه معذور وي او هغوی د اضطرار په حالت كي وي نو هغوی ته د هغه نذر مال د صدقې په توگه اخيستل جائز دي مگر په دې صورت كي هم تر هغه وخته پوري اخيستل مكروه دي تر څو چي د نذر كونكي نيت د هغه بزرگ د نذر څخه قطع نذر پر تقرب الی الله او فقيرانو باندي د مصرف كولو نه وي ، كله چي تاسو ته د غه تفصيل معلوم سو نو د اولياء الله د تقرب په نيت چي كومي روپۍ ، شمع ، تېل او داسي نور شيان د هغوی پر قبرونو نذر كيږي هغه د ټولو مسلمانانو په نزد په اتفاق سره حرام دي تر څو چي نذر كونكی هغه پر فقيرانو باندي د نذر كولو نيت ونه كړي . په النهر الفائق او الدر المختار كي هم داسي نقل سوي دي .

د مولانا محمد اسحاق رحمة الله عليه د نقل سوي منقولاتو څخه پرته په دې باره كي د مولانا رشيد الدين خان مرحوم صاحب د يو سوال چي كوم جواب ليكل سوی دی هغه هم د دې وړ دی چي د سوال سره دلته نقل كړل سي .

سوال : هغه خوراک چي د بزرگانو د نذر په توگه منل كيږي د هغه خوړل او داسي نذر منل او د هغه پوره كول جائز دي كه يا ؟ كه جائز دي نو څرنگه ؟ او ځيني نذرونه د حاجت په شرط پوره كېدل منل كيږي او ځيني نذرونه بېله شرطه منل كيږي په دغه دواړو كي فرق سته كه يا ؟

جواب: په شريعت كي د نذر مفهوم دادی چي پر خپل ځان باندي د يو غير واجب شی واجبول ، دا په جامع الرموز كي ليكلي دي چي :

النذر ايجاب على النفس ما ليس عليها بالقبول : يعني د يو داسي شي پر ځان باندي واجبولو ته نذر وايي چي په هغه عمل كول د هغه لپاره ضروري نه وي .

امام رازي په تفسير كبير كي د دغه آيت كريمه (او نذرتم من نذر ) په تفسير كي فرمايي چي:

النذر ما الزمه الانسان على نفسه: يعني نذر دادی چي انسان يې پر خپل ځان لازم كړي .

د نذر په لنډه توگه وضاحت دادی مگر زيات تفصيل يې د فقه او اصولو په كتابو كي ذكر

سوی دی.

نہاز د فارسي ژبي لفظ دی او ددغه لفظ څو معناوي دي چي په هغو کي یوه معنی دا هم ده : تحفه درویشان وکذا في البرهان القاطع، ددغه دواړو لفظو یعني نذر او نیاز دغه لغوي او اصطلاحي معنی په ذهن کي راوستلو سره د هغو شرعي حکم منل پکار دي چي نذر د الله تعالی څخه پرته د بل چا لپاره جائز نه دی او که یو څوک د غیر الله نذر ومني نو هغه به صحیح نه وي او داسي نذر اخیستل یا خوړل ناروا دی دا خو د نذر حکم دی او پاته سوه د نیاز معامله نو څرنګه چي معلومه سوه چي د نیاز لفظ معنی د تحفه درویشان ده که یو څوک د یو ژوندي بزرګ په خدمت کي یو شی د نیاز په توګه او د تحفې په توګه وړاندي کړي نو هغه جائز دی او هغه بزرګ ته د هغه شي خوړل یا استعمالول جائز دي همدارنګه که د یو مړه سوي بزرګ نیاز یعني فاتحه، ایصال ثواب وکړل سي نو دا نیاز هم جائز دي مګر د هغه نیاز د شي د خوړلو په باره کي تفصیل دی او هغه دا که چیري نیاز ورکونکی وفات سوي بزرګ ته د صدقې د مال ثواب د ثواب رسولو په نیت کړی وي نو د هغه شي خوړل یوازي فقیرانو ته جائز دي او شتمنو خلکو ته جائز نه دی او که چیري نیاز ورکونکی د عام مسلمانانو په حق کي د اجابت ماکولي ثواب هغه بزرګ ته د رسولو په نیت کړی وي نو په دغه صورت کي هغه شي خوړل هر چا ته جائز دی که هغه فقیر وي یا شتمن وي، خلاصه دا چي د یو بزرګ د تقرب تر لاسه کولو په نیت یاد حاجت تر سره کېدو په شرط سره د هغه بزرګ چي کوم نذر منل کیږي هغه د پورتنیو منقولاتو په رڼا کي ناجائز دی او د هغه نذر د شي خوړل یا استعمال ناروا دی مګر د کوم نذر تعلق چي نه د یو بزرګ د تقرب تر لاسه کولو په نیت وي او نه د یو حاجت تر سره کېدو په شرط وي بلکه مخکي هغه شی د الله تعالی د رضا او د هغه د خوښي تر لاسه کولو لپاره صدقه کیږي او بیا د هغه ثواب هغه بزرګ ته رسول کیږي نو د هغه شي خوړل او استعمال شتمنو خلکو ته جائز نه دی په شرط ددې چي نذر منونکي د هغه بزرګ د صدقه ماکولي ثواب رسولو نیت کړی وي او که چیري نذر منونکي د هغه بزرګ د اباحت ماکولي ثواب رسولو په نیت کړی وي نو د هغه شي خوړل او استعمال د شتمنو خلکو لپاره هم جائز دی او د فقیرانو لپاره هم جائز دی، ددغه تفصیل څخه معلومه سوه چي د نیاز هم داسي مسئله ده چي د بزرګانو نیاز که محض د ایصال ثواب په توګه وي نو جائز دی او د هغوی تقرب یاد هغوی د رضا تر لاسه کولو په نیت سره یو شی د هغوی په نامه پر ځان باندي واجبول جائز نه دي که څه هم د هغه شي پر ځان واجبول د یو حاجت د تر سره کېدو سره معلق وي او که د هغه څخه پرته وي ځکه چي دا نذر دی او نذر د الله ﷻ څخه پرته د بل چا لپاره

جائز نه دی نو واضحه سوه چي د حاجت تر سره کېدو سره په معلق کولو سره او یا د دې څخه پرته د یو شي پر ځان د الله ﷻ څخه پرته د بل چا په نامه واجبول په دواړو صورتو کي ناجائز دي مګر د بزرګانو نیاز په دې معنی جائز دی چي د هغه څخه د یو بزرګ تقرب یا د حاجت تر سره کېدو نیت نه وي بلکه د هغه مقصد محض د الله تعالی د رضا معمول او د هغه ثواب د هغه بزرګ ته رسول وي او نیاز کړی شي د ذکر سوي تفصیل سره سم خوړل او استعمال جائز دی.

په دلیل الضالین کي لیکلي دي چي نذر یوازي د الله ﷻ لپاره وي د بل چا لپاره نه وي که چیري یو څوک په نبیانو کي یا په ولیانو کي د یو ولي نذر ومني نو پر هغه هیڅ نه واجبیږي یعني هغه نذر پوره پر هغه سړي لازم نه دي او که چیري هغه سړی د هغه نذر شی په دې نیت سره یو چا ته ورکړي نو هغه سړی ته د هغه شي اخستل جائز نه دي که چیري هغه د خوراک یو شی وي نو د هغه خوړل حلال نه دي او که هغه شی یو ذبح سوی څاروی وي نو هغه د مردار په حکم کي دی بلکه که چیري خلک هغه په بسم الله کولو سره وخوري نو ټول به کافران سي مګر که چیري یو سړی د الله تعالی لپاره نذر ومني او بیا هغه نذر کړی شی په خلکو وخوري او د هغه ثواب یو مړي ته و بخښي نو دا جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

﴿٣٢٦١﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ أَكْثَرَ مَا كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْلِفُ لَا وَمُقَلِّبِ الْقُلُوبِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به اکثره وخت داسي قسم کوی: لا و مقلب القلوب (نه ده داسي قسم دی زما د زړونو په ګرځونکي). (بخاري)

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ١٣\٥١٣، رقم: ٧٣٩١.

**تشریح**: دا حدیث د دې دلیل دی چي د الله تعالی د صفاتو څخه په یوه صفت قسم خوړل جائز دي.

### په غیر الله سره د قسم اخیستو منع

﴿٣٢٦٢﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ يَنْهٰكُمْ اَنْ تَحْلِفُوْا بِاٰبَائِكُمْ مَنْ كَانَ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ أَوْلِيَصْمُتْ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : الله جل جلاله تاسي د دې څخه منعه كوي چي تاسي په خپلو پلرو باندي قسم اخلئ كه قسم ضروري وي نو يوازي يې په خداي تعالى اخلئ كه نه نو چپ خوله سئ . (بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥٣٠، رقم: ٦٦٤٦، ومسلم ٣\١٢٦٦، رقم: ٣-١٦٤٦.

**تشريح**: د پلار قسم كولو څخه منع د مثال په توګه ده اصل مقصد دا لاربنوونه كول دي چي د الله تعالى څخه پرته د بل چا قسم مه اخلئ په خاصه توګه د پلار ذكر كولو وجه داده چي د خلكو عادت وي چي هغوی د پلار قسم ډېر اخلي او د عبدالله د قسم كولو د منع وجه داده چي د الله تعالى د كمال عظمت او جلالت په سبب قسم د هغه د ذات سره مختص دی ځكه غير الله د الله جل جلاله مشابه كول نه دي پكار ، د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په باره كي نقل سوي دي چي هغه به فرمايل كه زه سل واره د الله تعالى قسم واخلم او بيا يې مات كړم نو دا د هغه څخه غوره ګڼم چي د غير الله قسم واخلم او هغه پوره كړم مګر كوم چي د الله تعالى د پاک ذات سوال دی نو هغه ته بنايي چي هغه د خپل عظمت او جلالت د اظهار لپاره په خپل مخلوق كي څوک چي وغواړي قسم واخلي.

په دغه حديث كي يو اشكال پيدا كيږي چي يو وارد رسول الله ﷺ څخه داسي نقل سوي دي چي (افلح وابيه) يعني رسول الله ﷺ د پلار قسم وكړی، حال دا چي دغه حديث د هغه حديث خلاف دی، ددې جواب دادی چي د رسول الله ﷺ د پلار قسم كول د دغه منعي څخه مخكي واقع سوی دي په دغه صورت كي په دواړو حديثو كي اختلاف نه پاته كيږي يا دا چي رسول الله ﷺ په قصد سره قسم نه وو كړی بلكه د قسم دغه الفاظ د پخواني عادت په وجه د رسول الله ﷺ د ژبي مباركي څخه وتلي وه .

﴿٣٢٦٣﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحْلِفُوا بِالطَّوَاغِي وَلَا بِآبَائِكُمْ . رواه مسلم .

د حضرت عبد الرحمن بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چي تاسو مه په بتانو او مه په پلرو قسم اخلئ . (مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٣٦٨، رقم: ٦-١٦٤٨.

**د لغاتو حل**: الطواغي: جمع طاغية: والمراد الاصنام : (بتان).

**تشريح**: د جاهليت په زمانه کي به په عامه توگه د بتانو او پلرونو قسمونه کېدل، د اسلام منلو څخه وروسته رسول الله ﷺ خلک ددې څخه منع کړل چي په دې باره کي احتياط وکړي او د پخواني عادت په وجه دا ډول قسمونه دي نه کوي.

﴿۳۲۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ فَقَالَ فِي حَلِفِهِ وَاللَّاتِ وَالْعُزَّى فَلْيَقُلْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَمَنْ قَالَ لِصَاحِبِهِ تَعَالَ أُقَامِرْكَ فَلْيَتَصَدَّقْ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي قسم واخلي او په خپل قسم کي داسي ووايي چي په لات او عزی دي مي قسم وي نو هغه ته پکار ده چي: لااله الا الله دي ووايي (يعني توبه دي وکاږي چي هغه په بتانو قسم واخيستي) او څوک چي و خپل يو دوست ته ووايي چي راځه چي خمار وکړو نو هغه ته پکار ده چي صدقه يا خيرات وکړي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۳۶\۱۱، رقم: ۶۶۵۰، ومسلم ۱۲۶۷\۱۳، رقم: ۵- ۱۶۴۷.

**تشريح**: هغه دي لا اله الاالله ووايي: ددې مطلب دادی چي هغه دي الله تعالى ته توبه او استغفار وکړي، ددغه حکم دوې معناوي وي ۱: يو خو دا چي د لات او عزی نوم د يو نوي مسلمان د ژبي څخه په سهوه سره وځي نو د هغه د کفارې په توگه دي هغه کلمه وايي ځکه چي الله تعالى فرمايي: (فان الحسنات يذهبن السيئات): بېشکه نيکی بدی له منځه وړي. نو په دغه صورت کي به د غفلت او سهوه څخه توبه وسي، ۲: دوهمه معنى داده که چيري د هغوی د ژبي څخه د لات او عزی نوم د هغه بتانو د تعظيم په قصد سره وتلی وي نو دا صراحتا ارتداد او کفر دی نو ددې لپاره ضروري دي چي هغه د ايمان د تجديد لپاره کلمه ووايي نو په دغه صورت کي به د معصيت څخه توبه وي.

صدقه او خيرات دي وکړي: ددې مطلب دادی چي هغه خپل ملگري ته د خمار په دعوت ورکولو سره د يو لوی بدۍ ترغيب ورکړی دی او د هغه د کفارې په توگه هغه دي د خپل مال څخه يو څه برخه د الله جل جلاله په لاره کي مصرف کړي، ځيني حضرات وايي چي هغه د کوم مال په ذريعه د خمار کولو اراده کړې وي هغه مال دي صدقه او خيرات کړي، ددې څخه معلومه سوه

چي كله د محض د خمار كولو د ارادې كفاره داده چي صدقه او خيرات دي وكړي نو كه يو څوك په حقيقت كي خمار وكړي نو د هغه به څه حشر وي.

## د اسلام خلاف د بل مذهب د قسم اخيستو مسئله

﴿۳۲۶۵﴾: وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ثابت بن ضحاك رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ حَلَفَ عَلٰى مِلَّةٍ غَيْرِ الْإِسْلَامِ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَلَيْسَ عَلَى ابْنِ اٰدَمَ نَذْرٌ

څوك چي د اسلام په خلاف په يوه بل مذهب باندي قسم وكړي او هغه دروا غجن وي نو هغه داسي دی لكه چي ووايي (مثلا هغه قسم وكړ كه زه دا كار وكړم نو يهودي او يا نصراني به يم يا د اسلام څخه به بېزاره يم او وروسته د قسم كولو هغه كار وكړي او خپل قسم دروا غ كړي نو هغه هغسي دی يعني يهوډي نصراني او د اسلام څخه بېزاره دی)

فِيمَا لَا يَمْلِكُ وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِشَيْءٍ فِي الدُّنْيَا عُذِّبَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ

څوك چي د يوه شي مالك نه وي نو د هغه شي نذر نه صحيح كيږي او څوك چي خپل ځان په خپله ووژني نو په كوم اله سره چي يې ځان وژلی وي نو د هغې الې په وسيله به تر قيامته پوري عذاب وركول كيږي او څوك چي

لَعَنَ مُؤْمِنًا فَهُوَ كَقَتْلِهِ وَمَنْ قَذَفَ مُؤْمِنًا بِكُفْرٍ فَهُوَ كَقَتْلِهِ وَمَنِ ادَّعٰى دَعْوٰى كَاذِبَةً لِيَتَكَثَّرَ بِهَا لَمْ يَزِدْهُ اللّٰهُ إِلَّا قِلَّةً. متفق عليه

په يوه مسلمان باندي لعنت ووايي د هغه گناه داسي ده لكه چي هغه يې قتل كړ او څوك چي په يوه مسلمان باندي د كفر فتوی ولگوي د هغه گناه همداسي ده لكه چي هغه يې قتل كړ او څوك چي د مال د حاصلولو په وجه د دروا غو دعوې وكړي نو الله جل جلاله به د هغه مال كم كړي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۴۶۴، رقم: ۶۰۴۷، ومسلم ۱\ ۱۰۴، رقم: ۱۷۶-۱۱۰.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي د مثال په توگه يو سړی داسي قسم وكړي كه زه فلانی كار وكړم نو يهودي يا نصراني به يم يا د اسلام څخه، يا د پيغمبر او يا د قرآن څخه

بېزاره يم او بيا د هغه خلاف وکړي يعني قسم دروا غ کړي په دې توګه چي کله هغه وکړ کوم چي د هغه د نه کولو قسم يې کړی وو نو هغه هم هغسي يهودي او نصراني سو يا د اسلام يا پيغمبر او يا قرآن څخه بېزار سو ځکه چي قسم په اصل کي د هغه کار نه کولو لپاره دی چي د هغه لپاره يې قسم کړی دی نو د قسم ريښتيا کېدل خو دادي چي قسم کونکی هغه کار ونه کړي او که چيري هغه کار وکړي نو په خپل قسم کي به درواغجن وي او اوس چي هغه درواغجن سو نو هم هغسي به وي لکه څرنګه چي هغه ويلي دي .

د حديث د ظاهري مفهوم څخه دا معلومېږي چي داسي قسم کونکی محض د قسم کولو په وجه د هغه قسم ماتولو څخه وروسته کافر کيږي ځکه چي په داسي قسم کولو سره د يو صريح حرام کار ارتکاب کوي او بيا هغه قسم په درواغ کولو سره کفر په رضا او شوق اختياروي مګر دا هم احتمال دی چي د دغه ارشاد مراد دا بيانول نه وي چي داسي قسم کونکی په حقيقت کي يهودي وغيره کيږي بلکه د دې څخه مراد د تهديد په توګه دا ظاهروي چي هغه سړی د يهوديانو په ډول د عذاب وړ کيږي ، د دې مثال د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی چي (من ترک الصلوة فقد کفر) يعني چا چي لمونځ پرېښودی هغه کافر سو، د دغه ارشاد مطلب هم دادی چي لمونځ پرېښودونکی د کافرانو په ډول د عذاب وړ کيږي ، اوس پاته سوه دا خبره چي داسي قسم کول که څه هم حرام دي مګر که چيري يو څوک داسي قسم وکړي نو ايا په شرعي توګه سره هغه ته قسم ويل کيږي او ايا د دغه قسم په ماتولو سره کفاره واجبيږي که يا ؟ په دې باره کي د علماؤ مختلف قولونه دي ، د امام ابو حنيفة او ځيني علماؤ قول دادی چي دا قسم دی او که چيري دا قسم مات کړل سي نو پر هغه به کفاره واجب وي، د دوی دليل په هدايه او نورو کتابو کي نقل سوي دی ، امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهما فرمايي چي په داسي ويلو باندي د قسم اطلاق نه کيږي يعني په شرعي توګه سره دې ته قسم نه سي ويل کيدای او کله چي دا قسم نه دی نو د دې د ماتولو کفاره هم نه واجبيږي مګر داسي ويونکی به سخت ګناه کار وي که څه هم هغه خپل خبره پوره کړي يا ماته يې کړي .

په درمختار کي ليکلي دي چي صحيح خبره داده چي داسي قسم کونکی د هغه پر خلاف د عمل کولو په صورت کي نه کافر کيږي که څه هم د هغه تعلق د تېري زمانې سره وي يا د راتلونکي زمانې سره وي په شرط د دې چي د داسي ويلو په باره کي هغه د قسم عقيده ولري مګر که چيري هغه د داسي قسم کولو څخه لاعلمه وي او په دغه عقيده سره دغه الفاظ ادا کړي چي داسي ويونکی د خپل خبري د درواغ کېدو په صورت کي کافر کيږي نو خامخا د دغه خبري تعلق د

تېري زمانې سره وي يا په راتلونکي زمانه کي د يو شرط په پوره کولو سره وي په هغه دواړو صورتو کي کفر په خپل رضا او شوق سره د اختيارولو په وجه کافر کيږي.
او پر هيڅ انسان باندي د هغه شي نذر پوره کول واجب نه دي کوم چي د هغه مالک نه وي، ددې مطلب دادی چي د مثال په توګه يو سړی داسي ووايي که زما فلانی قريب روغ سو نو زه به فلانی غلام ازاد کړم حال دا چي هغه غلام په حقيقت کي د هغه په ملکيت کي نه وي نو په دې کي هغه نذر پوره کول واجب نه دی که څه هم ددې څخه وروسته هغه غلام د هغه په ملکيت کي راسي مګر که چيري هغه ازادي په ملکيت سره مشروط کړل يعني داسي يې وويل که زما فلانی قريب روغ سو او فلانی غلام زما په ملکيت کي راغلی يا فلانی غلام ما رانيوی نو زه به هغه ازاد کړم نو په دغه صورت کي هغه غلام په ملکيت کي د راتلو څخه وروسته يا د رانيولو څخه وروسته د هغه نذر سره سم به ازاد کړل سي چي کله د هغه په مال کي زياتوب وسي دا د اکثرو په اعتبار د دعوې د علت او سبب ته اشاره ده چي اکثر خلک محض په خپل مال کي د زياتوب په وجه د درواغو دعوې کوي ددغه الفاظو مراد دا قيد لګول دي که يو سړی په خپل مال کي دا زياتوب د مقصد څخه پرته د درواغو دعوه وکړي او د هغه په حق کي مذکوره ثمره (يعني د الله تعالی له خوا د هغه په مال کي د کمي کېدو څخه مرتب کيږي) د درواغو دعوې مذکوره ثمره محض د مال سره تعلق نه لري بلکه دا ثمره د هغه خلکو په حق کي مرتب کيږي چي د خپل حال او فضائل په باره کي محض په دې مقصد سره درواغ وايي چي د عامو انسانانو په نظر کي د هغه عزت او مرتبه زياته سي لکه څرنګه چي په نامه د صوفيانو او شتمنو خلکو طريقه ده.

**که چيري په قسم ماتولو کي خير وي نو هغه قسم ماتول پکار دي**

﴿۳۲۶۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنِّيْ وَاللّٰهِ

د حضرت ابو موسی ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم په خدای چي زه په

إِنْ شَاءَ اللَّهُ لَا أَحْلِفُ عَلَى يَمِينٍ فَأَرَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا إِلَّا كَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي وَأَتَيْتُ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ. متفق عليه.

يو شي قسم واخلم او هغه شی بهتر وي نو زه به خپل قسم مات کړم او د قسم کفاره به ورکړم او د هغه څخه په بهتر شی باندي به عمل وکړم. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٦٠١- ١٠٢، رقم: ٦٧١٨، ومسلم ٣\١٢٦٩، رقم: ٧- ١٦٤٩.

**تشريح**: مطلب دادی که زه د يو کار په باره کي قسم وکړم چي هغه کار به نه کوم مګر بيا پوه سم چي هغه کار کول غوره دی نو په قسم ماتولو سره کفاره به ادا کړم او هغه کار به وکړم، ددغه مسئلې مثالونه به د راتلونکي حديث په تشريح کي بيان سي.

﴿٣٢٦٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنُ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالرحمن بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و ماته وفرمايل:

وَسَلَّمَ يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ سَمُرَةَ لَا تَسْأَلُ الْإِمَارَةَ فَإِنَّكَ إِنْ أُوتِيتَهَا عَنْ

اې عبدالرحمن بن سمره! ته د يوه ځاي مشري په خپل خواهش سره مه حاصلوه ځکه که ستا په خواهش سره مشري درته حاصله سوه

مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا وَإِنْ أُوتِيتَهَا عن غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا وَإِذَا حَلَفْتَ

نو ته به د هغه د بوج پورته کونکي يې او که په بې خواهشه درته مشري درکول سي نو په هغه به ستا کومک کيږي او کله چي ته په يو شی باندي قسم وکړې

عَلَى يَمِينٍ فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا فَكَفِّرْ عَنْ يَمِينِكَ وَأْتِ الَّذِي هُوَ خَيْرٌ. و

في رواية فات الذي هو خير و كفر عن يمينك. متفق عليه.

او د قسم خلاف کار بهتر خيال وي نو د خپل قسم کفاره ورکړه او هغه ښه کار په ځان کي راوله او په يو بل روايت کي داسي دي چي په هغه ښه کار باندي عمل وکړه او د خپل قسم کفاره ورکړه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٢٣، رقم: ٧١٤٦، ومسلم ٣\١٢٧٣، رقم: ١٩- ١٦٥٢.

**تشريح**: د مشرتوب خواهش مه کوه: ددې مطلب دادی چي سرداري او مشرتوب يو معمولي شی نه دی بلکه يو ډېر سخت او مشکل کار دی د هغه فرضونه او د حقونو ادا کول د هر سړي د وس کار نه دی بلکه کوم خلک چي ددغه بار پورته کولو وړتيا لري نو د نفس په حرص کي په اخته کېدو سره د مشرتوب او سردارۍ خواهش مه کوه ځکه که چيري ته په خپل غوښتنه سره

مشرتوب او سرداري تر لاسه کړي نو بيا به ته هغې ته حواله کړل سې په دې معنی چې د هغه د فرضو په ادا کولو کي به د الله تعالی له خوا ستا مرسته نه کيږي او د هغه نتيجه به دا وي چي هر ثلور خوا وو ته به شر او فساد وي او ته به د مخلوق په نظر کي ډېر په بې عزتی. سره د هغه مطلب نا اهل وګرځول سې مګر که چيري بېله غوښتني ته د سرداری. او مشرتوب مرتبې ته ورسيږي نو په هغه صورت کي به د الله تعالی له خوا ستا مرسته کيږي چي د هغه نتيجه به دا وي چي ستا د ټولو کارو انتظام به صحيح وي او د الله ﷻ د مخلوق په نظر کي به ستا ډېر زيات عزت وي او هغه کار کوه کوم چي غوره وي : ددې مطلب دادی که چيري ته د يو ګناه پر کار باندي قسم وکړې مثلا داسي وواېې چي قسم په خدای زه به لمونځ نه کوم ، يا قسم په خدای زه به فلانی سړی وژنم ، يا قسم په خدای زه به د خپل پلار سره خبري نه کوم نو په دغه صورت کي هغه قسم ماتول واجب دي او د قسم ماتولو کفاره به ادا کوي او که چيري پر يو داسي کار باندي قسم وکړل سي چي د هغه خلاف کول تر هغه غوره وي مثلا داسي وويل سي چي قسم په خدای زه به د خپل ښځي سره تر يوه مياشت پوري کوروالي نه کوم يا دا ډول پر يو بل کار باندي قسم وکړل سي نو په دغه صورت کي به د هغه قسم ماتول غوره وي ، په دې باره کي زيات تفصيل د باب په شروع کي تېر سوی دی .

دلته چي کوم روايتونه نقل سوي دي په هغه دواړو روايتو کي فرق دادی چي د اول روايت څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي د قسم ماتولو څخه مخکي کفاره ادا کول پکار دي حال دا چي د دوهم روايت څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي کفاره د قسم څخه مخکي ادا کول جائز دي مګر د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په نزد دا جواز په دې تفصيل سره دی که چيري د کفارې ادا کول د روژې په صورت کي وي نو د قسم ماتولو څخه مخکي کفاره ادا کول جائز نه دي او که چيري د کفارې ادا کول د غلام ازادولو يا مسکينانو ته د خوراک ورکولو يا د جامې ورکولو په صورت کي وي نو بيا د قسم ماتولو څخه مخکي د کفارې ادا کول به جائز وي .

د امام ابو حنيفة رحمۃ اللہ علیہ مذهب دادی چي د قسم ماتولو څخه مخکي د کفارې ادا کول په هيڅ صورت کي جائز نه دي ، هغه فرمايي چي د کومو حديثو څخه د کفارې تقدم معلوميږي په هغه کي واو محض د جمع لپاره دی ددې څخه د تقديم او تاخير مفهوم مراد نه دی او نه حقيقتا هغه حديثونه پر تقديم او تاخير باندي دلالت کوي .

﴿٣٢٦٨﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ

عَلَى يَمِينٍ فَرَأَى خَيْرًا مِنْهَا فَلْيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ وَلْيَفْعَلْ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په يوه خبره باندي قسم واخلي او بيا د قسم خلاف هغه کار ښه وبولي نو هغه کار دي وکړي او د قسم کفاره دي ادا کړي . (مسلم) .

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۲۷۲، رقم: ۱۲- ۱۶۵۰.

﴿۳۲۶۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَاللهِ لَأَنْ يَلِجَّ أَحَدُكُمْ بِيَمِينِهِ فِي أَهْلِهِ آثَمُ لَهُ عِنْدَ اللهِ مِنْ أَنْ يُعْطِيَ كَفَّارَتَهُ الَّتِي افْتَرَضَ اللهُ عَلَيْهِ . متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په خداي دي مي قسم وي چي ستاسو قسم د خپل کور په اړه وي اصرار يا ضد کول (دا قسم) د خدای تعالی په نزد د دې څخه زياته ګناه لري څومره چي قسم ماتول او د هغې کفاره ورکول چي الله ﷻ پر فرض کړې وي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۵۱۷، رقم: ۶۶۲۵، ومسلم ۳\۱۲۷۶، رقم: ۲۶- ۱۶۵۵.

**د لغاتو حل**: يلج: ای يصر ويقيم: ټينګار کوي.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري په قسم ماتولو کي په ظاهره کي د الله تعالی د نامه د عزت او حرمت سپکاوی وي او قسم ماتونکی هم هغه دخپل خيال سره سم ګناه ګڼي مګر د هغه قسم پر پوره کولو باندي ټينګار کول چي د کورنۍ د حق تلفۍ باعث وي د زياتي ګناه خبره ده ، ددې حديث مقصد دا واضح کول دي چي د قسم پر خلاف د محل د خير ظاهرېدو په صورت کي قسم ماتول او د هغه کفاره ادا کول لازم دي .

## د يو تنازعې په صورت کي د قسم ورکونکي د نيت اعتبار دی

﴿۳۲۷۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمِينُكَ عَلَى مَا يُصَدِّقُكَ عَلَيْهِ صَاحِبُكَ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ستا قسم هغه وخت صحيح

کيږي چي قسم در کونکي تا ريښتنى وګڼي . (مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\ ١٢٧٤، رقم: ٢٠- ١٦٥٣.

**تشريح**: مطلب دادى چي د قسم د ريښتوني ثابت کېدو په باره کي د هغه سړي د نيت او ارادې اعتبار وي چا چي تا ته قسم درکړى وي په هغه کي د قسم کونکي نه د نيت اعتبار وي او نه به د هغه د تاويل اعتبار کيږي مګر ددې حکم تعلق د تنازعې په صورت کي هغه دى کله چي د قسم ورکونکي يو حق او غوښتنه پر قسم کونکي باندي وي او د قسم کونکي په تاويل سره د هغه حق ساقط کيږي دا داسي ده لکه د يو محکمې په صورت کي چي قاضي مدعا عليه ته قسم ورکوي نو په دې کي به د قاضي د نيت اعتبار وي مګر که چيري د چا د حق تلفى يو معامله نه وي يا يو څوک قسم ورکونکى نه وي نو بيا په توريه کي څه پروا نه سته په خاصه توګه کله چي د توريه په وه د چا ګټه وي لکه حضرت ابراهيم عليه السلام چي خپل بي بي ساره رضي الله عنها د ظالمانو د ظلم څخه د ساتني لپاره داظاهره کړه چي دا زما خور ده ، بي بي ساره رضي الله عنها ته د خور په ويلو سره د حضرت ابراهيم عليه السلام مراد دا وو چي دا زما ديني خور ده .

﴿٣٢٧١﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَمِينُ عَلَى نِيَّةِ الْمُسْتَحْلِفِ. رواه مسلم

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم د قسم ورکونکي په نيت باندي مبني دى . (مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم: ٣\ ١٢٧٤، رقم: ٢١- ١٦٥٣.

## پر لغوه قسم باندي مؤاخذه نه سته

﴿٣٢٧٢﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِي

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى چي دا ايت : لايؤخذکم ......... فى ايمانکم . (الله جل جلاله ستاسو په (پالتو) قسمونو باندي مؤاخذه نه کوي )

أَيْمَانِكُمْ ﴾ فِي قَوْلِ الرَّجُلِ لَا وَاللّٰهِ وَبَلَى وَاللّٰهِ . رواه البخاري و في شرح السنة لفظ المصابيح وقال رفعه بعضهم عن عائشة.

دا د هغو خلكو په باره كي نازل سوې دى چي په هره خبره به يې قسم اخيستئ قسم په خداي ما دا كار نه دي كړى او قسم په خداي چي دا كار ما ندي كړى (يعني د هغو خلكو تكيه كلام دا الفاظ وو او خپل قسم يې مقصد نه وو). (بخاري) او په شرح السنه كي د مصابيحو دا الفاظ دي: چي ځينو راويانو دا حديث د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه مرفوع نقل كړې دى.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥٤٧، رقم: ٦٦٦٣، شرح السنة ١٠\١١، رقم: ٢٤٣٤.

**تشريح**: د عربو دا عادت وو چي هغوى به په خپلو كي د خبرو كولو پر وخت پر هره خبره دا ويل چي لا والله يا بلى والله، د دغه الفاظو څخه د هغوى مقصد قسم كول نه وو بلكه په خپله خبره كي زور پيدا كولو لپاره يا د تكيه كلام په توګه به هغوى دغه الفاظ ويل، په دغه صورت كي قسم نه واقع كيږي او دې ته لغو قسم وايي، امام شافعي رحمه الله په دې عمل كړى دى د هغه په نزد لغو قسم هغه قسم ته وايي چي بېله قصد په ماضي يا مستقبل زمانه كي د ژبي څخه ووځي، د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په نزد لغو قسم هغه قسم ته وايي چي پر يو داسي خبري باندي وكړل سي چي د هغه په باره كي د قسم كونكي ګمان دا وي چي هغه صحيح ده مګر په حقيقت كي هغه صحيح نه وي ددې تفصيل د باب په شروع كي بيان سوى دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غير الله د قسم منع

﴿٣٢٧٣﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَحْلِفُوا بِآبَائِكُمْ وَلَا بِأُمَّهَاتِكُمْ وَلَا بِالْأَنْدَادِ وَلَا تَحْلِفُوا بِاللَّهِ إِلَّا وَأَنْتُمْ صَادِقُونَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

: حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو په خپلو پلرو باندي قسمونه مه اخلئ او نه په ميندو او نه په بتانو او په خداي تعالي باندي هم قسم مه اخلئ تر څو پوري چي تاسو په خپلو خبرو كي رښتني نه ياست. (ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٥٦٩، رقم: ٣٢٤٨، والنسائي ٧\٥، رقم: ٣٧٦٩.

**لغاتو حل**: الانداد: اى الاصنام. (بتان).

﴿٣٢٧٤﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ حَلَفَ بِغَيْرِ اللّٰهِ فَقَدْ أَشْرَكَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چاچي د الله جل جلاله څخه ماسېوا په بل شی باندي قسم واخيستی هغه شرک وکړ. (ترمذي)

**تخريج**: سنن الترمذي ٤\٩٣، رقم: ١٥٣٥.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د غير الله قسم د هغه په تعظيم او عقيدې سره وکړي هغه شرک جلي يا شرک خفي وکړ ځکه چي په داسي کولو سره په هغه تعظيم کي غير الله شريک کړ چي يوازي د الله تعالی لپاره خاص دی.

په عامه توګه د خلکو عادت دادی چي هغوی د خپل يو قريب په ډېره مينه کي دا ډول قسم اخلي لکه چي داسي ووايي چي په زوی دي مي قسم وي يا د هغه په ځان دي مي قسم دي دا هم د ګناه څخه خالي نه دی که څه هم پر دې باندي د شرک حکم نه جاري کيږي مګر که د پخواني عادت په وجه که چيري د يو چا د ژبي څخه بېله قصده د مثال په توګه داسي ووتل چي په خپل پلار دي مي قسم وي يا په خپل زوی دي مي قسم وي ما دا کار نه دی کړی نو پر دې باندي د ګناه او شرک اطلاق نه کيږي.

﴿٣٢٧٥﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَلَفَ بِالْأَمَانَةِ فَلَيْسَ مِنَّا. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :چاچي د امانت قسم واخيستی (يعني د الله جل جلاله د نوم اخيستو څخه بغير يې يوازي د امانت قسم واخيستی) هغه زموږ څخه نه دی. (ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٥٧١، رقم: ٣٢٥٣.

**تشريح**: ددغه ارشاد مبارک خلاصه داده چي کوم څوک الله تعالی د اضافت کولو څخه پرته محض د امانت قسم وکړي د هغه شمېر به زموږ په پيروانو کي نه وي ځکه چي دا د اهل کتابو عادت دی او د غير الله په قسم کي دي ، ځيني حضرات وايي چي په دغه ارشاد کي د امانت څخه مراد فرضونه دي يعني د رسول الله ﷺ مقصد د لمانځه او حج په ډول د فرضو قسم کولو

څخه منع کوي ، په هر حال په دواړو صورتو کي د ټولو علماؤ په نزد دا ډول قسم په ماتولو سره کفاره نه واجبيږي او که چيري په امانت الله يعني د الله تعالی په امانت سره قسم وکړي نو دا کثرو علماؤ په نزد په دې کي هم کفاره واجب نه ده مګر امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه دا مني چي په دې وجه چي امين د الله تعالی يو نوم دی ځکه نو دهغه په نزد په دې کي کفاره واجب ده ، يا دا هم ويل کيږي چي د امانت الله څخه مراد کلمه توحيد ده .

## د اسلام څخه د بېزارۍ د قسم مسئله

﴿٣٢٧٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ إِنِّي بَرِيءٌ

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :څوک چي دا ووايي چي زه د اسلام څخه بېزاره يم (يعني دا ووايي که زه داسي کار وکړم نو د اسلام څخه بېزاره يم )

مِنَ الْإِسْلَامِ فَإِنْ كَانَ كَاذِبًا فَهُوَ كَمَا قَالَ وَإِنْ كَانَ صَادِقًا فَلَنْ يَرْجِعَ إِلَى الْإِسْلَامِ سَالِمًا . رواه ابوداؤد والنسائي وابن ماجة .

بيا هغه درواغجن وي (يعني هغسي کار يې وکړ)نو بيا هغه هغسي دی (يعني واقعي د اسلام څخه بېزاره دی )او که هغه رېښتني وي نو هغه په پوره توګه سره د اسلام و لور ته نه را ځي . (ابوداؤد نسائي ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\ ٥٧٤، رقم: ٣٢٥٨، والنسائي ٧\٦، رقم: ٣٧٧٢، وابن ماجه ١\ ٦٧٩، رقم: ٢١٠٠.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو سړی داسي قسم وکړي که ما فلانی کار کړی وي نو زه د اسلام څخه بېزاره يم نو که چيري هغه په خپل خبرۀ کي درواغجن وي يعني په حقيقت کي هغه کار کړی دی نو هغه د اسلام څخه بېزاره سو ، يا دغه ارشاد د قسم کولو د سخت منع ظاهرولو لپاره د مبالغې په توګه فرمايل سوی دی که چيري هغه سړی په خپله خبره کي رېښتونی وي يعني په حقيقت کي هغه کار نه دی کړی نو په هغه صورت کي هم د هغه داسي ويل د ګناه څخه خالي نه دي ځکه چي د داسي قسم کولو څخه مسلمانان منع سوي دي .

شيخ عبدالحق محدث رحمة الله عليه په دغه روايت کي ذکر سوی قسم پر منعقده قسم باندي محمول کړی دی لکه څرنګه چي د حضرت ثابت رضي الله عنه په روايت کي ذکر سوی قسم هم پر منعقده قسم باندي محمول سوی دی ، ددې وضاحت د حضرت ثابت رضي الله عنه د روايت په تشريح کي تېر

سوی دی مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه دا پر غموس قسم باندي محمول کوي ، ددغه کتاب د مؤلف په نزد دواړه قسمونه پر منعقده باندي هم محمول کېدای سي او پر غموس باندي هم.

**رسول الله ﷺ په ځینو ځایو کي څرنګه قسم اخیستی**

﴿٣٢٧٧﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اجْتَهَدَ فِي الْيَمِينِ قَالَ وَالَّذِي نَفْسُ أَبِي الْقَاسِمِ بِيَدِهِ . رواه ابوداؤد .

د ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به چي کله په قسم کولو کي زور وکړ نو داسي به یې ویل : قسم په هغه ذات چي د هغه په لاس کي د ابو القاسم روح دی . (ابوداؤد)

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٥٧٧، رقم: ٣٢٦٤.

**تشریح**: ابو القاسم د رسول الله ﷺ کنیت دی، د رسول الله ﷺ د قسم په دغه الفاظو کي د تاکید او سختی په دغه معنی کي دی چي دغه الفاظ د الله تعالی د قدرت او د رسول الله ﷺ د کامل عبودیت او د نفس مبارک مسخر او مطیع کېدو باندي دلالت کوي .

﴿٣٢٧٨﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَتْ يَمِينُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا حَلَفَ لَا وَأَسْتَغْفِرُ اللَّهَ . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ قسم به داسي وو یا (یعني دا خبره نه ده) زه د خدای تعالي څخه بخښنه غواړم. (ابوداؤد ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٥٧٧، رقم: ٣٢٦٥، وابن ماجه ١\٦٧٧، رقم: ٢٠٩٣.

**تشریح**: دغه الفاظو ته قسم ویل ځکه دي چي دغه الفاظ د خپل معنی او مفهوم په اعتبار د قسم مشابه دي ځکه چي ددغه الفاظو معنی ده که دا خبره ددې پر خلاف وي نو زه د الله جل جلاله څخه بخښنه غواړم او ظاهره ده چي داسي ویل د خپل خبري ټینګول او مؤکد کول دي نو دا د قسم په حکم کي سو .

**د قسم سره د ان شاء الله ویلو مسئله**

﴿٣٢٧٩﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ حَلَفَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي قسم واخیستی نو

عَلَى يَمِينٍ فَقَالَ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي ، و ذكر الترمذي جماعة وقفوه على ابن عمر .

د هغه سره يې انشاء الله هم وويل (نو د هغه قسم په خلاف كولو سره) په هغه څه ګناه نسته .(ترمذي ابو داؤد نسائي ابن ماجه دارمي) په ترمذي كي د يوه جماعت ذكر وكړ چا چي دا په ابن عمر رضي الله عنه باندي موقوفه كړي دى .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۹۱، رقم: ۱۵۳۱، وابوداود ۲\۵۷۵، رقم: ۳۲۶۱، والنسائي ۷\۲۵، رقم: ۳۸۳۰، وابن ماجه ۱\۶۸۰، رقم: ۲۱۰۵، والدارمي ۲\۲۴۲، رقم: ۲۳۴۲.

**تشريح**: د حنث معنى د ګناه او قسم ماتولو ده ، قسم ماتونكي ته حانث ويل كيږي، د حديث خلاصه داده چي د كوم قسم په الفاظو سره لفظ د ان شاء الله تعالى وويل سي نو هغه منعقده قسم نه وي او كله چي هغه منعقده قسم نه وي نو د هغه په ماتولو سره كفاره هم نه واجبيږي همدارنګه د ټولو عقدو او معاملاتو هم دا حكم دى ، كه چيري د عقد د الفاظو سره انشاء الله متصل وي نو هغه به عقد او معامله منعقده نه وي ، د اكثرو علماؤ او امام ابو حنيفة رحمه الله دا مذهب دى، مګر د حضرت ابن عباس رضي الله عنه قول دا وو چي د ان شاء الله تعالى په متصل كېدو سره هم دغه حكم دى . په دې باره كي د متصل او منفصل حد دادى چي د قسم د الفاظو څخه وروسته په بله خبره كي د بوختيا څخه پرته ان شاء الله تعالى وواېي نو دا متصل دى او كه چيري د قسم څخه وروسته په بله خبره كي بوخت سي او بيا ان شاء الله وواېي نو دا منفصل دي ځيني علماء د متصل حد بل څه هم بيان كړى دى چي د هغه تفصيل په مرقاة كي تر لاسه كيداى سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### غير مناسب قسم مات كړئ او د هغه كفاره ادا كړئ

﴿۳۲۸۰﴾: عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

د حضرت ابو الاحوص عوف بن مالک رضي الله عنه څخه هغه د خپل پلاره څخه روايت كوي هغه وايي ما عرض وكړ يا رسول الله!

أَرَأَيْتَ ابْنَ عَمٍّ لِي أَتَيْتُهُ أَسْأَلُهُ فَلَا يُعْطِينِي وَلَا يَصِلُنِي ثُمَّ يَحْتَاجُ إِلَيَّ

تاسو ماته په دې معامله کې څه حکم راکوئ چې کله ما ته ضرورت سې زه خپل د اکا زوی ته د څه غوښتلو لپاره ورځم نو هغه ضرورتًا ما ته څه نه راکوي او نه زما سره په خپله ښه چلن کوي بیا چې و هغه ته ضرورت پېښ سي

فَيَأْتِينِي فَيَسْأَلُنِي وَقَدْ حَلَفْتُ أَنْ لَا أُعْطِيَهُ وَلَا أَصِلَهُ فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَ الَّذِي

نو هغه ماته راځي زما څخه یې غواړي او ما په دې خبره باندې قسم اخیستي دی چې زه به هیڅ نه ورکوم او نه به د هغه سره هیڅ ډول ښه چلن کوم نبي کریم ﷺ حکم وکړ هغه کار کوه

هُوَ خَيْرٌ وَأُكَفِّرَ عَنْ يَمِينِي . رواه النسائي وابن ماجة و في رواية قال قلت يا

چې بهتر وي (یعني د هغه ضرورت پوره کړه او د هغه سره ښه چلن هم وکړه) او د خپل قسم کفاره ورکړه .(نسائي ابن ماجه) د ابن ماجه په روایت کې دا الفاظ دي مالک و نبي کریم ﷺ

رسول الله يأتيني ابن عمي فأحلف ان لا اعطيه ولا اصله قال كفر عن يمينك

ته عرض وکړ یا رسول الله! زما د اکا زوی زما څخه د یو څه د غوښتو لپاره راځي او زه قسم اخلم چې ده ته به څه نه ورکوم او نه به د هغه سره هیڅ ډول ښه چلن کوم نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: ته د غلط قسم د قسم په اخیستلو سره کفاره ورکړه .

**تخريج**: سنن النسائي ٧\١١. رقم: ٣٧٨٨، وسنن ابن ماجه ١\ ٦٨١، رقم: ٢١٠٩.

==========

# بَابُ فِي النُّذُوْرِ (د نذرو بیان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نذر ممانعت

﴿٣٢٨١﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَابْنُ عُمَرَ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَنْذِرُوا فَإِنَّ النَّذْرَ لَا يُغْنِي مِنَ الْقَدَرِ شَيْئًا وَإِنَّمَا يُسْتَخْرَجُ بِهِ مِنَ

**الْبَخِيلِ . متفق عليه .**

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو نذر په خپلو ځانو باندي مه ايږدئ ځکه چي نذر د تقدير څخه هيڅ شی نسي ليري کولای البته په دې سره د بخيل انسان څخه يو اندازه مال خرڅيږي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٤٩٩، رقم: ٦٦٠٩، ومسلم ٣\١٢٦١، رقم: ٥- ١٦٤٠.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو په ذريعه د الله جل جلاله په لاره د خپل مال مصرف کولو په باره کي د سخي او بخيل په مينځ کي يو ډېر باريک فرق ښوول سوی دی چي د سخي شان داوي چي هغه خپل بېله واسطې نذر د الله جل جلاله په لاره کي خپل مال مصرف کوي مګر بخيل ته ددې توفيق نه وي که هغه مال مصرف کړي نو د هغه لپاره د نذر واسطه جوړوي او دا وايي که زما فلانی کار وسو نو زه به د الله جل جلاله په نامه دومره مال مصرف کوم ، همدارنګه سخي د ايثار (قربانۍ) وصف اختياروي او بخيل د غرض لار اختياروي .

ددغه حديث په وجه ځيني علماء نذر منل مکروه ګرځولی دي مګر قاضي رحمة الله عليه ددغه حديث په وضاحت کولو سره فرمايلي دي چي په عامه توګه سره د خلکو عادت دی چي هغوی نذر د يو ګټې د ترلاسه کولو او د يو حاجت او ضرورت د پوره کولو لپاره معلق کوي ، رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمايل ځکه چي دا د بخيلانو کار دی سخي چي کله د الله تعالی تقرب او د هغه رضا ترلاسه کوي نو هغه په دې کي تلوار کوي او سمدستي خپل مال د الله جل جلاله په لار کي مصرف کوي مګر ددې پر خلاف د بخيل دا حال وي چي د هغه زړه دا نه زغمي چي په خپل لاس سره خپل مال يو چا ته ورکوي مګر که د هغه يو مقصد وي نو هغه خپل مال مصرف کوي يا خو هغه خپل د حاجت پوره کولو څخه وروسته د الله جل جلاله په نامه خپل مال راباسي يا د الله جل جلاله په لار کي د خپل مال را ايستل د يو ګټې د ترلاسه کولو يا د يو ضرر د دفع کولو لپاره کوي يعني دا نذر مني که زما فلانی کار وسو يا ما ته فلانی تاوان ونه رسيدی نو زه به خپل دومره مال د الله جل جلاله په لار کي مصرف کړم او ظاهره ده چي په دې خبري سره د تقدير فيصله نه بدليږي نو په دغه صورت کي هم هغه ته د مال مصرف کولو نوبت نه راځي مګر کله چي د هغه نذر د تقدير د فيصلې موافق سي نو هغه نذر هغه بخيل سړی د خپل هغه مال په مصرف کولو باندي مجبور کوي چي د هغه د مصرف کولو اراده يې نه درلودل .

ځيني حضرات وايي چي په دغه حديث کي د نذر څخه د منع کولو مقصد دادی چي د نذر

منلو څخه وروسته د هغه په پوره کېدو کي سستي ونه کړل سي ځکه چي کله نذر ومنل سي نو د هغه نذر پوره کول د هغه پر ذمه واجب سي نو د دغه واجب په ادا کولو کي زنډ مناسب نه دی او د ځينو علماؤ په نزد دلته د نذر د منع څخه دا مراد دی چي په دې عقيده او خيال سره نذر منل چي الله تعالى کوم کار مقدر کړی نه دی هغه به په نذر سره وسي نو د نذر څخه منع کول په دې اعتبار نه دی چي مطلق د نذر څخه منع کول مقصد دي.

**د کوم نذر په پوره کولو کي چي ګناه وي هغه مه پوره کوئ**

﴿٣٢٨٢﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نَذَرَ أَنْ يُطِيعَ اللّٰهَ فَلْيُطِعْهُ وَمَنْ نَذَرَ أَنْ يَعْصِيَهُ فَلَا يَعْصِهِ . رواه البخاري.

د بي بي عائشې ﷞ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله ﷻ د اطاعت نذر و مني هغه ته پکار ده چي خپل نذر پوره کړي او د الله ﷻ اطاعت وکړي او څوک چي د الله ﷻ د نافرماني نذر وکړي نو هغه دي خپل نذر نه پوره کوي او د الله ﷻ نافرماني دي نه کوي. (بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥٨١، رقم: ٦٦٩٦.

﴿٣٢٨٣﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصين ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةٍ وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ الْعَبْدُ . رواه مسلم و في رواية لا نذر في معصية الله.

د ګناه د نذر پوره کول جائز نه دی او نه د هغه شي نذر پوره کول جائز دی چي په وس او توان کي يې نه وي.. (مسلم) او په يوه روايت کي دا الفاظ دي د خداي تعالي د نافرماني نذر پوره کول جائز نه دی.

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٢٦٣، رقم: ٨-١٦٤١.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دا دی که چيري يو څوک د يو ګناه کولو نذر ومني مثلا داسي ووايي که چيري زما فلانی حاجت پوره سو نو زه به د غزلو پروګرام جوړوم يا داسي

ووايي چي زه به د الله تعالى د رضا لپاره د قوالى پروګرام پر ځاى واجبوم نو داسي نذر پوره کول جائز نه دى او نه په دغه صورت کي د نذر نه پوره کولو کفاره واجبيږي ، د امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهما قول هم دادى حال دا چي په دغه صورت کي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد د قسم کفاره واجبيږي .

د حديث د دوهمي برخي مطلب دادى چي د يو داسي شي نذر منل چي هغه په خپل ملکيت کي نه وي نو د هغه نذر پوره کول جائز نه دي مثلا که چيري يو څوک د يو بل چا غلام يا د بل چا د يو شي په باره کي دا نذر ومني چي زه د الله تعالى په لاره کي هغه غلام ازادوم يا د الله تعالى لپاره هغه شى پر ځان واجبوم نو په دغه صورت کي د هغه نذر د نه صحيح کېدو په وجه هغه غلام ازادول يا هغه شى د الله تعالى لپاره ورکول د هغه پر ذمه لازميږي.

## د نذر کفاره

﴿٣٢٨٤﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَفَّارَةُ النَّذْرِ كَفَّارَةُ الْيَمِينِ . رواه مسلم .

د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : د نذر کفاره هم د قسم کفاره ده . (مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\١٢٦٥، رقم: ١٣- ١٦٤٥.

**تشريح**: که يو څوک د يو شي د نامه اخيستلو څخه پرته نذر ومني د مثال په توګه داسي ووايي چي زه نذر کوم نو پر هغه کفاره واجبيږي او که چيري هغه په نذر کي بېله تاکلو د روژو نيت وکړي نو پر هغه درې روژې واجبيږي او که چيري په نذر کي د صدقې نيت وکړي نو د صدقه فطر په اندازه لسو مسکينانو ته خوراک ورکول پر هغه واجبيږي .

## په نذر کي چي د کومو شيانو پوره کولو امکان نه وي د هغه نه پوره کولو اجازه

﴿٣٢٨٥﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ إِذَا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم خطبه ويله نو يو سړى يې ولاړ

هُوَ بِرَجُلٍ قَائِمٍ فَسَأَلَ عَنْهُ فَقَالُوا أَبُو إِسْرَائِيلَ نَذَرَ أَنْ يَقُومَ وَلَا يَقْعُدَ وَلَا

وليدى د هغه د حالت پوښتنه يې وکړه خلکو عرض وکړ د ده نوم ابو اسرائيل دى ده نذر منلى

دی چي ولاړ به وي کښېني به نه او نه به

يَسْتَظِلَّ وَلَا يَتَكَلَّمَ وَيَصُومَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُرُوهُ فَلْيَتَكَلَّمْ وَلْيَسْتَظِلَّ وَلْيَقْعُدْ وَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ. رواه البخاري.

د شي سايې ته کښېني او نه به د چا سره خبري کوي او همېشه به روژې نيسي نبي کريم ﷺ وفرمايل: ده ته وواياست چي خبري دي کوي سايې ته دي کښېني او روژه دي پوره کړي. بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥٨٦، رقم: ٦٧٠۴.

**تشريح:** هغه سړي چي د کومو خبرو نذر کړی وو په هغه کي پر کومه خبره چي عمل کول د هغه لپاره ممکن وه د هغه پوره کولو حکم يې ورکړ او په کومو خبرو چي عمل کول په يو وجه ممکن نه وه د هغه د نه پوره کولو حکم يې ورکړ، رسول الله ﷺ هغه ته حکم ورکړ چي روژې پوره کړي يعني د خپل نذر سره سم دي روژې ونيسي ځکه چي د طاعت او عبادت نذر کول لازم دی او د همېشه روژو نېول د هغه سړي لپاره يو غوره عمل دی چي پر دې باندي هغه قادر وي مګر واضحه دي وي چي په دغه صورت کي هغه پنځه روژې مستثنی دي کوم چي په شريعت کي منع دي که چيري هغه ددغه پنځو روژو نيت هم وکړي نو د هغه روژو ماتول پر هغه واجب دي، د حنفيه په نزد د روژو ماتولو کفاره پر هغه واجبېږي.

په کومو خبرو چي عمل کول ممکن نه وه په هغو کي يو خو دا خبره په شرعي توګه ناممکن ده چي يو سړی دي بالکل خبري نه کوي ځکه چي په ځينو وختو کي خبري کول واجب دي لکه په لمانځه کي قرائت، د سلام جواب ورکول او په داسي وخت کي د خبرو پرېښودل ګناه ده، رسول الله ﷺ هغه ته د خبرو کولو حکم وکړ همدارنګه بالکل نه کښېنستل او سپرلی ته نه راتلل د انسان د وس څخه وتلې خبره ده ځکه رسول الله ﷺ هغه ته د ناستي او سپرلی ته د تللو حکم وکړ

﴿٣٢٨٦﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى شَيْخًا يُهَادَى بَيْنَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو سپين ږيري وليدی چي د خپلو دوو

ابْنَيْهِ فقَالَ مَا بَالُ هَذَا قَالُوا نَذَرَ أَنْ يَمْشِيَ الى بيت الله قَالَ إِنَّ اللّٰهَ عَنْ

زامنو په اوږو يې لاس نيولي وو تګ يې کوی نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه د ده څه حال دی ؟

خلکو عرض وکړ ده نذر منلی دی چي بیت الله ته به پیاده ځي نبي کریم ﷺ وفرمایل: دده د خپل ځان په دې تکلیف اچولو کي د خداي تعالي څه پروا نسته د دې څخه وروسته یې وهغه

تَعْذِيبِ هَذَا نَفْسَهُ لَغَنِيٌّ وَأَمَرَهُ أَنْ يَرْكَبَ . متفق عليه و في رواية لمسلم عن ابي هريرة قال اركب ايها الشيخ فان الله غني عنك وعن نذرك .

سپینږیري ته حکم وکړ چي سپور سي . (بخاري او مسلم)او په مسلم کي د ابو هریره رضی الله عنه څخه دا الفاظ نقل سوي دي نبي کریم ﷺ و هغه سپین ږیري ته وفرمایل: اې سپین ږیرې! سپور سه ځکه چي الله جل جلاله ستا او ستا د نذر څخه بې پروا دی .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٤\٧٨، رقم: ١٨٦٥، ومسلم ٣\١٢٦٣، رقم: ٩- ١٦٤٢.

**تشریح** هغه سړي د خپل سپین ږیرتوب او کمزورتیا په وجه پر پښو د تلو څخه عاجز او معذور وو ځکه رسول الله ﷺ هغه ته پر سپرلۍ د تللو حکم ورکړ .

امام شافعي رحمه الله په ظاهري مفهوم باندي په عمل کولو سره وایي چي د داسي نذر په صورت کي پر سپرلۍ باندي د تلو په وجه پر نذر کونکي باندي څه نه واجبیږي مګر امام ابو حنیفة رحمه الله وایي چي پر هغه باندي د څاروي ذبح کول واجبیږي ځکه داسي یو شی پر ځان لازمولو څخه وروسته د هغه د پوره کولو څخه عاجز کېدل دي د امام شافعي رحمه الله دوهم قول هم دادی.

مظهر رحمه الله وایي که چیري یو سړی داسي نذر ومني چي زه به پر پښو بیت الله شریفي ته ځم نو د هغه په باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي، امام شافعي رحمه الله وایي که چیري یو سړی بیت الله شریفي ته پر پښو باندي د تلو توان ولري نو هغه دي پر پښو ولاړ سي او که چیري ددې توان ونه لري نو د کفارې په توګه دي څاروی ذبح کړي او پر سپرلۍ دي سفر وکړي، امام ابو حنیفة رحمه الله وایي که یو سړی پر پښو باندي د تلو توان لري که یې نه لري په هر صورت کي د سپرلۍ په ذریعه دي سفر وکړي او څاروی دي ذبح کړي .

حنفي علماء وایي که چیري یو سړی داسي ووایي چي زه به پر پښو باندي بیت الله شریفي ته تلل لازم کړم نو پر هغه حج یا عمره واجبیږي اوس که چیري هغه د خپل نیت سره سم په دغه دواړو کي کوم یو چي غواړي پوره دي یې کړي یعني که چیري هغه د ویلو په وخت کي د حج نیت کړی وي نو حج دي وکړي او که چیري هغه د عمرې نیت کړی وي نو عمره دي وکړي ، او که

چيري داسي ووايي چي زه به پر پښنو حرم ته ځم يا پر پښنو باندي مسجد حرام ته ځم نو دامام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد پر هغه هيڅ هم نه واجبيږي مګر د صاحبينو په نزد پر هغه حج يا عمره واجبيږي او که چيري داسي ووايي چي زه بيت الله شريفي ته تلل پر ځان لازموم نو په دغه صورت کي په اتفاق سره مسئله داده چي د هيڅ شي اعتبار به نه وي يعني پر هغه به نه حج واجب وي او نه عمره.

که چيري يو څوک پر پښنو باندي د حج کولو نذر وکړي نو پر هغه واجب ده چي هغه د کور څخه پر پښنو روان سي او تر څو چي د طواف زيارت څخه فارغ نه سي هيڅ سپرلۍ دي نه استعمالوي او که چيري پر پښنو باندي عمري ته دتلو نذر وکړي نو تر څو چي سر ونه خريي سپرلۍ ته دي نه خيژي او که چيري نذر کونکی د يو عذر په وجه يا بېله عذره پوره لار يا نيمه لار پر سپرلۍ ولاړی نو څاروی ذبح کول باندي واجبيږي او که چيري د نيمي څخه کمه لار يې استعمال کړې وي نو د هغه په اندازه د يوه پسه قيمت صدقه کول واجبيږي.

## د نذر ايښودونکي پر وارثانو باندي نذر پوره کول واجب دی که يا؟

﴿۳۲۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ اسْتَفْتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي سعد بن عباده د نبي کريم ﷺ څخه د هغه نذر

وَسَلَّمَ فِي نَذْرٍ كَانَ عَلَى أُمِّهِ فَتُوُفِّيَتْ قَبْلَ أَنْ تَقْضِيَهُ فَأَفْتَاهُ أَنْ يَقْضِيَهُ عَنْهَا. متفق عليه.

مسئله و پوښتله کوم چي د هغه مور منلی وو او هغه د دې نذر د پوره کولو څخه وړاندي مړه سوې وه نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ته د هغې نذر د هغې له طرفه څخه پوره کړه. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۵۸۳، رقم: ٦٦۹۸، ومسلم ۳\۱۲٦۰، رقم: ۱ – ۱٦۳۸.

**تشريح**: د حضرت سعد رضي الله عنه د مور د نذر په باره کي د علماؤ مختلف قولونه دي، ځيني حضرات وايي چي هغې مطلق نذر کړی وو، ځيني وايي چي هغې د روژې نذر کړی وو، او ځيني حضرات وايي چي د هغې نذر د غلام د ازادولو وه او ځيني وايي چي هغې د صدقې نذر کړی وو، مګر صحيح خبره داده چي هغې مالي نذر کړی وو يا د هغې نذر مبهم وو، ددې تائيد د دار قطني د روايت د هغه الفاظو څخه کيږي چي رسول الله ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه ته وفرمايل چي د هغې له خوا په خلکو اوبه وڅښه.

که یو چا نذر منلی وي او د هغه نذر پوره کولو څخه مخکي مړ سي نو په دې باره کي د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي د هغه سړي پر وارث باندي د هغه نذر پوره کول واجب نه دی کله چي نذر غیر مالي وي ، او همدارنګه که چیري نذر مالي وي او د هغه مړي ترکه نه وي نو په دغه صورت کي هم د هغه پر وارث باندي د هغه نذر پوره کول واجب نه دي البته مستحب دي مګر د علماء ظواهر د دغه حدیث د ظاهري مفهوم په وجه وايي چي پر وارث باندي د هغه نذر پوره کول واجب دي د جمهورو علماؤ دلیل دادی که چیري هغه نذر خپل وارث پر ځان باندي نه وي واجب کړی چي د هغه پوره کول پر هغه واجب وي او کوم چي د دغه روایت تعلق دی نو اول خو دا حدیث پر وجوب باندي دلالت نه کوي دوهم دا هم کیدای سي چي د حضرت سعد ﷺ مور میراث پرې ایښی وي او د هغه میراث څخه د هغه د نذر پوره کولو حکم ورکړل سوی وي یا دا چي محضي د استحباب په توګه دا حکم ورکړل سوی وي .

## د خپل ټول مال خیراتولو څخه منع

﴿٣٢٨٨﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي صَدَقَةً إِلَى اللَّهِ وَإِلَى رَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم أَمْسِكْ بَعْضَ مَالِكَ فَهُوَ خَيْرٌ لَكَ قُلْتُ فَإِنِّي أُمْسِكُ سَهْمِي الَّذِي بِخَيْبَرَ . متفق عليه و هذا طرف من حديث مطول .

د حضرت کعب بن مالک ﷺ څخه روایت دی چي ما عرض وکړ یا رسول الله! زما د تمام او کمال توبه دا ده چي د خپل ټوله مال څخه لاس پر سر سم او د الله جل جلاله او د هغه د رسول الله ﷺ لپاره یې خیرات کړم رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستا لپاره بهتره داده چي یو څه مال را وګرځوه ما عرض وکړ زه د خیبر خپله برخه را ګرځوم . (بخاري او مسلم) او داده د یو لوی حدیث یوه برخه ده .

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\ ٥٧٢، رقم: ٦٦٩٠، ومسلم ٤\ ٢١٢٧، رقم: ٥٣ – ٢٧٦٩،

**تشریح**: کله چي رسول الله ﷺ د تبوک غزا ته تشریف یووړ نو درې صحابه کرام ١: حضرت کعب ابن مالک ﷺ، ٢: حضرت مراره ابن ربیع ﷺ، ٣: او حضرت هلال ابن امیه ﷺ د رسول الله ﷺ نه ولاړل ، رسول الله ﷺ چي کله بېرته راغلی نو د دغه درو صحابه کرامو څخه ناراضه

سو او خلک یې هم د دوی سره د خبرو کولو څخه منع کړل ، له دې کبله دوی ډېر پریشانه سوه او د خپل کوتاهۍ څخه د پښیماني دعاء، زاري او استغفار یې شروع کړي او څو ورځې وروسته د هغوی توبه قبوله سوه او د هغوی په باره کې دغه آیت کریمه (وعلى الثلاثة الذين خلفوا) نازل سو، په دغه وخت کې حضرت ابن مالک رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته وویل چې زه د دغه معافۍ په شکرانه کې او د خپل توبې د پوره کولو لپاره دا غواړم چې زما سره څه مال دی هغه ټول صدقه او خیرات کړم ، ځکه نو دا حکم ورکړل سو چې څه یو څه مال د ځان سره وساتئ ، په ظاهره د دغه حکم مقصد دا وو چې د دوه پر درې برخې مال د ځان سره اېښودو سره دریمه برخه صدقه کړئ او رسول الله ﷺ د ټول مال د صدقه کولو څخه منع کړ چې داسې نه هغه ته د ژوند د اړتیاوو لپاره د مال ضرورت وي او په دغه صورت کې د صبر او توکل لمن د هغه د لاس څخه ووځي، ددې څخه معلومه سوه چې رسول الله ﷺ به په داسې معاملاتو کې د هر سړي مرتبه او مقام په فکر کې ساتلو سره یو حکم ورکوی ، یوې خوا ته د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دا واقعه ده چې هغه یې د خپل ټول مال او سامان په راوړلو سره د رسول الله ﷺ په قدمونو کې کښېښودی او هر څه یې د الله جل جلاله په لاره کې صدقه کړل نو رسول الله ﷺ هغه ددې څخه منع نه کړ ځکه چې د صدیق اکبر رضی الله عنه مثال بالکل بېل وو هغه چې د صبر او توکل پر کومې لوړې درجې باندې فائز وو د هغه په وجه د دغه معمولي تصور هم نسو کیدای چې هغه به په یو وخت کې او د سختۍ په وخت کې د صبر او توکل لمن پرېږدي .

د کتاب مصنف دغه حدیث په دې باب کې ځکه نقل کړی دی چې د حضرت کعب رضی الله عنه ذکر سوی قول د نذر مشابه دی په دې توګه چې حضرت کعب رضی الله عنه پر خپل ځان باندې یو داسې شی لازم کړ چې د یو مخصوص صورت حال په وجه پر هغه واجب نه وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ګناه نذر پوره کول جائز نه دي

﴿۳۲۸۹﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ نَذْرَ فِيْ مَعْصِيَةٍ وَكَفَّارَته كَفَّارَةُ الْيَمِيْنِ . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي

د بي بي عائشې رضی الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د خداي تعالی څخه د نافرماني نذر پوره کول جائز نه دی او د نذر کفاره د قسم کفاره ده . (ابوداؤد ترمذي نسائي)

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٥٩٥، رقم: ٣٢٩٢، والترمذي ٤\٨٧، رقم: ١٥٢٤، والنسائي ٧\٢٦، رقم: ٣٨٣٤.

**تشريح**: د ګناه د نذر په باره کي په تفصيل سره بحث په تېرو مخونو کي سوی دی، دا حديث په دې مسئله کي د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب دليل دی او د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب پر خلاف دی.

## د غير معين نذر كفاره

﴿٣٢٩٠﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نَذَرَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: څوک چي د يو ه غير

نَذْرًا لَمْ يُسَمِّهِ فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا فِي مَعْصِيَةٍ فَكَفَّارَتُهُ

معين شي نذر و مني د هغه كفاره د قسم كفاره ده او څوک چي د يوې ګناه نذر و مني د هغه

كَفَّارَةُ يَمِينٍ وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا لَا يُطِيقُهُ فَكَفَّارَتُهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ وَمَنْ نَذَرَ نَذْرًا

أَطَاقَهُ فَلْيَفِ بِهِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة و قفه بعضهم على ابن عباس.

كفاره د قسم كفاره ده او څوک چي د يو داسي شی نذر و مني چي د هغه پوره كول د هغه په طاقت کي نه وي نو د هغه كفاره هم د قسم كفاره ده او څوک چي د يو داسي شي نذر و مني چي هغه پوره كولای سي نو هغه دي پوره کړي. (ابوداؤد ابن ماجه) او ځينو دا په حضرت ابن عباس رضي الله عنه باندي موقوفه کړې دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٦١٤، رقم: ٣٣٢٢، وابن ماجه ١\٦٨٧، رقم: ٢١٢٨.

## يوازي جائز نذر پوره كوئ

﴿٣٢٩١﴾: وَعَنْ ثَابِتِ بْنِ الضَّحَّاكِ قَالَ نَذَرَ رَجُلٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت ثابت بن ضحاک رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي يو ه سړي پر ځان

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْحَرَ إِبِلًا بِبُوَانَةَ فَأَتَى رسول الله ﷺ فاخبره فقال

دا نذر منلي وو د بوانه په (چي مکې ته نژدې واقع دی) ځای کي به اوښ حلالوي وروسته هغه سړی د نبي كريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د خپل نذر منلو څخه يې خبر کړ رسول الله

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ كَانَ فِيهَا وَثَنٌ مِنْ أَوْثَانِ الْجَاهِلِيَّةِ

ﷺ (د اصحابو کرامو ځخه)پوښتنه وکړه ایا په بوانه کي د جاهلیت په وخت کي ځه بتان وه

يُعْبَدُ قَالُوا لَا قَالَ فهَلْ كَانَ فِيهَا عِيدٌ مِنْ أَعْيَادِهِمْ قَالُوا لَا فقَالَ رَسُولُ

چي د هغو عبادت کېدی یا هلته څه مېله د اختر لګېدله ؟ اصحابو کرامو عرض وکړ هیڅ هم نه وه نو نبي کریم ﷺ و هغه سړي ته حکم ورکړ چي

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْفِ بِنَذْرِكَ فَإِنَّهُ لَا وَفَاءَ لِنَذْرٍ فِي مَعْصِيَةِ اللّٰهِ وَلَا فِيمَا لَا يَمْلِكُ ابْنُ آدَمَ . رواه ابوداؤد.

خپل نذر پوره کړه د خداي تعالی د نافرمانئ نذر البته د پوره کولو قابل نه دی او په انسان باندي د هغه شي نذر پوره کول هم جائز نه دي چي د هغه په وس او توان کي نه وي . (ابوداؤد).

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٦٠٧، رقم: ٣٣١٣.

**د لغاتو حل**: بُوانة: هضبة من وراء ينبع.

**تشریح**: د هغه ځای په باره کي د رسول الله ﷺ د پوښتنه کولو مقصد دا وو که چیري هلته د جاهلیت په زمانه کي یو بُت وي چي د هغه عبادت کیدی یا هلته د کفارو ګډون وي چي هلته به هغوی په غزلو ، رقصونه کي بوخت وي نو په دغه صورت کي به یې هغه سړي ته د خپل نذر پوره کولو اجازه نه وي ورکړې چي په داسي کولو سره د کفارو سره مشابهت نه وي مګر کله چي رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي هلته په دغه دواړو کي یو شی هم نه سته نو رسول الله ﷺ هغه سړي ته د نذر پوره کولو حکم ورکړ.

## د دریاوهلو نذر پوره کولو حکم

﴿٣٢٩٢﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ

حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلار او هغه د خپل پلار ځخه روایت کوي چي یوې ښځي عرض وکړ یا رسول الله!

اللّٰهِ إِنِّي نَذَرْتُ أَنْ أَضْرِبَ عَلَى رَأْسِكَ بِالدُّفِّ قَالَ أَوْفِي بِنَذْرِكِ . رواه ابوداؤد و

ما نذر منلی دی چي کوم وخت تاسو د جهاد څخه بیرته راسئ نو زه به ستاسو و مخته دریږ
وهم نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : خپل نذر پوره کړه .(ابوداؤد) او

زاد رزين قالت و نذرت ان اذبح بمكان كذا وكذا مكان يذبح فيه اهل

د رزین په دې روایت کي دا الفاظ زیات دي چي هغې ښځي دا هم وويله چي ما دا نذر منلي
دی چي زه په فلاني فلاني ځاي باندي چي د جاهلیت په زمانه کي هلته قرباني کېدله ذبح کوم

الجاهلية فقال هل كان بذالك المكان وثن من اوثان الجاهلية يعبد

قالت لا قال هل كان فيه عيد من اعيادهم قالت لا قال اوفي بنذرك .

نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي ایا د جاهلیت په زمانه کي په دغو ځایونو کي بتان وه چي د
هغوی عبادت کېدی ؟ښځي عرض وکړ یا ! نبي کریم ﷺ بیا پوښتنه وکړه ایا د جاهلیت په
زمانه کي هلته د اختر مېله لګېدله ؟ هغې ښځي عرض وکړ یا ! نو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : خپل
نذر پوره کړه .

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٦٠٦، رقم: ٣٣١٢.

**تشریح**: ددغه حدیث شریف څخه معلومه سوه چي دریه وهل مباح دي ، کوم حضرات چي دا
وایي چي یوازي د هغه شي نذر کول پکار دي کوم چي د نیکۍ د ډول څخه وي نو هغوی ددغه
حدیث په باره کي دا وضاحت کوي چي که څه هم د دریه وهل طاعت نه دی بلکه مباح دی مګر
هغه ښځي د رسول الله ﷺ سره د خپل عقیدې او میني په وجه دا نذر منلی وو چي کله رسول الله
ﷺ د جهاد څخه په خیر او عافیت راسي نو زه به دریه وهم نو په دې اعتبار سره د هغې دریه وهل
د طاعت څخه سو .

## د دریمي برخي مال څخه زیات صدقه کولو څخه منع

﴿٣٢٩٣﴾: وَعَنْ أَبِي لُبَابَةَ أَنَّهُ قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ تَوْبَتِي أَنْ

د ابو لبابه رضي الله عنه څخه روایت دی چي هغه و رسول الله ﷺ ته عرض وکړ زما کامله توبه داده چي

أَهْجُرَ دَارَ قَوْمِ الَّتِي أَصَبْتُ فِيهَا الذَّنْبَ وَأَنْ أَنْخَلِعَ مِنْ مَالِي كُلِّهِ صَدَقَةً قَالَ

يُجْزِئُ عَنْكَ الثُّلُثُ . رواه رزين

زه د خپل قوم کور پرېږدم چي هلته زما څخه ګناه سوې ده او خپل ټول مال خيرات کړم نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : دريمه برخه مال خيراتول ستا لپاره کافي ده . (رزين)

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د حضرت ابولبابه ﷛ واقعه د اسلامي تاريخ يوه عجيبه، پند لرونکې او بې مثاله واقعه ده، ددغه واقعې تفصيل دادی چي کله نبي کريم ﷺ دا پيغام قبول کړ او ابولبابه ﷛ يې هغوی ته واستوی ، کله چي بنو قريضه ابولبابه وليدی نو د هغوی ښځي، نارينه، کوچنيان، سپين ږيري او ټول خلک د هغه په مخکي په ژړا او زاري سول ، د هغوی ددغه حالت په ليدو سره د ابولبابه زړه ډېر نرم سو ، بيا هغوی د ابولبابه ﷛ څخه پوښتنه وکړه که موږ د محمد ﷺ حکم ومنو او خپل ځان ورته حواله کړو نو زموږ سره به څه چلن کوي ، ددې په جواب کي ابولبابه ﷛ پر غاړه باندي د لاس په اېښودو سره ځرګنده کړه چي تاسو به ذبح کړي ، ابولبابه ﷛ وايي چي کله ما دا خبره وکړه نو د هغه ځای څخه مي قدم پورته کړی نه وو چي زه خبردار سوم او پر دې خبره باندي سخت پښېمانه سوم چي تا د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ په باره کي خيانت وکړ .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَخُونُواْ اللّهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُواْ أَمَانَاتِكُمْ

ژباړه : اې مؤمنانو ! د الله او د هغه د رسول په امانت (يعني پيغام او احکامو) کي خيانت مه کوئ او مه په خپلو امانتو کي خيانت کوئ .

ځرنګه چي د پښېمانۍ احساس د ابولبابه ﷛ پر زړه او شعور باندي تالنده اېله کړه او هغه بې تابه سو او د ليونيانو په ډول مسجد نبوي ته ورسيدی او خپل ځان يې د مسجد د ستني سره وتړی او دا اعلان يې وکړ چي تر څو پوري زه توبه ونه کړم او الله ﷻ زما توبه قبوله نه کړي پر ما خوراک او څښناک حرام دي ، کله چي به د لمانځه وخت راغلی نو هغه به خلاص کړل سو بيا کله چي هغه به لمونځ وکړ نو د هغه لاسونه به يې وتړل خلک به هغه ته راتلل او د خلاصولو لپاره به يې ورته وويل مګر هغه به انکار کوی او ويل به يې چي تر څو پوري رسول الله ﷺ خپله تشريف راوړلو سره ما خلاص نه کړي زه به ددغه ځای څخه نه ليري کېږم ، پر له پسې اووه ورځي هغه د ستني سره همداسي تړلی ولاړ وو تر دې چي په بې هوښه کېدو سره ولويدی ، په پای کي الله ﷻ د هغه توبه قبوله کړه ، خلکو هغه ته وويل چي الله ﷻ ستا توبه قبوله کړه اوس ته خپل ځان خلاصه کړه هغه وويل قسم په خدای تر څو چي رسول الله ﷺ په خپل لاس مبارک سره ما

خلاص نه کړي زه به هیڅکله هم ځان خلاص نه کړم نو رسول الله ﷺ تشریف راوړ او په خپل مبارک لاسو سره یې هغه خلاص کړ ، په دغه وخت کي ابولبابه رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته وویل چي د خپل توبې د محسوس کولو لپاره زه دا محسوس کوم چي ما ته د خپل مال او سامان څخه ځان خلاصول پکار دي نو اول خو زه خپل پلرنی کور پرېږدم کوم چي په ابن قریظه قبیلې کي واقع دی او دوهم زه هغه ټول مال او سامان د الله جل جلاله په لاره کي خېراتوم.

د کور پرېښودو لپاره ابولبابه رضی الله عنه ځکه وویل چي د هغه ځای څخه لیري سي چیري چي شیطان پر هغه باندي په غلبه تر لاسه کولو سره په هغه ګناه وکړه او د هغه ګناه ظاهري سبب د بنو قریظه سره د همدردۍ جذبه وه او د هغه اظهار چي د هغه کورنۍ ، مال او سامان ټول د بنو قریظه په قبضه کي وو ، د کور پرېښودو په باره کي رسول الله ﷺ هغه ته څه حکم ورکړ په دغه حدیث کي ددې هیڅ ذکر نه سته په ظاهره دا مفهوم کیږئ چي د ابولبابه رضی الله عنه کور پرېښودل د طاعت څخه وو ځکه رسول الله ﷺ هغه جائز کړی البته د صدقې په باره کي رسول الله ﷺ دا حکم ورکړ چي د ټول مال خېرات کولو ضرورت نه سته بلکه د خپل ټول مال دریمه برخه خیرات کولو سره مقصد تر سره کیږي.

## د یو خاص ځای لمونځ کولو نذر ...

﴿۳۲۹۴﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ رَجُلًا قَامَ يَوْمَ الْفَتْحِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

د حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه څخه روایت دی چي د مکې د فتحي په ورځ یوه سړي عرض وکړ یا رسول الله!

إِنِّي نَذَرْتُ لِلّٰهِ إِنْ فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكَ مَكَّةَ أَنْ أُصَلِّيَ فِي بَيْتِ الْمَقْدِسِ رَكْعَتَيْنِ

ما خداي تعالي ته دا نذر منلی دی چي کله الله جل جلاله د مکې فتحه را نصیب کړي نو زه به په بیت المقدس کي دوه رکعته لمونځ کوم

قَالَ صَلِّ هَاهُنَا ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ صَلِّ هَاهُنَا ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ فَقَالَ شَأْنُكَ إِذًا. رواه ابوداؤد و الدارمي

نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : دلته لمونځ وکړه (یعني په مسجد حرام کي) هغه بیا عرض وکړ نبي کریم ﷺ بیا داسي ورته وفرمایل : چي په دې ځای باندي لمونځ وکړه د دریم وار په

پوښتني باندي نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : اوس دي چي کوم ځای زړه غواړي هلته لمونځ وکړه . (ابوداؤد دارمي) .

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٦٠٢، رقم: ٣٣٠٥، والدارمي ٢\٢٤١، رقم: ٢٢٣٩.

**تشريح** په شرح السنه کي ليکلي دي که چيري يو څوک په مسجد نبوي کي د لمانځه کولو نذر وکړي او بيا هغه لمونځ په مسجد حرام کي وکړي نو د هغه نذر به پوره سي مګر که چيري هغه لمونځ په مسجد اقصی يعني بيت المقدس کي وکړي نو د هغه نذر به پوره نه سي همدارنګه که چيري يو څوک په مسجد اقصی کي د لمانځه کولو نذر وکړي او بيا هغه په مسجد حرام يا مسجد نبوي کي لمونځ وکړي نو د هغه نذر به پوره سي يعني د دې مطلب دادی که چيري يو ځای د لمانځه کولو نذر وکړل سي او هغه لمونځ په بل ځای کي وکړل سي چي هغه ځای تر دغه ځای زيات د فضيلت حامل وي نو نذر به پوره سي مګر حنفي علماء وايي چي په دې باره کي زموږ مطلب دادی که چيري يو سړی په يو ځای کي د لمانځه کولو نذر وکړي او بيا هغه لمونځ په يو بل ځای کي وکړ چي د هغه ځای څخه د هغه لمانځه فضيلت کم وي نو بيا هم نذر پوره کيږي .

## که نذر ناممکن وي نو د هغه کفاره ...

﴿٣٢٩٥﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ أُخْتَ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ مَاشِيَةً

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د عقبه بن عامر رضي الله عنه خور پر ځان باندي دا نذر منلی وو چي هغه به پياده حج کوي

وَأَنَّهَا لَا تُطِيقُ ذَلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ لَغَنِيٌّ عَنْ مَشْيِ

مګر د دې توان او طاقت يې نه درلود (په دې اوږدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل : ستا د خور د پياده تلو څخه الله جل جلاله بې پروا دی

أُخْتِكَ فَلْتَرْكَبْ وَلْتُهْدِ بَدَنَةً . رواه ابوداؤد والدارمي ، وفي رواية لابي داؤد

هغې له پکار ده چي سپره ولاړه سي او قرباني دي وکړي .(ابوداؤد دارمي) او دابوداؤد په

فامرها النبي صلى الله عليه وسلم ان تركب و تهدي هديا . و في رواية له

يوه روايت كي داالفاظ دي چي نبي كريم ﷺ د عقبه خور ته دا حكم وكړ چي سپره ولاړه سه او يو حيوان حلال كړه او په يو بل روايت كي د ابوداؤد دادي چي

فقال النبي صلى الله عليه وسلم ان الله لا تصنع بشقاء اختك شيئا فلتركب ولتحج وتكفر يمينها.

نبي كريم ﷺ وفرمايل: خداي تعالي ستا د خورد دې مشقت او تكليف هيڅ ثواب نه وركوي هغې له پكار ده چي سپره حج ته ولاړه سي او د خپل قسم كفاره ادا كړي.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\ ٥٩٨، رقم: ٣٢٩٧، والدارمي ٢\ ٢٤٠، رقم: ٢٣٣٥.

**تشريح**: هدي هغه ځاروي ته وايي چي د ذبح كولو لپاره حرم ته استول سوى وي، د هدي كم از كم درجه پسه دى او لوړه درجه يې اوښ يا غوا ده، په دغه حديث كي چي د بدنه (اوښ يا غوا) د ذبح كولو كوم حكم وركړل سوى دى هغه د استحباب په توكه دى، قاضي رحمة الله عليه وايي چي پر پښو حج ته تلل د طاعت ځخه دى ځكه نو ددغه نذر پوره واجب دي او په دې سره هر هغه عمل لاحق كيږي چي د هغه ترك كول جائز نه دي مګر دا چي يو سړى د هغه د ادا كولو ځخه عاجز وي او د ترك كولو په صورت كي فديه واجبيږي اوس په دې باره كي اختلاف دى چي د كفارې په توګه كوم ځاروى ذبح كول واجبيږي؟ د حضرت علي رضي الله عنه قول د دغه حديث سره سم بدنه (اوښ ياغوا) واجبيږي. ځيني حضرات وايي چي څرنګه د ميقات ځخه په تجاوز كولو سره پسه واجبيږي همدارنګه په دغه صورت كي هم پسه واجبيږي، هغوى په دغه حديث كي د اوښ يا غوا ذبح كولو حكم پر استحباب محمول كړى دى، دا قول د امام مالك رحمة الله عليه هم دى بلكه صحيح خبره داده چي د امام شافعي رحمة الله عليه قول هم دادى.

او د خپل قسم كفاره دي ادا كړي: په دې باره كي صحيح خبره داده چي په دغه حكم كي كفاره نه مراد كيږي كفاره جنايت او هغه هدي ده يا روژه ده چي د كفارې قائم مقام ده چي د هغه ذكر هم په مخكني حديث كي سوى دى، د كفارې په باره كي دا تاويل ځكه كيږي چي دغه روايت په دې باره كي منقول د نورو روايتو مطابق سي، خلاصه دا چي دلته د قسم د كفارې ځخه هغه كفاره مراد نه ده چي د قسم ماتولو په صورت كي ادا كيږي.

﴿٣٢٩٦﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنَ مَالِكٍ أَنَّ عُقْبَةَ بْنَ عَامِرٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبد الله بن مالک رضی الله عنه څخه روايت دی چي عقبه بن عامر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أُخْتٍ لَهُ نَذَرَتْ أَنْ تَحُجَّ حَافِيَةً غَيْرَ مُخْتَمِرَةٍ فَقَالَ مُرُوهَا

پوښتنه وکړه چي د هغه خور دا نذر منلی دی چي هغه به سرتور سر پښې (پياده) حج کوي نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل:

فَلْتَخْتَمِرْ وَلْتَرْكَبْ وَلْتَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ . رواه ابوداؤد والترمذي و النسائي وابن ماجة والدارمي .

هغې ته ووايه چي سر پټ کړي او سپره ولاړه سي او (د نذر په کفاره کي) درې روژې دي و نيسي . (ابوداؤد ترمذي نسائي ابن ماجه دارمي) .

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\ ٥٩٦، رقم: ٣٢٩٣، والترمذي ١٤\ ٩٨-٩٩، رقم: ١٥٤٤، والنسائي ١٧\ ٢٠، رقم: ٣٨١٥، وابن ماجه ١\ ٦٨٩، رقم: ٢١٣٤، والدارمي ١٢\ ٢٣٩، رقم: ٢٣٣٤.

**د لغاتو حل**: غير مُختمِرة: اى غير مغطية راسها بخمارها (لوڅ سرې).

**تشريح**: د سر پټولو حکم ځکه ورکړل سو چي د ښځي سر او وېښتان ستر دی يعني د ښځي د بدن دا هغه برخي دي چي د هغو پټول پر هغې واجب دي او د ښکاره کول يې ګناه ده ، او پر سپرلۍ باندي د ناستي حکم ځکه ورکړل سو چي هغه پر پښو باندي د تللو څخه عاجزه وه او ددې په وجه هغه په سخت تکليف کي اخته وه .

په ذکر سوي حديث کي د هدي ذکر دی ځکه دلته هغه دي درې روژې ونيسي: ددې مطلب به دا وي که چيري هغه د هدي څخه عاجزه وي نو درې روژې دي ونيسي يا د روژو نيولو لپاره ځکه ورته وفرمايل سول چي د قسم د کفارې چي څو قسمونه دي په هغو کي يو دا هم دی که يو سړی د کفارې د قسمونو څخه عاجزه وي نو هغه دي درې روژې ونيسي او س ددغه درو روژو په باره کي دا تفصيل دي که چيري درې روژې د قسم د کفارې په توګه ونيسي نو درې روژې پرله پسې نيول واجب دي ددې څخه په نورو صورتو کي اختيار دی څرنګه چي غواړي روژې دي ونيسي.

## د ناجائز نذر کفاره ورکول واجب ده

﴿٣٢٩٧﴾: وَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ أَنَّ أَخَوَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ بَيْنَهُمَا

د حضرت سعید بن مسیب رضی الله عنه څخه روایت دی چي دوو انصاري ورونو ته د یو چا میراث و

مِيرَاثٌ فَسَأَلَ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ الْقِسْمَةَ فَقَالَ إِنْ عُدْتَ تَسْأَلُنِي عَنِ الْقِسْمَةِ

رسیدی نو په هغوی کي یو بل ته د میراث د تقسیم خواهش ښکاره کړ دویم ورته وویل که ته ماته د تقسیم خواهش ښکاره کړې

فَكُلُّ مَالٍ لِي فِي رِتَاجِ الْكَعْبَةِ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ إِنَّ الْكَعْبَةَ غَنِيَّةٌ عَنْ مَالِكَ كَفِّرْ

نو زما ټول مال به په کعبه کي خرڅ کړل سي (یعني هغه دا الفاظ د نذر په ډول سره وویل) حضرت عمر رضی الله عنه هغه ته وویل کعبې ته ستا د مال هیڅ ضرورت نسته ته د خپل نذر کفاره ورکړه

عَنْ يَمِينِكَ وَكَلِّمْ أَخَاكَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ لَا يَمِينَ عَلَيْكَ

او که ستا ورور تا ته د دویم وار د وراثت د تقسیم پوښتنه وکړه نو په دې معامله کي ته د هغه سره خبري اتري وکړه ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي د خدای تعالی په

وَلَا نَذْرَ فِي مَعْصِيَةِ الرَّبِّ وَفِي قَطِيعَةِ الرَّحِمِ وَفِيمَا لَا تَمْلِكُ . رواه ابوداؤد .

نافرماني کي او قطع رحمي کي نذر پوره کول نسته او د کوم شي چي انسان مالک نه وي نو د هغه نذر پوره کول جائز نه دي بلکه د دې ډول د نذرونو کفاره دي ورکړي او نذر دي نه پوره کوي . (ابوداؤد).

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۵۸۱، رقم: ۳۲۷۲.

**د لغاتو حل**: رِتاج: ای مصالحها او زینتها .

**تشریح**: د تاج الکعبه لفظي معنی د کعبې دروازه ده ځکه چي تاج لوی دروازې (ګېټ) ته وایي مګر د تاج الکعبه څخه د کعبې دروازه مراد نه ده بلکه په خپله کعبه مراد ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### جائز او ناجائز نذر

﴿۳۲۹۸﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

: حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي

يَقُولُ النَّذْرُ نَذْرَانِ فَمَن كَانَ نَذَرَ فِي طَاعَةِ فَذٰلِكَ لِلّٰهِ فِيهِ الْوَفَاءُ وَمن كَانَ

چي فرمايل يې: نذر پر دوه قسمه دي : (١)- يو هغه نذر چي د خداي تعالى د بندگى او اطاعت لپاره و منل سي نو د دې پوره كول ضروري دى ځكه چي دا خاص و الله ﷻ ته دى. (

نَذَرَ فِي مَعْصِيَةٍ فَذٰلِكَ لِلشَّيْطَانِ وَلَا وَفَاءَ فِيهِ وَيُكَفِّره ما يكفر الْيَمِينَ .رواه النسائي

٢)- او دويم نذر هغه دي چي د خداي تعالى د نافرمانى او گناه لپاره ومنل سي دا نذر د شيطان لپاره دى او د دې پوره كول جائز نه ده . او د دې ډول نذر كفاره د قسم كفاره ده . نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ٧\٢٧- ٢٩، رقم: ٣٨٤٥.

## د خپل ځان قربانولو نذر

﴿٣٢٩٩﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْتَشِرِ قَالَ إِنَّ رَجُلاً نَذَرَ أَنْ يَّنْحَرَ نَفْسَهُ إِنْ

د حضرت محمد بن منتشر ﷺ څخه روايت دى چي يوه سړي دا نذر و منى چي كه خداى

نَجَاهُ اللهُ مِنْ عَدُوِّهِ فَسَأَلَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَهُ سَلْ مَسْرُوقًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ

تعالى هغه د دښمن د لاسه څخه خلاص كړ نو خپل ځان به قربان(حلال ذبح) كړي (كوم وخت چي الله ﷻ هغه د دښمن څخه وژغوري)نو هغه د خپل نذر په هكله د حضرت ابن عباس ﷺ څخه پوښتنه وكړه هغه ورته وويل د مسروق څخه پوښتنه وكړه نو هغه د مسروق څخه پوښتنه

لَهُ لَا تَنْحَرْ نَفْسَكَ فَإِنَّكَ إِنْ كُنْتَ مُؤْمِنًا قَتَلْتَ نَفْسًا مُّؤْمِنَةً وَإِنْ كُنْتَ كَافِرًا

وكړه نو هغه ورته وويل خپل ځان مه حلالوه كه ته مؤمن يې نو د مؤمن نفس به ووژنې او كه

تَعَجَّلْتَ إِلَى النَّارِ وَاشْتَرِ كَبْشًا فَاذْبَحْهُ لِلْمَسَاكِيْنِ فَإِنَّ إِسْحَاقَ خَيْرٌ مِّنْكَ

كافر يې نو اور (يعني جهنم ته) به ورسيږې خو ته يو پسه واخله او د مسكينانو لپاره يې حلال كړه ځكه چي ستا څخه د يوه غوره (هستي) اسحق ﷺ په بدل كي هم

وَفُدِيَ بِكَبْشٍ فَأَخْبَرَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ هٰكَذَا كُنْتُ أَرَدْتُ أَنْ أُفْتِيَكَ . رزين

يو پسه حلال سوې وو هغه سړي د دې جواب څخه ابن عباس اګاه کړ نو هغه ورته وويل ما هم د داسي فتوى د ورکولو اراده درلوده . (رزين) .

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: حضرت مسروق ابن اجرع رحمة الله عليه د سترو تابعينو څخه دی د هغه علمي فضيلت او فقهي حيثيت په خپل زمانه کي يو امتيازي شان درلودی د عامر ابن شرجيل قول دی چي هيڅ يو ښځي د مسروق په ډول زوی نه دی راوړی، هغه د رسول الله ﷺ د وفات څخه مخکي اسلام قبول کړی وو مګر د رسول الله ﷺ په دربار کي د حاضرتوب د سعادت څخه محروم پاته سوی وو هغه د څلورو خلفاؤ او بي بي عائشي رضي الله عنها څخه علم حاصل کړی دی ځکه هغه سړي چي کله د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه مسئله وپوښتل نو هغه د خپل علم سربېره هغه سړي ته د حضرت مسروق رحمة الله عليه څخه د مسئلې د پوښتنه کولو لپاره وويل ځکه چيري چي د حضرت مسروق رحمة الله عليه د فضيلت اظهار کيږئ هلته د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د احتياط او د هغه پر کامل صبر او ديانت باندي هم رڼا لويږي .

په حديث کي چي د کوم سړي ذکر سوی دی هغه ته د دښمن د لاس څخه مړ کېدل ډېر سخت معلومېدل نو هغه غوښتنه وکړه چي اې پروردګاره! پر اصل مرګ پر ما باندي سخت نه دی او نه زه د خپل ژوند د خاتمي څخه بېرېږم زه خپل ځان تا ته سپارم او خپل ځان ستا په نامه قربانوم مګر د دښمنانو د لاس څخه مړ کېدل پر ما ډېر سخت دي ځکه که ته ما ته خلاصون راکړې نو زه به خپل ځان ستا په نامه قربان کړم دا خو د هغه جذبه او د هغه يو طبعي خواهش وو مګر هغه په دې پوه نه سو چي د خپل ځان هلاکول تر دې ډېر زيات سخت او حرام دي نو حضرت مسروق رحمة الله عليه د هغه په وړاندي دا مسئله په ډېر نرم انداز کي واضح کړل که ته مسلمان يې او خپل ځان وژنې نو داسي به ته دا حقيقت د يو مسلمان د قتلولو مرتکب وګرځې او دا دي تا ته معلومه وي چي مؤمن نفس د وژونکي په باره کي ددغه آيت کريمه (ولاتقتلوا انفسكم ومن يقتل مؤمنامتعمدا...) سره سم د دوږخ د دائمي عذاب وعيد بيان سوی دی او که ته کافر يې نو په دغه صورت کي خپل ځان وژل به ددې مترادف وي چي ته دوږخ ته په تلو کي تلوار کوې ځکه که ته ژوندی پاته سې نو څه عجيبه نه ده چي الله تعالى تا په هدايت سره ونازوي او ته د اسلام په قبلولو سره دائمي خلاصون تر لاسه کړې ، په هر حال په هيڅ صورت کي هم نسته د خپل ځان وژل نه يوازي دا چي نامشروع دي بلکه غير معقول هم دي .

د حديث دا جمله (حضرت اسحاق علیہ السلام تر تا غوره ووچي د هغه بدله يو پسه گرځول سوی وو) د ځينو علماؤ قول دادی چي حضرت ابراهيم علیہ السلام کوم خوب ليدلی وو چي خپل زوی ذبح کړه نو هغه زوی حضرت اسحاق علیہ السلام وو مگر په دې باره کي مختار او مشهور قول دادی چي حضرت ابراهيم علیہ السلام ته په خوب کي د کوم زوی د ذبح کولو حکم ورکړل سوی وو هغه حضرت اسماعيل علیہ السلام وو.

جلال الدين سيوطي رحمۃ اللہ علیہ وضاحت کړی دی چي په دغه واقعه کي اهل کتابو د سخت تحريف او تکذيب څخه کار اخيستی دی په پخوانيو آسماني کتابو کي اصل نوم اسماعيل وو چي اهل کتابو په حذف کولو سره اسحاق کړی.

په درمختار کي ليکلي دي که يو سړی د خپل زوی د ذبح کولو نذر ومني نو د حضرت ابراهيم علیہ السلام د واقعې په موافقت کي پر هغه باندي پسه ذبح کول واجبيږي مگر امام ابويوسف او امام شافعي رحمة الله عليهما وايي چي داسي نذر کول لغو دی او همدارنگه د خپل ځان او د خپل غلام د ذبح کولو نذر هم لغو دی مگر امام محمد رحمۃ اللہ علیہ وايي چي په دغه صورت کي د يوه پسه ذبح کول واجبيږي او که چيري يو څوک د خپل پلار يا نيکه يا د خپل مور د ذبح کولو نذر ومني نو د ټولو علماؤ په نزد د هغه نذر به لغو وي.

===========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَابُ الْقِصَاصِ

## (د قصاص بيان)

د شريعت په اصطلاح کي د قصاص مفهوم د قاتل ځان اخيستل دي يعني چا چي يو سړی په ناحقه قتل کړی وي هغه د مقتول په بدله کي قتلول، دغه لفظ د قص او قصص څخه جوړ سوی دی او د دې لغوي معنی ده په يو چا پسي تر شا تلل، د مقتول ولي په قاتل پسې لګيدلی وي چي هغه د مقتول په بدله کي قتل کړي ځکه د قاتل ځان اخيستلو ته قصاص ويل کيږي، د قصاصات معنی د مساوات هم ده، پر قصاص باندي د دغه معنی اطلاق داسي کيږي چي کله قاتل د مقتول په بدله کي قتل کړل سي مګر د مقتولي ولي او قاتل يا مقتول او قاتل برابر سي ځکه چي په قصاص کي د قاتل سره هغه چلن کيږي کوم چي قاتل د مقتول سره کړي وو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مسلمان دويني حرمت

﴿٣٣٠٠﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل:

لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ إِلَّا بِإِحْدَى

کوم مسلمان چي د دې شاهدي ورکړي چي د الله جل جلاله څخه پرته بل څوک د عبادت وړ نسته او زه (محمد صلی الله علیه وسلم) د الله جل جلاله رسول يم نو د هغه وينه تويول جائز نه ده خو

ثَلَاثٍ النَّفْسُ بِالنَّفْسِ وَالثَّيِّبُ الزَّانِي وَالْمَارِقُ لِدِينِهِ التَّارِكُ لِلْجَمَاعَةِ. متفق عليه.

په دې درو خبرو باندي د هغه وينه تويول جائز ده: (١)- يو خو نفس په نفس سره (٢)- د واده لرونکي ازاد او مکلف مسلمان زنا کول. (٣)- چي خپل مذهب (اسلام) يې پرې ايښې وي او

د خپل جماعت څخه جلا سوی وي (يعني د مرتد قتلول هم جائز دی). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢٠١. رقم: ٦٨٧٨، ومسلم ٣\١٣٠٢، رقم: ٢٥-١٦٧٦.

**تشريح**: دغه جمله: ځوک چي ددې شاهدي ورکړي چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه پرته بل ځوک د عبادت ور نه سته او بېشکه زه د الله تعالی رسول يم، دا په اصل کي د مسلم لفظ وضاحت او بيان او د هغه د مؤکد کولو لپاره فرمايل سوي دي او په دې کي دې ته اشاره ده چي محض کلمه شهادت ويل دويني بيولو ناجائز کېدو لپاره کافي دي، ددې مطلب دا دی که يو سړی محض په ژبه سره د الله تعالی د الوهيت او د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي ورکړي نو د هغه ناحق وينه بيول هم داسي ناجائز دي لکه څرنګه چي د بل مسلمان.

د حديث خلاصه دا ده چي د مسلمان وينه تويول بالکل جائز نه دي مګر دا چي په دغه درو شيانو کي يو شی رامنځته سي اول خو دا که يو سړی خپل مسلمان ورور په ناحقه قتل کړي نو د هغه په بدل کي د اصولو سره سم دي هغه قتل کړل سي، دوهم دا که چيري يو واده سوی سړی چي مکلف، مسلمان او ازاد وي زنا کونکی سي نو هغه دي سنګسار کړل سي او دريم دا چي کوم مسلمان د دين څخه ووځي يعني مرتد سي نو د هغه قتلول هم جائز دي.

د خپل جماعت پرېښودونکی دا مارق صفت مؤکده دی يعني کوم ځوک چي په قول او فعل يا په عقيدې سره مرتد سي چي هغه اسلام پرېږدي او په دې وجه د مسلمانانو د قوم څخه بېلوالی اختيار کړي نو د هغه قتلول واجب دي په شرط ددې چي هغه د خپل ارتداد څخه توبه ونه کړي، په حديث کي داسي سړی د مسلمان په ډله کي ذرک کول د هغه د اول حالت په اعتبار مجازا دي او دا خبره دي په ذهن کي وي که يوه ښځه مرتده سي نو د حنفيه مذهب سره سم هغه ښځه نه قتل کيږي.

## په ناحقه قاتل د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رحمت څخه لېري وي

﴿٢٣٠١﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَزَالَ الْمُؤْمِنُ فِي فُسْحَةٍ مِنْ دِينِهِ مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تر څو پوري چي يو مسلمان د ناجائزي ويني (قتل) مرتکب سوي نه وي تر هغه وخته پوري هغه د دين د خپرېدو او نشرېدلو په لټه کي وي (يعني د خداي تعالی د رحمت اميد لرونکي وي). (بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۸۷، رقم: ٦٨٦٢.

**تشريح**: هسي خو هره بدي د انسان د يني او اخلاقي ژوند لپاره د زوال باعث او د الله تعالى د غضب سبب وي مگر دلته د قتل په خاصه توگه بدي واضح کړل سوې ده چي يو مسلمان د بل مسلمان په وينه سره په ناحقه لاس رنګ نه کړي پر هغه د الله تعالى د رحمت لاس وي او هغه د الله تعالى د رحمت او اميد او د هغه د بخښني او مغفرت سايه په خپل لمن كي اخيستي وي مگر كله چي يو سړى په ناحقه سره د مسلمان په وينو لاس رنګ کړي نو پر هغه تنګي مسلط سي او د هغه خلكو په ډله كي داخل سي كوم چي د الله تعالى د رحمت څخه نا اميد او محروم وي.

## د قيامت په ورځ تر ټولو مخكي د قتل په اړه پوښتنه كيږي

﴿۳۳۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ مَا يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ يوم القيامة فِي الدِّمَاءِ . متفق عليه.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ چي الله جل جلاله د ټولو وړاندي د انسانانو د معاملاتو حكم اوري هغه به د ويني معاملات وي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۸۷، رقم: ٦٨٨٤، ومسلم ۳\۱۳۰۴، رقم: ۲۸- ۱٦٧٨.

**تشريح**: مطلب دادى چي د قيامت په ورځ به د بندګانو د حقوقو څخه چي د كومي محكمې تر ټولو مخكي فيصله كيږي هغه به د انسان وينه بيول وي او د الله تعالى د حقوقو څخه چي د كوم شي په باره كي تر ټولو مخكي پوښتنه كيږي هغه به لمونځ وي، صحيح خبره داده چي د منهياتو څخه د كوم شي په باره كي چي تر ټولو مخكي فيصله كيږئ هغه به د ويني تويول وي او په ماموراتو كي چي د كوم شي په باره كي تر ټولو مخكي پوښتنه كيږي هغه به لمونځ وي.

## چا چي كلمه وويل هغه معصوم الدم سو

﴿۳۳۰۳﴾: وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ لَقِيتُ

د مقداد بن اسود رضي الله عنه څخه روايت دى چي هغه عرض وكړ يا رسول الله! كه زه مقابله وكړم

رَجُلًا مِنَ الْكُفَّارِ فاقتتلنا فَضَرَبَ إِحْدَى يَدَيَّ بِالسَّيْفِ فَقَطَعَهَا ثُمَّ لَاذَ

د يو كافر سره او زموږ دواړو په مينځ كي مقابله سي او هغه كافر زما يو لاس ووهي او

مِنِّي بِشَجَرَةٍ فَقَالَ أَسْلَمْتُ لِلّٰهِ وفي رواية فَلَمَّا اَهْوَيْتُ لِاَقْتُلَهُ قَالَ لَااِلٰهَ اِلَّااللهُ

وتښتي تر يوې ونې پورې او دا ووايي چې زه د الله ﷻ لپاره مسلمان سوم او په يوه روايت کې دا الفاظ دي کوم وخت چې زه د هغه د قتلولو اراده وکړم هغه ووايي چې لا اله الا الله

اَاَقْتُلُهُ بَعْدَ اَنْ قَالَهَا قال لَا تَقْتُلْهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّهُ قَطَعَ اِحْدٰى يَدِي

نو ايا د دې الفاظو د ويلو څخه وروسته زه هغه قتل کړم؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه مه وژنه، ما عرض وکړ يا رسول الله! هغه خو زما يو لاس پرېکړی دی

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْتُلْهُ فَإِنْ قَتَلْتَهُ فَإِنَّهُ بِمَنْزِلَتِكَ

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه مه قتلوه که ته هغه قتل کړې نو د هغه به هغه درجه وي چې د

قَبْلَ أَنْ تَقْتُلَهُ وَإِنَّكَ بِمَنْزِلَتِهِ قَبْلَ أَنْ يَقُولَ كَلِمَتَهُ الَّتِي قَالَ. متفق عليه

هغه د قتلولو څخه وړاندې ستا وه او ستا درجه به هغه سې چې د دې کلمې د ويلو څخه وړاندې د هغه وه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٨٧، رقم: ٦٨٦٥، ومسلم ١\٩٥، رقم: ١٥٥- ٩٥.

**تشريح**: مطلب دا دی که چيرې تا د دغه کلمې د ويلو څخه وروسته قتل کړل نو څرنګه چې ته د هغه د قتلولو څخه مخکې معصوم الدم وې اوس هغه د اسلام راوړلو په وجه معصوم الدم سو او څرنګه چې هغه د اسلام د کلمې د ويلو څخه مخکې غير معصوم الدم وو اوس ته د هغه د قتلولو په وجه غير معصوم الدم سوې، ددې وضاحت دا دی چې د اسلام د کلمې د ويلو څخه مخکې د هغه سړي د کافر کېدو په وجه قتلول صحيح وه مګر اوس د هغه د مسلمان کېدو څخه وروسته د هغه د قتلولو په وجه ستا قتلول به صحيح وي.

﴿٣٣٠٤﴾: وَعَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ موږ د جګړې لپاره

اِلٰى اُنَاسٍ مِّنْ جُهَيْنَةَ فَأَتَيْتُ عَلٰى رَجُلٍ مِنْهُمْ فَذَهَبْتُ اُطْعِنُهُ فَقَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا

د جهينې د قبيلې لپاره ولېږلو زه د يوه سړي سره په مقابله سوم او په هغه مې د نېزې ګزار کوی

چې هغه لا اله الا الله وويل

اللّٰهُ فَطَعَنْتُهُ فَقَتَلْتُهُ فَجِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ

ما هغه په نېزه وواهه او قتل مي كړ بيا د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم او واقعه مي ورته بيان كړه نبي كريم ﷺ راته وفرمايل:

اَقَتَلْتَهُ وَقَدْ شَهِدَ اَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّمَا فَعَلَ ذَالِكَ تَعَوُّذًا

كله چي يې لا اله الا الله وويل نو بيا تا هغه ولي قتل كړ؟ ما عرض وكړ يا رسول الله! هغه خو د خپل ځان د ژغورلو لپاره كلمه وويل

قَالَ فهلا شَقَقْتَ عَنْ قَلْبِهِ متفق عليه وَ فِيْ رِوَايَةٍ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِاللّٰهِ

نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: ايا تا د هغه زړه څيرلي وو؟ (يعني تا ته خو د باطن حالت معلوم نه وو ځركند ته دي ولي نه وكتل؟) (بخاري او مسلم) او د جندب بن عبد الله

الْبَجَلِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَيْفَ تَصْنَعُ بِلاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ

اِذَا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالَهُ مِرَارًا. رواه مسلم.

په روايت كي دا الفاظ دي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي د قيامت په ورځ د ی د لا اله الا الله په جګړه راسي نو هغه وخت به ته څه جواب وركوې څو واره نبي كريم ﷺ دا الفاظ وفرمايل. مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٩١- ١٩٢، رقم: ٦٨٧٢، ومسلم١\٩٦، رقم: ١٥٨- ٩٦.

**تشريح** نو تا د هغه زړه په څېرلو سره ولي ونه كتی: رسول الله ﷺ دغه ارشاد د هغه سړي د باطن سره سم وفرمايه كه ته د هغه سړي په باطن باندي خبرېدای سوې نو تا به د هغه زړه څېرلی وای او دا به دي معلومه كړې وای چي ايا هغه سړی محض د خپل ځان د هلاكت څخه د ساتني لپاره كلمه ويلې وه يا په حقيقت كي هغه كلمه د زړه په صدق او اخلاص سره ويلې وه مګر ظاهره ده چي تا د هغه د زړه په څېرلو سره د هغه باطن نه سو ليدای او نه په سمدستي توګه د هغه د باطن حال په يو بلي ذريعې سره تا ته معلوميدای سو ځكه نو معقوله خبره داوه چي تا د هغه پر ظاهر حكم كړی وای يعني د هغه د كلمې ويلو په وجه به دي هغه مؤمن ګڼلی وای او د هغه د قتل څخه به منع سوی وای، بلي خوا ته حضرت اسامه رضي الله عنه دا ګمان وكړ چي په داسي حالت كي

کله چي زما نيزه د مرګ په جوړېدو سره د هغه سر ته رسيدلې وه او س د هغه د ايمان قبلول ګټور نه دي ځکه نو هغه سړي يې ختم کړ، يعني دا د هغه اجتهاد وو، رسول الله ﷺ هغه ته څرګنده کړه چي ستا څخه په اجتهاد کي خطا سوې ده مګر پر هغه باندي ديت لازم نه دی ځکه چي مجتهد د خپل اجتهاد په خطا کي معذور وي مګر ددې لپاره رسول الله ﷺ په هر حال د خپل ناخوښۍ اظهار وکړی چي د هغه اصل حيثيت او حقيقت ظاهرېدو پوري پر تا باندي توقف لازم وو مګر تا په توقف نه کولو سره په خپل اجتهاد باندي عمل وکړ.

## د معاهد د قتل څخه منع

﴿۳۳۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ قَتَلَ مُعَاهَدًا لَمْ يَرِحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ وَإِنَّ رِيحَهَا تُوجَدُ مِنْ مَسِيرَةِ أَرْبَعِينَ خريفا. رواه البخاري.

څوک چي يو معاهد قتل کړي (يعني هغه کافر چي د جګړې نه کولو عهد ورسره سوی وي) هغه به د جنت بوی پيدا نه کړي او د جنت بوی د څلوېښتو کلو د لاري پوري رسيږي. (بخاري).

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٦٩، رقم: ٣١٦٦،

**تشريح** معاهد هغه کافر ته وايي چي هغه د وخت د پاچا سره د جنګ او جګړې نه کولو عهد کړی وي که هغه ذمي وي يا غير ذمي وي.

په دغه روايت کي دا فرمايل سوي دي چي د جنت بوی د څلوېښتو کالو د لاري څخه راځي حال دا چي په يو بل روايت کي د اوويا کالو او په يو بل روايت کي د سلو کالو او په مؤطا کي د پنځه سوه کالو او په فردوس کي د زرو کالو الفاظ دي، په ظاهره دا معلوميږي چي په دغه روايتو کي دغه فرق او اختلاف په اصل کي د اشخاصو او اعمالو د مختلف کېدو او د درجو او تفاوت په وجه دی نو د حشر په ميدان کي به ځينو خلکو ته د جنت بوی د زرو کلو د لاري څخه او ځينو خلکو ته د پنځه سوه کلو د لاري څخه راځي او ځينو خلک به د څلوېښتو کالو د مسافت په اندازه بوی راتلل محسوس کوي، په هر حال د دغه ټولو ذکر سوو شمېرو څخه تحديد مراد نه دی بلکه د مسافت اوږدوالی مراد دی او د جنت د بوی نه تر لاسه کېدو څخه دا مراد نه دی چي

هغه سړي به د همېشه لپاره د جنت د بوی څخه محروم وي بلکه مراد دادی چي په اولني پړاو کي کله چي مقربين او علماء د جنت بوی تر لاسه کوي هغه سړي به هغه وخت د جنت د بوی څخه محروم وي ، ځيني علماء وايي چي ددغه ارشاد څخه مراد د معاهد د قتلولو سخته بدي بيانول او د وژونکي پر خلاف په سختو الفاظو کي د تنبيه او خبرداري اظهار کول دي .

## د ځان وژني په اړه وعيد

﴿٣٣٠٦﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَدَّى

د حضرت ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم سړی چي خپل ځان د

مِنْ جَبَلٍ فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَهُوَ فِي نَارِ جَهَنَّمَ يَتَرَدَّى فِيهِ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا

غره څخه را وغورځوي او ځان ووژني نو هغه به په دوږخ کي غورځول کيږي همېشه او د

أَبَدًا وَمَنْ تَحَسَّى سُمًّا فَقَتَلَ نَفْسَهُ فَسُمُّهُ فِي يَدِهِ يَتَحَسَّاهُ فِي نَارِ جَهَنَّمَ

همېشه لپاره به په دوږخ کي وي او چا چي د زهرو په خوړلو سره ساه ورکړه نو زهر به يې په لاس کي وي څښبني به يې په اور د دوږخ کي

خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا وَمَنْ قَتَلَ نَفْسَهُ بِحَدِيدَةٍ فَحَدِيدَتُهُ فِي يَدِهِ

هميشه او هميشه به په دوږخ کي وي او چا چي د اوسپني په ذريعه سره ځان قتل کړ نو اوسپنه به دده په لاس کي وي

يتوجاء بِهَا فِي بَطْنِهِ فِي نَارِ جَهَنَّمَ خَالِدًا مُخَلَّدًا فِيهَا أَبَدًا . متفق عليه .

په خپل نس به يې منډي په اور د دوږخ کي هميشه او دی به هميشه په دوږخ کي وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٢٤٧، رقم: ٥٧٧٨، ومسلم ١\ ١٠٣، رقم: ١٧٥ – ١٠٩.

**د لغاتو حل**: تحسى : اى من شرب. (و يې څښل). يتوجا : الطعن بالسكين.

**تشريح**: لفظ د مخلدا او ابدا د خالدا د تاكيد لپاره دي ، د حديث خلاصه داده چي په دغه دنيا کي کوم څوک د يو شي په ذريعه ځان وژنه وكړي په آخرت کي به هغه همېشه د هغه شی په عذاب کي اخته کيږي مگر دلته د همېشه څخه مراد دادی چي کوم خلک ځان وژنه حلال گڼي او ځان ووژني نو هغوی به د همېشه لپاره په عذاب کي اخته وي او ياد همېشه څخه مراد دادی

چي ځان وژونکی به تر زيات وخت پوري په عذاب كي اخته وي .

﴿۳۳۰۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي يَخْنُقُ نَفْسَهُ يَخْنُقُهَا فِي النَّارِ وَالَّذِي يَطْعُنُهَا يَطْعُنُهَا فِي النَّارِ . رواه البخاري .

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي خپله غاړه په خفه کولو سره خپل ځان قتل کړي نو هغه به په دوږخ کي هم خپله غاړه خفه کونکی او څوک چي ځان په نېزې سره ووژني نو هغه به په دوږخ کي هم ځان په نېزو سره وهي .(بخاري) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۲۲۷، رقم: ۱۳٦٥.

﴿۳۳۰۸﴾: وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جندب بن عبدالله رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ رَجُلٌ بِهِ جُرْحٌ فَجَزِعَ فَأَخَذَ سِكِّينًا فَحَزَّ بِهَا يَدَهُ فَمَا

تر تاسو وړاندي خلکو کي يو سړی وو د هغه لاس زخمي سوی وو هغه (د زخم تکليف برداشت نه کړ) په چاړه سره خپل لاس پرې کړ

رَقَأَ الدَّمُ حَتَّى مَاتَ قَالَ اللهُ تَعَالَى بَادَرَنِي عَبْدِي بِنَفْسِهِ فَحَرَّمْتُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ .متفق عليه.

د هغه وينه بنده نه سوه او مړ سو خداي تعالي وفرمايل: زما بنده د خپل ځان په هلاکولو کي تلوار وکړ ما په هغه باندي جنت حرام کړ . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\۴۹٦، رقم: ۳۴٦۳، ومسلم ۱\۱۰۷، رقم: ۱۸۱– ۱۱۳.

**تشريح**: ما پر هغه جنت حرام کړ: دا پر دې باندي محمول دی چي هغه ځان وژنه حلاله ګڼلې وه او د يو حرام شي په باره کي د حلال عقيده درلودل صريحا کفر دی ځکه پر هغه د جنت داخلېدل حرام کړل سو يا ددې څخه مراد دادی چي تر څو پوري هغه دوږخ ته په تلو سره د خپلو کړنو سزا

ونه ځکي نو هغه به په اول پړاو کي په خلاصون تر لاسه کونکو خلکو کي جنت ته د تلو څخه محروم کړل سي .

## د ځان وژل حرام دي

ځان وژنه يعني خپل ځان په هلاکت کي اچول د دنيا په هيڅ يو مهذب قانون کي جائز نه دي ، د الله جَلَّجَلَالُهُ را ليږل سوی قانون هم دې ته بد ويلي دي او د انسان جوړ کړی قانون هم د تعزير وړ جرم ګرځوي ، ددې تعلق په اصل کي ددې خبري سره دی چي د انسان ظاهر هم او د هغه باطن هم ايا هغه خپله د هغه مالک دی يا د هغه ظاهر او باطن هر څه د بل ملکيت دی دا بالکل بديهي خبره ده چي انسان په خپله د خپل وجود مالک نه دی بلکه د هغه وجود په دغه دنيا کي يوازي د يو امانت په توګه دی خپله د هغه لپاره هم او د دنيا والاوو لپاره هم او د هغه مالک حقيقي هغه پاک ذات دی چي هغه يې په تخليق سره نازولی دی او په دغه دنيا کي يې پيدا کړی دی ، نو ايا دا په هغه امانت کي خيانت نه دی چي انسان خپل وجود ته تاوان ورسوي ؟ ايا دا جرم نه دی چي يو بنده خپل ځان هلاک کړي کوم چي د هغه ظاهر او باطن ټول د پروردګار ملکيت دی ، يقينا دا يو ډېر لوی جرم دی او ډېره لويه ګناه ده ځکه چي خپل ځان هلاکول په حقيقت کي د غير په ملکيت کي تصرف کول دي او هيڅ يو بنده ته دا اختيار نه سته چي د پروردګار په ملکيت کي تصرف وکړي ځکه نو شريعت ځان وژنه حرامه ګرځولې ده او ګناه کبيره يې ورته ويلي دي او ددې کونکي يې د دردناک عذاب څخه بيرولی دی .

### د ځان وژني په اړه يوه واقعه

﴿٣٣٠٩﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ الطُّفَيْلَ بْنَ عَمْرٍو الدَّوْسِيَّ لَمَّا هَاجَرَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت دی چي طفيل بن عمرو دوسي کله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هجرت وکړ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَدِينَةِ هَاجَرَ إِلَيْهِ وَهَاجَرَ مَعَهُ رَجُلٌ مِنْ قَوْمِهِ فَمَرِضَ

مدينې منورې ته نو ده هم هجرت ورسره وکړ نو او د هغه د قوم يوه سړي هم هجرت وکړ او د طفيل ملګري په مدينه کي ناروغه سو

فَجَزِعَ فَأَخَذَ مَشَاقِصَ لَهُ فَقَطَعَ بِهَا بَرَاجِمَهُ فَشَخَبَتْ يَدَاهُ حَتَّى مَاتَ فَرَآهُ

او تکليف يې برداشت نکړ هغه د نېزې په تېره څوکه باندي د خپلو ګوتو بند ونه پرېکړه (يعني

هغه ته د گوتو د بندو ناروغي وه) د دواړو لاسونو وینه یې ونه دریدل او مړ سو

الطُّفَيْلُ بْنُ عَمْرٍو فِي مَنَامِهِ وَهَيْئَتُهُ حَسَنَةٌ وَرَآهُ مُغَطِّيًا يَدَيْهِ فَقَالَ لَهُ مَا

بیا طفیل بن عمرو رضی الله عنه هغه په خوب کي ولیدی د هغه کیفیت ښه وو البته خپل دواړه لاسونه یې پټ کړي وه طفیل بن عمرو رضی الله عنه پوښتنه ځیني وکړه

صَنَعَ بِكَ رَبُّكَ فَقَالَ غَفَرَ لِي بِهِجْرَتِي إِلَى نَبِيِّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا

ستا رب ستا سره څه معامله وکړه ؟ هغه وویل خداي تعالی زه ځکه وبخښلمه چي ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم خوا ته هجرت کړي وو بیا طفیل بن عمرو رضی الله عنه ور څخه پوښتنه وکړه

لِي أَرَاكَ مُغَطِّيًا يَدَيْكَ قَالَ قِيلَ لِي لَنْ نُصْلِحَ مِنْكَ مَا أَفْسَدْتَ فَقَصَّهَا

تا خپل دواړه لاسونه ولي پټ کړی دي ؟ هغه وویل ما ته خداي تعالي وفرمایل: کوم چي تا په خپله خراب کړی دی موږ هغه نه صحیح کوو د خوب دا واقعه چي

الطُّفَيْلُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلی الله علیه وسلم اللَّهُمَّ وَلِيَدَيْهِ فَاغْفِرْ .

رواه مسلم .

طفیل بن عمرو رضی الله عنه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته بیان کړه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: یا الله! د هغه دواړه لاسونه هم ور وبخښې . (مسلم) .

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\۱۰۸– ۱۰۹، رقم: ۱۸۴– ۱۱۶.

**د لغاتو حل**: مشاقص: جمع مشقص وهو السكين(چاړه). راجمه : هي العقد التي في ظهور الاصابع (د گوتو بندونه). فشخبت: ای سالت (وبهېدل).

**تشریح**: ددې څخه معلومه سوه چي د خپل هیواد څخه په هجرت کولو سره نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته د ورتلو دا برکت وو چي د مهاجر بخښنه په برخه کیږي او که چیري به یو مهاجر په یو گناه کي اخته کیدی نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د استغفار په وجه به د هغه بخښنه کېدل، د صحیح حدیثو څخه ثابته ده چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د وفات څخه وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د روضې مبارکي زیارت د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند مبارک کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د بدني زیارت په ډول دی نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند مبارک کي د رسول الله صلی الله علیه وسلم زیارت کونکو ته د الله تعالی د رحمت او مغفرت چي کوم

برکت حاصلیدی د رسول الله ﷺ د روضې مبارکي زیارت کونکو ته هم ددغه ستر نعمت امید درلودل پکار دي.

ددغه حدیث څخه دا معلومه سوه چي د کبیره گناه کول د کفر سبب نه دی او نه د ددوږخ د دائمي عذاب سبب دی ، د اهل سنت والجماعت دا مذهب دی چي د گناه کبیره مرتکب د خپل کړو سزا تر لاسه کولو وروسته به په جنت کي داخل کړل سي.

## د مقتول وارثانو ته د قصاص او دیت دواړو څخه د یوه اخیستلو اختیار

﴿۳۳۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي شُرَيْحِ الْكَعْبِيِّ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابو شریح کعبی رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

ثم انتم يَا خُزَاعَةَ قَدْ قَتَلْتُمْ هٰذَا الْقَتِيْلَ مِنْ هُذَيْلٍ وَاَنَا وَاللّٰهِ عَاقِلُهُ مَنْ

ای خزاعه بیا !تاسو دا مقتول چي د هذیل د قبیلې څخه دی قتل کړی دی او زه قسم په خداي د دې څخه وروسته چي کوم قتل وسي

قَتَلَ بَعْدَهُ قَتِيْلاً فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيرَتَيْنِ اِنْ اَحَبُّوْا قَتَلُوْا وَاِنْ اَحَبُّوْا اَخَذُوْا

د هغه وینه تویونکي یم اوس د مقتول وارثانو ته د دو خبرو څخه د یوې خبري اختیار دی که هغوی غواړئ نو قاتل دي قتل کړي او که غواړي نو د هغه د وینو تاوان دي واخلي.

الْعَقْلَ. رواه الترمذي والشافعي و في شرح السنة باسناده و صرح بانه ليس في الصحيحين عن ابي شريح وقال و اخرجاه من رواية ابي هريرة يعني بمعناه.

(ترمذي شافعي) په شرح السنه کي لیکلي دي چي دا حدیث په بخاري او مسلم کي نسته او د ابو هریره رضي الله عنه څخه چي کوم حدیث په بخاري او مسلم کي منقول دی د هغه دا الفاظ نه دي بلکه هغه د دې هم معنی دي.

**تخريج** سنن الترمذي ۴\ ۱۴- ۱۵، رقم: ۱۴۰۶، وترتيب مسند الامام الشافعي ۲\ ۹۹، رقم: ۳۲۸، والبغوي في شرح السنة: ۷\ ۳۰۱، رقم: ۲۰۰۴.

**تشريح**: د حديث حقيقي مفهوم دادی چي د جاهليت په زمانه کي د هذيل قبيلې د خزاعه قبيلې يو سړی وژلی وو نو د خزاعه قبيلې خلکو د خپل مقتول په بدله کي د هذيل قبيلې يو سړی قتل کړ، رسول الله ﷺ د هغه دواړو قبيلو په مينځ کي د پېښېدونکي فتنې د دفع کولو لپاره د هذيل قبيلې د هغه مقتول ديت ورکړ لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ وفرمايل : او زه قسم په خدای ددغه ديت ورکولو ذمه داريم، بيا رسول الله ﷺ ددې څخه وروسته دا شرعي قانون بيان کړ که يو څوک يو سړی په ناحقه مړ کړي نو د مقتول د وارثانو دا حق دی چي هغوی قتل کړي يا د قاتل څخه ديت واخلي، د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما دا مذهب دی او په دې اعتبار سره دغه ارشاد د دواړو د مذهب دليل دی مګر امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه وايي چي د مقتول وارثانو ته به د قاتل څخه د ديت اخيستلو حق په هغه صورت کي وي کله چي قاتل خپله هم په دې راضي سي که چيري قاتل پر ديت ورکولو باندي راضي نه وي نو د مقتول وارثانو ته يوازي دا حق دی چي هغوی قاتل قتل کړي ، ويل کيږي چي د امام شافعي رحمة الله عليه هم دا قول دی، ددغه حضراتو په نزد ددغه ارشاد تاويل دادی چي د مقتول وارثانو ته اختيار دی چي هغوی قاتل قتل کړي يا د هغه څخه ديت واخلي .

حال دا چي د هغوی څخه هم داسي منقول دي: ددې په ذريعه د مصنف مشکوة .د مصابيح پر امام بغوي رحمة الله عليه باندي اعتراض کړی دی چي په بخاري او مسلم کي دا حديث بالمعنی خو مذکور دی مګر په اصل صورت کي يعني دلته په مذکوره الفاظو سره نه خو ابوشريح او نه د ابو هريره رضي الله عنه څخه منقول دي لکه څرنګه چي بغوي رحمة الله عليه ويلي دي چي دا روايت په بخاري او مسلم کي نه سته او بيا دغه روايت دلته په اول فصل کي ولي نقل کړی دی ځکه چي په اول فصل کي خو هغه حديثونه نقل کيږي کوم چي په بخاري او مسلم کي مذکور دي .

## د ښځي د خاوند قاتل قتل کيدای سي

﴿٣٣١١﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ يَهُودِيًّا رَضَّ رَأْسَ جَارِيَةٍ بَيْنَ حَجَرَيْنِ فَقِيلَ لَهَا مَنْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه يهودي د يوې انجلۍ سر پر کاڼو کښېښودی او په بل کاڼي سره يې سر ووهه د انجلۍ څخه پوښتنه وسول

فَعَلَ بِكِ هذا أَفُلَانٌ أَوْ فُلَانٌ حَتَّى سُمِّيَ الْيَهُودِيُّ فَأَوْمَأَتْ بِرَأْسِهَا فَجِيءَ بِهِ

چي دا کار چا در سره وکړ؟ فلاني سړی او که فلاني نو کله چي د يهودي نوم د هغې په وړاندي

واخيستل سو نو هغې د سر په اشاره سره

بِالْيَهُودِيِّ فَاعْتَرَفَ فَأَمَرَ بِهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرُضَّ رَأْسُهُ بِالْحِجَارَةِ. متفق عليه.

هغه يهودي ونيودی يهودي د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر كړل سو هغه د خپل جرم اعتراف وكړ نو د نبي كريم ﷺ په حكم د هغه سر هم په كاڼو سره چيت كړل سو .بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢١٣، رقم: ٦٨٨٤، ومسلم ٣\١٢٩٩، رقم: ١٥- ١٦٧٢.

**تشريح**: په ظاهره دا مفهوم اخيستل كيږئ چي څرنګه يهودي د هغه انجلۍ سره د دوو ډبرو په مينځ كي چيچلی وو همدارنګه د هغه يهودي سر هم د دوو ډبرو په مينځ كي چيچل سوی وي دا حديث ددې خبري دليل دی كه يوه ښځه يو سړی قتل كړي نو د مقتول سړي په بدله كي هغه ښځه قتل كيدای سي همدارنګه د مقتولي ښځي په بدله كي د هغه قاتل سړي هم قتل كيدای سي د اكثرو علماؤ دا قول دی او دا حديث پر دې هم دلالت كوي چي په داسي درنې ډبري سره څوک هلاكول چي د هغه په وهلو سره په عامه توګه هلاكت واقع كيږي د قصاص سبب دی اكثرو علماؤ او درو امامانو دا قول دی مګر د امام ابوحنيفة رحمه الله مذهب دادی كه د ډبري په وهلو سره هلاكت واقع سي نو د هغه په وجه قصاص نه لازميږي هغوی وايي چي كله د هغه يهودي څخه د قصاص اخيستلو سوال دی نو د هغه تعلق د سياست او د وخت د مصالحت سره وو.

## څوک چي څه كوي هغسي سزا به وركول كيږي

﴿۳۳۱۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَسَرَتِ الرُّبَيِّعُ وَهِيَ عَمَّةُ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ ثَنِيَّةَ جَارِيَةٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي دانس عمه ربيع د يوې انصاري انجلۍ د مخ غاښ ور

مِنَ الْأَنْصَارِ فَأَتَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ بِالْقِصَاصِ فَقَالَ أَنَسُ

مات كړ د هغې قريبان د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سول رسول الله ﷺ د قصاص (د بدل اخيستلو) حكم وركړ د انس بن مالک اكا انس بن نضر رضي الله عنه عرض وكړ

بْنُ النَّضْرِ عَمُّ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ لَا وَاللّٰهِ لَا تُكْسَرُ سِنُّهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ

يا رسول الله! قسم په خداي چي د هغې غاښ به نه ماتوي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَنَسُ كِتَابُ اللّٰهِ الْقِصَاصُ فَرَضِيَ الْقَوْمُ

اې انس! د خداې تعالى په كتاب كي قصاص دى نو هغه خلک و ديت ته تيار سوه او ديت يې

وَقَبِلُوا الْأَرْشَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ عِبَادِ اللّٰهِ مَنْ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ. متفق عليه.

قبول کړ رسول الله ﷺ وفرمايل: د خداې تعالى ځيني بندګان داسي دي كه هغوى په يو څه باندي قسم واخلي نو خداې تعالي د هغوى قسم پوره كوي .(بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٨\ ٢٧٤، رقم: ٤٦١١، ومسلم ٣\ ١٣٠٢، رقم: ٢٤- ١٦٧٥.

**تشريح**: بي بي ربيع رضي الله عنها، انس رضي الله عنه او مالک رضي الله عنه درې سره خور او وروڼه وه د دوى د پلار نوم نصر وو د مالک د زوى نوم هم انس وو يعني اكا او وراره دواړه په يوه نامه سره نوميدل په دغه حديث كي چي د كومي بي بي ربيع رضي الله عنها ذكر دى هغه د يوه انس يعني د حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه خاله وه او د دوهم انس يعني حضرت انس بن نصر رضي الله عنه خور ده .

د حضرت انس ابن نضر رضي الله عنه دغه وينا چي رسول الله ﷺ داسي به نه كيږي دا د رسول الله ﷺ د حكم مخالفت او د رسول الله ﷺ د فيصلې د نه منلو څخه د انكار په توګه نه وو بلكه ددې په وجه د الله تعالى د فضل او كرم پر توقع او اميد باندي وو چي هغه به مدعيان راضي كړي او د هغوى په زړه كي به دا واچوي چي هغوى به قصاص معاف كړي نو الله تعالى د هغه اميد او توقع پوره كول او د انجلۍ كورنۍ د ديت په قبلولو سره قصاص معاف كړ ځكه رسول الله ﷺ د حضرت انس رضي الله عنه په باره كي دغه د صفت كلمې وفرمايلې چي حضرت انس ابن نضر رضي الله عنه د الله تعالى د هغه خاصو بندګانو څخه دى كه هغه پر يو خبره قسم واخلي نو الله تعالى هغه نه حانث كوي بلكه د هغه خبره پوره كوي او قسم يې رېښتا كوي .

اې انس ! د الله تعالى حكم د بدلې اخيستلو دى په دغه ارشاد سره رسول الله ﷺ د الله تعالى فرمان : (وكتبنا عليهم فيها ان النفس بالنفس ....والسن بالسن) ته اشاره وفرمايل.

ددغه حديث څخه يوه خبره دا معلومه سوه چي پر يو خبره باندي قسم اخيستل جائز دي چي د هغه د واقع كېدو قسم كونكي ته ګمان وي ، دوهمه خبره دا معلومه سوه چي د يو سړي په مخكي د هغه تعريف او صفت اظهار كول جائز دي په شرط ددې چي د هغه په وجه د هغه سړي

په فتنه او فساد كي د اخته كېدو بېره نه وي او دريمه برخه دا ثابته سوه چي قصاص معافول مستحب دي.

## د كافر په قتل كي مسلمان قتل كيداى سي كه يا؟

﴿٣٣١٣﴾: وَعَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَلِيًّا هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ لَيْسَ فِي

د حضرت ابو جُحيفه رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د حضرت علي رضي الله عنه څخه پوښتنه وكړه چي ستا سره داسي شى سته چي هغه

الْقُرْآنِ فَقَالَ وَالَّذِي فَلَقَ الْحَبَّةَ وَبَرَأَ النَّسَمَةَ مَا عِنْدَنَا إِلَّا مَا فِي الْقُرْآنِ إِلَّا

په قرانكريم كي نه وي؟ حضرت علي رضي الله عنه وويل په هغه ذات دي مي قسم وي چي غله يې پيدا كړه او ساه يې وجود ته وركړه زما سره د قرانكريم څخه پرته بل هيڅ شى نسته هو!

فَهْمًا يُعْطَى رَجُلٌ فِي كِتَابِهِ وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ قُلْتُ وَمَا فِي الصَّحِيفَةِ قَالَ

چي خداي تعالي انسان ته وركوي چي په هغه سره هغه په قران پوهيږي او هغه شى چي موږ سره په كاغذ ليكلي دى ابو جُحيفه رضي الله عنه پوښتنه وكړه چي په دې كي څه ليكلي دي؟

الْعَقْلُ وَفِكَاكُ الْأَسِيرِ وَأَنْ لَا يُقْتَلَ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ. رواه البخاري و ذكر حديث ابن مسعود لا تقتل نفس ظلما في كتاب العلم.

حضرت علي رضي الله عنه جواب وركړ (د قتل) بدل اخيستل قيدي پرېښودل او دا چي د كافر په بدله كي مسلمان نسي قتلولاى د ابن مسعود رضي الله عنه حديث: لاتقتل الخ ... په ((كتاب العلم)) كي بيان سوې دى.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢٤٦، رقم: ٦٩٠٣.

**تشريح** مگر د قرآن كريم هغه پوهه چي يو انسان ته وركول كيږي: ددې مطلب دادى چي الله تعالى ماته هغه فهم راكړى دى چي په هغه سره زه د قرآن كريم د معنى او احكامو استنباط كوم د هغه په اجمال او اشاراتو خبرېږم او ددغه فهم په ذريعه زما رسيدل هغه پټو علومو او باطني اسرارو ته كيږي كوم چي علماء راسخين او اربابو باندي منكشف كيږي.

زموږ سره داسي شيان دي چي پر كاغذ ليكل سوي دي، ددې څخه هغه ليكنه مراد ده چي

په هغه کي حضرت علي رضي الله عنه د دیت وغیره یو څو احکام او مسائل په لیکلو سره د خپل توري په تیکي کي ایښی وو، علماء کرام وایي چي په هغه لیکنه کي د ذکر سوو درو شیانو څخه پرته د نورو ډېرو شیانو احکام او مسائل لیکلي وه کوم چي دلته ذکر سول ځکه چي په دغه باب کي یوازي د قصاص او دیت ذکر کول مقصد دي البته بندي د ځیني نوعیت په اعتبار قریب القتل دی په دې مناسب سره هغه هم ذکر کړل سو.

د کافر په بدله کي مسلمان نه سي قتل کیدای : د ډېرو صحابه کرامو، تابعینو، تبع التابعین او درې سره امامانو مذهب دادی که یو مسلمان یو کافر ووژني نو د مقتول کافر په بدله کي قاتل مسلمان نه سي وژل کیدای که څه هم هغه مقتول کافر ذمي وي یا حربي وي مګر د امام اعظم ابو حنیفه رحمه الله او د اکثرو علماؤ دا مذهب دی که هغه مقتول کافر ذمي وي نو د هغه په بدله کي به قاتل مسلمان قتل کیدای سي، کوم حدیث چي د دوی د مذهب دلیل دی هغه په مرقات کي مذکور دی.

حضرت ابو حجیفه رضي الله عنه چي د حضرت علي رضي الله عنه څخه کومه پوښتنه وکړه د هغه بنیاد دا وو چي شیعه د هغوی وجود په مختلف صورتو کي په هغه زمانه کي وو هغوی به ویل چي رسول الله ﷺ د خپلي کورنۍ خاصو افرادو او په خاصه توګه حضرت علي رضي الله عنه ته د علم وحي یو داسي اسرار او نکات ښوولي دي چي د دوی څخه پرته بل چا ته نه دي ښودل سوي یا ابو حجیفه رضي الله عنه دا پوښتنه ځکه وکړه چي د حضرت علي رضي الله عنه په زمانه کي هیڅ سړی هم په علم او تحقیق کي د حضرت علي رضي الله عنه سیال نه وو د هغه دغه غیر معمولي علمي خصوصیت او غوره والي ټول خلک حیران کړي وه چي آخر دوی ته دومره علم د کوم ځای څخه راغلی په هر حال حضرت علي رضي الله عنه په قسم کولو سره وویل چي یو داسي خبره نه سته چي رسول الله ﷺ زما دي زما لمن د علم او حکمت څخه تر ټولو خلکو زیاته ډکه کړي وي یا د نورو خلکو څخه پرته زه یې په خاصه توګه سره په تبلیغ او ارشاد سره نازولی یم بلکه زما سره هم هغه قرآن دی کوم چي د نورو خلکو سره دی تر دې زیات زما سره هیڅ نه سته یا هغه لیکل دي چي په هغه کي د یو څو شیانو احکام لیکلي دي او هغه زما سره خوندي دي مګر په ما کي او په نورو خلکو کي چي کوم علمي فرق دی د هغه بنیاد د فهم او استعداد سره دی چي الله تعالی په خپل فضل او کرم سره ما ته د قرآن کریم کومه پوهه راکړې ده د هغه په ذریعه زه د قرآن کریم علوم او معاني پوره مفهوم تر لاسه کوم او بیا د هغه څخه احکام او مسائل را باسم او دا پر ما باندي منحصر نه دي بلکه الله تعالی چي کوم چا ته دغه پوهه او فضیلت ورکړی دی پر هغه د قرآن کریم د حکمت او علومو لاري

منکشف کیږي .

خلاصه دا چي د ټولو علومو او معانیو بنیاد قرآن کریم دی ځکه د الله تعالی په توفیق او تائید سره چي کوم چا ته هم د قرآن کریم فهم حاصل سو پر هغه د ټولو علومو او حکمتو دروازې خلاصه سوې دا بېله خبره ده چي الله تعالی په دغه نعمت سره څوک ونازوي ، حضرت ابن عباس رضي الله عنه به فرمایل چي په قرآن کریم کي ټول علوم دي مګر د خلکو فهم د قرآن علومو ته د رسیدو څخه قاصر دی .

او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه حدیث چي په ظلم سره د چا ځان دي نه اخیستل کیږئ په کتاب العلم کي نقل سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مسلمان دویني اهمیت

﴿۳۳۱۴﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَزَوَالُ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د خداي تعالی په

الدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللهِ مِنْ قَتْلِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ . رواه الترمذي والنسائي و وقفه بعضهم وهو الاصح . رواه ابن ماجة عن البراء بن عازب .

نیزد د مسلمان د قتل په مقابله کي د دنیا زوال اسان دی . (ترمذي نسائي) ځینو دا حدیث موقوف کړی دی دا صحیح دی ابن ماجه د براء بن عازب څخه روایت کړ .

**تخریج** سنن الترمذي ۱۴\۱۰، رقم: ۱۳۹۵، والنسائي ۱۷\۸۲، رقم: ۳۹۹۸.

**تشریح** الله تعالی د دنیا شیان، ځمکه، آسمانونه او ټول شیان د مسلمانانو لپاره پیدا کړي دي چي هغوی د پروردګار عبادت وکړي او د شیانو په لېدو سره د الله تعالی پر قدرت یقین ولري کوم څوک چي یو مسلمان د هغه لپاره دا دنیا پیدا سوې ده قتل کړي نو هغه ټوله دنیا قتل کړه دغه نکتې ته د قرآن کریم دغه آیت کریمه اشاره کوي :

مَن قَتَلَ نَفْسًا بِغَيْرِ نَفْسٍ أَوْ فَسَادٍ فِي الأَرْضِ فَكَأَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا

ژباړه : څوک چي په ناحقه قتل وکړي (یعني بېله ددې څخه چي د ځان بدله واخلي) په ځمکه کي د فتنې او فساد خپرولو سزا دي ورکړل سي هغه لکه ټول خلک چي قتل کړل .

﴿٣٣١٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَّاَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه او حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَأَهْلَ الْأَرْضِ اشْتَرَكُوا فِي دَمِ مُؤْمِنٍ لَأَكَبَّهُمُ اللّٰهُ فِي النَّارِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

كه د اسمان والا او د ځمكي والا دواړه د يو مسلمان په قتل كي شريک سي نو الله جل جلاله به دا ټول د دوږخ په اور كي نسكوره كړي. (په ترمذي كي دا حديث غريب ګڼل سوی دی)

**تخريج**: سنن الترمذي ١١١/٤، رقم: ١٣٩٨.

**تشريح**: ځيني تشريح كونكي وايي چي لفظ د اكبهم فعل لازم دی او لفظ د كبهم فعل متعدي دی دلته د يو راوي څخه سهوه سوې ده چي هغه د لكبهم پر ځای لا كبهم نقل كړی دی مګر ملا علي قاري رحمه الله ليكلي دي چي لفظ د اكبه په قاموس كي لازمي او متعدي دواړو ته نقل سوی دی په دې اعتبار مناسبه خبره داده چي ثقه او عادل راويانو ته د خطا او سهوې نسبت كولو څخه اولی او احوط دادی چي ځيني بلكه اكثر اهل لغت ته د خطا نسبت وكړل سي، په هر حال دلته لفظ د اكبهم مفهول دی ځكه نو دلته دا تحقيق وړاندي كړل سو مګر په جامع صغير كي ددغه روايت الفاظ داسي منقول دي: لكبهم الله عزوجل في النار.

## د قيامت په ورځ د مقتول استغاثه

﴿٣٣١٦﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَجِيءُ الْمَقْتُولُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به مقتول

بِالْقَاتِلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ نَاصِيَتُهُ وَرَأْسُهُ بِيَدِهِ وَأَوْدَاجُهُ تَشْخَبُ دَمًا يَقُولُ يَا

قاتل راولي چي د قاتل تندی او سر به د مقتول په لاس كي وي او د مقتول د رګونو څخه به وينه بهيږي مقتول به الله جل جلاله مخاطب كړي ورته وبه وايي اې

رَبِّ قَتَلَنِي حَتَّى يُدْنِيَهُ مِنَ الْعَرْشِ. رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة.

پروردګاره! دې سړي زه قتل كړی يم تر دې پوري چي مقتول به قاتل عرش الهي ته نژدې ور

ولي . (ترمذي نسائي ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٢٢٤، رقم: ٣٠٢٩، والنسائي ٧\ ٨٧، رقم: ٤٠٠٥، وابن ماجه ٢\ ٨٧٤، رقم: ٢٦٢١.

**تشريح**: په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي مقتول به د قيامت په ورځ خپل پوره حق غواړي، او دا هم اشاره ده چي الله تعالی به په خپل عدل او انصاف سره مقتول راضي او مطمئن کړي.

## د خپل مظلوميت په ورځ د حضرت عثمان رضي الله عنه تقرير

﴿٣٣١٧﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ أَشْرَفَ

د حضرت ابو امامه بن سهل بن حنيف رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په

يَوْمَ الدَّارِ فَقَالَ أَنْشُدُكُمْ بِاللَّهِ أَتَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ورځ د دار کي د خپل د کور پر بام باندي ودرېدی او تهول يې مخاطب کړه ورته يې وويل اې خلکو ! زه تاسو ته د خداي تعالی په قسم درکولو سره وايم ايا تاسو د دې خبري څخه خبر نه

قَالَ لَا يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ إِلَّا بِإِحْدَى ثَلَاثٍ زِنًا بَعْدَ إِحْصَانٍ أَوْ كفر

ياست چي رسول الله صلی الله علیه وسلم دا فرمايلي دي د هيڅ يوه مسلمان وينه بهېدل جائز نه دي تر څو پوري چي يوه په دا درو خبرو کي وجود پيدا نه کړي : (١)-يعني تر نکاح کولو وروسته زنا کول .(٢)- کافر کېدل

بَعْدَ إِسْلَامٍ أَوْ قَتْلِ نَفْسٍ بِغَيْرِ حَقٍّ فَقُتِلَ بِهِ فَوَاللَّهِ مَا زَنَيْتُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا

د اسلام د راوړلو څخه وروسته.(٣)- يو څوک په ناحقه باندي قتلول .(د دې خبرو په بدله)کي به مسلمان وژل کيږي (او د دې څخه پرته په هيڅ بل ډول سره د مسلمان وينه تويول جائز نه ده .) قسم په خداي چي ما نه د جاهليت په زمانه کي زنا کړېده او نه

فِي إِسْلَامٍ وَلَا ارْتَدَدْتُ مُنْذُ بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا قَتَلْتُ

په اسلام کي او کله چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بيعت کړی دی د هغې ورځي څخه تر او سه پوري په اسلام باندي قائم يم او مرتد سوی نه يم او د کوم مسلمان وينه چي الله جل جلاله حرامه کړېده ما د

النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ فَبِمَ تَقْتُلُونَنِي . رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة

وللدارمي لفظ الحديث .

هغه وينه نه ده توی کړې نو بيا په څه وجه باندې تاسو زما قتلول غواړئ .(ترمذي نسائي ابن ماجه دارمي) .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۰۰، رقم: ۲۱۵۸، والنسائي ۷\ ۹۱– ۹۲، رقم: ۴۰۱۹، وابن ماجه ۲\ ۸۴۷، رقم: ۲۵۳۳، والدارمي ۲\ ۲۲۵، رقم: ۲۲۹۷.

**تشريح**: يوم الدار : يعني د کور ورځ ددې څخه هغه ورځ مراد ده چې په هغه کې د دريم خليفه راشد حضرت عثمان غني رضي الله عنه په مخالفت کونکو کې پورتنۍ جملې وفرمايلې .

د نکاح څخه وروسته زنا کول : ددې مطلب دادی چې کوم څوک د واده کولو سربېره زنا وکړي نو د هغه سنگسارول جائز دي ، محصن هغه سړي ته وايي چې مسلمان وي ، ازاد وي، مکلف وي او په صحيح نکاح سره د خپل ښځې سره يې جماع کړې وي .

او د حديث الفاظ د درامي دي: ددې مطلب دادی چې په روايت کې د حضرت عثمان رضي الله عنه کومه واقعه ذکر سوې ده يعني (اشرف يوم الدار ... ) دغه الفاظ دارمي نه دي نقل کړي بلکه د هغه په روايت کې يوازې د اصل حديث الفاظ (لا يحل دم امرء مسلم ... ) دي .

## قاتل د خير د توفيق څخه محروم وي

﴿۳۳۱۸﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ قَالَ لَا يَزَالُ الْمُؤْمِنُ مُعْنِقًا صَالِحًا مَا لَمْ يُصِبْ دَمًا حَرَامًا فَإِذَا أَصَابَ دَمًا حَرَامًا بَلَّحَ . رواه ابوداؤد

د ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : مسلمان بنده همېشه د نيکي و لور ته په تيزي سره روان دی تر څو پوري چې د ناجائز وينې مرتکب سوې نه وي او کله چې هغه د حرامي وينې ارتکاب وکړي نو ستړي سي . (او د نيکۍ ولور ته نه مخته کيږي). (ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۶۳، رقم: ۴۲۷۰.

**د لغاتو حل**: مُعنِقا : اى مسرعا في طاعته ، منبسطا في عمله. (تلوار کوونکی په طاعت کې).

**تشريح**: مطلب دادی چې مؤمن تر څو پوري په ناحقه وينه سره خپل لاس رنگ نه کړي د الله تعالی له خوا هغه ته د نيکۍ کولو او د خير طرف ته د سبقت کولو توفيق ورکول کيږي کله چې هغه يو ناحق وينه توی کړي نو هغه د هغه گناه په وجه د نيکۍ او خير تر لاسه کولو څخه منع سي

يعني دا د ناحق ويني تويولو گناه ده چي د قاتل زړه تور سي او هغه د خير او نيکی د توفيق څخه محروم سي که څه هم د ټولو گناهو دا عذاب دی مگر دا گناه د نورو ټولو گناهو په نسبت زياته سخته ده .

## ناحقه قتل نه معاف کېدونکي جرم دی

﴿٣٣١٩﴾: وَعَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُلُّ ذَنْبٍ عَسَى اللّٰهُ أَنْ يَغْفِرَهُ إِلَّا مَنْ مَاتَ مُشْرِكًا أَوْ مُؤْمِنٌ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله جل جلاله ته اميد دی چي هره گناه معاف کړي خو د هغه سړي گناه نه معافوي چي د شرک په حالت کي مړ سي يا يو مسلمان قتل کړي په قصد . (ابوداؤد) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۶۳، رقم: ۴۲۷۰.

**تشريح**: په ځرگنده ددغه حديث شريف څخه دا معلومېږي چي څرنگه د شرک گناه د معافی وړ نه ده همدارنگه د قتل عمد گناه بخښنه نه کيږئ مگر د اهل سنت والجماعت مذهب دا دی چي د قتل گناه به تر اوږده وخته پوري په سخت عذاب کي د اخته کېدو څخه وروسته وبخښل سي د هغوی دليل ددغه آيت کريمه دی :

إِنَّ اللّٰهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَن يَشَاء

ژباړه : بېشکه الله تعالی گناه نه بخښي د شرک څخه پرته نو رگناهونه چي هغه يې وغواړي بخښي يې .

کوم چي ددغه حديث د ظاهري مفهوم سوال دی نو دا د قتل سخت عذاب او د هغه د سختي سزا پر اظهار باندي محمول دی يا ددې څخه دا مراد دی چي کوم څوک د مسلمان قتل حلال وگڼي او يو مسلمان قتل کړي نو هغه به نه بخښل کيږي ددې څخه پرته د لفظ متعمدا دا معنی هم کېدای سي چي کوم څوک د يو مؤمن د قتل قصد په دې وجه وکړي چي هغه مؤمن دی نو د هغه سړي بخښنه به نه کيږي .

## پر پلار باندي د اولاد قصاص نه سته

﴿٣٣٢٠﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ

يُقَامُ الْحُدُوْدُ فِي الْمَسَاجِدِ و لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِالْوَلَدِ. رواه الترمذي والدارمي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په مسجدو کي شرعي حدود نسي قائمېدلای او پلار د اولاد (د قتل) په بدله کي قصاص نه سي اخيستلای. (ترمذي دارمي).

**تخريج**: سنن الترمذي ١٤\١٢، رقم: ١۴٠١، والدارمي ١٢\٢٥٠، رقم: ٢٣۵٧.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي د زنا، غلا او داسي نورو جرمونو حدود (يعني شرعي سزاوي) دي په مسجدو کي نه جاري کيږي همدرانګه قصاص هم په دغه حکم کي داخل دی چي هيڅ قاتل دي د قصاص په توګه په مسجد کي نه قتل کيږي ځکه چي مسجدونه د فرض لمانځه لپاره دي يا د فرض لمنځو د توابعو لپاره دي لکه نفل لمنځونه، ذکر، د ديني علم زده کړه او داسي نور.

د حديث د دوهمي برخي مطلب دادی که چيري پلار خپل اولاد قتل کړي نو هغه دي د مقتول په بدله کي نه قتل کيږي، په دې باره کي فقهي تفصيل دادی که چيري زوی خپل مور يا پلار قتل کړي نو پر دې د ټولو علماؤ اتفاق دی چي زوی د قصاص په توګه قتل کيږي مګر که چيري مور يا پلار زوی قتل کړي نو په دې کي د علماؤ اختلاف دی، امام ابو حنيفة رحمه الله، امام شافعي او امام محمد رحمة الله عليهم وايي چي پلار دي د قصاص په توګه قتل کړل سي مګر امام مالک رحمه الله وايي که چيري پلار خپل زوی په ذبح کولو سره وژلی وي نو په دغه صورت کي پلار د قصاص په توګه قتل کيدای سي او که چيري هغه زوی په توري سره مړ کړی وي نو بيا هغه دي د قصاص په توګه نه قتل کيږي، دا خبره دي په ذهن کي وي چي په دې باره کي د مور حکم هم دادی کوم چي د پلار حکم دی او نيکه او انا هم د مور او پلار په حکم کي داخل دي.

## پلار او زامن د يو بل په جرم کي د مؤاخذې قابل نه دي

﴿٣٣٢١﴾: وَعَنْ أَبِي رِمْثَةَ قَالَ أَتَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ أَبِي

د حضرت ابو رمثه رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د خپل پلاره سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي

فَقَالَ مَنْ هٰذَا الَّذِيْ مَعَكَ؟ قَالَ اِبْنِيْ اِشْهَدْ بِهِ قَالَ أَمَا إِنَّهُ لَا يَجْنِيْ عَلَيْكَ

حاضر سوم نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه دا ستا سره څوک دی؟ زما پلار عرض وکړ دا زما زوی

دی تاسو د دې څخه خبر سئ نبي کريم ﷺ وفرمايل: خبر سئ! چې د ده د ګناه مواخذه (پوښتنه) به ستا څخه کيږي

وَلاَ تَجْنِيْ عَلَيْهِ . رواه أبو داود والنسائي وزاد في شرح السنة فِيْ أَوَّلِهِ قَالَ

او ستا د ګناه پوښتنه به د ده څخه نه کيږي .(ابوداؤد نسائي) او د ((شرح السنه)) کي د دې

دَخَلْتُ مَعَ أَبِيْ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى أَبِي الَّذِيْ بِظَهْرِ

حديث په پيل کي دا الفاظ زيات دي چي ابو رمثه رضي الله عنه وويل زه د خپل پلار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم زما پلار د نبي کريم ﷺ په شا باندي د نبوت مهر وليدي

رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ دَعْنِيْ أُعَالِجُ الَّذِيْ بِظَهْرِكَ فَإِنِّيْ طَبِيْبٌ فَقَالَ أَنْتَ رَفِيْقٌ وَاللهُ الطَّبِيْبُ .

نو عرض يې وکړ ماته اجازه راکړه چي ستا په شا مبارکه چي څه دي زه د هغې علاج وکړم زه طبيب يم نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ته رفيق (يعني په مريض باندي مهربانه) يې او خداي تعالي طبيب دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ١٤\ ٦٣٥، رقم: ٤٤٩٥، والنسائي ٨\ ٥٣، رقم: ٤٨٢٢.

**تشريح**: ستا شاهد وي: ددې مطلب دادی چي تاسو پر دې باندي شاهد اوسئ چي دا زوی زما صلبي زوی دی او دهغه د شاهد کولو څخه مقصد دا وو که زما څخه يو جرم لکه قتل وغيره وسي نو زما ددغه زوی څخه به مؤاخذه کيږي لکه څرنګه چي د جاهليت په زمانه کي رواج وو چي پلار او زوی به د يو بل په جرم کي نېول کېدل مګر رسول الله ﷺ په خپل دغه ارشاد سره (تا د خپل ګناه په وجه مبتلا کوي....) په ذريعه د ابو رمثه رضي الله عنه پلار ته دا واضحه کړه که چيري ستا زوی يو جرم وکړي نو د هغه په وجه به ته نه نيول کيږي او نه دده د ګناه په وجه په آخرت کي ستا څخه پوښتنه کيږي همدارنګه که ستا څخه يو جرم او ګناه وسي نو په دنيا او آخرت کي ستا د زوی څخه هيڅ مؤاخذه نه کيږي دا يوازي د جاهليت د زمانې رواج وو چي پلار او زوی به د يو بل په ګناه نيول کېدل دا يو غير منصفانه عمل وو چي اوس ختم سوی دی ځکه چي زه طبيب يم: ددغه جملې په ذريعه د ابو رمثه رضي الله عنه پلار د طب او پوهي دعوه وکړه د هغه دا خبره چي د هغه

څخه د هغه ناپوهي او بي ادبۍ ظاهره کېدل رسول الله ﷺ ډېره ناخوښه کړه نو ورته یې وفرمایل چې ته خو رفیق یې په دې معنی چې ستا کار څومره دی چې کله ته ناروغ ووینې نو د هغه ظاهري حالت په لېدو سره دواء ورکوې د هغه د روغتیا په دوران کې د هغه سره د نرمۍ او مهربانۍ رویه اختیار کړه او کوم شی چې د هغه لپاره په ظاهره تاوان وي د هغه د لیري کولو هڅه کوه ددې څخه پرته نور ستا په وس کې څه دي ایا شفاء ستا په لاس کې ده ایا د ناروغۍ حقیقت ته ستا د علم او فن رسیدل کیږي هیڅ کله نه طبیب خو الله تعالی دی د ناروغۍ په حقیقت هم هغه پوهیږي او د دواء حقیقت هم د هغه په لاس کې دی چې په بقاء سره موصوف دی د هغه پاک ذات څخه پرته لوی تر لوی طاقت هم شفاء نه سي ورکولای.

## د زوی څخه د پلار قصاص اخیستل کیږي

﴿٣٣٢٢﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكٍ

حضرت عمرو بن شعیب رضی الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چې د سراقه بن مالک رضی الله عنه

قَالَ حَضْرَتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقِيدُ الْأَبَ مِنْ ابْنِهِ وَلَا يُقِيدُ الِابْنَ مِنْ أَبِيهِ. رواه الترمذي فضعفه.

بیان دی چې زه هغه وخت د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر سوم چې نبي کریم ﷺ د زوی څخه د هغه د پلار قصاص (بدل) واخیستئ او رسول الله ﷺ به د پلار څخه د زوی قصاص نه اخیستئ. (ترمذي)

**تخریج**: سنن الترمذي ۱۱/۴، رقم: ۱۳۹۹.

**تشریح**: که چیري زوی خپل پلار مړ کړي نو د پلار په قصاص کې به زوی قتل کیږي مګر که چیري پلار خپل زوی قتل کړي نو پلار به د زوی په قصاص کې نه قتل کیږي بلکه د هغه څخه به د زوی دیت اخیستل کیږي.

## د غلام په قصاص کې ازاد سړی قتل کیدای سي که یا؟

﴿٣٣٢٣﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حسن د سمره رضی الله عنه څخه روایت کې چې رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَنْ قَتَلَ عَبْدَهُ قَتَلْنَاهُ وَمَنْ جَدَعَ عَبْدَهُ جَدَعْنَاهُ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي وزاد النسائي في رواية آخرى و من خصى عبده خصيناه .

څوک چي خپل غلام قتل کړي موږ به د هغه په بدله کي هغه قتلوو او څوک چي د خپل غلام اندامونه پرېکړي نو موږ به د هغه اعضاء ور پرېکوو . (ترمذي ابوداؤد ابن ماجه دارمي) او په نسائي کي دا الفاظ زيات ليکل سوي دي او څوک چي خپل غلام خصي کړي نو موږ به هغه خصي کړو .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۸– ۱۹، رقم: ۱۴۱۴، وابوداود ۴\ ۶۵۲، رقم: ۴۵۱۵، وابن ماجه ۲\ ۸۸۸، رقم: ۲۶۶۴، والدارمي ۲\ ۲۵۰، رقم: ۲۳۵۸، والنسائي ۸\ ۲۰– ۲۱، رقم: ۴۷۳۶.

**د لغاتو حل**: جدع: ای قطع اطرافه.

**تشريح**: کوم څوک چي خپل غلام قتل کړي : دا رسول الله ﷺ د جزاء د سختۍ او خبرداري په توګه وفرمايل چي خلک د خپلو غلامانو د وژلو څخه منع سي دا داسي ده لکه څرنګه چي يو سړی د خپل سخت منع او خبرداري سربېره هم کله چي په څلورم يا پنځم کال شراب وڅښل نو رسول الله ﷺ وفرمايل دی قتل کړی مګر کله چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سو نو رسول الله ﷺ هغه قتل نه کړ ، ځيني حضرت وايي چي په دغه حديث کي د غلام څخه مراد هغه سړی دی چي کله غلام پاته سوی وي او بيا ازاد سوی وي که څه هم داسي سړي ته غلام نه سي ويل کيدای مګر د هغه د پخواني حال په اعتبار هغه دلته په غلام سره تعبير کړل سو .

ځيني علماء وايي چي دا حديث د دغه آيت کريمه (الحر بالحر والعبد بالعبد ...) په ذريعه منسوخ دی ، په دې باره کي د فقهي مسئلې تعلق دادی چي د امام ابو حينفة رحمة الله عليه په مذهب که چيري يو سړی د بل سړي غلام قتل کړي نو د هغه غلام په بدله کي قتل کيدای سي مګر که چيري هغه خپل غلام قتل کړي نو د هغه غلام په بدله کي به نه قتل کيږي ، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه څخه پرته د درو سره امامانو مذهب دادی چي د آيت کريمه (الحر بالحر ...) په سبب د يو ازاد سړي څخه د خپل غلام په بدله کي دي قتل کړل سي او نه دي د بل چا په بدله کي ، د ابراهيم نخعي رحمة الله عليه او سفيان ثوري رحمة الله عليه قول دادی چي د مقتول غلام په بدله کي دي قاتل ازاد کړل سي که څه هم هغه مقتول د هغه خپل غلام وي يا د بل چا غلام وي .

او څوک چي اندامونه پرې کړي ... : په شرح السنه کي ليکلي دي چي د ټولو علماؤ پر دې

اتفاق دی که یو ازاد سړی د یو غلام اندامونه پرې کړي نو دهغه په بدله کې د هغه ازاد سړي اندامونه نه پرې کيږي ، د علماء د اتفاق څخه دا ثابته سوه چې د رسول الله ﷺ ارشاد (مور به د هغه اندامونه پرېکړو) دغه ارشاد یا خو د زجر او خبرداري په توګه دی او یا منسوخ دی .

## قاتل دي د مقتول وارثانو ته حواله کړل سي

﴿٣٣٢٤﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل پلاره څخه روایت کوي چې رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا دُفِعَ إِلَى أَوْلِيَاءِ الْمَقْتُولِ فَإِنْ

الله ﷺ وفرمایل: څوک چې قصدا یو بل کس قتل کړي نو قاتل دي د مقتول وارثانو ته حواله

شَاءُوا قَتَلُوا وَإِنْ شَاءُوا أَخَذُوا الدِّيَةَ وَهِيَ ثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً

کيږي او که خوښه يې وي د هغوی قتل دي يې کړي او که خوښه يې وي د هغه دیت دي ځيني واخلي او د قتل دیت سل اوښي دي چې په هغه کې دیرش اوښي هغه اوښي شاملي دي چې د درو کلو وي او په څلورم کال کې داخلي سوي وي او دیرش اوښي به د څلورو کلو وي او په پنځم کال کې به شاملي سوي وي

وَأَرْبَعُونَ خَلِفَةً وَمَا صَالَحُوا عَلَيْهِ فَهُوَ لَهُمْ . رواه الترمذي .

او څلويښت اوښي به حمله داره وي . د مقتول وارثانو ته اختيار دي که يې خوښه وي دیت ځيني واخلي او يا دي صله ورسره وکړي هر څو چې يې ځيني واخيستلې هغه د دوی دي . (ترمذي).

**تخريج**: سنن الترمذي ۶۱۴، رقم: ۱۳۸۷.

**د لغاتو حل**: الحقة: هي من الابل ما دخلت في الرابعة. (هغه اوښ چې په څلورم کال کې وي).

**تشريح**: په دیت کې د امام شافعي او امام محمد رحمة الله علیهما مذهب دادی ، مګر امام ابو حنیفة او امام ابو یوسف رحمة الله علیهما وايي چې په دیت کې کوم سل اوښان مشروع دي هغه باید داسي وي چې پنځه ویشت بنت لبون، پنځه ویشت خقه ، پنځه ویشت جذعه او پنځه ویشت مخاض وي، د دوی دلیل د حضرت سائب رضي الله عنه ابن یزید دا حدیث دی چې رسول الله ﷺ په دیت کې د څلورم ډول اوښانو ورکولو حکم ورکړ ، او که چیري دا حدیث ثابت وي نو صحابه

كرامو به د اختلاف كولو پر ځاى په اتفاق سره په دغه حديث عمل كولاى.

## په قصاص او ديت كي ټول مسلمانان برابر دي

﴿٣٣٢٥﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ټول مسلمانان (كه هغه كوچني وي كه لوي كه عالم وي او كه جاهل) قصاص او ديت كي برابر دي

دِمَاؤُهُمْ يَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ

او كه معمولي مسلمان په يوه معمولي شی باندي عهد وكړي نو هغه عهد به پوره كوي او كه

سِوَاهُمْ أَلَا لَا يُقْتَلُ مُسْلِمٌ بِكَافِرٍ وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ. رواه ابوداؤد والنسائي ورواه ابن ماجة عن ابن عباس.

يو چا د ليري څخه د يو شی معاهده كړې وي نو هغه دي نه ماتوي او ټول مسلمانان د كافرانو په ځاى باندي د يوه لاس حكم لري اګاه سئ! چي د هيڅ كافر په قتل كي دي مسلمان نه قتل كيږي نه هغه سړي چي په خپل عهد و ضمان (ضامن) كي دي تر څو پوري چي هغه عهد ضمان كي وي. (ابوداؤد نسائي) او په ابن ماجه كي دا حديث د ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل كړې دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ٤\٦٦٦، رقم: ٤٥٣٠، والنسائي ٨\٢٤، رقم: ٤٧٤٥.

**تشريح**: ټول مسلمانان برابر دي: ددې مطلب دادی چي په قصاص او ديت اخيستلو او وركولو كي ټول مسلمان يو ډول دي، شريف او رزيل، كوچني او لوی، عالم او جاهل، امير او غريب، په سړي او ښځه كي هيڅ فرق نه سته، داسي نه ده چي لوی درجې والا به د كوچنی درجې والا كي نه سي قتل كيدای يا د لوی ذات والا د ديت اندازه به پوره وركول كيږي او د كوچني ذات والا د ديت مقدار دي كم وركړل سي لكه څرنګه چي د جاهليت په زمانه كي رواج وو كله چي به يو حيثيت والا سړي كم حيثيت والا سړی قتل كړی نو په قصاص كي به يې هغه نه قتلوی بلكه د هغه په عوض كي به يې د هغه د قبيلې هغه څو كسان قتلول كوم چي به غوره وه.

او يو ادنى مسلمان هم امان وركولاى سي: ددې مطلب دادی كه چيري په مسلمانانو كي يو ادنى كس لكه غلام يا ښځه يو كافر ته امان وركړي نو د ټولو مسلمانانو لپاره ضروري ده

چي هغه کافر ته امان ورکړي او د هغه د سر او مال د ساتني چي کوم عهد د هغه مسلمان له خوا سوی دی هغه مات نه کړي .

او ليري مسلمان هم حق لري : ددغه جملې دوه مطلبه دي يو خو دادی که يو داسي مسلمان چي د دارالحرب څخه ليري وي يو کافر ته امان ورکړی وي نو د هغه مسلمان لپاره چي دارالحرب ته نژدې دی دا جائز نه دی چي د هغه مسلمان عهد مات کړي ، دوهمه معنی يې داده چي هر کله د مسلمانانو لښکر په دارالحرب کي داخل سي او د مسلمانانو امير يو ډله بلي خوا ته واستوي او بيا هغه ډله د غنيمت د مال په اخيستلو سره بېرته راسي نو هغه د غنيمت مال به يوازي د هغه ډلي حق نه وي بلکه هغه به په ټول لښکر کي وېشل کيږي .

تر څو چي هغه په عهد او ضمان کي دی: مطلب دادی چي کوم کافر د محصول په ادا کولو سره د اسلامي هيواد اوسيدونکي سي او اسلامي پاچا د هغه د ځان او مال د ساتني عهد او ضمان کړی وي نو تر څو چي هغه ذمي دی او د خپل ذمي کېدو خلاف يو کار نه وکړي مسلمان دی هغه نه قتلوي بلکه د هغه ساتنه دي خپل ذمه داري وګڼي، ددې څخه معلومه سوه چي په اسلامي قانون کي د حکومت په نظر کي د يو ذمي د ديت هم هغه قيمت دی کوم چي د يو مسلمان د ديت دی نو يو مسلمان که چيري يو ذمي په ناحقه قتل کړي نو د هغه په قصاص کي د هغه قاتل مسلمان قتلول پکار دي لکه څرنګه چي د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دی .

د حديث ددغه جملې (د کافر په بدله کي دي مسلمان نه قتل کيږي) ددې څخه دا مفهوم هم واضح سو چي دلته د کافر څخه مراد حربي کافر دی ذمي مراد نه دی، خلاصه دا چي د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد هيڅ مسلمان دي د حربي کافر په قصاص کي نه قتل کيږي مګر د ذمي په قصاص کي دي قتل کړل سي او د امام شافعي رحمه الله په نزد هيڅ مسلمان دي د يو کافر په قصاص کي نه قتل کيږي که څه هم هغه کافر حربي وي يا ذمي وي .

## د مقتول يا ژوبل سوي د وارثانو حق

﴿٣٣٢٦﴾ : وَعَنْ شُرَيْحِ الْخُزَاعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو شريح خزاعي رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دا واورېدل چي

يَقُوْلُ مَنْ أُصِيْبَ بِدَمٍ أَوْ خَبْلٍ وَالْخَبْلُ الْجُرْحُ فَهُوَ بِالْخِيَارِ بَيْنَ إِحْدَى

ويل يې څوک چي د خپل عزيز په ناحقه قتل کي مبتلا وي يا د يو زخم په مصيبت کي (يعني د

يو چا دوست وژل سوي وي ) نو هغه

ثَلَاثٍ فَإِنْ أَرَادَ الرَّابِعَةَ فَخُذُوا عَلٰى يَدَيْهِ بَيْنَ أَنْ يَّقْتَصَّ أَوْ يَعْفُوَ أَوْ يَأْخُذَ

په دې درو خبرو کې يوه خبره اختيارولای سي که چيري هغه د دغه درو خبرو څخه زيات د څلورمې خبري ته تير سي نو لاسونه يې و نيسئ .(۱)- يا خو د هغه بدل وا خلي .(۲)-يا معاف دي يې کړي .(۳)-يا دي ديت قبول کړي

الْعَقْلَ فَإِنْ أَخَذَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا ثُمَّ عَدَا بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهُ النَّارُ خَالِدًا فِيهَا مُخَلَّدًا أَبَدًا . رواه الدارمي

بيا که په دې خبرو کې يوه خبره قبول کړي او د هغه څخه وروسته زياتي وکړي يعني د بل شي مطالبه وکړي نو دهغه لپاره د دوږخ اور دی چي په هغه کي به همېشه وي . (دارمي).

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۲۴۷، رقم: ۲۳۵۱.

**تشريح**: (خالدا فيها تلخدا)، په دغه جمله کي د تاکيد څخه وروسته د تاکيد په توګه د سخت زجر او خبرداري او سخت وعيد د اظهار لپاره دی ، په دوږخ کي د همېشه اوسيدو په باره کي چي کوم وضاحت په اول فصل کي د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په روايت کي تېر سوی دی هغه وضاحت دلته هم په نظر کي ساتل پکار دي .

## د قتل خطا حکم

﴿۳۳۲۷﴾: وَعَنْ طَاوُسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قَالَ مَنْ قُتِلَ فِي

حضرت طاؤس رضي الله عنه د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : څوک چي

عِمِّيَّةٍ فِي رِمِّيٍّ يَكُونُ بَيْنَهُمْ بِحِجَارَةٍ او جلد أَوْ بِالسِّيَاطِ أَوْ ضَرْبٍ بِعَصًا فَهُوَ

بې دريغه (بې ځايه لکه په ړندو سترګو په بې فکري)مثلا د کاڼو په جګړه کي يا د لرګو کي مړ سي (او د قاتل درک نه وي نو دا قتل قتل خطا دی )

خَطَأٌ وَعَقْلُهُ عَقْلُ الْخَطَإِ وَمَنْ قُتِلَ عَمْدًا فَهُوَ قَوَدٌ وَمَنْ حَالَ دُونَهُ فَعَلَيْهِ

او د دې وينه تويونه د قتل د خطا وينه تويونه ده او څوک چي قصدا ووژل سي نو دا قتل

قصاص واجبوي او څوک چې په قصاص اخيستلو کې خنډ وي

لَعْنَةُ اللّٰهِ وَغَضَبُهُ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ صَرْفٌ وَلَا عَدْلٌ . رواه ابوداؤد والنسائي.

نو پر هغه باندې د الله ﷻ لعنت او غضب الهي دی د هغه نه فرض قبليږي او نه نفل. ابوداؤد نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\٦٧٦، رقم: ۴۵۳۹، والنسائي ۸\۳۹-۴۰، رقم: ۴۷۸۹.

**د لغاتو حل**: عمية: الضلالة وقيل الفتنة وقيل الامر الذي لايستبين وجهه ولايعرف امره. (گمراهي...).
صَرف: اى نفل او توبة. (نفل يا توبه.) عدل: اى فرض او فدية. (فرض يا فديه.)

**تشريح**: د خلکو په مينځ کې په ډبرو وېشتلو کې: ددې مطلب دادی چې د مثال په توګه زيد په يو داسې ځای کې راګېر سو چيرې چې دوو مخالفې ډلې په خپل مينځ کې جنګېدلې او د دواړو خواوو څخه پر يو بل باندې ډبرې ويشتل کېدی او ناڅاپه يو ډبره پر زيد ولګېده او هغه مړ سو، يعني که چيرې يو سړی د ډبرې په ويشتلو سره مړ سي بلکه داسې به ووايو چې دلته د ډبرې ذکر محض اتفاقي دی مراد دادی چې د يو دروند شي په وهلو سره مړ سي نو دا قتل قصاص نه واجبوي بلکه په دې کې ديت واجب دی او ديت هم هغه چې په قتل خطا کې واجب وي، د فقهاء په اصطلاح کې دغه قتل ته شبه عمد ويل کيږي، د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد د شبه عمد تعريف دادی: هغه قتل چې په يو غير داغ دار شي سره واقع سوی وي که څه هم هغه شی داسې وي چې په هغه کې اکثر هلاکت واقع کيږي مګر د صاحبينو او امام شافعي په نزد د شبه عمد تعريف دادی چې هغه قتل چې په اراده د قتل په يو داسې شي سره سوی وي چې په هغه سره اکثره وخت قتل نه واقع کيږي او کوم قتل چې په يو داسې شي سره وي چې په هغه سره اکثر هلاکت واقع کيږي په قتل عمد کې به داخل وي، په ذکر سوي حديث کې ذکر سوي شيان يعني ډبرې او لرګي، د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله په نزد پر خپل مطلق معنی باندې محمول دی که څه هم هغه سپک وي يا دروند وي، حال دا چې د صاحبينو او امام شافعي رحمه الله په نزد دغه شيان پر سپک کېدو باندې محمول دي، يعني خلاصه دا سوه چې کوم قتل په دروند شي سره وي په هغه کې د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله په نزد قصاص واجب نه دی او د صاحبينو او امام شافعي په نزد د ذکر سوي تفصيل اعتبار به کيږي.

کوم څوک چې په قصاص اخيستو کې حائل وي: ددې مطلب دادی چې کوم څوک د مقتول د وارثانو څخه د قصاص په اخيستلو کې خنډ کيږي د هغه په باره کې د زجر د سختوالي په توګه دا وعيد فرمايل سوی دی چې پر هغه د الله تعالی لعنت او غضب نازليږي يعني هغه د

الله تعالی د ناراضگی سبب گرځي .

## د قتل ډولونه

د فقهاؤ په نزد د قتل پنځه ډولونه دي :

١. قتل عمد .
٢. قتل شبه عمد .
٣. قتل خطاء .
۴. قتل جاري مجری خطاء .
۵. قتل بسبب .

١ : قتل عمد دادی چي مقتول په یو داسي شي سره ووژل سي چي اندامونه جلا کړي که هغه د وسلې د ډول څخه وي یا ډبره، لرگی او داسي نور شیان وي، او ماده ئې د اور شعله وي ، د صاحبینو په نزد د قتل عمد تعریف دادی چي مقتول بېله د قتل د ارادې په یو داسي شي سره ووژل سي چي په هغه سره په عامه توگه انسان هلاکیږي د قتل عمد کونکی سخت گناه کار دی او ددغه قتل سزا قصاص دی مگر دا چي د مقتول وارثان هغه معاف کړي یا د دیت په اخیستلو باندي راضي سي په دې کي کفاره نه واجبیږي .

٢ : قتل شبه عمد دادی چي مقتول د ذکر سوو شیانو څخه پرته په یو بل شي سره په قصد وهل سوی وي د قتل په دغه صورت کي هم قاتل گناه کار دی گرچه په دې کي د قصاص پر ځای پر قاتل باندي دیت مغلظه واجبیږي (دیت مغلظه څلور ډوله سل اوښانو ته وایي) مگر که چیري هلاکت واقع وي نو قصاص واجبیږي مگر که چیري د هغه په وجه د مړ کېدو پر ځای د وهل سوي کس یو اندام پرې سوی وي نو د وهونکي به هم هغه اندام پرې کیږي .

٣ : د قتل خطاء دوه ډولونه دي یو خو دا چي د خطاء تعلق د قصد سره وي د مثال په توگه یو شی د ښکار په گمان نښه کړل سي مگر هغه سړی وي یا یو سړی د یو حربي په گڼلو سره هغه قتل کړي مگر هغه مسلمان وي ، دوهم دا چي د خطاء تعلق د فعل سره وي د مثال په توگه پر یو خاص نښه باندي غشی یا مرمی ولي مگر غشی یا مرمی په خطاء سره پر یو سړي ولگیږي .

۴ : قتل جاري مجری خطاء : ددې صورت دادی چي د مثال په توگه یو سړی په خوب کي پر بل سړي را وغورځیدی او هغه یې هلاک کړی ، په قتل خطاء او جاري مجری خطاء کي کفاره لازمیږي او پر عاقل باندي دیت واجبیږي، او په دغه صورتو کي گناه هم ده .

۵: قتل تسبيب دادى چې د مثال په توګه يو سړى د بل سړي په مځکه کې د هغه د اجازې څخه پرته څاه وکاږي يا يو ډبره يا بل شى کښيږدي او يو بل دريم سړى په هغه څاه کې ولويږي يا د هغه ډبري سره په مښلېدو مړ سي نو په دغه صورت کې پر عاقل باندي ديت واجبيږي او کفاره نه لازميږي ، دا خبره دي په ذهن کې وي چې دقتل په اولو څلورو ډولو يعني عمد ، شبه عمد ، قتل خطاء او جاري مجرى خطاء کې قاتل د مقتول د مېراث څخه نه محروم کيږي او په پنځم ډول يعني قتل تسبيب کې قاتل د مېراث څخه محروم کيږي .

## د ديت اخيستلو وروسته قتل جائز نه دئ

﴿۳۳۲۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا أُعْفِيَ مَنْ قَتَلَ بَعْدَ أَخْذِهِ الدِّيَةَ . رواه بوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل : زه به هغه سړى عفوه نه کړم (د قصاص اخيستلو څخه ماسوا پرې نه ږدم) چې هغه د خپل مقتول وينه تويول اخيستي وي او وروسته يې مړ کړي .(ابوداؤد) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\٦۴٦، رقم: ۴۵۰۷.

## د زخمي کوونکي د معافولو اجر

﴿۳۳۲۹﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دى چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چې

يَقُوْلُ مَا مِنْ رَجُلٍ يُصَابُ بِشَيْءٍ فِي جَسَدِهِ فَيَتَصَدَّقُ بِهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ بِهِ دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ بِهِ خَطِيئَةً . رواه الترمذي وابن ماجة.

فرمايل : څوک چې زخمي سوې وي او د بدل اخيستلو په ځاى هغه کس معاف کړي چا چې دى زخمي کړې دى نو الله جل جلاله به د هغه درجه ورلوړه کړي او د هغه ګناه به ورمعاف کړي . (ترمذي ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۸-۹، رقم: ۱۳۹۳، وابن ماجه ۲\۸۹۸، رقم: ۲٦۹۳.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### په قتل کي شریک ټولو ته سزا

﴿٣٣٣٠﴾: عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَتَلَ نَفَرًا خَمْسَةً أَوْ

د حضرت سعید بن مسیب رضي الله عنه څخه روایت دی چي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه د یوه سړي په قتل کي پنځه یا

سَبْعَةً بِرَجُلٍ وَاحِدٍ قَتَلُوهُ قَتْلَ غِيلَةٍ وَقَالَ عُمَرُ لَوْ تَمَالَأَ عَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَ لَقَتَلْتُهُمْ جَمِيعًا. رواه مالك وروى البخاري عن ابن عمر نحوه.

اووه کسان قتل کړی وه دا ټول د هغه کس په قتل کي سره شریکان وه او د قتلولو څخه یې وروسته وویل که په دې سړي باندي د صنعا ټولو خلکو حمله کړې وای یا د قاتلانو مرسته یې کړې وای نو ما به د صنعا ټول خلک قتل کړي وای. (مالک) په بخاري کي دا حدیث د ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل کړی دی.

**تخریج**: مالک في الموطا ٢\٨٧١، رقم: ١٣.

**تشریح**: صنعاء د یمن یو مشهور ښار دی چي نن سبا دیمن پلازمینه هم دی، حضرت عمر رضي الله عنه د صنعاء ذکر ځکه وکړ چي کوم قاتلان هغه قتل کړي وه په قصاص کي هغوی ټول د صنعاء اوسیدونکي وه یا دا چي د عربو په نزد د یو شي د زیاتوب ظاهرولو لپاره په خپل کلام کي صنعاء د قتل په توګه استعمالېدل، دا حدیث ددې دلیل دی چي د یو سړي په قتل کي چي څو مره کسان شریک وي نو په قصاص کي هغوی ټول قتلول پکار دي.

### د قیامت په ورځ به مقتول خپل قاتل نیولی الله تعالی ته فریاد کوي

﴿٣٣٣١﴾: وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ حَدَّثَنِي فُلَانٌ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جندب رضي الله عنه څخه روایت دی چي ماته فلاني سړي بیان کړې دی. چي رسول الله صلی الله علیه وسلم

قَالَ يَجِيءُ الْمَقْتُولُ بِقَاتِلِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُولُ سَلْ هٰذَا فِيمَ قَتَلَنِي

وفرمایل: د قیامت په ورځ به مقتول خپل قاتل نیولی را ولي او الله جل جلاله ته به عرض وکړي دده

ځخه پوښته وسي چي ولي يې زه قتل کړی وم ؟

فَيَقُولُ قَتَلْتُهُ عَلَى مُلْكِ فُلَانٍ قَالَ جُنْدَبٌ فَاتَّقِهَا . رواه النسائي .

قاتل به ووايي چي دی مي د فلاني باچا په سلطنت کي (د هغه په کومک سره) قتل کړی وو د جندب رضی الله عنه بيان دي چي ته د دې ځخه ځان وساته . (نسائي) .

**تخريج**: سنن النسائي ١٧\ ٨۴، رقم: ٣٩٩٨.

**تشريح**: په ظاهره د مقتول سوال او د قاتل په جواب کي مطابقت نه معلوميږي ځکه چي مقتول خو د قتل سبب پوښتلی وو نه دا چي د قتل دځای په باره کي يې پوښتنه کړې وه ، په دې باره کي شارحين وايي چي د قاتل جمله (ما هغه د فلاني سړي په پاچاهي کي قتل کړی وو) ددې ځخه مراد داديچي ما د فلاني حاکم يا پاچا په زمانه کي د هغه په مرسته سره يا د هغه په اشاره سره دی قتل کړی وو مگر دا معنی به په هغه صورت کي وي کله چي په روايت کي لفظ د مُلک د ميم په پيښ سره وي او که چيري دغه لفظ د ميم په زبر سره وي يعني مِلک وي نو بيا به دا معنی مراد وي چي ما هغه د جګړې په دوران کي قتل کړی دی چي زما او دده په مينځ کي دفلاني سړی د مثال په توګه د زيد په کاروبار کي سوې وه ، په دې اعتبار د قاتل ذکر سوې جمله به د واقعې د بيان لپاره وي .

د جندب رضی الله عنه قول (ته ددې ځخه ځان وساته) ددې ځخه مراد مخاطب د قتل ځخه او په قتل کي د مرسته کولو ځخه او د جګړې او فساد نه کولو ځخه چي په عامه توګه سره د قتل سبب کيږي منع کول دي ، طيبي رحمة الله عليه وايي چي حضرت جندب رضی الله عنه يو پاچا ته په نصيحت کولو سره دا حديث بيان کړی وو او د ذکر سوې جملې مخاطب هغه پاچا وو ځکه د جندب رضی الله عنه مطلب دا وو چي پاچا دي د يو ظالم مرسته نه کوي .

## د قاتل مرسته کونکي ته وعيد

﴿٣٣٣٢﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَعَانَ

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه ځخه روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : ځوک چي د مؤمن په قتل

عَلَى قَتْلِ مُؤْمِنٍ بِشَطْرِ كَلِمَةٍ لَقِيَ اللَّهَ عَزَّ وَجَلَّ مَكْتُوبٌ بَيْنَ عَيْنَيْهِ آيِسٌ مِنْ رَحْمَةِ اللَّهِ . رواه ابن ماجة .

کي په نیمه کلمه سره کومک وکړي (مثلا د قتل ویلو په ځای قت ووايي) نو الله ﷻ به د هغه سره په دا سي حال کي ملاقات وکړي چي د دواړو سترګو په مینځ کي به یې لیکلي وي چي دا کس د خداي تعالی د رحمت څخه نا امیده دی. (ابن ماجه).

**تخریج**: سنن ابن ماجه ٢\ ٨٧٤، رقم: ٢٦٢٠.

**تشریح**: د مسلمان وژل د ګناه د سختوالي له کبله د کفر مشابه دی، په دې اعتبار سره دغه جمله (دد الله ﷻ د رحمت څخه نا امیده دی) دا د کفر کنایه ده ځکه چي د آیت کریمه (لاییئس من روح الله الا القوم الکافرون) بېشکه د الله ﷻ د رحمت څخه کافران نا امیده کیږي، ددې په موجب د الله تعالی د رحمت څخه نا امیدي یوازي د کافرانو لپاره ده.

ددغه جملې خلاصه داده چي داسي سړی به د قیامت په ورځ د ذکر سوې علامې په ذریعه د مخلوقاتو په مینځ کي رسوا وي مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د حدیث مفهوم یا خو د داسي سړي په باره کي پر سخت وعید باندي محمول دی یا د هغه محمول هغه سړی دی کوم چي په قتل کي مرسته کول حلال ګڼي او مرسته کوي.

## د قاتل مرسته کوونکی دي بندي کړل سي

﴿٣٣٣٣﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِذَا أَمْسَكَ الرَّجُلُ الرَّجُلَ وَقَتَلَهُ الْآخِرُ يُقْتَلُ الَّذِيْ قَتَلَ وَيُحْبَسُ الَّذِيْ أَمْسَكَ. رواه الدار قطني

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي څوک د یو چا لپاره ونیسي او بل یې قتل کړي نو قاتل دي د هغه په بدل کي قتل سي او کومک کونکي دي بندي کړل سي. (دار قطني).

**تخریج**: سنن الدار قطني ٣\ ١٤٠، رقم: ١٧٦.

**تشریح**: لکه څرنګه چي یو ښځه یو سړی ونیسي او د هغې سره بل سړی زنا وکړي نو پر نیونکي باندي حد نه جاري کیږي همدارنګه د مقتول نیونکي څخه هم قصاص نه سي اخیستل کیدای بلکه هغه به د تعزیر په توګه بندي کیږي او د بند وخت به د حاکم او قاضي پر رایه وي هغه چي څومره وخت مناسب وګڼي د بند سزا دي ورکړي، دا د ځینو شارحینو تصریح ده مګر دا باید په خیال کي وي چي د مقتول نېول په اصل کي د هغه د قتل مرسته کول وي او د نورو حدیثو په رڼا کي د قتل د مرسته کونکي سزا هم قصاص دی په دې اعتبار سره ویل کیدای سي

چي دا حديث منسوخ دی .
شمني رحمة الله عليه په ملتقی کي دا مسئله ليکلې ده که چيري يو څوک يو سړی دزمري يا لېوه مخته وغورځوي او هغه زمری يا درنده هغه سړی مړ کړي نو په دغه صورت کي به پر غورځونکی باندي قصاص نه واجبېږي او نه به ديت واجب وي بلکه د هغه لپاره به دا سزا وي چي تر څو پوري هغه توبه ونه کاږي هغه دي بندي کړل سي او داسي دي مړ کړل سي چي د هغه بدن درد کول شروع کړي .

==========

# بَابُ الدِّيَاتِ

## (د قتل په بدله کي د تاوان بيان)

**د ديت معنی او ډولونه** : ديات د ديت جمع ده او معنی يې د مالي بدلې ده، يعني ديت هغه مال ته وايي چي د يو انسان په ختمولو يا د يو انسان د بدن د اندام د ناقص (زخمي) کولو په بدله کي ورکول کيږي، په عنوان کي د جمع لفظ يعني ديات د ديت د ډولو په اعتبار راوړل سوی دی ددې څخه دا مقصد دی چي د ديت مختلف ډولونه دي د مثال په توګه يو ديت دا وي چي د يو انسان د وژلو په بدله کي ورکول کيږي او يو ديت دا وي چي د اندام د نقصان په بدله کي ورکول کيږي ، د نوعيت او حيثيت په اعتبار هم ديت پر دوه ډوله دي يوه ته مغلظه وايي او بل ته مخففه وايي .

ديت مغلظه دادی چي څلور ډوله سل اوښان وي يعني پنځه ويشت بنت مخاض (چي د يوه کال په تېرېدو سره په دوهم کال کي وي) او پنځه ويشت بنت لبون (چي دوه کلن وي او په دريم کال کي وي) پنځه ويشت حقه (چي درې کلن وي او په څلورم کال کي وي) او پنځه ويشت جزعه (چي څلور کلن وي او په پنځم کال کي وي) دا تفصيل د امام اعظم ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما په نزد دی ، د امام شافعي او امام محمد رحمة الله عليهما په نزد ديت مغلظه دادی چي درې ډوله سل اوښي وي يعني دېرش حقه ، دېرش جذعه او څلوېښت مثنه (چي پنځه کلن وي او په شپږم کال کي داخل وي) او ټولي حاملې وي ، ديت مغلظه پر هغه چا باندي واجب دی چي قتل خطاء يا قتل جاري مجری خطاء يا د قتل تسبيب قتل يې کړی وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ګوتي پرې كېدو ديت

﴿۳۳۳۴﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هٰذِهِ وَهٰذِهِ سَوَاءٌ يَعْنِي الْخِنْصَرَ وَالْإِبْهَامَ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خچې ګوته او بټه ګوته دواړي سره برابري دي (يعني په بدله کي دواړه سره مساوي دي). (بخاري)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۲۵، رقم: ۶۸۹۵.

**تشريح**: که يو سړی د يو چا د دواړو لاسو يا دواړو پښنو ټولي ګوتي پرې کړي نو هغه يو انسان د هغه د منفعت (ګټي تر لاسه کولو) د يو ډيري لوی ذريعې څخه محروم کړ ځکه نو پر هغه باندي پوره ديت واجبيږي په دې اعتبار د هري ګوتي پر پرې کولو باندي د پوره ديت لسمه برخه ورکول واجبيږي په دې باره کي ويل سوي دي چي د بټي ګوتي او غچې ګوتي ديت برابر دی که څه هم په بټي ګوتي کي دوه بندونه او په کچې ګوته درې بندونه دي مګر په منفعت کي دواړي ګوتي مساوي دي لکه څرنګه چي په راسته لاس او چپه لاس کي فرق نه سته، او کله چي په هره ګوته کي د پوره ديت لسمه برخه واجبيږي او د ګوتي د هر بند په ديت کي به د هغه حساب اعتبار وي کوم چي د ګوتي د هر بند په ديت کي د لسمي برخي دريمه برخه به ورکول کيږي او د بټي ګوتي د هر بند په ديت کي به د لسمي برخي نيم دينار ورکول کيږي ځکه چي په بټه ګوته کي دوه بندونه دي او په نورو ګوتو کي درې درې بندونه دي.

### د حاملې ښځي ديت

﴿۳۳۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَنِينِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د بني لحيان د يوې ښځي د نس څخه

امْرَأَةٍ مِنْ بَنِي لَحْيَانَ سَقَطَ مَيِّتًا بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ ثُمَّ إِنَّ الْمَرْأَةَ الَّتِي قَضَى

د مړ کوچني په غورځېدو چي په جګړه کي په نس باندي د لګېدو څخه غورځېدلي وو د غلام يا مينزي د ((غُره)) (د ويني تويوني شلمه برخه ده) په ورکولو باندي حکم وکړ بيا د هغې ښځي

لَهَا بِالْغُرَّةِ تُوُفِّيَتْ فَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَنَّ مِيرَاثَهَا لِبَنِيهَا وَزَوْجِهَا وَالْعَقْلَ عَلَى عَصَبَتِهَا . متفق عليه.

په مرګ چي په هغې د ((غره)) د ورکولو حکم نبي کريم ﷺ ور کړې وو د ا حکم نبي کريم ﷺ وکړ چي د هغې ميراث د هغې زامنو او خاوند لپاره دی او وينه تويونه د هغې د عصبه (د پلار لخوا خپلوان چي په ميراث کي وارثان وي) وارثانو باندي ده . (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢٥٢، رقم: ٦٩٠٩، ومسلم ٣\١٣٠٩، رقم: ٣٥- ١٦٨١.

**تشريح**: واقعه داسي وه چي دوو ښځو په خپلو کي جګړه وکړه او په هغوی کي يوې بله په ډبره وويشتل چي هغه ښځه حامله وه ، ډبره د هغې پر نس ولګيدی چي د هغې په نس کي ماشوم د ډبري د وېشتلو په وجه مړ سو او د هغه په ديت کي د ډبري وېشتونکي پر کورنۍ باندي يوه غره يعني يوه مينزه يا يو غلام واجب کړل سو او که چيري هغه کوچنی د ژوندی پيدا کېدو وروسته مړ سوی وي يا هغه کوچنی پيدا سوی وي او د هغه ښځه وروسته يې هغه په ډبري ويشتلې وي او په ويشتلو سره هغه مړ سوی وي نو په دغه صورت کي به پوره ديت واجب کيدای.

غُرّه هغه سپين والي ته وايي کوم چي د آس پر تندي باندي وي او سپين رنګه غلام يا مينزي ته هم غره ويل کيږي مګر دلته مراد مطلق غلام يا مينزه ده ، د فقهاؤ په نزد د غره ښځه د ديت شلمه برخه يعني پنځه سوه درهمه مراد دي .

او د هغې ديت د هغې پر عصبه دی : دلته د عصبه ښځه مراد کورنۍ ده ، په دغه جملې سره دا واضح کول مراد دي چي که څه هم د هغې پر کورنۍ باندي ديت واجبيږي مګر هغه کورنۍ د هغې د مېراث وارث کيدای نه سي ځکه چي د يو چا د ديت په ذمه دار کېدو سره د هغه د مېراث حقدار کېدل نه لازميږي ځکه د هغه مېراث به هغه خلکو ته رسيږي کوم چي د هغه شرعي وارثان وي . اوس پاته سوه دا خبره چي دلته په وارثانو کي يوازي د زامنو او خاوند خاصوالی ولي سوی دی ؟ په ظاهره خو دا معلوميږي چي دلته د کومي ښځي ذکر سوی دی د هغې وارثان به يوازي دغه خلک موجود وه ځکه نو د هغو ذکر وکړل سو کنه نو مقصد خو دادی چي مېراث هر هغه وارث ته ورکول کيږي کوم چي موجود وي لکه څرنګه چي د راتلونکي حديث څخه څرګنديږي .

## په ډبره سره قتل دیت واجبوي

﴿۳۳۳٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ اقْتَتَلَتْ امْرَأَتَانِ مِنْ هُذَيْلٍ فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَى

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي د هذیل د قبیلې دوې ښځي په خپلو کي سره و جنګېدې یوې بلي سره

بِحَجَرٍ فَقَتَلَتْهَا وَمَا فِي بَطْنِهَا فَقَضَى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ دِيَةَ

په کاڼو و ویشتلې چي په هغوی کي یوه مړه سوه او کوم بچی چي یې په نس کي وو هغه هم مړ سو رسول الله ﷺ په دې معامله کي دا حکم وکړ چي د ښځي د کوچني بدله د غلام یا مینزه

جَنِينِهَا غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ وَلِيدَةٌ وَقَضَى بِدِيَةِ الْمَرْأَةِ عَلَى عَاقِلَتِهَا وَ وَرَّثَهَا وَلَدَهَا

وَمَنْ مَّعَهُمْ. متفق علیه.

((غُره)) ده او د ښځي د قتل بدله د دې ښځي پر عاقلو د قوم باندي ده چاچي دا قتل کړې ده او د دې د ویني تویونه نبي کریم ﷺ د هغې زامن او نور خلک وارثان جوړ کړه چي د زامنو سره یې وه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۵۲، رقم: ٦۹۱۰، ومسلم ۳\۱۳۰۹، رقم: ۳٦- ۱٦۸۱.

**تشریح**: په ښکاره خو دا معلومیږي چي په اول حدیث کي کومه واقعه تېره سوې ده هغه د بلي ښځي واقعه وه او په دغه حدیث کي چي کومه واقعه ذکر سوې ده دا د بلي ښځي واقعه ده، په اول حدیث کي خو دا ذکر وو چي په ډبري ویشتلو سره ښځه مړه سوې وه او په هغه حدیث کي د هغه ښځي د وفات څخه وروسته چي کوم احکام نافذ سوي وه د هغو ذکر کول مقصد وو او په دغه حدیث کي د هغه ښځي ذکر سوی دی کوم چي د ډبري په ویشتلو سره مړه سوه او ورسره د هغې په نس کي کوچنی هم مړ سوی وو دلته د هغې حکم بیان سوی دی.

دا حدیث د دې دلیل دی چي د ډبري په ذریعه د یو چا هلاکول نه د دیت سبب دی او نه د قصاص سبب دی او دا د قتل عمد د ډول څخه نه دی بلکه د شبه عمد د ډول څخه دی لکه څرنګه چي د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله مذهب دی مګر په دې باره کي د دغه حدیث د نورو امامانو د مذهب خلاف دی ځکه چي هغوی په حدیث کي ذکر سوې ډبره پر کوچنۍ ډبره محمول کړې ده.

﴿٣٣٣٧﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ كَانَتَا ضَرَّتَيْنِ فَرَمَتْ إِحْدَاهُمَا

د حضرت مغیره بن شعبه ﷺ څخه روایت دی چي دوو بنو یو د بله په کاڼو سره وویشتل یا یې

الْأُخْرَى بِحَجَرٍ أَوْ عَمُودِ فُسْطَاطٍ فَأَلْقَتْ جَنِينَهَا فَقَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د خیمو په لرګیو سره ووهل چي په دې وجه د یوې د نس کوچنی و غورځېدی نو رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ غُرَّةً عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ وَجَعَلَهُ عَلَى عَصَبَةِ الْمَرْأَةِ هذه رواية

د کوچني په بدله کي غلام یا مینزه ((غره)) تجویز کړه او هغه بدله یې د ښځي په وارث باندي واجب کړه (دا د ترمذي روایت وو)

الترمذي و في رواية مسلم قَالَ ضَرَبَتْ امْرَأَةٌ ضَرَّتَهَا بِعَمُودِ فُسْطَاطٍ وَهِيَ

او د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي مغیره وویل یوې ښځي خپله امیدواره بن د خیمې په لرګي ووهل په هغه سره هغه مړه سوه

حُبْلَى فَقَتَلَتْهَا قَالَ وَإِحْدَاهُمَا لِحْيَانِيَّةٌ قَالَ فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ دِيَةَ الْمَقْتُولَةِ عَلَى عَصَبَةِ الْقَاتِلَةِ وَغُرَّةً لِمَا فِي بَطْنِهَا.

او د هغې د نس کوچنی هم مړ سو په هغوی کي یوه ښځه د بني لحیان د قبیلې څخه وه رسول الله ﷺ د مقتولې وینه تویونه د قاتلې په وارثانو باندي واجب کړه او د کوچني په بدله کي د غلام یا مینزه (غره) یې و ټاکله. (غُره) : په اصل کي هغه سپین والي ته ویل کیږي چي د آس په تندي کي وي او اطلاق یې پر مریي او مینزه باندي هم کیږي او پر نورو شیانو باندي هم.

**تخریج** سنن الترمذي ۴\۱۷، رقم: ۱۴۱۱. ومسلم ۳\۱۳۱۰، رقم: ۳۷- ۱۶۸۲.

**د لغاتو حل** فُسطاط: ضرب من الابنية في السفر دون السرادق، قال النووي رحمه الله هذا محمول على انه عود صغير. (کوچنی لرګی).

**تشریح** دا حدیث هم د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه د مذهب دلیل دی، د خیمې په ستن (مېل) سره په عامه توګه انسان هلاکیدای سي مګر ددې سربېره هغه ښځه د قتل عمد کونکې و نه ګرځول سوه بلکه د شبه عمد کونکې وګرځول سوه، امام شافعي رحمة الله علیه وایي چي دلته د دېري او

ستن څخه مراد کوچنۍ ډبره او لرګي دی چي په هغه سره په عامه توګه د انسان د قتل اراده نه وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي . (دوهم فصل)

### د خطا قتل او شبه عمد دیت

﴿۳۳۳۸﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

أَلَا إِنَّ دِيَةَ الْخَطَإِ شِبْهِ الْعَمْدِ مَا كَانَ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ مِنْهَا

قتل خطا (چي د قتل عمد مشابه دی) که په چلاخو او لکړه سره واقع سي نو د ويني تويونکي سل اوښان دي چي په هغوی کي

أَرْبَعُونَ فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا. رواه النسائي وابن ماجة والدارمي و رواه ابوداؤد عنه وعن ابن عمر و في شرح السنة لفظ المصابيح عن ابن عمر .

څلوېښت بلاربي اوښي هم وي .(نسائي ابن ماجه دارمي)او د ابو داؤد او ابن عمر څخه هم. دغسي روايت کړې او په شرح السنة کي لفظ مصابيح د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی .

**تخريج**: سنن النسائي ۸\۴۲، رقم: ۴۸۱۳، وابن ماجه ۲\۸۷۸، رقم: ۲۶۲۸، والدارمي ۲\۲۵۹، رقم: ۲۳۸۳.

**تشريح**: دغه روايت د مصابيح په الفاظو داسي دی چي (الا ان في قتل العمد الخطاء بالسوط والعصاء مائة من الابل مغلظة منها اربعون خلفة في بطونها اولادها): خبردار اوسئ ! قتل عمد خطاء چي د چلاخي او لرګي په ذريعه واقع سوی وي د هغه ديت سل اوښان ديت مغلظه دی چي په هغه کي څلوېښت اوښي بايد داسي وي چي د هغو په نس کي بچيان وي ، يعني په دغه روايت کي د قتل عمد خطاء څخه مراد قتل خطا شبه عمد دی چي په لوړ حديث کي ذکر سوی دی .

په دې باره کي بايد دا په فکر کي وي چي د قتل په کولو کي يا خو د عمد دخل وي يا د شبه عمد او يا د خطاء محض، د قتل عمد څخه مراد دادی چي يو سړی په قصد سره يو څوک په هلاکونکي شي سره هلاک کړي چي د بدن اندامونه يې جلا کړي يا ټيري سي ، او د شبه عمد مفهوم دادی چي يو سړی په قصد سره په يو داسي شي هلاک کړل سي چي هغه د وسلې د ډول

څخه نه وي که څه هم په عامه توګه په هغه شي سره انسان هلاکيدای سي يا نه سي هلاکيدای ،
او قتل خطاء دادی چي يو څوک په سهوه سره هلاک کړل سي ، ددغه درو ډولو ذکر په مخکنيو مخونو کي تېر سوی دی او دا د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله د مذهب سره سم دی، هغه په دغه حديث کي ذکر سوی لرګی پر مطلق معنی باندي محمول کوي که هغه سپک وي يا درونده وي ،
او نور امامان وايي چي په داسي درونده شي سره قتل کول چي په هغه سره په عامه توګه انسان قتل کيږي د قتل عمد په حکم کي دی ځکه نو هغوی لرګی پر سپک باندي محمول کړی دی يعني د هغه په نزد دلته هغه سپک لرګی مراد اخيستی دی چي په هغه سره په عامه توګه انسان نه هلاکيږي .

په ځينو روايتو کي د ديت سره د مغلظه لفظ هم نقل سوی دی لکه څرنګه چي په ذکر سوي د مصابيح په روايت کي دغه لفظ موجود دی ، په قتل شبه عمد کي د ديت تغليظ د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه، امام اعظم ابوحنيفة، امام ابويوسف او امام احمد رحمة الله عليهم په نزد دادی چي څلور ډوله سل اوښان واجب دي چي د هغه تفصيل د باب په شروع کي بيان سوی دی مګر په قتل خطاء کي په اتفاق سره ديت مغلظه نه واجبيږي بلکه په دې کي پنځه ډوله اوښان واجبيږي يعني شل ابن مخاض، شل بنت مخاض ، شل بنت لبون، شل حقه او شل جذعه .

د ديت مغلظه د تفصيل په باره کي دغه حديث د امام شافعي او امام محمد رحمة الله عليهما د مذهب دليل دی مګر د امام ابوحنيفة رحمه الله له خوا دا ويل کيږي چي دا حديث معارض دی کوم چي ابن مسعود او سائب رضي الله عنهما څخه روايت دی نو موږ پر متعين باندي عمل کړی دی .

## د مختلفو اندامو ديت

﴿۳۳۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ

ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه څخه روايت کوي چي

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى أَهْلِ الْيَمَنِ وَكَانَ فِي كِتَابِهِ أَنَّ مَنْ

رسول الله ﷺ د يمن د اوسېدونکو په نامه يو خط وليکي په هغه کي دا الفاظ هم وه ((څوک

اعْتَبَطَ مُؤْمِنًا قَتْلًا فَإِنَّهُ قَوَدٌ إِلَّا أَنْ يَرْضَى أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ وَ فيه ان الرجل

چي قصدا يو مسلمان قتل کړي نو دا د هغه د لاسونو د فعل قصاص دی په شرط د دې چي د

مقتول وارث په وينه توينه باندي راضي سي)) او په دې خط كي دا الفاظ هم وه چي د سړي

يقتل بالمراة وفيه فِي النَّفْسِ الدِّيَةَ مِائَةً مِنَ الْإِبِلِ وعلى اهل الذهب الف

قتل كيږي د ښځي په بدله كي او دا هم ليكل سوي وه چي د نفس وينه توييونه (يعني وژل) سل اوښان دي او پر خاوندانو د سرو زرو باندي زر

دينار وَفِي الْأَنْفِ إِذَا أُوعِبَ جَدْعُهُ الدِّيَةُ مائة من الابل وَفِي الاسنان الدِّيَةُ

ديناره دي او په پزه كي چي ټوله پرېكړل سي ديت سل اوښان دي او د ټولو غاښونو وينه توييونه پوره وينه توييونه سل اوښان دي

وَفِي الشَّفَتَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي الْبَيْضَتَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ وَفِي الصُّلْبِ الدِّيَةُ

او د شونډانو په پرېكولو باندي هم كامله وينه توييونه ده سل اوښان دي، او د خصي كولو كي هم پوره وينه توييونه (ديت) ده او ذكر پوره ديت دی او په پشت (د ملا ماتول) پوره ديت دی

وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي الرِّجْلِ الْوَاحِدَةِ نِصْفُ الدِّيَةِ وَفِي الْمَأْمُومَةِ ثُلُثُ

او د سترګو د ړندولو هم پوره ديت دی او په يوه پښه پرېكولو يا ماتولو نيم ديت دی او د سر په پوستكي پرېكولو او زخمي كولو باندي دريمه برخه

الدِّيَةِ وَفِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ وَفِي الْمُنَقِّلَةِ خَمْسَ عَشْرَةَ مِنَ الْإِبِلِ وَفِي كُلِّ

ديت دی او د نس په زخمي كولو باندي دريمه برخه ديت دی او كوم زخم چي د هډوكي د خپل ځای څخه ليري سي مات سي و نو پنځلس اوښان واجبوي

أُصْبُعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ وَفِي السِّنِّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ.

او د لاس او پښو د هري ګوتي د پرېكولو معاوضه لس اوښان دي او د هر غاښ معاوضه پنځه اوښان دي.نسائي او دارمي.

رواه النسائي والدارمي و في رواية مالك وَ فِي الْعَيْنَيْنِ خَمْسُونَ وَفِي الْيَدِ خَمْسُونَ وَفِي الرِّجْلِ خَمْسُونَ وَفِي الْمُوضِحَةِ خَمْسٌ.

او په روايت د مالک کي راغلي دي چي په سترګه کي پنځوس اوښان دي او په لاس کي پنځوس اوښان دي او په يوه پښه کي پنځوس دي او په زخم چي هډوکی ښکاره سي پنځوس اوښان دي. . (نسائي دارمي.

**تخريج**: سنن النسائي ٨\ ٥٧- ٥٨، رقم: ٤٧٩٨، والدارمي ١٢ ٢٥٣، رقم: ٢٣٦٦، ومالک في الموطا ٢\ ٨٤٩، رقم: ١.

**د لغاتو حل**: اعتبط: اى قتل بلاجناية (بې ګناه وژل). المامومة: اى التي تصل الى جلدة فوق الدماغ. (د دماغ سرپېره پوست). الجائفة: اى التي تصل الى جوف الراس او البطن او الظهر او الجفن. (دپوست دننه برخه). المُنقلة: وهي التي تنقل العظم بعد الشجة اى تحوله من موضعه. المُوضِحة: اى الجراحة التي ترفع اللحم من العظم. (هغه زخم چي خوښه د هډوکي څخه بېله سي).

**تشريح**: د نفس ديت سل اوښان دي : ددې مطلب دادی که چيري د قتل عمد په صورت کي د مقتول وارثان په قصاص کي قتلول نه غواړي بلکه هغه په ديت اخيستلو باندي راضي سي نو ديت واجبيږي مګر د قتل شبه عمد او قتل خطاء په کولو سره د قصاص سزا نه ورکول کيږي بلکه پر هغه باندي يوازي ديت واجب دی ، ديت د اوښانو په ذريعه هم ادا کيدای سي او د چا سره چي سره زر وي نو هغه دي زر ديناره او د چا سره چي سپين زر وي نو هغه لس زره درهمه ادا کولای سي مګر دلته پر قياس باندي په اکتفاء کولو سر د سپينو زرو ذکر نه دی سوی ددې مطلب دا نه دی د اوښانو او سرو زرو څخه پرته د سپينو زرو په ذريعه ديت ورکول کيږي نو هغه به مقبول نه وي بلکه مراد دادی چي د مقتول وارثانو او د قاتل په مينځ کي پر کوم شي چي اتفاق سي هغه به د ديت په توګه اخيستل او ورکول کيږي، د چا سره چي اوښان دي او هغه اوښان ورکول غواړي نو د هغه څخه دي اوښان واخيستل سي او څوک چي زر ورکول غواړي نو د هغه څخه دي زر واخيستل سي ، په دې باره کي د فقهي مسئله داده چي د دريم او دينار په باره کي د علماؤ اختلاف دی چي ايا په ديت کي درهم او دينار قبلېدای سي که يا ؟ ، د امام ابوحنيفة او امام احمد رحمة الله عليهما په نزد که چيري د ورکونکي سره اوښان وي مګر د هغه د زرو په صورت کي ديت ادا کول غواړي نو هغه زر اخيستل جائز دي مګر امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي د اوښان په موجودتيا کي د زر و په ورکولو سره دي د اوښانو څخه انکار نه کيږي مګر که چيري دواړه طرفه راضي وي نو بيا پروا نه سته.

او د دواړو سترګو د ايستلو ديت هم پوره ديت دی، معلومه دي وي چي د بدن د اندامو د پرېکولو يا د تاوان رسولو د ديت په باره کي اصل قانون دادی که چيري د بدن د اندامو جنس

منفعت بالكل ختم كړل سي يا هغه ښكلا بالكل له منځه ولاړه سي كوم چي د انساني بدن مقصد دى نو په داسي صورت كي پوره ديت واجبيږي ځكه چي دا يو ډول ځاني تاوان دى چي هغه ته د انساني عظمت په وجه د پوره تاوان درجه وركول كيږي ، تر دې زيات اصل دا دى چي رسول الله ﷺ هغه خاص اندامو چي د هغه په تاوان سره د انسان په ښكلا او جمال كي فرق راځي او د سړي د تخليق عظمت مجروح كوي لكه پزه، ژبه، ستركي او داسي نور نو د هغه د پوره ديت وركولو حكم يې فرمايلى دى بيا د دغه اصل څخه د نورو ډېرو فرعي مسئلو استنباط هم كيږي .

نقل سوي دي چي حضرت عمر رضي الله عنه پر يو داسي سړي باندي څلور ديتونه واجب كړي وه چي هغه يو سړي ته يو زخم رسولى وو مګر د هغه يوه زخم په وجه د هغه عقل ، د هغه اورېدل ، د هغه لېدل او د هغه وينا يعني څلور سره حواس زائل سوي وه او دا مسئله ده كه چيري يو سړى د يو چا ډېره وكاږي او بيا هغه را نه سي نو د هغه په وجه پر ډېره كښونكى باندي ديت لازميږي ځكه چي هغه په خپل دغه كار سره د انسان د مخ ښكلا ختم كړه ، همدارنګه د سر د وېښتانو هم دغه مسئله ده .

﴿٣٣٤٠﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ قَضٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه بيا د خپل نيكه څخه روايت كوي چي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَوَاضِحِ خَمْسًا خَمْسًا مِنَ الْاِبِلِ وَالْاَسْنَانِ خَمْسًا

رسول الله ﷺ حكم وكړ د هغه زخم ديت چي په هغه كي هډوكي د باندي راووځي پنځه اوښان دي او د هر يوه غاښ پنځه

خَمْسًا مِنَ الْاِبِلِ . رواه ابوداؤد والنسائي والدارمي و روى الترمذي وابن ماجة الفصل الاول.

پنځه اوښان دي .(ابوداؤد نسائي دارمي)او د ترمذي او ابن ماجه يوازي مخكنى جمله روايت كړې ده .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۶۹۵، رقم: ۴۵۶۶، والنسائي ۸\ ۵۷، رقم: ۴۸۵۲، والدارمي ۲\ ۲۵۵، رقم: ۲۳۷۲، والترمذي ۴\ ۷، رقم: ۱۳۹۰، وابن ماجه ۲\ ۸۸۶، رقم: ۲۶۵۵.

**تشريح**: که چيري دا سوال پيدا سي چي د ټولو غاښونو ديت سل اوښان دي نو بيا د يوه غاښ ديت پنځه اوښان ولي دي ؟ دا ځکه چي د ټولو غاښونو شمېر دودېرش يا اته ويشت دی او په دې اعتبار سره د يوه غاښ ديت خو درې اوښان کېدل پکار دي ؟ ددې جواب دادی چي دا ضروري نه ده چي شارع څومره احکام نافذ کړي وي عقل دي د هغه ټولو ادراک وکړلای سي ډېر احکام داسي دي چي په هغه کي د عقل دخل نه سته همدارنګه دا مسئله هم داسي ده چي د شارع حکم ورکول کافي او د واجب العمل کېدو معقوله وجه ده مګر د ديت په باره کي ځيني صورتونه داسي دي چي د شارع د حکم مطابق هم دي او عقلي هم دي لکه د سترګو ديت چي د دواړو سترګو ديت پوره دی او د يوې سترګي ديت نيم دی ، خلاصه دا چي د هر حکم او هري مسئلې بنياد يوازي د شارع حکم دی کوم حکم چي يې ورکړی دی په هغه عمل کول د عقل تر ټولو لويه تقاضا کېدل پکار دي .

## په ديت کي ګوتي برابري دي

﴿٣٣٤١﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ سَوَاء . رواه ابوداؤد والترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د لاسونو او د پښو ګوتي ټولي برابري ګرځولي دي . . (ابوداؤد ترمذي)

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۶۹۱، رقم: ۴۵۶۱، والترمذي ۵\۸، رقم: ۱۴۳۹۱.

﴿٣٣٤٢﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَصَابِعُ سَوَاءٌ وَالْأَسْنَانُ سَوَاءٌ الثَّنِيَّةُ وَالضِّرْسُ سَوَاءٌ هٰذِهٖ وَهٰذِهٖ سَوَاءٌ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ټولي ګوتي په ديت کي سره مساوي دي او مخامخ او نور غاښونه برابر دي او کوچنۍ ګوته او بټه ګوته سره برابري دي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۶۹۰، رقم: ۴۵۵۹.

## د ذمي کافر دیت نیم دی

﴿۳۳۴۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ خَطَبَ رَسُوْلُ اللهِ

حضرت عمرو بن شعیب رضی الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل نیکه څخه روایت کوي چې د مکې د فتحې په کال رسول الله ﷺ خطبه وویل

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ ثُمَّ قَالَ أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ لاَ حِلْفَ فِي الْإِسْلاَمِ

بیا یې و حاضرینو ته وفرمایل: اې خلکو !(کوم حلف چې د جاهلیت په زمانه کې وو یعنې د یو بل د وارث کېدو په معاهده کې یا نور) په اسلام کې هغه عهد نسته

وَمَا كَانَ مِنْ حِلْفٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّ الْإِسْلاَمَ لاَ يَزِيْدُه إِلاَّ شِدَّةَ الْمُؤْمِنُوْنَ

مګر د جاهلیت هغه عهد (چې په هغه کې د مظلوم مدد او د قریبانو سره چلن او د حقوقو د حفاظت معاهدې وې) اسلام هغه په ټینګه سره قائمې ساتلي دي

يَدٌ عَلٰى مَنْ سِوَاهُمْ يُجِيْرُ عَلَيْهِمْ أَدْنَاهُمْ وَيَرُدُّ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ يَرُدُّ

ټول مسلمانان د یوه لاس حکم لري د هغو خلکو په مقابله کې چې د دوی څخه پرته یعنې د کفارو وغیره یو معمولي مسلمان د ټولو مسلمانانو د لوري پناه ورکولای سي او رد کولای یې سي په هغوی کې هغه مسلمان چې ډېر له لیرې ځای او سېدونکي دي او د مسلمانانو لښکري

سَرَايَاهُمْ عَلٰى قَعِيْدَتِهِمْ لاَ يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ دِيَةُ الْكَافِرِ نِصْفُ دِيَةِ الْمُسْلِمِ

په هغه خلکو کې ناست دي ګرځي هیڅ مسلمان د هیڅ کافر په بدله کې نسي قتلېدای او د کافر د قتل دیت د مسلمان د دیت نیمائي دی د زکوة ټاروی ځان ته را غوښتل جائز نه دی او د

لاَ جَلَبَ وَلاَ جَنَبَ وَلاَ يُؤْخَذُ صَدَقَاتُهِمْ إِلاَّ فِيْ دُوْرِهِمْ . وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ دِيَةُ الْمُعَاهِدِ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ . رواه أبو داؤد .

ټاروی ډېر لیرې بېول هم جائز نه دی او د ټارویو زکات دی د هغوی د کورو ته په ورتلو سره واخیستل سي او په یوه روایت کې دي چې د معاهدې دیت د ازاد د دیت نیمائی دی . ابوداؤد

**تخريج**: ابوداود ۱۴\۶۷۰، رقم: ۱۵۹۱، واحمد في المسند ۱۲\۱۸۰.

**تشريح**: لا حلف في الاسلام : د حلف معنی ده عقد کول، د جاهليت په زمانه کي دا رواج وو چي خلکو به په خپل مينځ کي د يو بل سره عهد کوی چي موږ به د يو بل وارثان يو ، د جګړې په وخت کي به د يو بل مرسته کوو او که چيري په يو معامله کي پر يو کس باندي تاوان واجب سي نو دوهم به د هغه تاوان ورکوي ، رسول الله ﷺ د خپل ارشاد (لا حلف في الاسلام) په ذريعه دغه عهد منع کړ ځکه چي دا يو غير منصفانه او غير معقول رواج دی په اسلام کي ددې هيڅ ځای نه سته مګر د جاهليت په زمانه کي د عهد د دغه صورت موجود وو چي خلکو داسي ددې لپاره کول چي د مظلومو او خپلوانو سره يې ښه چلن کوی او د انساني حقوقو ساتنه او تائيد يې کوی دغه عهد او قول څرنګه چي په ټولنيزه بڼه د يو بل سره همدردي او مينه کولو يو غوره صورت دی ځکه نو رسول الله ﷺ د (ما کان من حلف ...) په ذريعه په اسلام کي دا جائز وګرځوی.

يرد سرايا هم علی قعيدتهم : دا په اصل کي د اولي جملې (ويرد عليهم واقصاهم) بيان او وضاحت دی ، ددغه عبارت تشريح د کتاب القصاص په دوهم فصل کي د حضرت علي ﷜ د روايت په څنګ کي سوې ده همدارنګه د (لا يقتل مؤمن بکافر) وضاحت هم ددغه حديث په تشريح کي سوی دی .

د کافر ديت د مسلمان د ديت نيمايي دی : دا د امام مالک ﷫ د مذهب دليل دی ، د امام شافعي ﷫ او د يوه قول سره سم د امام احمد ﷫ مذهب هم دادی چي د کافر ديت د مسلمان د ديت دريمه برخه دی، د امام اعظم ابوحنيفة ﷫ مذهب دادی چي د کافر ديت د مسلمان په ډول پوره ديت دی ، ښکاره دي وي چي دا ټول بحث د ذمي کافر په باره کي دی او د حربي کافر ديت بالکل نه سته .

په هدايه کي يو حديث نقل سوی دی چي هر ذمي چي د هغه سره د اسلامي امارت معاهده سوې وي تر څو چي هغه معاهد وي د هغه ديت به زر ديناره وي ، د دغه حديث نقل کولو څخه وروسته وضاحت سوی دی چي د حضرت ابوبکر، عمر او عثمان رضي الله عنهم عمل هم ددغه حديث سره سم راغلی دی مګر کله چي د امير معاويه ﷜ زمانه راغله نو ديت نيم کړل سو ، په هدايه کي د حضرت علي ﷜ دا قول هم نقل سوی دی چي ذمي ددې لپاره جذيه ورکوي چي د هغه وينه زموږ د ويني په ډول او د هغه مال زموږ د مال په ډول خوندي او مامون وي ، يعني صاحب د هدايې ددغه قولونو د نقل کولو څخه وروسته دا ثابته کړې ده چي د ذمي ديت هم د

مسلمان ددیت په ډول پوره دی ، هغه دا لیکلي دي چي د نورو صحابه کرامو څخه ددې پر خلاف چي کوم څه نقل سوي دي هغه ددغه مشهور او مستند آثارو او قولونو معارض کیدای نه سي .

لا جلب ولا جنب : ددې په باره کي په کتاب الزکوة کي په تفصیل سره بیان سوی دی، دلته په اجمالي توګه په دې پوه سئ چي د جلب معنی داده چي کله زکوة تر لاسه کونکی د څارویو اخیستلو لپاره ولاړ سي نو هغه دي په یو داسي ځای کي قیام وکړي چي د څارویو د مالکانو ځایونه لیري وي او هغوی ته دي حکم ورکړي چي د خپل څارویو سره هغه ته حاضر سي ، د جنب معنی داده چي د څارویو مالک دي د خپل څارویو په اخیستلو سره د زکوة تر لاسه کونکي د هستوګن ځای څخه لیري ولاړ سي او هغه ته دي ووایي چي هغه ته په رسیدو سره د زکوة څاروي دي تر لاسه کړي ، رسول الله ﷺ ددغه دواړو څخه منع وفرمایل ځکه چي په اول صورت کي د څارویو مالکانو ته تکلیف وي او په دوهم صورت کي زکوة تر لاسه کونکی ته تکلیف وي

لا یؤخذ صدقاتهم : دا په اصل کي د اولي جملې (لا جلب ولا جنب) د وضاحت او تاکید په توګه فرمایل سوي دي .

## د قتل خطا دیت

﴿۳۳۴۴﴾ : وَعَنْ خشْفِ بْنِ مَالِكٍ عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي دِيَةِ الْخَطَإِ عِشْرِينَ بِنْتَ مَخَاضٍ وَعِشْرِينَ بَنِي مَخَاضٍ ذُكُورًا وَعِشْرِينَ بِنْتَ لَبُونٍ وَعِشْرِينَ جَذَعَةً وَعِشْرِينَ حِقَّةً. رواه الترمذي وابو داؤد والنسائي والصحيح انه موقوف على ابن مسعود و خشق مجهول

خشف بن مالک د ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت کوي چي د خطاء د قتل دیت رسول الله ﷺ سل اوښان ټاکلي دي چي په هغو کي شل اوښي دوه کلني او شل اوښان دوه کلن او شل اوښي درې کلني او شل اوښي پنځه کلني او شل اوښي څلور کلني . (ترمذي ابو داؤد نسائي) او صحیح خبره داده چي دا حدیث په ابن مسعود رضی الله عنه باندي موقوفه دی او خشف یو داسي نامعلومه راوي دی

لا يعرف الا بهذا الحديث و روى في شرح السنة ان النبي ﷺ ودى قتيل

چي پرته د دې حديث څخه په بل حديث کي تعارف نسته او په شرح السنه کي دا روايت دي چي نبي کريم ﷺ د هغه سړي ديت چي

خيبر بمائة من ابل الصدقة و ليس في اسنان ابل الصدقة ابن مخاض انما فيها ابن لبون.

په خيبر کي په قتل رسېدلي وو سل اوښان د زکوة د اوښانو څخه ورکړل او په هغو اوښانو کي يو کلن اوښ نه وو بلکه دوه کلن اوښان وه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\ ۵، رقم: ۱۳۸۶، و ابوداود ۱۴\ ۶۸۰، رقم: ۴۵۴۵، والنسائي ۱۸\ ۴۳، رقم: ۴۸۱۶، شرح السنة ۱۰\ ۱۸۶، رقم: ۲۵۳۱.

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي د قتل خطاء په ديت کي چي کوم سل اوښان ورکړل سي هغه بايد پنځه ډوله وي، په دې باره کي څه اختلاف نه سته مګر د هغه په وېش کي اختلاف سته ، د امام ابو حنيفة رحمه الله په مذهب کي هغه سل اوښان بايد داسي ورکړل سي لکه څرنګه چي په حديث کي ذکر سوي دي مګر د امام شافعي رحمه الله په مذهب کي يوازي دومره فرق دی چي شل ابن مخاض (د يوه کال اوښانو) پر ځای شل ابن لبون (د دوو کالو اوښان) دي، په دې اعتبار د غه حديث د امام شافعي رحمه الله خلاف او د اما ابو حنيفة رحمه الله دليل دی، د شوافع له خوا په دغه حديث کي چي څه ويل سوي دي د هغه جواب ملا علي قاري رحمه الله په ډېر ښه ډول ورکړی دی ، د علم خاوندان يې د هغه په کتاب مرقاة کي کتلای سي، د هغه جواب د خلاصې په توګه دا په ذهن کي راولئ چي رسول الله ﷺ ذکر سوي سړي ته چي کوم ديت ورکړی وو هغه د وجوب يا د حکم په توګه نه وو بلکه رسول الله ﷺ محض د احسان په توګه ديت ورکړی وو.

د بغوي رحمه الله څخه چي کوم روايت نقل سوی دی د هغه مقصد د اول روايت ترديد دی چي په هغه کي د ابن مخاض اثبات دی او د بغوي رحمه الله په روايت کي د ابن لبون اثبات دی يعني دا د امام شافعي رحمه الله دليل دی، ملا علي قاري رحمه الله د دې جواب هم په ډېر ښه ډول ليکلی دی.

### د ديت بنياد پر اوښ دی

﴿۳۳۴۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَتْ قِيمَةُ الدِّيَةِ

عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل نيکه څخه روايت کوي چي د ديت د

عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ ثَمَانِيَةَ آلَافِ

اوښانو قيمت د رسول الله ﷺ په زمانه کي اته سوه ديناره يا اته زره درهمه وو

دِرْهَمٍ وَدِيَةُ أَهْلِ الْكِتَابِ يَوْمَئِذٍ النِّصْفُ مِنْ دِيَةِ الْمُسْلِمِينَ قَالَ فَكَانَ كَذَلِكَ

او د اهل کتابو ديت په هغه زمانه کي د مسلمانانو د ديت نيمائي وو د عمرو بن شعيب رضي الله عنه د

حَتَّى اسْتُخْلِفَ عُمَرُ فَقَامَ خَطِيبًا فَقَالَ أَلَا إِنَّ الْإِبِلَ قَدْ غَلَتْ قَالَ فَفَرَضَهَا

نيکه بيان دی چي د حضرت عمر رضي الله عنه تر خليفه کېدو پوري په دې عمل کيدی حضرت عمر رضي الله عنه
په خليفه کېدو سره وفرمايل: د اوښ قيمت ګران سوی دی د راوي بيان دی چي حضرت

عُمَرُ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ أَلْفَ دِينَارٍ وَعَلَى أَهْلِ الْوَرِقِ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا وَعَلَى أَهْلِ

عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کي په سره زر اېښودونکو باندي ديت زر ديناره مقرر کړل او په غني
سپينو زرو په خاوندانو باندي دولس زره درهمه

الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ وَعَلَى أَهْلِ الشَّاءِ أَلْفَيْ شَاةٍ وَعَلَى أَهْلِ الْحُلَلِ مِائَتَيْ حُلَّةٍ

او په غوايانو والاؤ باندي يې دوه سوه غوايان او په پسو والاؤ باندي يې دوه زره پسونه او په
جامو والاؤ باندي يې دوه سوه جوړې اېښې وې.

قَالَ وَتَرَكَ دِيَةَ أَهْلِ الذِّمَّةِ لَمْ يَرْفَعْهَا فِيمَا رَفَعَ مِنَ الدِّيَةِ. رواه ابوداؤد.

د راوي بيان دی چي حضرت عمر رضي الله عنه د ذميانو ديت هغه مقرر کړ کوم چي نبي کريم ﷺ تاکلی
وو. (ابوداؤد).

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\ ٦٧٩، رقم: ۴۵۴۲.

**تشريح**: ځيني حضرات وايي چي دا حديث ددې دليل دی چي د ديت بنياد پر اوښانو دی، په ديت کي د سرو زرو او سپينو زرو چي کوم مقدار بيان سوی دی دا په هغه زمانه کي د سلو اوښان د قيمت په حساب سره لګول سوی دی ځکه د قول جديد مطابق د امام شافعي رحمه الله مذهب دادی چي د قيمت د اختلاف په اعتبار په دغه دواړو مقدارو کي فرق کيدای سي.

ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي د جامې د جوړې څخه مراد يو لونګ او يو څادر دی .

په دې کي څه زياتوب ونه کړ ... : په دې باره کي علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي کله د مسلمانانو ديت دوولس زره درهمه وټاکل سو او د ذمي ديت هغه پاته سو کوم چي مخکي وو يعني څلور زره درهمه نو په دې اعتبار سره د يو ذمي ديت د يو مسلمان د ديت دريمه برخه سو . ددې څخه شوافع او د هغه پيروان استدلال کوي چي د ذمي ديت د مسلمان د ديت دريمه برخه دی حال دا چي د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په مذهب کي د ذمي ديت هغه دی کوم چي د يو مسلمان ديت دی .

شمني رحمة الله عليه ويلي دي چي په دې باره کي فقهي مسئله داده او په دې باندي عمل دی چي د سرو زرو ديت زر ديناره ، د سپينو زرو ديت لس زره درهمه او د اوښانو ديت سل اوښان دي مګر امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي د سپينو زرو ديت دوولس زره درهمه دی .

## د امام شافعي رحمة الله عليه مستدل حديث

﴿۳۳۴۶﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ جَعَلَ الدِّيَةَ اثْنَيْ عَشَرَ أَلْفًا . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دوولس زره درهمه ديت مقرر کړی وو . (ترمذي ابوداؤد نسائي دارمي)

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۶، رقم: ۱۳۸۸، وابوداود ۴\۶۸۱. رقم: ۴۵۴۶. والنسائي ۸\۴۴.

## ديت د مقتول د وارثانو حق دی

﴿۳۳۴۷﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه بيا د خپل نيکه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ به

يُقَوِّمُ دِيَةَ الْخَطَإِ عَلَى أَهْلِ الْقُرَى أَرْبَعَ مِائَةِ دِينَارٍ أَوْ عَدْلَهَا مِنَ الْوَرِقِ وَيُقَوِّمُهَا

د قتل خطا ديت په اخستونکو څلور سوه ديناره يا د دې مساوي قيمت سپين زر مقررولٰه

عَلَى أَثْمَانِ الْإِبِلِ فَإِذَا غَلَتْ رَفَعَ فِي قِيمَتِهَا وَإِذَا هَاجَتْ رُخْصًا نَقَصَ مِنْ

دا ديت به د اوښانو د قيمت موافق مقرر کېدی بيا چي د اوښانو قيمت به زيات سو نو د ديت قيمت به هم اضافه سو او چي د اوښانو قيمت به کم سو نو د ديت قيمت به هم کم سو

قِيمَتِهَا وَبَلَغَتْ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَيْنَ أَرْبَعِ مِائَةِ

او د نبي کريم ﷺ په زمانه کي د ديت رقم د ځلور سوه دينارو څخه بيا

دِينَارٍ إِلَى ثَمَانِ مِائَةِ دِينَارٍ وَعَدْلُهَا مِنْ الْوَرِقِ ثَمَانِيَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ قَالَ وَقَضَى

تر اتو سوو دينارو پوري رسېدلی وو او د دې سره مساوي د سپينو زرو رقم تر اتو زرو پوري د

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَهْلِ الْبَقَرِ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ وَعَلَى أَهْلِ الشَّاةِ

راوي بيان دی چي رسول الله ﷺ په غواؤ والاؤ باندي دوه سوه غواوي او په پسو والاؤ باندي

أَلْفَيْ شَاةٍ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَقْلَ مِيرَاثٌ بَيْنَ وَرَثَةِ

دوه زره پسونه مقرر کړي وه رسول الله ﷺ وفرمايل: ديت د مقتول دوارثانو ميراث دی او

الْقَتِيلِ وَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَنَّ عَقْلَ الْمَرْأَةِ بَيْنَ

عَصَبَتِهَا وَلَا يَرِثُ الْقَاتِلَ شَيْئًا . رواه ابوداؤد والنسائي .

رسول الله ﷺ حکم وفرمايې چي ديت دي د هغه عصبه تر مينځ تقسيم کړل سي او قاتل د هيڅ شی وارث نه دی (يعني د مقتول د مال څخه)(ابوداؤد نسائي) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۶۹۱، رقم: ۴۵۶۴، والنسائي ۸\۴۲، رقم: ۴۹۰۱.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د ديت بنياد پر اوښانو دی يعني ديت په اصل کي د اوښانو په صورت کي او د هغه په ذکر سوي شمېر کي واجب دی لکه څرنګه چي د قول جديد سره سم د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دی .

د ښځي ديت د هغې پر عصباتو دی: ددې مطلب دادی که چيري يو ښځه يو څوک قتل کړي نو د هغې ديت به د هغې پر عصباتو يعني د هغې پر مرسته کونکو او کورنۍ باندي وي لکه څرنګه چي د سړي په باره کي حکم دی ، يعني دلته دا واضح کول مقصد دي چي په دې باره کي ښځه د غلام په ډول نه ده لکه څرنګه چي د غلام ديت خپله پر هغه واجب دی د هغه پر

عصباتو واجب نه دي همدارنګه د ښځي ديت خپله پر هغې واجب نه دي بلکه د هغې پر عصباتو واجب دي.

## په قتل شبه عمد کي د مرګ سزا نه سي ورکول کيداى

﴿٣٣٤٨﴾: وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَقْلُ شِبْهِ الْعَمْدِ مُغَلَّظٌ مِثْلُ عَقْلِ الْعَمْدِ وَلَا يُقْتَلُ صَاحِبُهُ. رواه ابوداؤد.

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل نيکه څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: د قتل شبه عمد ديت تر قتل عمد سخت دي مګر د شبه عمد قاتل قتلولاى نسي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٤\٦٩٤، رقم: ٤٥٦٥.

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادى که چيري يو سړى يو څوک په طريقه د شبه عمد قتل کړي نو هغه دي په قصاص کي نه قتل کيږي، دا خبره ددغه شبهې ليري کولو لپاره فرمايل سوې ده چي د حديث د اولي جملې سره سم د قتل شبه عمد کونکى د قتل عمد د کونکي مشابه سو نو پکار ده چي څرنګه د قتل عمد کونکي ته د مرګ سزا ورکول کيږي همدارنګه د شبه عمد کونکي ته به هم د مرګ سزا ورکول وي نو دغه شبه ليري کړل سوه چي ددغه مشابهت دا مطلب بالکل نه دى چي هغه دي په قصاص کي قتل کړل سي.

## د زخمي سوي سترګي ديت

﴿٣٣٤٩﴾: وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَيْنِ الْقَائِمَةِ السَّادَّةِ لِمَكَانِهَا بِثُلُثِ الدِّيَةِ. رواه ابوداؤد والنسائي

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل نيکه څخه روايت کوي چي د کومي سترګي رڼا د چا د وهلو په وجه ضائع سي او هغه سترګه په خپل ځاى باندي قائمه وي نو د هغې ديت رسول الله ﷺ يوه پر دريمه برخه مقرر کړى دى. (ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: سنن ابي داود ٤\٦٩٤، رقم: ٤٥٦٧، والنسائي ٨\٥٥، رقم: ٤٨٤٠.

**تشريح**: مطلب دادى چي د چا سترګه زخمي کړل سي او د هغه په وجه د سترګي ديد ولاړ سي مګر سترګه د خپل ځاى څخه وتلې نه وي او د هغه د مخ په ښکلا کي خلل واقع سوې نه وي نو

پر زخم کونکي باندي د دیت دریمه برخه واجب دي او دا مخکي تېر سوي دي چي د دوارو سترګو د تلف کېدو په صورت کي پوره دیت واجب دی او که چیري یوه سترګه ضائع سي نو نیم دیت واجب دی.

ددغه حدیث شریف څخه دا ثابتیږي چي په ذکر سوي صورت کي د زخمي سوي سترګي دیت دریمه برخه دی او د ځینو علماؤ مذهب هم دادی مګر ځیني علماء په دغه صورت کي د عدل حکومت واجب ګرځوي ځکه چي هغوی وایي چي د زخم کولو دا هغه صورت دی چي په هغه کي منفعت بالکلیه زائل سوی نه دی نو ددغه دیت هم د هغه سړي کېدل پکار دي کوم چي وهل سوی دی او د هغه د وهلو په وجه (نه خو دهغه یو اندام تلف سوی دی او نه یو زخم ورته رسیدلی دی) بلکه د هغه د بدن رنګ تور سوی وي.

حکومت د دیت په باره کي یو اصطلاحي لفظ دی، ددې مفهوم دادی چي د مثال په توګه کوم څوک چي زخمي سوی دی که چیري هغه غلام وي نو د هغه د زخم په وجه د هغه په قیمت کي کمي واقع کیږي نو په هغه اندازه به د هغه سړي دیت پر زخمي کونکي واجب وي او ځیني علماء وایي چي دغه حدیث پر حکومت باندي محمول دی یعني رسول الله ﷺ دلته چي د دیت د دریمي برخي حکم فرمایلی دی هغه د حکومت په طریقه دی نه د قاعدې په توګه.

توربشتي رحمه الله ددغه حدیث په باره کي چي کوم بحث کړی دی هغه پر دې دلالت کوي چي ددغه حدیث په صحت کي کلام دی.

## د نس د کوچني دیت

﴿۳۳۵۰﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ ابْنَ عَمْرٍو عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَضَى

حضرت محمد بن عمرو رضي الله عنه د ابو سلمه رضي الله عنه څخه او هغه د ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت کوي چي

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنِينِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ أَمَةٍ أَوْ فَرَسٍ أَوْ

رسول الله ﷺ د نس د کوچني په بدله کي مینزه یا غلام یا اس یا قچره یې مقرر کړې ده. (د غُره څخه مراد بهترینه مینزه غلام یا آس یا

بَغْلٍ. رواه ابوداؤد وقال روى هذا الحديث حماد بن سلمة وخالد الواسطي عن محمد بن عمرو ولم يذكر او فرس او بغل. رواه ابوداؤد والنسائي.

غاتره ده).(ابوداؤد) دا حديث د حماد بن سلمه او خالد واسطي د محمد بن عمر څخه روايت کړی دی . (ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\٧٠٥، رقم: ۴٦٧٩.

**تشريح**: علامه نووي رحمه الله وايي چي غره يو ډېر ښکلي شي ته وايي مگر په دې باره کي د دغه لفظ اطلاق پر انسان باندي په دې اعتبار کيږي چي الله تعالى انسان په ښکلي صورت کي پيدا کړی دی.

د ځينو علماؤ قول دی چي په دغه حديث کي د غره په مفهوم کي فرس او بغل داخلول د راوي خپل وهم دی ځکه چي د غره اطلاق يوازي پر هغه انسان باندي کيږي چي هغه د يو چا مملوک وي يعني غلام يا مينزه وي .

## که ناپوه ډاکټر د مرګ سبب سي نو هغه به ضامن وي

﴿٣٣٥١﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَطَبَّبَ وَلَا يُعْلَمُ مِنْهُ طِبٌّ فَهُوَ ضَامِنٌ . رواه ابوداؤد والنسائي

عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چي خپل ځان طبيب (ډاکټر) ښائي او د هغه طبيب کېدل معلوم نه وي نو هغه د طيب په فن کي مهارت نه لري (د هغه د لاسه چي چاته تاوان و رسيږي)نو هغه به (د دې نقصان)ضامن وي . (ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\٧١٠، رقم: ۴۵٨٦، والنسائي ٨\۵٢، رقم: ۴٨٣٠.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو څوک د علم طب د فن څخه خبر نه وي او هغه د يو ناروغ درملنه وکړي او درملنه که د لاس په ذريعه وي لکه وينه کښل، عمليات کول او داسي نور وي او هغه ناروغ مړ سي نو په اتفاق سره د هغه ديت به د هغه پر عاقله واجب وي مگر هغه به په قصاص کي نه قتل کيږي ځکه چي په هر حال خپله د هغه ناروغ د اجازې او رضا سره به هغه د هغه علاج کړی وي .

## د ديت د معافولو يو واقعه

﴿٣٣٥٢﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ أَنَّ غُلَامًا لِأُنَاسٍ فُقَرَاءَ قَطَعَ أُذُنَ غُلَامٍ

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي د مسکينو خلکو يو هلک د شتمنو

لِأُنَاسٍ أَغْنِيَاءَ فَأَتَى أَهْلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا إِنَّا أُنَاسٌ فُقَرَاءُ فَلَمْ يَجْعَلْ عَلَيْهِ شَيْئًا . رواه ابوداؤد والنسائي .

خلکو د يوه هلک غوږ پرېکړ د مفسلو خلکو ډله د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او عرض يې وکړ موږ خو) يوه غريبه ډله يو نبي کريم ﷺ هغوی معاف کړه او په هغوی يې هيڅ مقرر نه کړه . (ابوداؤد نسائي .

**تخريج** سنن ابي داود ۴\۷۱۲، رقم: ۴۵۹۰، والنسائي ۸\۲۵، رقم: ۴۷۵۱.

**تشريح** که د يو هلک څخه يو جنايت (يعني يو ډول تاوان يا تکليف رسيدل) وسي نو د صحيح اعتبار د فقدان په وجه هغه جنايت د خطاء په حکم کي دی او د هغه تاوان به د هلک پر کورنۍ واجب وي ځکه که چيري يو هلک يو سړی قتل کړي نو هغه په قصاص کي نه سي قتل کيدای ، په حديث کي چي کومه واقعه بيان سوې ده په هغه کي د قاعدې په اعتبار د هلک پر کورنۍ باندي تاوان واجب کيدل پکار دي مګر که چيري د هلک کورنۍ غريب او مفلس وي او غريب او مفلس د تاوان متحمل کيدای نه سي ځکه رسول الله ﷺ د غوږ پرېکونکي هلک پر کورنۍ باندي ديت واجب نه کړ .

د حديث د ظاهري مفهوم څخه دا ثرګنديږي چي کوم هلک غوږ پرې کړی وو هغه ازاد وو ځکه که چيري هغه غلام وای نو د هغه جنايت او ديت به په خپله د هغه د ذات سره متعلق کيدی او د هغه د مالکانو فقير او مفلس کيدل به د هغه وجوب د هغه د ذات څخه نه ختمولای .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د قتل شبه عمد او قتل خطا ديت

﴿۳۳۵۳﴾: عَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ قَالَ دِيَةُ شِبْهِ الْعَمْدِ أَثْلَاثٌ ثَلَاثٌ وَثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثٌ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی د قتل شبه عمد ديت درې ډوله او بنان دي درو ديرش او بني چي څلورم کال يې پيل سوی وی او

وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً وَأَرْبَعٌ وَثَلَاثُونَ ثَنِيَّةً إِلَى بَازِلِ عَامِهَا كُلُّهَا خَلِفَاتٌ وفي رواية

د درو دیرشو اوښو چي پنځم کال یې پیل سوی وي او څلور دیرش اوښي چي شپږم کال یې پیل سوی وي د اتو کلو پوري چي نهم کال یې پیل سوی وي او دا ټولي به بلاربي وي په یوه بل روایت

قَالَ فِي الْخَطَإِ أَرْبَاعًا خَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً وَخَمْسٌ

کي داسي دي چي د قتل خطا څلور ډوله اوښان دي پنځه ویشت دري کلني پنځه ویشت څلور کلني

وَعِشْرُونَ بَنَاتِ لَبُونٍ وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بَنَاتِ مَخَاضٍ. رواه ابوداؤد.

پنځه ویشت دوه کلني او پنځه ویشت یو کلني او دا به ټولي اوښي وي. (ابوداؤد).

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۶۸۵، رقم: ۴۵۵۱.

﴿۳۳۵۴﴾: وَعَنْ مُجَاهِدٍ قَالَ قَضَى عُمَرُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ ثَلَاثِينَ حِقَّةً وَثَلَاثِينَ جَذَعَةً وَأَرْبَعِينَ خَلِفَةً مَا بَيْنَ ثَنِيَّةٍ إِلَى بَازِلِ عَامِهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت مجاهد رحمه الله څخه روایت دی چي حضرت عمر رضي الله عنه د شبه عمد په قتل کي دېرش اوښۍ دري کلنۍ او دېرش اوښۍ څلور کلنۍ او څلوېښت اوښي به بلاربي پوره پنځه کلنۍ یا پوره د اتو کلو مقرري کړی وی. (ابوداؤد)

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۶۸۵، رقم: ۴۵۵۰.

## د نس د کوچني دیت

﴿۳۳۵۵﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى

د حضرت سعید بن مسیب رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم

فِي الْجَنِينِ يُقْتَلُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ بِغُرَّةٍ عَبْدٍ أَوْ وَلِيدَةٍ فَقَالَ الَّذِي قُضِيَ عَلَيْهِ

د حاملې ښځي د کوچني د دیت چي د هغې په نس کي وي غلام یا مینزه مقرره کړې ده پر کوم سړي چي دا تاوان مقرر سوی وو هغه عرض وکړ چي د هغې د کوچني تاوان

كَيْفَ أَغْرَمُ مَا لَا شَرِبَ وَلَا أَكَلَ وَلَا نَطَقَ وَلَا اسْتَهَلَّ وَمِثْلُ ذٰلِكَ بَطَلَ فَقَالَ

څنګه ادا کړم چي هغه نه شی خوړلی او نه يې چنبلی وو ؟ نه يې خبره کړې ده او نه يې اواز ايستلی دی او د دې دول قتل خو ساقط کيږي (يعني په دې باندي هيڅ تاوان نسته)

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا هٰذَا مِنْ إِخْوَانِ الْكُهَّانِ . رواه مالك والنسائي مرسلا ورواه ابوداؤد عنه عن ابي هريرة متصلا .

رسول الله ﷺ وفرمايل: د دې څخه پرته زه څه ووايم چي دا سړی خو د کاهنانو ورور دی .(مالک نسائي مرسلا ابو داؤد دا حديث د ابو هريره رضي الله عنه څخه متصلا روايت کړی دی).

**تخريج**: مالک في الموطا ٢\٨٥٥، رقم: ٦ والنسائي ٨\٤٩، رقم: ٤٨٢٠.

**د لغاتو حل**: ولا استهل: معناه ما صاح و ما رفع صوته. (هغه چي ږغ وکړي). بُطل: ای هدر. ساقط سو.

**تشريح**: کاهن هغه سړي ته وايي چي د غيبو د پوهېدو دعوه کوي او خلکو ته د غيب خبري ښيي او هغه د خلکو د دوکه کولو لپاره د دروغو خبري بيانوي ، په حديث کي د ذکر سوي سړي هم خپل غلط خيال په ډېر مسجع الفاظو سره وړاندي کړی وو ځکه رسول الله ﷺ په دغه مناسبت سره هغه ته د کاهنانو ورور وويل مګر کوم چي حقيقت دی نو مطلق مسجع او مقفی عبارتونه په خپله مذموم (بد) نه دي بلکه د انسان د کلام د فصاحت او بلاغت او قابليت عکس وي ، خپله د رسول الله ﷺ د بيان انداز او کلام به ډېر مسجع او مقفی الفاظو سره مزين وو په خاصه توګه کومي دعاوي چي د رسول الله ﷺ څخه نقل سوي دي د هغه د الفاظو جامعيت د مسجع او مقفی عبارتونو غوره مثال دی لکه دغه دعاء : (اللهم اني اعوذبک من علم لا ينفع وقلب لا يخشع...) اې الله ! زه ستا پناه غواړم د هغه علم څخه چي نافع نه وي او د هغه زړه څخه چي بېرېدونکی نه وي، خلاصه دا چي هغه مسجع عبارت مذموم دی کوم چي په تکلف سره د ژبي او قلم څخه ادا سي او د هغه مقصد باطل ته رواج ورکول وي لکه څرنګه چي ذکر سوي سړي وويل.

شمني رحمه الله وايي چي په حديث کي د ذکر سوې مسئلې په باره کي فقهي مذهب دادی که يو سړی يوه حامله ښځه په نس کي ووهي او د هغه په وجه د هغې د نس کوچنی په مړ کېدو سره راووځي نو د هغه په ديت کي غره يعني پنځه سوه درهمه د قتل کونکي پر کورنۍ واجب دي ، هغه وايي چي زموږ علماء د غره څخه مراد پنځه سوه درهم اخيستي دي او دا ځکه چي په اکثره روايتو کي د غره وضاحت دا سوی دی او که چيري حامله ښځه په نس کي په وهلو سره ژوندی کوچنی يې پيدا سي او بيا مړ سي نو په دغه صورت کي پوره ديت واجبيږي .

# بَابُ مَا لاَ يُضْمَنُ مِنَ الْجَنَايَاتِ

## ( د کومو شیانو تاوان چي واجب نه وي د هغو بیان )

جنايات د جنايت جمع ده او معنى يې د قصور (كوتاهي) كول، جرم كول ، تر دې مخكي هغه بابونه تېر سوي دي چي په هغو كي د جناياتو سزاوي ، تاوان او د قصاص وغيره په باره كي حديثونه تېر سوي دي ، ددغه باب مقصد د جناياتو هغه صورتونه بيانول دي چي په هغه كي معاوضه او تاوان واجب نه وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حيوان وهلو، په کان کي ښخېدلو او په څاه کي لوېدلو تاوان نه سته

﴿٣٣٥٦﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَجْمَاءُ جُرْحُهَا جُبَارٌ وَالْمَعْدِنُ جُبَارٌ وَالْبِئْرُ جُبَارٌ . متفق عليه .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د حيوانانو زخمي كول (يعني چي يو حيوان پر بل حيوان يا انسان باندي حمله وكړي) معاف دي د كان زخمي كېدل معاف دي او په څاه كي د لويدو څخه مړكيدل او يا په څاه كي د كښينستلو هلاک كېدل معاف دي .مطلب دا چي يو سړی په خپله مځكه كي څاه وكاږي او بل څوک پكښي ولويږي نو د څاه پر مالک تاوان نسته . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\ ٢٥٤، رقم: ٦٩١٢، ومسلم ٣\ ١٣٣٤، رقم: ٤٥- ١٧١٠.

**د لغاتو حل**: جُبار: اى هدر (ساقط دى).

**تشريح**: كه يو حيوان يو سړی تر پښو لاندي كړي يا په ښكر او لكۍ سره يو څوک ووهي يا په خوله سره په چيچلو يې زخمي كړي او په هغه سره سړی مړ سي يا حيوان يو شي ته تاوان ورسوي او ضائع يې كړي نو د هغه هيڅ تاوان نه سته په شرط ددې چي د هغه حيوان سره يو څوک نه وي مګر كه چيري د حيوان سره يو څوک كتونكى وي يا پر هغه حيوان باندي يو څوک سپور وي او هغه حيوان يو شی ضائع كړي نو په دغه صورت كي د هغه حيوان سره چي كوم سړی وي پر هغه تاوان واجب دی دا د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله مذهب دی .

په دې باره کې د امام شافعي رحمه الله مذهب دا دی که چیرې حیوان د ورځې یو شی ضائع کړي نو د هغه پر مالک به هیڅ تاوان واجب نه وي مګر که چیرې یو حیوان د شپې یو شی ته تاوان ورسوي نو په دغه صورت کې به د حیوان پر مالک باندې تاوان واجب وي ځکه چې د شپې د حیوان ساتنه د هغه پر مالک لازم ده او د ورځې د خپل کښت، باغ او نورو شیانو ساتنه د هغو پر مالکانو لازم ده.

په هدایه کې لیکلي دي چې (د حیوان یو شي ته د تاوان رسولو په صورت کې) د حیوان پر شړونکي به د هغه شي تاوان واجب دي کوم چې د حیوان د لاس او پښو په ذریعه ضائع سوی وي او کوم څوک چې حیوان نیولی وي نو هغه به د هغه شي د تاوان ذمه دار دي کوم چې د حیوان د پښو په ذریعه نه بلکه یوازې د لاسو په ذریعه تاوان سوی وي او که چیرې یو داسې حیوان یو شی ضائع کړي چې پر هغه باندې یو څوک سپور وي نو پر هغه سپور باندې د هغه شي تاوان واجب دی کوم چې د هغه حیوان د لاس، پښو یا سر په ذریعه ضائع سوی وي او که چیرې تاوان کونکی یو داسې حیوان وي چې د هغه سره د هغه شړونکی یا ساتونکی هم وي او پر هغه سپور هم وي نو د هغه تاوان به پر دواړو واجب وي.

په کان کې لوېدل معاف دي: ددې مطلب دا دی که چیرې یو سړی یو کان ته ورسي یا پر هغه سربېره ودرېږي او بیا هغه کان ونړېږي چې د هغه په وجه هغه سړی هلاک سي نو پر هغه سړي باندې هیڅ تاوان واجب نه دی چا چې کان کښلی دی، یا یو مزدور یې د کان کښلو لپاره په مزدوري ولګوی او ناڅاپه هغه په کان کې ولویدی او مړ سو نو د کان پر مالک باندې هیڅ تاوان واجب نه دی، دا حکم یوازې د کان سره خاص نه دی بلکه دغه حکم د اجارې او مزدورۍ په نورو صورتو کې هم دی حال دا چې اول نوعیت یوازې د هغه صورت سره متعلق دی کوم چې د حدیث د آخري برخې (والبر جبار) یعني په څاه کې لوېدل معاف دي، مطابق وي، په څاه کې لوېدل معاف دي: ددې مطلب دا دی چې د مثال په توګه یو سړی په خپل مځکه یا په یو بل مباح ځای کې څاه وکاږي او بیا په هغه کې یو سړی ولوېږي او مړ سي نو پر څاه کښونکي باندې هیڅ تاوان واجب نه دی.

## په مدافعت کې تاوان نه سته

﴿۳۳۵۷﴾: وَعَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت یعلي بن امیه رضي الله عنه څخه روایت دی چې زه د رسول الله ﷺ سره و جګړې ته ولاړم په

| جَيْشَ الْعُسْرَةِ وَكَانَ لِي أَجِيرٌ فَقَاتَلَ إِنْسَانًا فَعَضَّ أَحَدُهُمَا يَدَ الْآخَرِ فَانْتَزَعَ |
|---|
| جيش عسره (د تبوک په غزا کي) زما يو نوکر وو هغه د يوه سړي سره جګړه وکړه او دواړو د يو بل لاس و چيچل په هغوی کي چي يوه د بل د خولې څخه خپل لاس را کش کړ |
| الْمَعْضُوضُ يَدَهُ مِنْ فِيِّ الْعَاضِّ فَانْدَرَ ثَنِيَّتَهُ فَسَقَطَتْ فَانْطَلَقَ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ |
| نو د هغه غاښ وغورځېدی بيا نبي کريم ﷺ ته راغی چي د هغې معاوضه ځيني واخلي نبي ﷺ |
| فَأَهْدَرَ ثَنِيَّتَهُ وَقَالَ أَيَدَعُ يَدَهُ فِي فِيكَ تَقْضَمُهَا كَالْفَحْلِ . متفق عليه. |
| د هغه غاښ ساقط کړ او ورته وه يې فرمايل: ايا هغه خپل لاس ستا په خوله کي پرېښبي وو؟ چي تا د اوښ په شان هغه چيچلي وو. (بخاري او مسلم). |

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\۴۴۳، رقم: ۲۲۶۵، ومسلم ۳\۱۳۰۱، رقم: ۲۳- ۱۶۷۴.

**د لغاتو حل**: الفحل: ای من الابل (اوښ).

**تشريح**: ايا هغه سړي خپل لاس ستا په خوله کي پرې ايښی دی ....: ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ د هغه د غاښونو د تاوان نه واجب کولو ته اشاره کړې ده چي د کوم چا په ذريعه ستا غاښونه وتلي دي هغه دي پر مدافعتي کاروايي باندي مجبور وي چي هغه په اصل کي د خپل لاس د ساتني لپاره ستا د خولې څخه را وايستی، په شرح السنه کي ليکلي دي چي همدارنګه که چيري يو سړی د يو ښځي سره بدکاري کول غواړي او هغه ښځه د خپل عزت ساتني لپاره پر هغه سړي حمله وکړي چي د هغه په نتيجه کي هغه سړی هلاک سي نو په دې وجه پر هغه ښځه باندي هيڅ نه واجبيږي، نقل سوي دي چي حضرت عمر ﷛ ته دا مقدمه راغلل چي يوې انجلۍ لرګي راوړل چي يو سړی په هغې پسې سو او د هغې سره يې بدکاري کول وغوښتل انجلۍ د خپل عزت په خطره کي ليدو سره يو ډبره پورنه کړه او هغه سړی يې په وويشتی چي هغه مړ سو، حضرت عمر ﷛ د هغه په باره کي دا فيصله وکه چي دا قتل په حقيقت کي د الله تعالی له خوا سوی دی (چي په دغه سزا ورکولو سره يې د يو پاک لمني انجلۍ عزت وساتی) قسم په خدای د هغه هيڅ ديت به نه ورکول کيږي، د امام شافعي ﷫ هم دا قول دی.

همدارنګه که چيري يو سړی د يو چا مال لوټ کولو، ويني تويولو او د هغه د کورنۍ تباه کولو اراده وکړي نو د هغه دفاع کول جائز دي، اول خو په دې پوه سئ چي داسي سړی د انسانيت سره

د هغه د ارادې او فعل څخه د منع کولو کوښښ دي وکړل سي مګر که هغه د قتل د ارادې څخه
نه نه کیږي او هغه د شر څخه د خوندي کېدو لپاره هغه ووژل سي نو د هغه قتل به معاف وي.

## د خپل مال ساتونکی که مړ سي نو شهید دئ

﴿۳۳۵۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ قُتِلَ دُونَ مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ. متفق عليه.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي څوک چي د خپل مال په حفاظت کي قتل سي هغه شهید دی. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۲۳، رقم: ۲۴۸۰، ومسلم ۱\ ۱۲۴، رقم: ۲۲۶- ۱۴۰.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري یو سړی د خپل مال او سامان ساتنه کوي او یو څوک هغه قتل کړي نو هغه شهید دی دا حکم د هغه سړي په باره کي هم دی کوم چي د خپل کورنۍ په ساتنه کي ووژل سي.

﴿۳۳۵۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ جَاءَ

د حضرت ابو هریره رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي یوه سړي عرض وکړ یا رسول الله ﷺ! که یو څوک

رَجُلٌ يُرِيدُ أَخْذَ مَالِي قَالَ فَلَا تُعْطِهِ مَالَكَ قَالَ أَرَأَيْتَ إِنْ قَاتَلَنِي قَالَ قَاتِلْهُ

زما مال په غلا سره (یا په زور سره) واخلي نو زه څه وکړم؟ هغه ته مال پرېږدم او که څه؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: چي خپل مال و هغه ته مه پرېږده (مه ورکوه) هغه عرض وکړ

قَالَ أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلَنِي قَالَ فَأَنْتَ شَهِيدٌ قَالَ أَرَأَيْتَ إِنْ قَتَلْتُهُ قَالَ هُوَ فِي النَّارِ. رواه مسلم.

که هغه زما سره جګړه کوله؟ (نو بیا زه څه وکړم؟) نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: ته هم ورسره جګړه وکړه عرض یې وکړ که چیري هغه ما قتل کړي؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: ته شهید یې عرض یې وکړ که زه هغه قتل کړم؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: نو هغه به په دوږخ کي دا خلیږي (او پر تا باندي هیڅ ګناه نسته). (مسلم).

**تخريج**: صحيح مسلم ١١\١٢٤، رقم: ٢٢٥ - ١٤٠.

**تشريح**: دغه حديث شريف مسلمانانو ته د خپل ځان، مال او عزت د ساتني لپاره د حمله كونكي سره په مېړانه د مقابلې كولو تلقين كوي او د الله تعالى د نامه اخيستونكو شعور ته دا احساس وركول دي چي د مسلمانانو حال داسي نه دی چي هغه د يو داسي سړي په مقابله كي د بې زړه توب او بزدلۍ ثبوت وركړي كوم چي د هغه مال لوټول غواړي او د هغه ژوند تباه كولو پسي لګيدلی وي بلكه يو مسلمان ته چي د ايمان او يقين او اعتماد على الله طاقت حاصل وي د هغه تقاضا داده چي د هغه حمله كونكي او فساد كونكي په پوره مېړانه سره مقابله وكړي او د ذلت پر ژوند باندي د عزت مرګ ته په ترجيح وركولو سره د شهادت مرتبه تر لاسه كړي او يا هغه حمله كونكی او فساد كونكي په ختمولو سره جهنم ته واستوي، دا حديث ددې دليل دی كه چيري قاتل او فساد كونكی مسلمان هم وي نو د هغه څخه دفاع كول او هغه په خپل دفاع كي وژل مباح دي.

## كور ته ننوتونكی زخمي كول معاف دي

﴿٣٣٦٠﴾: وَعَنْهُ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُوْلُ لَوْ اطَّلَعَ فِي بَيْتِكَ أَحَدٌ وَلَمْ تَأْذَنْ لَهُ خَذَفْتَهُ بِحَصَاةٍ فَفَقَأْتَ عَيْنَهُ مَا كَانَ عَلَيْكَ مِنْ جُنَاحٍ. متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي كه چيري يو سړي چي تا اجازه نه وي وركړې ستا په كور كي داخل سي او ته يې په يوه لړكي ووهي او د هغه څخه يې ستركه وچاؤ دي نو پر تا باندي هيڅ ګناه نسته. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢١٦، رقم: ٦٨٨٨، ومسلم١٢\١٦٩٩، رقم: ٤٤ - ٢١٥٨.

**تشريح**: امام شافعي رحمه الله د دغه حديث په ظاهري مفهوم باندي په عمل كولو سره پر داسي سړي باندي د ستركو تاوان ساقط كړی دی حال دا چي امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چي پر هغه به تاوان واجب وي، هغه د غه حديث پر مبالغه او سخت خبرداري باندي محمول كړی دی.

﴿٣٣٦١﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ اَنَّ رَجُلاً اِطَّلَعَ فِيْ جُحْرٍ فِي بَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

د سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړي د رسول الله ﷺ د دروازې په سوري كي وكتل

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و مع رسول الله صلى الله عليه وسلم مِدْرًى يَحُكُّ بِهِ رَأْسَهُ

د رسول الله ﷺ په لاس كي هغه وخت د شا د گرولو يوه اله وه چي په هغه سره يې سر مبارک گروی

فَقَالَ لَوْ أَعْلَمُ أَنَّكَ تَنْظُرُنِيْ لَطَعَنْتُ بِهِ فِي عَيْنِكَ إِنَّمَا جُعِلَ الِاسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ الْبَصَرِ . متفق عليه.

نبي كريم ﷺ وفرمايل: كه ما ته معلومه وای چي ته قصدا ماته گورې نو ما به په دې آلې باندي ستا په ستر گو گزار كړې وای د اجازت اخيستلو حكم خو د ستر گو لپاره دی (چي هغه چيري پر غير محرمي باندي ونه لگيږي). (بخاي او مسلم).

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۲۴۳، رقم: ۶۹۰۱، ومسلم ۳\۱۶۹۸، رقم: ۴۰- ۲۱۵۶.

**د لغاتو حل** مِدرى: شئ يعمل من خشب او حديد على شكل من اسنان المشط يسوي به الشعر.

**تشريح** ددې څخه ثابته سوه چي څرنگه چي بېله اجازې د يو چا په كور كي داخلېدل بد دي همدارنگه بېله اجازې د يو چا كور ته كتل هم بد دي ، علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي په دغه حديث كي دې ته اشاره ده كه يو سړی بېله قصده د يو چا په كور كي وگوري د مثال په توگه د يو چا د كور مخته په تېرېدو سره د هغه نظر كور ته ولاړ سي نو په دې سره څه بدي نه سته .

## ډبري غورځول منع دي

﴿۳۳۶۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ أَنَّهُ رَأَى رَجُلًا يَخْذِفُ فَقَالَ لَا تَخْذِفْ

د حضرت عبد الله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه يو سړی وليد چي ډبري يې ويشتلې هغه ورته وويل چي ډبري مه غورځوه

فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْخَذْفِ وَقَالَ إِنَّهُ لَا يُصَادُ بِهِ

ځكه چي رسول الله ﷺ د ډبرو ويشتلو څخه منعه كړې ده او ارشاد يې فرمايلي دی چي په

صَيْدٌ وَلَا يُنْكَأُ بِهِ عَدُوٌّ وَلٰكِنَّهَا قَدْ تُكْسِرُ السِّنَّ وَتَفْقَأُ الْعَيْنَ. متفق عليه.

داسي ډبرو ويشتلو باندي نه خو ښكار كولای سي او نه دښمن زخمي كولای سي بلكه په داسي ويشتلو باندي غاښ ماتيږي او ستر گه چووي . (بخاري او مسلم)

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۶۰۷، رقم: ۵۴۷۹، ومسلم ۳\۱۵۴۷، رقم: ۵۴- ۱۹۵۴.

**تشريح**: ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي رسول الله ﷺ د بېله قصده ويشتلو څخه ځکه منع فرمايلې ده چي په دې کي يو حکمت او ګټه نه سته البته د فتنې او فساد او جګړې پيدا کېدو بيره خامخا وي دا حکم د هر داسي عمل په باره کي دی په کوم کي چي دا خبره موجود وي .

**په ټولنه او بازار کي اسلحه په احتياط سره ساتئ**

﴿٣٣٦٣﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَرَّ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي چي څوک

أَحَدُكُمْ فِي مَسْجِدِنَا أَوْ فِي سُوقِنَا وَمَعَهُ نَبْلٌ فَلْيُمْسِكْ عَلَى نِصَالِهَا أَنْ يُصِيبَ أَحَدًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنْهَا شَيْءٌ . متفق عليه.

زموږ و مسجد و ته راځي او په بازارو کي تيرېږي او د هغه سره غشي وي نو توبري د غشو دي ونيسي د دې لپاره چي يو هم مسلمان ته ضرر و نه رسيږي .(بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\٢٤، رقم: ٧٠٧٥، ومسلم ٤\٢٠١٩، رقم: ١٢٤- ٢٦١٥.

**تشريح**: مطلب دا دی چي مسجدونه ، بازارونه او داسي ټول ځايونه چيري چي مسلمان جمع وي هلته وسله په ډېر احتياط سره ساتل پکار دي که غشی وي يا بله وسله وي لکه ټوپک، توپنچه، توره، نېزه او داسي نور شيان ، داسي نه وي چي په غلطۍ سره يو مسلمان د يو چا په وسله زخمي نه سي .

**په وسلې سره اشاره منع ده**

﴿٣٣٦٤﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُشِيرُ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اشاره دي نه کوي

أَحَدُكُمْ عَلَى أَخِيهِ بِالسِّلَاحِ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي لَعَلَّ الشَّيْطَانَ يَنْزِعُ فِي يَدِهِ فَيَقَعُ فِي حُفْرَةٍ مِنَ النَّارِ . متفق عليه.

په تاسو کي دي يو څوک د يوه مسلمان ورور په خوا په اسلحه باندي ځکه چي هغه ته نه ده معلومه شايد شيطان د هغه د لاس څخه اسلحه را وکاږي او په هغه بل باندي ولګيږي او بيا

هغه د هغه په سبب د دوږخ و کندي ته ولويږي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۳، رقم: ۷۰۷۲، ومسلم ۴\۲۰۲۰، رقم: ۱۲۶- ۲۶۱۷.

**تشريح**: شيطان په دا هڅه کي وي چي يو مسلمان دوکه سي او هغه په ګناه کي اخته کړي ځکه و فرمايل سول چي يو مسلمان وروړ ته په وسله سره اشاره مه کوئ داسي نه چي شيطان پر تاسو باندي اثر وکړي او هغه وسله په اشاره کولو سره پر هغه مسلمان ولګيږي او د هغه په وجه تاسو د دوږخ وړ وګرځئ .

﴿۲۳۶۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ اَشَارَ اِلٰى اَخِيْهِ بِحَدِيْدَةٍ فَاِنَّ الْمَلاَئِكَةَ تَلْعَنُهُ حَتّٰى يَضَعَهَا وَاِنْ كَانَ اَخَاهُ لِاَبِيْهِ وَاُمِّهِ . رواه البخاري.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د يوه مسلمان وروړ ولور ته په اوسپنه سره اشاره وکړي نو ملائکي پر هغه لعنت وايي تر هغه وخته پوري چي هغه اوسپنه نه وي ايښي اګر که هغه اشاره کونکي د هغه حقيقي وروړ وي . (بخاري) .

**تخريج**: لم نجده عند البخاري بل هو عند مسلم بلفظه ۴\۲۰۲۰، رقم: ۱۲۵- ۲۶۱۶.

**تشريح**: مطلب دا دى که چيري يو سړى خپل سکه وروړ ته په اوسپنه سره اشاره وکړي بلکه په مسخرو سره يې وکړي مګر ددې سربېره ملائکي پر هغه لعنت وايي، ددغه ارشاد مطلب يو مسلمان ته په وسله سره اشاره يا د اوسپني د پورته کولو څخه منع د مبالغې په توګه بيانول دي.

﴿۲۳۶۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَاَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ حَمَلَ عَلَيْنَا السِّلَاحَ فَلَيْسَ مِنَّا . رواه البخاري و زاد مسلم وَمَنْ غَشَّنَا فَلَيْسَ مِنَّا.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه او حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي پر موږ باندي اسلحه پورته کړي (که د مقابلې لپاره وي او که د مسخرو لپاره) هغه زموږ څخه نه دى . (بخاري )او د مسلم په روايت کي دا الفاظ زيات دي څوک چي موږ ته فريب راکوي هغه زموږ څخه نه دى .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۳، رقم: ۷۰۷۰، ومسلم ۱\۹۹، رقم: ۱۶۴- ۱۰۱.

﴿٣٣٦٧﴾: وَعَنْ سَلْمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَلَّ عَلَيْنَا السَّيْفَ فَلَيْسَ مِنَّا . رواه مسلم .

د حضرت سلمه بن اکوع رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي پر موږ توره را وکاږي هغه زموږ څخه نه دی. (مسلم)

**تخریج**: صحیح مسلم ١\٩٨، رقم: ١٦٢- ٩٩.

**په دنیا کي یو چا ته سخت عذاب ورکونکی به په اخرت کي خپله په عذاب کي وي**

﴿٣٣٦٨﴾: وَعَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ اَنَّ هِشَامِ بْنِ حَكِيمٍ مَرَّ بِالشَّامِ

حضرت هشام بن عروه رضی الله عنه د خپل پلار ه څخه روایت کوي چي هشام بن حکیم په شام کي ډېر

عَلَى أُنَاسٍ مِنَ الْاَنْبَاطِ وَقَدْ أُقِيمُوا فِي الشَّمْسِ وَصُبَّ عَلَى رُءُوسِهِمُ الزَّيْتُ

نبطیان ولیدل چي هغوي لمر ته درول سوي وه او پر سرونو یې تېل (زیتون) اچول سوي وه

فَقَالَ مَا هٰذَا قِيلَ يُعَذَّبُونَ فِي الْخَرَاجِ فَقَالَ هشام اشهد لسمعت رَسُولَ

هشام بن حکیم رضی الله عنه ورڅخه پوښتنه وکړه چي دا څه دي؟ نو ورته یې وویل د محصول یا خراج د نه ادا کولو په وجه دا سزا ورکول کیږي هشام وویل زه شاهدي ادا کوم چي ما د رسول الله ﷺ

اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ إِنَّ اللّٰهَ يُعَذِّبُ الَّذِينَ يُعَذِّبُونَ الناس فِي الدُّنْيَا . رواه مسلم

څخه دا اورېدلي دي چي الله جل جلاله به هغه خلکو ته سخته سزا ورکړي کوم چي په دنیا کي و خلکو ته عذاب ورکوي. (مسلم)

**تخریج**: صحیح مسلم ١٤\٢٠١٨، رقم: ١١٨- ٢٦١٣.

**تشریح**: یعني څوک چي یو مسلمان په دنیا کي په ناحقه په عذاب کي اخته کړي د مثال په توګه د لمر په ګرمی کي په درولو سره هغه پر هغه تاوده تېل یا بل شی اچوي نو الله تعالی به په آخرت کي هغه سړی د هغه شي په عذاب اخته کړي.

## د ظلم کوونکي پاى

﴿۳۳۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که ستا عمر زيات سو نو

إِنْ طَالَتْ بِكَ مُدَّةٌ أَنْ تَرَى قَوْمًا فِي أَيْدِيهِمْ مِثْلُ أَذْنَابِ الْبَقَرِ يَغْدُونَ فِي

ژر به يوه ټولۍ ووينې چي د هغوى په لاس کي د غوايانو د لکۍ په شان يو شى وي (يعني چلاخي) هغوى به په هغو چلاخو باندي خلک بېروي او وهي به يې او د ظالمانو به درباني

غَضَبِ اللّٰهِ وَيَرُوحُونَ فِي سَخَطِ اللّٰهِ. وفي رواية في لعنة الله. رواه مسلم.

کوي دا خلک به د الله جل جلاله په غضب کي سهار کوي او د خداى تعالى په غصه کي به ماښام کوي (يعني سهار او ماښام به د خداى تعالى لعنت ور باندي وي) او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي دا خلک به د خداى تعالى په لعنت کي وي. (مسلم).

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۱۹۳، رقم: ۵۳- ۲۸۵۷.

**تشريح**: د هغه خلکو څخه مراد هغه خلک دي چي د يو ظالم او جابر مرسته کونکى وي يا د هغه پر دروازه ولاړ وي او د هغوى مخته او شاته ولاړ وي او بيا د هغه ظالم په مرسته خلک بيروي، غريبان وهي او کمزورو ته ښکنځل کوي او د غريبو شريفو خلکو عزت تر پښو لاندي کوي او د ليوني سپي په ډول هر څوک داړي.

## د ناروا فيشن کونکو ښځو لپاره وعيد

﴿۳۳۷۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِنْفَانِ مِنْ أَهْلِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوزخيان دوه ډوله دي

النَّارِ لَمْ أَرَهُمَا قَوْمٌ مَعَهُمْ سِيَاطٌ كَأَذْنَابِ الْبَقَرِ يَضْرِبُونَ بِهَا النَّاسَ وَنِسَاءٌ

چي هغوى ته زه نه ګورم يو خو هغه خلک دي چي د هغوى سره د غوايانو د لکۍ په شان چلاخي وي چي په هغه سره خلک وهي او بل هغه ښځي چي

كَاسِيَاتٌ عَارِيَاتٌ مُمِيلَاتٌ مَائِلَاتٌ رُءُوسُهُنَّ كَأَسْنِمَةِ الْبُخْتِ الْمَائِلَةِ لَا يَدْخُلْنَ

په ظاهره یې کالي اغوستي وي مګر په حقیقت کي ښکاریږي (یعني ډیري نازکي جامې یې اغوستي وي)او د خلکو په زړونو کي خواهش پیدا کونکي ښځي او د نارینهؤ ولور ته خواهش لرونکي ښځي (یعني ډیري په فیشن سره او سپدونکي ښځي) د هغوی سر (یعني د سر ورېښتان به یې داسي پورته وي لکه د نجدي اوښ بوک)داسي ښځي به نه جنت ته ځي

الْجَنَّةَ وَلَا يَجِدْنَ رِيحَهَا وَإِنَّ رِيحَهَا لَتوجِدُ مِنْ مَسِيرَةِ كَذَا وَكَذَا . رواه مسلم

نه به د هغه بوي ويني حال دا چي بوی د جنت د ډیر لیري څخه پیدا کیږي او د جنت بوی به ور څخه دومره دومره لیري وي (تر ډیره مسافته پوري). (مسلم) .

**تخريج** صحیح مسلم ۱۴\ ۲۱۹۲، رقم: ۵۲- ۲۱۲۸.

**د لغاتو حل**: البُخت: البُختي من الجمال والانثى بختية جمعه بخت وبخاتي، جمال طوال الاعناق اى يعظمنها ويكبرنها بلف عصابع ونحوها. مرقات.

**تشريح**: مګر په حقیقت کي به لوڅ وي: دلته هغه ښځو ته اشاره ده چي دومره نازکي جامې اغوندي چي د هغوی بدن معلومیږي یا داسي جامې اغوندي چي د بدن یو برخه یې پټه او یو برخه یې بالکل خلاصه وي لکه څرنګه چي نن سبا رواج دی یا په پوړني سره د خپل نس او سینې پټولو پر ځای هغه په غاړه کي اچوي یا پر شا یې اچوي، په دغه ټولو صورتو کي په ظاهره خو ښځي جامې اغوستي وي مګر په حقیقت کي هغه لوڅه وي .

د دغه جملې څخه هغه ټولو صورتو ته اشاره کیدای سي چي په دنیا کي ډول ډول جامې اغوندي مګر د تقوا او عمل صالح د جامو څخه محرومي وي چي د تقوا او نیک عمل په وجه په آخرت کي د جنت د جامو وړ سي .

ممیلات او مائلات : ددې څخه مراد هغه ښځي دي چي د خپل سینګار او ښکلا په ذریعه خلک ځان ته مائل کوي او خپله هم خلکو ته مائلي وي ، یا د ممیلات څخه مراد هغه ښځي دي چي خپل پوړني د خپلو سرو څخه لیري کوي چي خلک د هغوی مخونه ویني ، د مائلات څخه مراد هغه ښځي دي چي په ناز او نواز سره ګرځي تر څو خلک پر عاشق سي .

د هغوی سرونه به د بختي اوښانو د بوک په ډول وي : ددې څخه مراد هغه ښځي دي چي د سر وېښتان پیچلي تړي او څرنګه چي د بختي اوښانو بوکونه د لوړوالي په وجه آخوا دېخوا ښوري همدارنګه د هغوی د سرونو وېښتان هم آخو دېخوا ښوري په دغه حدیث کي د ښځو د یو خاص ډلي ښوونه سوې ده چي د هغه وجود د رسول الله ﷺ په زمانه کي نه وو بلکه دا د رسول الله ﷺ

معجزه ده چي رسول الله ﷺ په راتلونكې زمانه كي د دغه ډول ښځو د پيدا كېدو خبر وركړ.

نه به په جنت كي داخليږي : دا د ښځو په باره كي فرمايل سوي دي د خلكو په باره كي دا سي خبره محض د اختصار په وجه نه ده فرمايل سوې د قاضي عياض رحمه الله د وينا مطابق د دغه جملې مطلب دا نه دی چي داسي ښځي به هيڅكله په جنت كي نه داخليږي بلكه مطلب دا دی چي كله نيكي ښځي په جنت كي داخليږي او د جنت بوی تر لاسه كوي نو هغه وخت به داسي ښځي په جنت كي نه داخليږي او نه به د جنت بوی تر لاسه كوي مګر د خپل سزا تر سره كېدو وروسته به دوی هم د جنت په سعادت سره ونازول سي يا دا چي دا خبره د هغه ښځو لپاره فرمايل سوې ده چي څوک د دغه شيان په حلال ګڼلو سره وكړي او دا هم ويل كيدای سي چي د دغه جملې څخه سخت زجر او خبرداري مراد دی.

## څوک پر مخ باندي مه وهئ

﴿٣٣٧١﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَاتَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَجْتَنِبِ الْوَجْهَ فَإِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ آدَمَ عَلَى صُورَتِهِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي په تا سو كي يو څوک و هل كوي نو په مخ دي يې نه وهي ځكه چي الله جل جلاله انسان په خپل شكل و صورت پيدا كړې دی. (بخاري او مسلم).

**تخريج** : صحيح البخاري (فتح الباري): ٥\١٨٢، رقم: ٢٥٥٩، ومسلم ٤\٢٠١٧، رقم: ١١٥- ٢٦١٢.

**تشريح** : آدم عليه السلام يې په خپل صورت كي پيدا كړی دی : د دې مطلب دا دی چي الله تعالى آدم عليه السلام په خپل صفت پيدا كړ او هغه يې د خپل صفاتو جلاليه او جماليه مظهر وګرځوی، يا دا مراد دی چي آدم عليه السلام يې پر هغه خاص صورت باندي پيدا كړي چي الله تعالى يوازي د انسانانو لپاره اختراع او پيدا كړی دی په دې اعتبار سره په خپل صورت د پيدا كولو اضافت، انساني شرف او اكرام ظاهرولو لپاره دي لكه څرنګه چي په (نفخت فيه من روحي) كي الله تعالى د روح اضافت ځان ته په فرمايلو سره د روح انساني عظمت او فضيلت ظاهر كړی دی او ځينو دا ويلي دي چي د صورته ضمير په اصل كي آدم عليه السلام ته راجع دی يعني آدم عليه السلام يې په هغه صورت كي پيدا كړ كوم چي د آدم عليه السلام سره مخصوص دی چي د ټولو مخلوقاتو څخه ممتاز دی او پر خصائص او كرامات باندي مشتمل دی.

همدارنګه د حدیث خلاصه به دا وي چي الله تعالی انسان ته پر ټولو مخلوقاتو باندي شرف ورکړی دی او د هغه په ټولو اندامو کي يې مخ اشرف او مکرم او د انساني صورت د کمال ظهور محل دی نو انسان پر مخ وهلو څخه ځان ساتل پکار دي، علماء کرام وايي چي دا حکم د استحباب په توګه دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### پر دي کور ته ننوتل او کتل

﴿۳۳۷۲﴾: عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَشَفَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي پورته کړي

سِتْرًا فَأَدْخَلَ بَصَرَهُ فِي الْبَيْتِ قَبْلَ أَنْ يُؤْذَنَ لَهُ فَرَأَى عَوْرَةَ أَهْلِهِ فَقَدْ أَتَى

د کور پرده مخکي تر دې چي هغه ته د پردې پورته کولو يا وکور ته د راتلو اجازه ورکړل سي او د هغه کور ښځي ووینی نو هغه

حَدًّا لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْتِيَهُ لَوْ أَنَّهُ حِينَ أَدْخَلَ بَصَرَهُ اسْتَقْبَلَهُ رَجُلٌ فَفَقَأَ

پر خپل ځان باندي شرعي حد واجب کړ د هغه دغسي راتلل او کتل روا نه دي او که هغه په کور کي په کتلو سره وکتل او د کور سړی د هغه و مخته راغی او هغه سړي یې پر سترګه وواهه

عَيْنَيْهِ مَا عَيَّرْتُ عَلَيْهِ وَإِنْ مَرَّ الرَّجُلُ عَلَى بَابٍ لَا سِتْرَ لَهُ غَيْرِ مُغْلَقٍ فَنَظَرَ

او ړوند يې کړی نو زه به سزا نه ورکوم او که يو څوک د يو چا د دروازې و مخ ته تيريږي چي پر

فَلَا خَطِيئَةَ عَلَيْهِ إِنَّمَا الْخَطِيئَةُ عَلَى أَهْلِ الْبَيْتِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

هغه باندي پرده نه وي او د هغه نظر د کور په وګړو باندي ولګيږي نو په هغه باندي هيڅ ګناه نسته قصور د کوروالاؤ دی .(ترمذي دا حديث غريب ګڼلي دی ) .

**تخريج** سنن الترمذي ٥\٦٠، رقم: ٢٧٠٧.

**تشريح**: د هغه لپاره دا هيڅکله جائز نه ده ...الخ: دا استيناف دى چي علت ته متضمن دى يعني دغه جمله يو بل عبارت شروع كوي چي د هغه مقصد د اول عبارت د مفهوم علت بيانول دي. دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي پر كورنى باندي واجب دي چي د خپل سراى دروازه بنده وساتي يا پر دروازه باندي پرده واچوي.

## بېله تيكي توره ګرځول منع دي

﴿۳۳۷۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُتَعَاطَى السَّيْفُ مَسْلُولًا . رواه الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي توره د تيكي څخه را كښل او بل چاته وركول رسول الله ﷺ د دې څخه منعه كړېده. (ترمذي ابوداؤد)

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷۰، رقم: ۲۵۸۸، والترمذي ۴\۴۰۳، رقم: ۲۱۶۳.

**تشريح**: د بې پوښه توري ساتلو څخه ځکه منع فرمايل سوې ده چي داسي نه هغه د لاس څخه په خلاصېدو سره پر يو چا ولګيږي يا خلک د هغه په لاس كي د لوڅي توري په لېدو سره په بيره كي نه سي.

## د تسمې په دوو ګوتو نيول

﴿۳۳۷۴﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يُقَدَّ السَّيْرُ بَيْنَ إِصْبَعَيْنِ . رواه ابوداؤد.

حضرت حسن رضي الله عنه د سمره رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ د تسمې په دوو ګوتو كي نيولو سره د څيرلو څخه منع فرمايلې ده (ځكه چي كيداى سي په دې سره ګوتو ته تاوان ورسيږي). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷۱، رقم: ۲۵۸۹.

**تشريح**: د دغه منع سبب دا دى چي په داسي ډول د تسمې په څېرلو سره ګوتي زخمي نه سي، دا حديث او د دې څخه مخكي حديث په دواړو كي ذكر سوې منعه تنزيهي ده او د شفقت او همدردى له مخي ده.

## د خپل دين، ځان، مال او اولاد ساتونکي شهيد دی

﴿٣٣٧٥﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

د حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

قُتِلَ دُونَ دِينِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ دَمِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ

د دين په ساتنه کي ووژل سي شهيد دئ، او څوک چي د خپل ځان په ساتنه کي ووژل سي هغه هم شهيد دئ او څوک چي ووژل سي

مَالِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ قُتِلَ دُونَ أَهْلِهِ فَهُوَ شَهِيدٌ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي .

د خپل مال په ساتنه کي هغه هم شهيد دئ او څوک چي د خپل کورنۍ په ساتنه کي ووژل سي هغه هم شهيد دئ . ترمذي، ابوداؤد او نسائي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۲، رقم: ۱۴۲۱، وابوداود ۵\ ۱۲۸، رقم: ۴۷۷۲، والنسائي ۷\ ۱۱۵، رقم: ۴۰۸۶.

**تشريح**: د دين په ساتنه کي د وژلو مطلب دادی چي د مثال په توګه د يو مسلمان په مخکي يو کافر يا مبتدع د هغه د دين سپکاوی او حقارت وکړي او هغه مسلمان د هغه سره په جګړه سي او ووژل سي نو هغه ته به د شهادت درجه تر لاسه کيږي .

د اکثرو علماؤ مذهب دادی چي د مثال په توګه يو سړی د زيد د مال د لوټ کولو اراده وکړي يا د هغه وژل وغواړي يا د هغه کورنۍ ته يو ډول تاوان رسولو قصد وکړي نو زيد ته پکار دي چي هغه د داسي خرابي اراده لرونکي مدافعت وکړي يعني اول خو دي هغه په ښه نرم انداز کي د هغه خرابي اراده څخه د منع کولو هڅه وکړي مګر که چيري هغه د جنګ څخه او د خپلي خرابي اراده څخه نه منع کيږي نو زيد هغه قتل کړي نو پر زيد باندي د تاوان په توګه هيڅ شی واجب نه دی او که چيري زيد قتل کړل سو نو هغه به د شهيد درجه تر لاسه کړي .

## پر مسلمان د توره راکښونکي وعيد

﴿٣٣٧٦﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِجَهَنَّمَ سَبْعَةُ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوږخ اووه

أَبْوَابٍ بَابٌ مِنْهَا لِمَنْ سَلَّ السَّيْفَ عَلَى أُمَّتِي أَوْ قَالَ عَلَى أُمَّةِ مُحَمَّدٍ . رواه

دروازې دي په هغو كي يوه دروازه هغه ده چي په هغه كي به هغه څوک داخليږي چي زما پر امت توره راوكاږي (يا رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمايل څوک چي د محمد ﷺ پر امت توره

الترمذي و قال هذا حديث غريب و حديث ابي هريرة الرجل جبار ذكر في باب الغضب.

راوكاږي) . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ ، د ابو هريرة حديث (الرجل جبار) په باب الغصب كي بيان سوى دى .

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٢٧٧، رقم: ٣١٢٣.

======

## بَابُ الْقَسَامَةِ (د قسم اخيستلو بيان)

قِسامت د ق په زور سره د قسم په معنى كي دى يعني قسم كول ، او په شرعي اصطلاح كي د قسامت مفهوم دادى كه د يو ابادي سيمي نژدې يو څوک قتل كړل سي او د قاتل معلومات نه كيږئ نو د وخت حكومت دي د دغه پيښي پلټنه وكړي كه چيري د قاتل معلومات وسي نو ښه خبره ده او كه نه نو بيا دي د هغه سيمي د پنځوسو كسانو څخه قسم واخيستل سي داسي چي په هغوى كي دي هر سړى دا قسم وكړي چي قسم په خداى ما نه دى قتل كړى او نه دده د قاتل په باره كي زه خبر يم ، دا د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دى ، ددې بنياد دغه مشهور حديث دى چي (البينة على المدعي واليمين على من انكر) چي ددغه باب په دريم فصل كي د حضرت رافع ابن خديج رضي الله عنه څخه نقل سوى روايت هم پر دې دلالت كوي .

د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما په نزد د قسامت مفهوم دادى چي په كومه سيمه كي يا يو سيمي ته نژدې يو مړى پيدا كړل سي كه چيري د هغه سيمي د اوسيدونكو او مقتول په مينځ كي يو دښمني سوې وي يا يو داسي نښه تر لاسه سي چي په هغه سره دا گمان غالب وي چي ددغه سيمي خلكو دا سړى قتل كړى دى لكه په هغه سيمه كي د مړي پيدا كېدل ، نو د مقتول وارثانو څخه دي قسم واخيستل سي يعني هغوى ته دي وويل سي چي هغوى دا

قسم وکړي چي قسم په خدای تاسو چي ددغه سیمي خلکو دا قتل کړی دی که یا؟ که د مقتول وارثان د قسم کولو څخه انکار وکړي نو بیا د هغه خلکو څخه قسم واخیستل سي پر چا چي د قتل شک وي، ددغه باب اول حدیث چي د حضرت رافع ﷺ څخه نقل سوی دی هغه هم پر دې دلالت کوي.

په قسامت کي قصاص واجب نه دی که څه هم د قتل عمد دعوا وي بلکه په دې کي دیت واجب دی که څه هم د قتل عمد دعوا وي یا د قتل خطاء دعوه وي مګر امام مالک رحمة الله علیه وایي که چیري د قتل عمد دعوه وي نو بیا د قصاص حکم نافذول پکار دي او د امام شافعي رحمة الله علیه پخوانی قول هم دادی.

د قسامت په باره کي باید دا خبره په ذهن کي چي د قسامت دغه طریقه د جاهلیت په زمانه کي هم رواج وه، رسول الله ﷺ دا طریقه جاري وساتل او ددې سره سم یې په انصارو کي د هغه مقتول فیصله وکړه کوم چي د هغه قتل هغوی د خیبر پر یهودیانو دعوه کړې وه.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**په قسامت کي د مدعی څخه قسم واخیستل سي که د مدعی علیه څخه**

﴿۳۳۷۷﴾: عَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ وَّ سَهْلِ بْنِ اَبِيْ حَثْمَةَ اَنَّهُمَا حَدَّثَا أَنَّ عَبْدَ اللّٰهِ

د حضرت رافع بن خدیج او سهل بن ابي حثمه څخه روایت دئ چي عبدالله

بْنَ سَهْلٍ وَمُحَيِّصَةَ بْنَ مَسْعُوْدٍ أَتَيَا خَيْبَرَ فَتَفَرَّقَا فِي النَّخْلِ فَقُتِلَ عَبْدُ اللّٰهِ

بن سهل او محیصه ابن مسعود خیبر ته راغلل او دواړه د خرماوو په درختو کي د یو بل څخه بیل سول، عبدالله بن سهل یو چا ووژئ،

بْنُ سَهْلٍ فَجَاءَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ بْنُ سَهْلٍ وَحُوَيِّصَةُ وَمُحَيِّصَةُ ابْنَا مَسْعُوْدٍ إِلَى

د سهل زوی عبدالرحمن او د ابن مسعود زامن حویصه او محیصه د

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَتَكَلَّمُوْا فِي أَمْرِ صَاحِبِهِمْ فَبَدَأَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ

نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او د مقتول په اړه یې خبري پیل کړې تر ټولو وړاندي عبدالرحمن خبري پیل کړې چي

وَكَانَ أَصْغَرَ الْقَوْمِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ ﷺ كَبِّرِ الْكُبْرَ قَالَ يَحْيَى بن سعيد يَعْنِي

تر ټولو کوچنی وو، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل د مشر د مشرۍ خيال وساته (يعني لومړی مشر ته د خبرو کولو موقع ورکړه) ددې حديث يو راوي يحيى بن سعيد وايي

لِيَلِيَ الْكَلَامَ الْأَكْبَرُ فَتَكَلَّمُوا فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ أَتَسْتَحِقُّونَ قَتِيلَكُمْ أَوْ قَالَ

د رسول الله ﷺ مراد ددې څخه دا وو چې په تاسو کي دي مشر خبري وکړي، نو هغوی خبري اتري وکړې، نبي کريم ﷺ دا وفرمايل: تاسو به د خپل مقتول يا د خپل ملګری د خون بها هغه

صَاحِبَكُمْ بِأَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَمْرٌ لَمْ نَرَهُ قَالَ

وخت وړلای سئ هر کله چي په تاسو کي پنځوس کسان قسم وکړي، هغوی عرض وکړ اې د الله رسوله! موږ ته ددي پېښي هيڅ علم نسته، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

فَتُبْرِئُكُمْ يَهُودُ فِي أَيْمَانِ خَمْسِينَ مِنْهُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ قَوْمٌ كُفَّارٌ

نو پنځوس يهوديان به قسم اخلي، نو هغوی به ستاسو د دعوې څخه خلاص سي، هغوی عرض وکړ اې د الله رسوله! هغوی خو کافران دي،

فَفداهم رَسُولُ اللهِ ﷺ مِنْ قِبَلِهِ وفي رواية تَحْلِفُونَ خَمْسِينَ يَمِينًا

ددې وروسته رسول الله ﷺ د خپل ځان څخه هغوی ته خون بها ورکړه او په يوه روايت کي د الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ دا وفرمايل تاسو پنځوس قسمونه واخلئ

وَتَسْتَحِقُّونَ قاتلكم او صَاحِبَكُمْ فَوَدَاهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د خپل مقتول د تاوان به بيا مستحق سئ، ددې وروسته رسول الله ﷺ

مِنْ عِنْدِهِ بِمِائَةِ نَاقَةٍ. متفق عليه. وهذا الباب خال عن الفصل الثاني.

د خپل ځان څخه سل اوښي په ديت کي ورکړې. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٥٣٥-٥٣٦، رقم: ٦١٤٢، ومسلم ٣\١٢٩٢، رقم: ٢-١٦٦٩

**تشريح** کوم څوک چي تر ټولو مشر وي هغه ددغه خبرو ذمه دار وي: ددې څخه دا خبره ثابته

سوه چي کوم څوک په عمر کي تر ټولو لوی وي د هغه اکرام او احترام ضروري دي او د خبرو شروع د هغه له خوا کېدل پکار دي.

دا حديث پر دې هم دلالت کوي چي په حدودو کي وکالت جائز دی او پر دې هم دلالت کوي چي د حاضر وکالت هم جائز دي کله چي مقتول ولي د هغه سکه ورور يعني عبد الرحمن ابن سهل ﷺ موجود وو او حويصه (رض) او محيصه (رض) د هغه د اکا زامن وو، ددغه حديث څخه دا مفهول اخيستل کيږي چي د قسامت مخکي دي د مدعی څخه قسم واخيستل سي حال دا چي حنفي مذهب دا دی چي مخکي دي مدعا عليه څخه قسم واخيستل سي.

**په دې باب کي دويم فصل نسته**

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د قسم پيل د مدعی عليه څخه کېدل پکار دي

﴿۲۳۷۸﴾: عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ أَصْبَحَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ مَقْتُولًا بِخَيْبَرَ

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د انصارو يو سړی په خيبر کي ووژل سو

فَانْطَلَقَ أَوْلِيَاؤُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ لَكُمْ

د هغه وارثان د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او پېښه يې بيان کړه، رسول الله ﷺ

شَاهِدَانِ يَشْهَدَانِ عَلَى قَاتِلِ صَاحِبِكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَمْ يَكُنْ ثَمَّ أَحَدٌ

پوښتنه وکړه ايا ستاسو دوه شاهدان سته چي ستاسو د مقتول په اړه شاهدي ورکړي، هغوی عرض وکړ اې د الله رسوله! هلته هيڅ

مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَإِنَّمَا هُمْ يَهُودُ وَقَدْ يَجْتَرِئُونَ عَلَى أَعْظَمَ مِنْ هٰذَا قَالَ

مسلمان موجود نه وو پاته سول يهود نو هغوی ددې څخه پر زيات جرئت لري، رسول الله ﷺ

فَاخْتَارُوا مِنْهُمْ خَمْسِينَ فَاسْتَحْلَفُوهُمْ فَأَبَوْا فَوَدَاهُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عِنْدِهِ. رواه ابوداؤد.

وفرمايل ښه ده تاسو په يهوديانو كي پنځوس كسه وټاكئ او د هغوى څخه قسم واخلئ، هغوى ددې څخه انكار وكړ نو رسول الله ﷺ د مقتول ديت د خپل لوري وركړ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\\۱۱۴ ٦٦١، رقم: ۴۵۲۴.

**تشريح**: ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي چي ددغه حديث ظاهري مفهوم د حنفيه ددغه مذهب واضح دليل دى چي په قسامت كي د مدعا عليه څخه قسم اخيستل كيږي . ملا علي قاري رحمة الله عليه په دغه ځاى كي د ټولو امامانو د مذهبو نقل كولو څخه وروسته د حنفيه مذهب دلائل په ډېره ښه طريقه سره بيان كړي دي.

======

# بَابُ قَتْلِ اَهْلِ الرِّدَّةِ وَالسُّعَاةِ بِالْفَسَادِ

## (د مرتد او فاسدو خلكو دوژلو بيان)

**مرتد چا ته وايي**؟ مرتد هغه سړي ته وايي چي د اسلام د دين څخه مخ واړوي يعني د ايمان او اسلام د نور څخه په وتلو سره د كفر او شرك په تيارو كي داخل سي.

**د مُرتد په باره كي حكم**: كله چي يو مسلمان (نعوذبالله) د اسلام څخه ووځي كه چيري هغه د اسلام په باره كي يو شك او شبه ښكاره كړي نو د هغه شك او شبهې دفع دي وكړل سي كه څه هم د اسلام دعوت وركول او د هغه شك او شبه ليري كول واجب نه دي بلكه مستحب دي ځكه چي د اسلام دعوت هغه ته مخكي رسيدلى دى اوس هغه ته د نوي دعوت ضرورت نه سته او مستحب دادي چي داسي سړى د درو ورځو لپاره بندي كړل سي كه چيري په دغه درو ورځو كي هغه توبه وكړي او بيرته اسلام ته راسي نو صحيح ده كنه نو هغه دي قتل كړل سي ځكه چي اسلام د مرتد سزا قتل ټاكلې ده، ځينو علماؤ ليكلي دي كه چيري هغه وخت وغواړي نو وخت دي وركړل سي كنه نو د وخت وركولو ضرورت نه سته مګر د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د وخت پر حكومت باندي د درو ورځو وخت وركول واجب دي كه څه هم د الله تعالى د ارشاد (اقتلوا المشركين) يعني مشركان قتل كړئ، او د رسول الله ﷺ د ارشاد (من بدل دينه فاقتلوه) يعني چا چي خپل دين بدل كړ هغه قتل كړئ ددې څخه ثابتيږي چي مرتد ته وخت وركول واجب نه دي.

**فساد كوونكى څوك دى**؟ د عنوان د دوهم جز تعلق د فساد كونكي سره دى، په عامه توګه فساد كونكى هغه خلكو ته وايي چي په مځكه كي فتنه، فساد او لوټ مار كوي او د قتل او ظلم

په ذریعه د خلکو امن او سکون له منځه وړي مګر دلته په خاصه توګه قطاع الطریق یعني لار وهونکی مراد دی چي د هغه سزا هم قتل ده لکه څرنګه چي د الله تعالی ارشاد دئ :

إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُواْ

ژباړه : کوم کسان چي د الله (ﷻ) او د هغه د رسول (ﷺ) سره جنګ کوي او په مځکه کي فساد پیدا کوي نو د هغوی سزا داده چي هغوی دي قتل کړل سي .

**د مرتد په باره کي یو څو مسائل او احکام** : نن سبا زموږ ورځنی ژوند د لویو لویو اعتدالو ښکار دی، نه خو موږ پر خپل ژبه واک لرو او نه د خپل عقیدې او نظریې په دائره کي په پوره توګه اوسیږو او زموږ افعال او اعمال د احتیاط پابند دي ، نتیجه داده چي داسي ډیري خبري زموږ د ژبو څخه وځي چي موږ یې په ظاهره بالکل بې وهمه ګڼو مګر په حقیقت کي هغه خبري موږ د کفر دائرې ته رسوي .

همدا رنګه داسي ډېر اعمال او کارونه زموږ څخه کیږي چي موږ یې معمولي ګڼو مګر هغه زموږ لپاره د آخرت د سخت تاوان سبب جوړیږي نو ضروري ده چي په دې باره کي یو څه وړاندي کړل سي :

د فتاوی عالمګیري په یو باب کي د مُرتد احکام او مسائل په ډېر تفصیل سره بیان سوي دي دغه پوره باب د یو څو نادر الوجود مسائلو څخه یو څو مسئلې دلته نقل کیږي ، دلته چي کومي مسئلې ذکر کیږي د هغو پېژندل د هر مسلمان لپاره ضروري دي چي د مرتد په باره کي د احکامو او مسائلو په پېژندو سره دا معلومه سي چي هغه کوم الفاظ دي چي په ژبه سره په ادا کېدو باندي سړی کفر ته رسوي یا هغه کوم عقائد او اعمال دي چي د هغه په کولو سره سړی کفر ته رسیږي .

مرتد په عامه اصطلاح کي هغه سړي ته وایي چي د اسلام د دین څخه وګرځي سره ددې چي د ایمان څخه وروسته د کفر کلمه په ژبه ادا کول د مرتد کېدو رکن دی او د مرتد حکم د صحیح کېدو لپاره د عقل کېدل شرط دی پر لیوني او بې عقل کوچني باندي د مرتد حکم لګول صحیح نه دی او پر کوم سړي چي د لیونتوب کیفیت په ځانګړې توګه خپور وي نو پر هغه باندي د مرتد حکم په هغه صورت کي لګیدای سي کله چي هغه د خپل صحیح دماغ په حالت کي مرتد سي که چیري هغه د لیونتوب په کیفیت کي مرتد سي نو پر هغه باندي د مرتد حکم نه سي کیدای همدا رنګه پر هغه سړي باندي هم د مرتد حکم لګول صحیح نه دی کوم چي هر وخت د نشې په حالت کي وي او د هغه عقل خراب سوی وي .

د مرتد د حکم جاري کېدو لپاره بالغ کېدل شرط نه دي يعني دا ضروري نه ده چي يو څوک په بلوغ کي مرتد سي نو هغه دي مرتد وګرځول سي بلکه پر نابالغ باندي هم د مرتد حکم کيداى سي همدارنګه نارينه توب هم د مرتد د حکم لپاره شرط نه دی بلکه ښځه که چيري مرتده سي نو پر هغې باندي هم د مرتد حکم کيږي .

د مرتد د حکم کولو لپاره رضا او رغبت شرط دی پر هغه سړي باندي د مرتد حکم نه سي کيداى کوم چي پر مرتد کېدو باندي مجبور سوى وي .

کوم سړي ته چي د برسام (د سينې د پاړسوب) ناروغي وي او پر هغه داسي حال راسي چي په هغه سره د هغه عقل ولاړ سي او هغه بې سوچه خبري کول شروع کړي او بيا په دغه حالت کي هغه مرتد سي نو پر هغه باندي هم د مرتد حکم نه سي کيداى همدارنګه کوم سړى چي ليونى وي يا وسواسي وي يا مغلوب العقل وي نو پر هغه باندي هم د مرتد حکم نه سي کيداى .

لکه څرنګه چي د باب په شروع کي بيان سوى دى چي کوم سړى مرتد سي هغه ته دي د اسلام دعوت ورکړل سي که چيري هغه ته يو شک او شبه وي نو هغه دي ليري کړل سي او بيا که چيري هغه په اسلام کي داخلېدل غواړي نو کلمه شهادت دي ووايي او د اسلام څخه پرته د نورو ټولو مذهبو څخه دي بيزاري اظهار کړي او که چيري د هغه مذهب څخه د بيزارۍ اظهار وکړي د کوم لپاره چي هغه د اسلام دين پرې ايښى وو نو دا هم کافي ده ، که چيري يو سړى د مرتد کېدو څخه وروسته بېرته اسلام ته راسي او بيا کفر ته ولاړ سي او همدارنګه درې واره وکړي او هر وار د وخت د حکومت څخه وخت وغواړي مګر د وخت پاچا هغه ته تر درو ورځو پوري وخت ورکړي مګر که چيري هغه په څلورم وار کفر ته ولاړ سي او وخت وغواړي نو اوس په څلورم وار دي هغه ته وخت نه ورکول کيږي بلکه په آخري وار که چيري هغه په اسلام کي داخل سي نو صحيح ده کنه نو قتل دي کړل سي .

که يو عاقل هلک مرتد سي نو د هغه مرتد کېدل د امام اعظم ابو حنيفة او امام محمد رحمة الله عليهما په نزد معتبر دي او هغه دي په اسلام کي پر داخلېدو باندي مجبور کړل سي مګر قتل کيږي دي نه ، دا حکم د هغه هلک دى چي هغه په دې پوهيږي چي اسلام د خلاصون ذريعه ده او هغه په ښه او بد کي او په خواږه او ترخه کي فرق کولاى سي ، د ځينو حضراتو په نزد دلته هغه هلک مراد دى چي عمر يې اووه کالو ته رسيدلى وي .

که چيري يوه ښځه مرتده سي نو هغه دي نه قتل کيږي بلکه تر څو پوري چي هغه مسلمانه نه سي هغه دي بندي کړل سي او هره دريمه ورځ دي د خبرداري په توګه وهل کيږي تر څو د خپل

ارتداد څخه په توبه کولو سره په اسلام کي داخله سي مگر که چيري يو سړي مرتده ښځه قتل کړل نو پر قاتل باندي هيڅ واجب نه دي ۰
که چيري يو مينزه مرتده سي نو د هغې مالک دي هغه پر اسلام راوړلو باندي داسي مجبوره کړي چي هغه دي په خپل کور کي بندي کړي او د هغې څخه د خدمت اخيستلو سره سره دي يو بل کار هم هغې ته حواله کړي مگر مالک دي د هغې سره کوروالي نه کوي ۰
د عاقلي انجلۍ هغه حکم دی کوم چي د بالغي انجلۍ حکم دی همدارنگه خنثی (نرښځی) هم د هغه ښځي په حکم کي دی ، که چيري ازاده ښځه مرتده سي نو هغه تر هغه وخته پوري د مينزي په توگه نه سي نيول کيدای تر څو چي هغه په دارالاسلام کي وي مگر که چيري هغه دارالحرب ته ولاړه سي او بيا د هغه ځای څخه د اسلامي لښکر په بنديانو کي راسي نو هغه مينزه کيدای سي ۰
د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه او نورو امامانو يو قول دادی چي مرتده په دارالاسلام کي هم د مينزي په توگه نيول کيدای سي ، ځيني علماء وايي که چيري پر دغه قول باندي د هغه ښځي په باره کي فتوا ورکړل سي کوم چي خاوند والا وي نو څه پروا نه سته بلکه مناسب دادي چي د ښځي خاوند د هغه وخت څخه د هغې د مينزي جوړولو خواست وکړي يا که چيري د هغې خاوند د هغې مصرف وي نو د وخت پاچا دي هغه ښځه خاوند ته تحفه کړي ۰
په دغه صورت کي به خاوند د هغه ښځي د بندي کولو او د اسلام راوړلو لپاره هغه د سزا په توگه د وهلو ذمه دار وي ۰
کله چي يو مرتد د خپل ارتداد څخه انکار وکړي نو د الله تعالی د وحدانيت او د حضرت محمد ﷺ د رسالت او د دين اسلام د حقانيت اقرار وکړي نو دا د هغه له خوا د توبې مظهر دی او په دغه صورت کي به هغه مسلمان گڼل کيږي ۰
کله چي يو سړی مرتد کيږي نو د هغه د مال څخه د هغه ملکيت زائل کيږي مگر د ملکيت زائل کېدل موقوف دي که چيري هغه سړي ته د توبې توفيق ور په برخه سو او هغه بيا مسلمان سي نو د هغه ملکيت هغه بيرته ورکول کيږي او که چيري هغه د ارتداد په حالت کي مړ سي يا قتل کړل سي نو د هغه هغه مال چي د اسلام په حالت کي يې گټلی وي د هغه مسلمان وارثان به يې حقدار وي او هغوی ته به د هغه مال هغه برخه ورکول کيږي کوم چي د اسلام په زمانه کي د هغه د پور وغيره ادا کولو څخه وروسته پاته سي او کوم مال چي هغه د ارتداد په حالت کي گټلی وي نو هغه به د پور د ادا کولو څخه وروسته غنيمت گڼل کيږي دا د امام اعظم ابو حنيفة

رحمۃ اللہ علیہ قول دی آو د صاحبينو يعني امام ابو يوسف او امام محمد رحمة الله عليهما په نزد د مرتد ملكيت نه زائل كيږي.

د مرتد د ميراث اخيستونكي په باره كي د امام اعظم ابو حنيفة رحمۃ اللہ علیہ مختلف قولونه دلته بيانيږي، امام محمد رحمۃ اللہ علیہ د امام ابو حنيفة رحمۃ اللہ علیہ څخه نقل كړي دي او دا قول زيات صحيح دي چي كله مرتد مړ سي يا قتل كړل سي يا دارالحرب ته د تښتېدو څخه وروسته د هغه مسلمانه ښځه هم د هغه د مال وارثه وي په شرط ددې چي هغه وخت (يعني د مرتد د وفات يا قتل كېدو په وخت كي) هغه ښځه په عده كي وي ځكه چي هغه مرتد د خپل ارتداد په ذريعه خپل ښځي ته د خپل ميراث وركولو څخه تېښته اختيار كړې وي نو د هغه ارتداد د مرض الموت په ډول سو لكه څرنګه چي يو سړی خپل ښځي ته د خپل مرض الموت په حالت كي طلاق مغلظه وركړي نو شريعت ددې سره سم چي د هغې خاوند هغه د خپل ميراث څخه محرومه كول غواړي ځكه شريعت د هغه ښځي د هغه ميراث حقداره ده، كه چيري يو ښځه مرتده سي نو د هغې د مرګ څخه وروسته د هغې خاوند د هغې د مال حقدار نه وي مګر كه چيري ښځه د ناروغۍ په حالت كي مرتده سي او بيا مړه سي نو د هغې خاوند به د هغې ميراث تر لاسه كوي همدارنګه ټول قريبان به د هغې د ټول مال وارث وي تر دې چي هغې د ارتداد په حالت كي كوم مال جمع كړی وي هغه به هم د هغې وارثانو ته وركول كيږي.

كه يو سړی مرتد سي او دارالحرب ته ولاړ سي يا د وخت پاچا هغه دار الحرب ته د تلو حكم وكړي نو د هغه مدبر غلام به ازاد سي او د هغه ام ولد به هم ازاده سي او د هغه چي كوم مال وركول وي هغه به سمدستي وركول وي او هغه چي په اسلام كي كوم مال پيدا كړی دی هغه به ټول د هغه مسلمان وارثانو ته وركول كيږي او كه چيري يو مرتد د اسلام په زمانه كي يو وصيت كړی وي نو د مبسوط وغيره په ظاهري روايت سره سم به هغه وصيت باطل وي يعني د هغه وصيت به نه پر ځای كيږي كه څه هم د هغه وصيت تعلق د يو قريب سره وي يا د پردي سره وي.

تر څو چي مرتد په دارالاسلام كي وي نو تر هغه وخته دي قاضي د هغه په باره كي په ذكر سوو حكمو كي يو حكم نه جاري كوي.

كوم څوک چي مرتد سي نو په معاملاتو او عقوداتو كي د هغه د تصرف څلور ډولونه دي:
اول تصرف دادی چي د ټولو په نزد په سمدستي توګه جاري كيږي لكه هغه ته يو شی په تحفه كي وركړل سي او هغه تحفه قبوله كړي يا هغه خپل مينزه ام ولد وګرځوي يا د هغه مينزه يو كوچنی راوړي او هغه مرتد د هغه كوچني د نسبت دعوی وكړي يعني دا ووايي چي دا زما

کوچنی دی نو د هغه کوچني نسبت به د هغه سره ثابت سي او هغه کوچنی به د هغه د نورو وارثانو په ډول د هغه د میراث حقدار وي او هغه مینزه چي د هغې څخه يې کوچنی پیدا سوی دی د هغه مرتد ام ولد به وي او د مرتد له خوا منل سوې شفعه به قبوله کړل سي همدارنګه که چیري مرتد خپل پر ماذون غلام باندې حجر نافذ کړي نو د هغه اعتبار به کیږي.

دوهم تصرف هغه دی کوم چي په اتفاق سره باطلیږي یعني د شریعت په نظر کي د هغه هیڅ اعتبار نه وي لکه نکاح کول که څه هم هغه مسلمانه وي یا مرتده وي یا ذمیه، حره او یا مملوکه وي همدارنګه د مرتد ذبیحه (حلال سوی څاروی) هم حرام دی او که چیري هغه په ښکار نیولی وي که څه هم ښکار یې د سپي په ذریعه نیولی وي یا د باز په ذریعه او یا د ټوپک، غشي او بل شي په ذریعه یې وژلی وي نو هغه به هم حرام وي.

دریم تصرف هغه دی کوم چي د ټولو په نزد موقوف دی لکه شرکت مفاوضت، که چیري یو مرتد د یو مسلمان سره شرکت مفاوضت وکړي نو د هغه حکم به موقوف وي که چیري هغه مرتد مسلمان سو نو هغه شرکت مفاوضه به هم نافذ سي او که چیري هغه د ارتداد په حالت کي مړ سي یا قتل کړل سي یا دارالحرب ته ولاړ سي نو په دغه صورت کي به شرکت مفاوضه د شروع څخه په شرکت عنان کي بدل سي، دا د صاحبینو مذهب دی مګر د امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه په نزد د مرتد شرکت مفاوضت نه باطلیږي.

څلورم تصرف هغه دی کوم چي د هغه په موقوف کېدو کي د علماؤ اختلاف دی لکه رانیول، پلورل، معاملات، اجاره کول، غلام ازادول، مدبر کول یا مکاتب کول، وصیت کول، قبض او داسي نور، د امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه قول دادی چي په دغه ټولو معاملاتو کي د مرتد تصرف موقوف دی که چیري هغه اسلام قبول کړي نو نافذ کیږي او که مړ سي یا قتل کړل سي نو دغه ټول تصرفات باطل کیږي.

د ارتداد په دوران کي د مکاتب ټول تصرفات نافذ کیږي همدارنګه که چیري یو سړی خپل مرتد غلام یا مینزه خرڅ کړي نو د هغه بیع جائز ده.

که یو مرتد د خپل ارتداد څخه په توبه کولو سره دارالاسلام ته بېرته راسي او دغه راتلل د قاضي له خوا د هغه دارالحرب ته د تللو د حکم څخه مخکي وي نو د هغه د مال او سامان په باره کي د هغه د مرتد کېدو حکم باطل دی او هغه داسي دی لکه چي مسلمان وو او نه د هغه ام ولد ازادیږي او نه د هغه مدبر ازادیږي او که چیري د هغه راتلل د قاضي د حکم څخه وروسته وي نو هغه چي د خپلو وارثانو سره خپل کوم تر لاسه کړي هغه دي ځیني واخلي او کوم مال او سامان

چې د هغه وارثانو د بيع، تحفې، عتاق وغيره په ذريعه د خپل ملکيت څخه ايستلې وي د هغه د غوښتنې حق هغه ته نه سته او نه د خپلو وارثانو څخه د داسې مال د بدلې اخيستلو حق سته.

کوم څوک چې د خپل مور او پلار په پيروۍ کې مسلمان وي يعنې هغه کوچنی وي او د خپل مسلمان مور او پلار په وجه د مسلمان په حکم کې وي او بيا په ارتداد سره بالغ سو که څه هم د قياس غوښتنه داده چې هغه دې قتل کړل سي مګر په دې باره کې د استحسان له مخې حکم دادی چې هغه دې نه قتل کيږي ځکه چې د بلوغ څخه مخکې هغه بالذات مسلمان نه وو بلکه د خپل مور او پلار په اتباع کې د مسلمان په حکم کې وو همدارنګه حکم د هغه سړي په باره کې هم دی کوم چې په کم عمر کې مسلمان سوی وي مګر کله چې بالغ سي نو مرتد سي، که يو څوک په زور سره د اسلام په قبلولو مجبور سوی وي او بيا هغه د اسلام څخه وګرځيږي نو هغه دې هم د استحسان له مخې نه قتل کيږي مګر په دغه ټولو صورتو کې حکم دادی چې هغه دې د اسلام پر قبلولو باندې مجبور کړل سي او که چيرې د اسلام قبلولو څخه مخکې يو چا قتل کړی نو پر قتل کونکې باندې هيڅ واجب نه دي.

لقيط هغه کوچني ته وايي چې په يو ځای کې پيدا کړل سي، که چيرې په دارالاسلام کې پيدا کړل سي نو د هغه د مسلمان کېدو حکم دې وکړل سي او که چيرې د کفر په حالت کې بالغ سي نو هغه دې د اسلام په راوړلو باندې مجبور کړل سي مګر قتل کيدای نه سي.

تر دې ځايه د مرتد په باره کې يو څو احکام او مسائل وه اوس يو څو نوري خبري بيانول ضروري دي چې د هغه کونکی کافر کيږي، په دې کې ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د ايمان او اسلام سره دی او ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د الله ﷻ د ذات او صفاتو سره دی، ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د علم او علماؤ سره دی، ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د حلال او حرام سره دی، ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د قيامت او داسي نورو شيانو سره دی او ځيني خبري هغه دي چې د هغو تعلق د کفر د تلقين کولو سره دی، دا يوه اوږده لړۍ ده ځکه نو دغه خبري يعني د کفر موجبات په ترتيب د بېل بېل عنوان تر لاندې بيانيږي:

**د کفر هغه موجبات چې د هغو تعلق د ايمان او اسلام سره دی** : د ايمان او اسلام په باره کې هغه خبري چې د هغو کونکې کافر کيږي دا دي:

١. که يو څوک داسې ووايي چې ما ته معلومه نه ده چې زما اسلام صحيح دی که يا نو دا يوه لويه غلطي ده مګر که چيرې د دغه خبري مقصد د خپل شک نفي کول وي نو بيا لويه خطاء نه ده.

۲. کوم څوک چي په خپل ایمان او اسلام کي شک وکړي او داسي ووايي چي آه مؤمن يم انشاء الله، نو هغه کافر کيږي مګر که چيري دا تاويل وکړي چي ما ته معلومه نه ده چي زه به د دغه دنيا څخه په ايمان سره ولاړ سم که يا ؟ نو په دغه صورت کي هغه نه کافر کيږي .
۳. کوم څوک چي داسي ووايي چي قرآن کريم مخلوق دی نو هغه کافر دی .
۴. کوم څوک چي دا عقيده ولري چي ايمان او کفر يو دی نو هغه کافر دی .
۵. کوم څوک چي پر ايمان باندي راضي او مطمئن نه وي نو هغه کافر دی .
٦. کوم څوک د خپل نفس پر کفر راضي سي نو هغه کافر دی .
۷. کوم څوک چي د خپل ځان څخه پرته د بل چا په کفر راضي سي نو د هغه په باره کي د علماؤ اختلاف دی او فتوا پر دې ده که چيري يو سړی د خپل ځان څخه پرته د بل چا په کفر د دې لپاره راضي سي چي کافر د همېشه لپاره په عذاب کي اخته وي نو هغه کافر نه دی او که چيري هغه د بل چا په کفر د دې لپاره راضي سي چي هغه د الله تعالی په حق کي د هغه شي اظهار وکړي کوم چي د هغه د صفاتو لائق نه وي نو هغه کافر کيږي .
۸. کوم څوک چي دا ووايي چي زه د اسلام صفت نه پيژنم نو هغه کافر سو ، شمس الائمه حلواني رحمة الله عليه دغه مسئله په ډېر سخت انداز کي بيان کړې ده ، هغه وايي چي داسي ويونکی يو داسي سړی دی چي د هغه نه دين سته ، نه لمونځ سته ، نه روژه سته ، نه طاعت سته ، نه عبادت سته او نه نکاح سته، او د هغه اولاد د هغه د زنا په نتيجه کي پيدا کيدونکي اولاد دی .
۹. يو مسلمان د يو عيسائي انجلۍ سره نکاح وکړي چي د هغې مور او پلار هم عيسائي وي او بيا هغه په دغه حال کي لويه سوه چي هغه يو مذهب او دين نه پيژني يعني نه خو هغه دين په زړه سره پيژني او نه يې په ژبه سره بيانولای سي او هغه ليونۍ هم نه وي نو په دغه صورت کي د هغې او خاوند په مينځ کي جلا والی راوستل کيږي .
۱۰. همدارنګه که چيري د يو مسلماني انجلۍ سره نکاح وکړي او بيا کله چي هغه د عقل په حالت کي بالغه سي نو هغه نه په زړه سره اسلام پيژني او نه يې په ژبه سره ادا کولای سي او هغه ليونۍ هم نه وي نو په دغه صورت کي به هم د هغې او خاوند په مينځ کي جلا والی راوستل کيږي .
۱۱. که د يو ښځي څخه پوښتنه وسي چي توحيد څه شي دی او هغه په جواب کي ووايي چي ما ته نه ده معلومه نو که چيري په دغه جواب سره د هغې مطلب دا وي چي زما د توحيد کلمه

په ياد نه ده نو په دې كې د هغې څه تاوان نه دی مگر كه چيري د هغې د جواب څخه مراد دا وي چي زه د الله تعالى وحدانيت نه پيژنم نو په دغه صورت كي هغه مؤمنه نه ده او د هغې نكاح به ماته وي .

۱۲. كه يو سړی په داسي حالت كي مړ سي چي هغه په دې نه پوهيدی چي زما خالق څوک دی، د هغه دكور څخه پرته د الله تعالى سره يو بل كور هم سته او دا چي ظلم حرام دی نو هغه مؤمن نه دی .

۱۳. يو سړی گناه كوي او وايي چي د گناه په ذريعه د خپل اسلام ظاهرول پكار دي نو هغه كافر دی.

۱۴. يو څوک بل چا ته ووايي چي زه مسلمان يم نو هغه په جواب كي وويل چي پر تا دي هم لعنت وي او ستا پر مسلماني دي هم لعنت وي نو هغه كافر سو .

۱۵. يو عيسائي اسلام قبول كړی او ددې څخه وروسته د هغه عيسائي پلار مړ سو او هغه ووايي چي كاش ! زه دا وخت مسلمان نه وای نو د خپل پلار مال به مي تر لاسه كړی وای نو هغه كافر سو .

۱٦. يو عيسائي يو مسلمان ته راسي او هغه ته ووايي چي ما ته د اسلام دعوت راكړه چي زه ستا په لاس اسلام قبول كړم ، هغه مسلمان په جواب كي ورته ووايي چي ته فلاني عالم ته ورسه چي هغه تا ته د اسلام دعوت دركړي او ته د هغه په لاس اسلام قبول كړه، د داسي ويونكي په باره كي د علماؤ اختلاف دی ، ابو جعفر رحمة الله عليه وايي چي داسي ويونكي كافر نه دی .

۱۷. يو كافر اسلام قبول كړي نو يو مسلمان هغه ته ووايي چي تا ته په خپل دين كي كومه خرابي معلومه سوه چي تا اسلام قبول كړی نو داسي ويونكی كافر كيږي .

**د كفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د الله ﷻ د ذات او صفاتو سره دی:**

۱. هغه سړی كافر كيږي چي الله تعالى ته د يو داسي وصف نسبت وكړي كوم چي د هغه د شان وړ نه وي يا د هغه د پاكو نومو څخه يو نوم يا د هغه د احكامو څخه د يو حكم سپكاوی وكړي يا د هغه د وعد او وعيد څخه انكار وكړي يا څوک د هغه شريک، زوی يا ښځه وگرځوي ، يا هغه ته د جهل يا عجز يا بلي خرابۍ نسبت وكړي نو داسي سړی هم كافر كيږي .

۲. كه يو څوک داسي ووايي كه الله تعالى ما ته د دغه كار يا خبري حكم راكړي نو بيا به هم زه هغه كار ونه كړم نو هغه سړی هم كافر كيږي .

۳. په قرآن کریم کي الله تعالی ته د ید (لاس) او وجه (مخ) نسبت سوی دی ایا په یو بله ژبه کي د دغه شیانو اطلاق جائز دی که یا؟ په دې باره کي ځیني علماء وایي چي جائز دی په شرط د دې چي د دغه شیانو څخه د هغه حقیقي مفهوم یعني اندامونه مراد نه وي، اکثر علماء کرام وایي چي دا جائز نه دي او همدا معتمد علیه قول دی.

۴. که یو سړی داسي ووایي چي فلانی سړی زما تر سترګو داسي دی لکه د الله تعالی تر سترګو یهودي نو د جمهورو علماؤ په نزد هغه سړی کافر کیږي ځکه چي هغه الله تعالی د سترګي اصل معنی یعني د یو انساني اندام نسبت کړی دی مګر ځیني حضرات وایي که چیري د دغه جملې ویونکي مراد د هغه سړي د افعالو خرابۍ بیانول مقصد وي نو نه کافر کیږي.

۵. یو سړی وفات سي او بل سړی ووایي چي خدای ﷻ ته داسي کول نه وه پکار نو دا کفر دی.

۶. یو سړی خپل دښمن ته ووایي چي زه د الله ﷻ په حکم سره ستا سره دا معامله کوم او دښمن په جواب کي ووایي چي زه د الله ﷻ حکم نه منم یا دا ووایي چي په دغه ځای کي د الله ﷻ حکم نه چلیږي، یا داسي ووایي چي په دې ځای کي هیڅ حکم نه سته یا داسي ووایي چي د الله ﷻ د حکم کولو وړ نه دی دغه ټولي جملې کفر لازموي، د حاکم عبدالرحمن رحمة الله علیه څخه د هغه سړي په باره کي پوښتنه وسوه کوم چي داسي ووایي چي زه فلانی کار د رواج سره سم کوم د الله ﷻ په حکم سره یې نه کوم نو ایا دا سړی کافر کیږي؟ هغه ورته وویل که د جملې څخه د هغه مراد د حق فساد او د شریعت پرېښودل او د رواج پیروي وي او د هغه مقصد د الله ﷻ د حکم رد کول نه وي نو هغه نه کافر کیږي.

۷. که یو څوک د داسي سړي په باره کي چي هغه هیڅکله نه ناروغ کیږي داسي ووایي چي الله ﷻ دغه سړی هېر کړی دی یا داسي ووایي چي دغه سړی د هغه خلکو څخه دی چي الله تعالی هیر کړي دي نو دا کفر دی.

۸. که یو سړی یو چا ته ووایي چي ستا د ژبي څخه خدای ﷻ هم خلاص نه دی نو زه به څرنګه در څخه خلاص سم نو هغه کافر کیږي.

۹. یو سړی خپل ښځي ته ووایي چي ته د الله ﷻ څخه هم ما ته زیاته محبوبه یې نو هغه سړی کافر کیږي.

۱۰. همدا رنګه داسي ویل چي فلانی سړی په خراب تقدیر کي راګیر سوی دی دا لویه غلطي ده

۱۱. د الله ﷻ د مکان (ځای) ثابتول کفر دی ، که یو سړی داسي ووایي چي د الله ﷻ څخه هیڅ ځای خالي نه دی نو هغه کافر کیږي .

۱۲. که یو څوک داسي ووایي چي الله ﷻ په آسمان کي دی نو که چیري دا خبره ددې مقصد لپاره کړې وي چي د هغه مقصد د هغه شي حکایت کول وي کوم چي په ظاهري توګه سره منقول دی نو نه کافر کیږي او که چیري د هغه مقصد الله ﷻ ته د مکان نسبت کول وي نو بیا کافر کیږي ، د اکثرو علماؤ که چیري د هغه هیڅ نیت نه وي نو کافر کیږي،

۱۳. همدارنګه که یو څوک ووایي چي الله ﷻ د انصاف لپاره کښېنستی یا د انصاف لپاره ودریدی ځکه چي په دغه جمله کي الله تعالی ته د فوق او تحت نسبت سوی دی.

۱۴. همدارنګه داسي ویل هم کفر دی چي زما حامي او مرستیال پر آسمان باندي الله ﷻ دی او په مځکه کي فلانی سړی دی .

۱۵. د اکثرو علماؤ په نږد داسي ویل هم کفر دی چي الله ﷻ تر آسمان لاندي ګوري یا یوازي داسي ووایي چي الله ﷻ د آسمان څخه ګوري یا داسي ووایي چي الله ﷻ د عرش څخه ګوري .

۱٦. کوم څوک چي الله ﷻ ته د ظلم نسبت وکړي نو هغه کافر سو .

۱۷. که یو څوک داسي ووایي چي اې الله ! دا ظلم مه خوښوه نو د ځینو علماؤ په نزد هغه کافر کیږي .

۱۸. همدارنګه که یو سړی بل سړي ته داسي ووایي که د قیامت په ورځ الله تعالی انصاف وکړ نو زما سره به تر تا انصاف وکړي نو هغه کافر کیږي، مګر که چیري د که لفظ پر ځای کوم وخت وویل سي نو نه کافر کیږي .

۱۹. که یو څوک داسي ووایي که الله تعالی د قیامت په ورځ په حق او عدل سره حکم وکړ نو زه به ستا څخه خپل حق واخلم نو په داسي ویلو سره هم سړی کافر کیږي .

۲۰. که یو څوک داسي ووایي چي اې الله ! کله چي یو ظالم ظلم کوي نو د هغه ظلم مه قبلوې که تا د هغه ظلم قبول کړی نو زه یې نه قبلوم نو داسي ویل هم کفر دی ځکه چي هغه سړي داسي وایي چي اې الله ! که ته د هغه په ظلم راضي یې نو زه په راضي نه یم.

۲۱. یو څوک یو چا ته ووایي چي درواغ مه وایه ، هغه سړی په جواب کي ووایي چي درواغ د څه لپاره دي ؟ د ویلو لپاره خو دي نو داسي ویل هم کفر دی .

۲۲. یو چا ته وویل سي چي د الله ﷻ رضا وغواړه، هغه ووايي چي زما نه ده پکار، یا یو څوک ووايي که الله ﷻ ما په جنت کي داخل کړي نو برباد به یې کړم، یا یو چا ته وویل سي چي د الله تعالی نافرماني مه کوه ځکه که ته نافرماني وکړې نو الله تعالی به تا په دوږخ کي داخل کړي، هغه ووايي چي زه درواغ نه پرېږدم، یا یو چا ته وویل سي چي زیات خوراک مه کوه ځکه چي الله تعالی به دي صحیح نه ساتي هغه ووايي چي زه خو به یې خورم که څه هم دښمن مي ساتي یا دوست مي ساتي نو دا ټولي جملې کفر لازموي.
۲۳. همدارنګه که یو چا ته وویل سي چي زیات مه خانده، یا زیات مه بېده کیږه او هغه په جواب کي ووايي چي زه به دومره خورم، دومره به بېده کیږي او دومره به خاندم څومره چي زه غواړم نو دا کفر دی.
۲۴. که یو چا ته وویل سي چي ګناه مه کوه ځکه چي د الله تعالی عذاب ډېر سخت دی او هغه ووايي چي زه به عذاب په یوه لاس کي پورته کړم نو دا کفر دی.
۲۵. که یو چا ته داسي وویل سي چي خپل مور او پلار مه تنګوه او هغه ووايي چي پر ما باندي د هغوی حق نه سته نو دا که څه هم کفر نه دی مګر د سختي ګناه خبره ده.
۲٦. که یو سړي ابلیس لعین ته ووايي چي اې ابلیسه! ته زما فلانی کار وکړه زه به ستا خبره ومنم او خپل پلار به تنګ کړم او ته چي د کوم شی څخه منع کوې د هغه څخه به منع سم نو دا کفر دی.
۲۷. که یو څوک یو چا ته ووايي که الله ﷻ دغه دواړه جهانه نه جوړولای نو ما به ستا څخه خپل اخیستی وای نو دا کُفر دی.
۲۸. یو سړی یو درواغ خبره وکړي او یو اوریدونکی ووايي چي زما خدای دي ستا درواغ ریښتا کړي یا داسي ووايي چي خدای دي ستا په درواغو کي برکت واچوي نو دا خبره کفر ته نژدې ده.
۲۹. همدارنګه یو سړی درواغ ووايي او اوریدونکي ورته ووايي چي خدای دي ستا په درواغو کي برکت واچوي نو دا کفر دی.
۳۰. یو سړی یو چا ته ووايي چي فلانی سړی ستا سره سم نه چلیږي او هغه په جواب کي ورته ووايي چي دده سره خو خدای هم سم نه چلیږي نو داسي ویونکی کافر دی.
۳۱. که یو څوک ووايي چي د الله تعالی زر خوښ دي هغه ما ته زر را نه کړل نو هغه کافر کیږي په شرط ددې چي د ویلو څخه د هغه مقصد الله تعالی د بخل نسبت کول وي مګر که چیري هغه داسي وویل چي الله تعالی زر خوښوي نو دا کفر نه دی.

۳۲. يو څوک يو چا ته ووايي چي انشاء الله تعالی ته دا کار وکړه ، هغه په جواب کي ورته ووايي چي زه د انشاء الله تعالی څخه پرته دا کار کوم نو دا کفر دی .

۳۳. يو مظلوم ووايي چي زما سره څه کيږي هغه د الهي تقدير مطابق دي، ظالم ددې په اوريدو سره ووايي چي زه چي څه کوم د تقدير څخه پرته يې کوم نو دا کفر دی.

۳۴. که يو څوک داسي ووايي چي اې خدايه ! پر ما باندي د رحمت کولو څخه منع مه کوه نو دا د کفريه الفاظو څخه دی .

۳۵. ښځه او خاوند په خپل مينځ کي يو خبره کوي، د ښځي له خوا چي خبري اوږدې سي و خاوند ورته ووايي چي د خدای ﷻ څخه وبېرېږه او تقوا اختيار کړه، ښځه په جواب کي ووايي چي زه د الله ﷻ څخه نه بېرېږم نو په داسي ويلو سره ښځه مرتده کيږي او د دواړو په مينځ کي جلاوالی واقع کيږي په شرط ددې چي خاوند خپل ښځه د هغې پر صريح معصيت ترټلې وي او هغه يې د خدای ﷻ څخه بېرولې وي او د هغه په جواب کي ښځي ذکر سوې جمله ويلې وي مګر که چيري خاوند خپل ښځه د هغې په يو داسي خبره ترټلې وي چي په هغه کي د الله تعالی څخه د بېرېدو موقع نه وي يعني ښځي يو ګناه نه وي کړې نو په دغه صورت کي هغه نه کافره کيږي البته که چيري په دغه صورت کي هم ددغه جملې څخه د ښځي مقصد د خوف خدا او تقوا سپکاوی وي نو د دواړو په مينځ کي جلاوالی واقع کيږي.

۳۶. يو څوک د يو چا د وهلو اراده وکړي او هغه ته ووايي چي ايا ته د خدای ﷻ څخه نه بيريږي؟ هغه ورته ووايي چي يا نو دا کفر نه دی ځکه چي هغه ته دا حق حاصل دی چي هغه ووايي چي د خدای ﷻ څخه د بېرېدو سوال په هغه شي کي پيدا کيږي کوم چي هغه زه وکړم.

۳۷. يو څوک ګناه کوي او بل څوک يې وترټي او ورته ووايي چي ايا ته د خدای ﷻ څخه نه بيريږي ؟ نو هغه په جواب کي ورته ووايي چي يا نو هغه کافر کيږي ځکه چي دلته د هيڅ يو تاويل ځای نه سته .

۳۸. همدارنګه يو سړي ته وويل سي چي ايا ته د خدای ﷻ څخه نه بېرېږې او هغه د غصې په حالت کي جواب ورکړي چي يا نو هغه کافر کيږي .

۳۹. که يو څوک د الله ﷻ حکم يا د پيغمبر ﷺ شريعت خوښ نه کړي د مثال په توګه زيد بکر ته ووايي چي الله ﷻ څلور ښځي حلالي ګرځولي دي او زيد ووايي چي زه دا حکم نه خوښوم نو دا کفر دی .

۴۰.كه چيري يو سړى ووايي چي يوازي د خداى ﷻ وجود كېدل پكار دي د بل شي وجود كېدل نه دي پكار نو هغه كافر كيږي .

۴۱.كه يو سړى ووايي چي زما په حق كي ټولي نيكى خداى ﷻ پيدا كړي دي او د بدى خالق زه يم نو هغه كافر كيږي .

۴۲.يو چا ته وويل سي چي ته د خپل ښځي په واک كي نه راغلې او هغه په جواب كي ووايي چي د ښځو په واک كي خداى ﷻ هم نه راځي نو زه به څرنګه راسم دا كفر دى.

۴۳. كه يو څوک يو چا ته ووايي چي د خداى ﷻ له خوا وينم او ستا له خوا وينم يعني كوم شى چي ما ته تر لاسه سوى دى هغه د خداى ﷻ له خوا دى او ستا له خوا دى يا داسي ووايي چي زه د خداى ﷻ څخه اميد لرم او ستا څخه اميد لرم نو دا بده خبره ده مګر كه چيري داسي ووايي چي زه د خداى ﷻ له خوا وينم او د هغه ظاهري سبب تا ګڼم نو دا يو ښه خبره ده .

۴۴. يو څوک د خپل يو مخالف څخه پر يو خبره باندي قسم كول وغواړي او هغه مخالف ورته ووايي چي زه په خداى ﷻ قسم كوم مګر قسم وركونكى ورته ووايي چي زه په خداى ﷻ قسم نه كوم بلكه د طلاق يا عتاق قسم كول غواړم نو د ځينو علماؤ په نزد كافر كيږي مګر د اكثرو علماؤ په نزد نه كافر كيږي او دا قول زيات صحيح دى .

۴۵. كه يو څوک يو چا ته ووايي چي خداى ﷻ پوهيږي چي زه تا همېشه په دعاء كي يادوم نو د هغه د كفر په باره كي د مشائخو اختلاف دى .

۴۶. كه يو څوک د مسخرو او خندا په توګه په فارسي كي ووايي چي (من خدايم) يعني زه خداى يم نو هغه كافر كيږي .

۴۷. يو سړى خپل ښځي ته ووايي چي ته د همسايه د حق پروا نه كوې ښځه ورته ووايي چي يا، خاوند ورته ووايي ته د خپل خاوند د حق پروا نه كوې ښځه ورته ووايي يا ، بيا خاوند ورته ووايي ته د خداى ﷻ د حق پروا نه لرې ؟ نو ددې په جواب كي هم هغه ووايي چي يا نو په دې سره هغه كافره كيږي .

۴۸. كه يو څوک د خپل ناروغى څخه په پرېشانه كېدو سره يا د رزق د تنګوالي په وجه ووايي چي خداى ﷻ زه ولي پيدا كړى يم او د دنيا د خوندو او راحتو څخه يې محروم كړى يم نو د هغه په باره كي ځيني علماء وايي چي هغه نه كافر كيږي مګر د هغه داسي ويل يوه لويه غلطي ده .

۴۹. يو ځوک يو چا ته ووايي چي تا کومي بدۍ کړي دي د هغه په وجه به الله تعالی تا په عذاب کي اخته کړي او هغه په جواب کي ووايي چي ايا خدای ﷻ ته تا کلي يې چي خدای به هغه کوي څه چي ته وايې نو هغه کافر کيږي .

۵۰. که يو ځوک ووايي چي خدای ﷻ د دوزخ جوړولو څخه پرته نور څه کولای سي نو هغه کافر کيږي .

۵۱. يو مفلس سړی د مفلسۍ په حالت کي ووايي چي فلانی سړی هم د الله ﷻ بنده دی او هغه ته دومره نعمتونه ورکړل سوي دي او زه د الله ﷻ بنده يم چي په دومره تکليف او غم کي اخته يم ايا دا انصاف دی نو په داسي ويلو سره هغه کافر سو ، همدارنګه يو سړی ته ووېل سي چي د خدای ﷻ څخه وبېرېږه هغه په جواب کي ورته ووايي چي خدای ﷻ چيري دی نو هغه هم کافر کيږي .

۵۲. که يو ځوک ووايي چي پيغمبر په خپل قبر کي نه سته يا داسي ووايي چي د خدای ﷻ علم قديم نه دی يا داسي ووايي چي د معدوم علم الله ﷻ ته نه سته نو هغه کافر کيږي .

۵۳. که د يو چا نوم عبدالله وي او بل ځوک د هغه په بللو سره د لفظ الله څخه وروسته د کاف اضافه وکړي نو هغه کافر کيږي په شرط ددې چي بلونکی عالم وي . همدارنګه که چيري يو عالم سړی د خالق لفظ په قصد سره تصغير وکړي نو هغه هم کافر سو .

۵۴. که يو ځوک ووايي چي خدای ﷻ دي ستا په پر زړه رحم وکړي زما پر زړه نه نو هغه کافر سو په شرط ددې چي هغه دا خبره د رحمت الهي څخه د بې نيازۍ په وجه کړې وي او که چيري د هغه مطلب دا وي چي زما ثابت باثبات الله دی نو هغه به کافر نه وي.

۵۵. که يو ځوک داسي قسم وکړي چي په خدای قسم او ستا په پاکه خاوره قسم نو هغه کافر کيږي مګر که چيري داسي قسم وکړي چي قسم په خدای او ستا په سر قسم نو په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی .

**د کفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د انبياؤ عليهم السلام سره دی :**

۱. کوم ځوک چي په نبيانو کي د يوه نبي اقرار هم ونه کړي يا په رسولانو کي د يوه رسول پر سنت باندي د ناراضګۍ يا عدم اعتقاد او اطمينان اظهار وکړي نو هغه کافر کيږي ،

۲. د ابن مقاتل رحمة الله عليه څخه د هغه سړي په باره کي پوښتنه وسوه چي هغه د خضر عليه السلام يا حضرت ذي الکفل عليه السلام د نبوت څخه انکار وکړي نو هغه وفرمايل چي د يو داسي نبي د نبوت څخه انکار کول چي د هغه پر نبوت باندي د امت د خلکو اتفاق نه وي تاواني نه دی.

۳. كه يو سړی ووايي چي ما د الله تعالى پر ټولو نبيانو ايمان راوړی دی او ما ته معلومه نه ده چي آدم عليه السلام نبي وو كه يا ؟ نو هغه كافر سو .

۴. د حضرت جعفر رحمه الله څخه د هغه سړي په باره كي پوښتنه وسوه كوم چي نبيانو ته د فواحش نسبت وكړي لكه يو نبي ته د زنا د ارادې نسبت كول يا داسي بله خبره كول لكه څرنګه چي په حشويه (يوه باطله ډله) د حضرت يوسف رحمه الله په باره كي دا ډول اظهار كوي ، نو حضرت جعفر رحمه الله وويل چي داسي سړی كافر دی ځكه چي دا د نبيانو په حق كي بد ويل دي او د هغوی د سپكاوي مترادف دی .

۵. ابو ذر رضي الله عنه وايي چي كوم څوک داسي ووايي چي هره نافرماني كفر دی او بيا دا ووايي چي نبيانو نافرماني وكړه نو هغه كافر دی .

٦. كه يو څوک داسي ووايي چي نبيانو هيڅكله نافرماني نه ده كړې نه د نبوت په حالت كي او نه د نبوت څخه مخكي نو هغه هم كافر دی ځكه چي هغه په دغه خبره كولو سره د قرآن كريم د آيات (عصى ربه...) ترديد وكړ .

۷. د ځينو علماؤ څخه نقل سوي دي چي كوم څوک په دې پوه نه سي چي محمد ﷺ خاتم النبيين دی نو هغه مسلمان نه دی ، كوم څوک چي په خپل زړه كي د يو نبي په باره كي بغض ولري نو هغه كافر دی .

۸. كه چيري يو سړی داسي ووايي چي فلانی كه د الله جل جلاله رسول وای نو ما به ايمان پر راوړی وای نو هغه هم كافر كيږي لكه څرنګه چي داسي ويونكی كافر كيږي كه الله تعالى هم ما ته د فلاني كار حكم راكړی وای نو ما به نه وای كړی .

۹. كه يو څوک داسي ووايي چي نبيانو څه فرمايلي دي كه هغه ريښتيا او حقيقت وي نو موږ به خلاصون تر لاسه كړو نو هغه كافر سو .

۱۰. كه يو سړی ووايي چي زه د الله جل جلاله رسول يم يا په فارسي كي ووايي (من پيغمبرم) يعني زه پيغمبر يم او د دې څخه د هغه مراد هم دا وي چي زه د الله جل جلاله پيغام رسونكی يم نو هغه كافر كيږي او كله چي هغه دا خبره وكړي او يو بل سړی د هغه څخه معجزه طلب كړي نو د ځينو علماؤ په نزد د هغه معجزې غوښتونكی هم كافر كيږي حال دا چي متاخرين علماء وايي كه چيري د معجزه غوښتونكی مقصد د هغه سړي ذليل كول وي او د هغه عاجز كول وي نو هغه نه كافر كيږي .

۱۱. كه يو ځوک د رسول الله ﷺ وېښته مبارک ته کوچني وېښته ووايي نو هغه د ځينو علماؤ په نزد کافر کيږي او د ځينو علماؤ په نزد نه کافر کيږي مګر که چيري هغه دا خبره د سپکاوي په توګه کړې وي نو د هغوی په نزد هم کافر کيږي.

۱۲. که يو سړی ووايي چي زه نه پوهېږم چي محمد ﷺ انسان وو يا جن نو هغه کافر کيږي.

۱۳. که يو ځوک داسي ووايي چي فلانی سړی پيغمبر دی نو زه به د هغه ځخه خپل حق اخلم نو هغه کافر نه دی او که چيري داسي ووايي چي محمد ﷺ درويشک (يعني يو کوچني فقير) وو يا داسي ووايي چي د پيغمبر ﷺ جامې بدبويه او خرابي وې نو د ځينو علماؤ په نزد هغه بېله يو قيده کافر کيږي حال دا چي ځيني علماء وايي چي هغه په هغه صورت کافر کيږي کله چي هغه دا خبره د سپکاوي په توګه وکړي.

۱۴. که يو ځوک يو داسي چا ته ښکنځل وکړي چي د هغه نوم محمد يا احمد وي يا د هغه کنيت ابو القاسم وي او هغه داسي مخاطب کړي چي اې د زناکونکي اولاده نو هغه کافر سو په شرط ددې چي د هغه مقصد هر هغه سړي ته ښکنځل کوي د چا چي نوم محمد يا احمد او ياد هغه کنيت ابو القاسم وي او په داسي ويلو سره د رسول الله ﷺ ذات مبارک هم مقصد وي.

۱۵. په دې ويلو سره ځوک نه کافر کيږي چي هره ګناه کبيره ده مګر د انبياؤ ګناه صغيره دي.

۱٦. که چيري يو ځوک داسي ووايي چي هر بد کار چي په قصد سره وکړل سي هغه کبيره ګناه ده او د هغه کار کونکی فاسق دی او بيا دهغه سره دا هم ووايي چي د انبياؤ ګناهونه په قصد سره دي نو هغه کافر سو ځکه چي هغه د نبيانو په شان کي بد ويل وکړل مګر که چيري هغه داسي ووايي چي د نبيانو ګناهونه په قصد نه دي نو هغه نه کافر کيږي.

۱۷. کوم رافضي چي د حضرت ابوبکر صديق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما په شان کي بد ويل وکړي او نعوذبالله پر هغوی لعنت ووايي نو هغه کافر دی مګر که چيري حضرت علي رضي الله عنه ته پر حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه فضيلت ورکړي نو هغه کافر نه دی مګر هغه ته به مبتدع ويل کيږي، معتزله هم مبتدع دي مګر که چيري هغه داسي ووايي چي د الله تعالی ديدار محال دی نو هغه کافر کيږي.

۱۸. پر بي بي عائشې رضي الله عنها باندي د زنا تهمت لګونکی د الله جل جلاله سره کفر کونکی دی مګر که ځوک د رسول الله ﷺ پر نورو بيبيانو باندي د زنا تهمت ولګوي نو هغه نه کافر کيږي مګر د لعنت مستحق کيږي.

۱۹. که یو څوک داسې ووايي چې حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ صحابه نه وه نو هغه نه کافر کيږي مګر د لعنت مستحق دی .

۲۰. د حضرت ابوبکر صديق ﷺ د امامت او خلافت څخه انکار کونکي د ځينو علماؤ په نزد کافر کيږي او د ځينو علماؤ په نزد نه کافر کيږي بلکه مبتدع به وي مګر صحيح قول دا دی چې هغه کافر کيږي .

۲۱. همدارنګه د حضرت عمر فاروق ﷺ د خلافت څخه انکار کونکی هم د صحيح قول سره سم کافر کيږي .

۲۲. کوم خلک چې حضرت عثمان، حضرت علي، حضرت طلحه، حضرت زبير او بي بي عائشې رضي الله عنهم ته نعوذبالله کافر وايي نو هغوی ته خپله کافر ويل کيږي .

۲۳. همدارنګه د زيديه ډلي ټولو خلکو ته کافر ويل واجب دي ځکه چې هغوی دغه باطله عقيده لري چې نعوذبالله په يو عجمي هيواد کي به د يو نبي ظهور کيږي چې زموږ د نبي کريم ﷺ دين به منسوخ کړي او زموږ د رسول الله ﷺ رسالت به کالعدم کړي .

۲۴. هغه روافضو ته هم کافر ويل واجب دي چې د تناسخ ارواح ويونکي دي او داسې وايي چې مړ کېدونکی دوهم وار بېرته دنيا ته راځي او په امامانو کي د الله تعالی روح حلول کړی دی د امام باطن ظهور به کيږي تر څو چې د هغه امام باطن ظهور نه وي نو امر او نهي معطل دي او دا چې جبرائيل ﷺ په وحي راوړلو کي غلطي کړې ده ځکه چې هغه ته د حضرت محمد ﷺ پر ځای حضرت علي ﷺ ته وحي راوړل پکار وه ، دغه ډله د اسلامي ملت څخه وتلې ده او کوم احکام چې د مرتد په باره کي دی هغه د دغه ډلي پر خلکو باندي هم نافذ کيږي .

۲۵. کوم څوک چې د رسول الله ﷺ په شان کي پر بد ويلو باندي مجبور کړل سي نو د هغه درې صورتونه دي : ۱: که هغه دا اقرار وکړي چې زما په زړه کي د رسول الله ﷺ د بدی هيڅ خطره هم نه ده تېره سوې بلکه ما په خپل ژبه سره يوازي هغه الفاظ ادا کړل چې د هغه پر ادا کولو باندي مجبور کړل سوی وم او د هغه مثال د هغه چا په ډول دی چې هغه په خپل ژبه سره د کفر د کلمې پر ادا کولو باندي مجبور کړل سوی وی او هغه د کفر کلمې په ژبه سره ادا کړي وي مګر دهغه زړه پر ايمان باندي ثابت او مطمئن وي، ۲: که چيري هغه اقرار وکړي چې کله زه محمد ﷺ ته پر بد ويلو باندي مجبور کړل سوم نو زما په زړه کي د هغه عيسائي خيال راغلی چې د هغه نوم محمد وو کله چې ما په خپل ژبه سره د محمد ﷺ په

باره کي بد الفاظ وويل نو زما مراد هغه عيسائي وو نو په دغه صورت کي به هم هغه نه کافر کيږي، ۳: که چيري هغه دا اقرار وکړي چي کله د محمد ﷺ په باره کي زه پر بد ويلو باندي مجبور کړل سوم نو زما په زړه کي د هغه عيسائي هم خيال راغلی چي د هغه نوم محمد دی مگر ما په خپل ژه سره چي کوم بد الفاظ وويل هغه د عيسائي په باره کي نه وه بلکه د محمد ﷺ په باره کي وه نو په دغه صورت کي هغه کافر کيږي د قانون په لحاظ هم او د الله ﷻ په نزد هم.

۲۶. کوم ثوک چي داسي ووايي چي محمد ﷺ مجنون وو هغه کافر دی مگر که چيري دا سي ووايي چي محمد ﷺ بې هوشه سوی وو نو کافر نه دی.

۲۷. که يو ثوک ووايي که چيري حضرت آدم ؑ په جنت کي غنم نه وای خوړلی نو موږ به بدبخته نه وای نو هغه کافر کيږي.

۲۸. کوم ثوک چي د متواتر حديثو څخه انکار وکړي نو هغه کافر کيږي.

۲۹. کوم ثوک چي د مشهور حديث څخه انکار وکړي نو هغه د ځينو علماؤ په نزد گمراه سو.

۳۰. چا چي د خبر واحد څخه انکار وکړ هغه نه کافر کيږي مگر د هغه د نه قبلولو په وجه گناه کار کيږي.

۳۱. که يو ثوک د يو نبي په باره کي د خپل دغه خواهش اظهار وکړي که چيري هغه نبي نه وای نو د هغه په باره کي علماء وايي که چيري د هغه مراد دا وي چي د هغه نبي کېدل به د حکمت څخه خارج نه وای نو هغه نه کافر کيږي او که چيري د هغه مراد د هغه نبي سپکاوی او د خپل بغض اظهار وي نو هغه کافر کيږي.

۳۲. يو ثوک د چا په مخکي ووايي چي رسول الله ﷺ فلانی شی د مثال په توگه کدو ډېر خوښوی، که چيري اورېدونکی په جواب کي ووايي چي زه يې نه خوښوم نو دا کفر دی، د امام ابويوسف رحمة الله عليه څخه هم داسي منقول دي مگر ځيني متاخرين علماء وايي که چيري هغه دا خبره چي زه يې نه خوښوم د سپکاوي په توگه ويلې وي نو هغه کافر دی کنه نو کافر نه دی.

۳۳. که يو ثوک داسي ووايي چي حضرت آدم ؑ جامې جوړي کړي وې ځکه نو موږ د جامو جوړونکي اولاده يو نو دا کفر دی،

۳۴. يو ثوک ووايي چي رسول الله ﷺ به کله خوراک کوی نو خپل درې گوتي به يې څټلې، او اورېدونکي داسي ووايي چي دا خو ښه کار نه دی نو هغه کافر سو.

۳۵. كه يو ځوک داسي ووايي چي د صحرايانو عجيبه رواج دی كله چي خوراک كوي نو لاسونه نه پرېولي ، كه چيري هغه دغه خبره د رسول الله ﷺ د سپكاوي لپاره كړې وي نو هغه كافر سو .

۳۶. كه چيري يو ځوک ووايي چي برېتونه كوچني كول او د لنگوټې شمله تر غاړې لاندي زړول ځرنگه رواج دی ، كه چيري هغه دا خبره د رسول الله ﷺ پر سنت باندي د طنز كولو په توگه ويلې وي نو هغه كافر سو .

۳۷. يو ځوک يو خبره وكړي او بل سړی هغه ته ووايي چي دروغ وايې كه څه هم ټوله خبره پيغمبرانه ده د دې په ويلو سره هغه كافر كيږي .

۳۸. همدارنگه كه يو ځوک داسي ووايي چي زه دا خبره نه منم كه څه هم د هغه خبره پيغمبرانه ده نو په دې سره هم كفر لازميږي .

۳۹. يو ځوک د خپل غلام د وهلو اراده وكړي او هغه ته يو بل ځوک ووايي چي دی مه وهه ، هغه ووايي چي محمد ﷺ هم راته وايي نو بيا به يې هم پرې نه ږدم نو پر هغه باندي كفر لازميږي .

۴۰. يو ځوک حديثونه وايي چي د هغه په اورېدو سره يو سړی ووايي چي (همه روز خلشها خواند) يعني هره ورځ گډې وډې وايي نو كه څه هم د دې نسبت رسول الله ﷺ ته ونه كړي بلكه د هغه ويونكي ته نسبت وكړي نو بيا هم هغه كافر كيږي په شرط د دې چي د هغه تعلق د دين او شريعت د احكامو سره وي او كه چيري هغه داسي حديث وي چي د هغه تعلق د دين او شريعت سره نه وي نو په دې سره كفر نه لازميږي او د هغه قول پر دې محمول كړل سي چي هغه د هغه ويل نه خوښوي .

۴۱. كه يو ځوک ووايي چي (بحرمت جوانک عربي) او د دغه جملې ځخه د هغه مراد رسول الله ﷺ وي نو هغه كافر كيږي . (جوانک هغه هلک ته وايي چي ږېره يې نه وي راغلې) .

۴۲. كه يو ځوک ووايي چي نبي كريم ﷺ يو وخت پيغمبر وو او يو وخت داسي وو چي هغه پيغمبر نه وو ، يا داسي ووايي چي زه نه پوهيږم چي رسول الله ﷺ په قبر كي مؤمن دی كه كافر نو په داسي ويلو سره هغه كافر كيږي .

۴۳. كه يو ځوک خپل ښځي ته ووايي چي خلاف خبره مه كوه او هغه ښځه ورته ووايي چي پيغمبرانو خلاف ويلي دي نو د هغې داسي ويل كفر دی هغه بايد توبه وكړي او دنوي سره نكاح وكړي .

۴۴. یو څوک یو چا ته ووايي چي ما ته ستا لېدل د ملك الموت لېدل معلومېږي نو د هغه داسي ويل ډېره لويه غلطي ده او د هغه په كفر كي د مشائخو اختلاف دی ځيني وايي چي هغه كافر كيږي او اكثر علماء وايي چي په داسي ويلو سره هغه نه كافر كيږي .

۴۵. په فتاوی قاضي خان كي ليكلي دي چي ځيني علماء وايي كه چيري هغه د غه جمله د ملك الموت سره د عداوت له كبله ووايي نو هغه كافر كيږي او كه چيري د مرګ د ناخوښۍ په وجه يې ويلي وي نو بيا نه كافر كيږي او كه چيري داسي ووايي چي د فلاني مخ د ملك الموت په ډول د ښمن ګڼم نو د اكثرو مشائخو وينا ده چي له دې كبله هغه كافر كيږي ،

۴۶. كه يو څوک ووايي چي زه د فلاني شاهدي نه اورم كه څه هم هغه جبرائيل او ميكائيل عليهما السلام وي نو په دغه صورت كي هغه كافر كيږي .

۴۷. كه يو چا په ملائكو كي پر يو ملائكي باندي عيب ووايه نو هغه كافر كيږي .

۴۸. كه يو څوک داسي ووايي چي زه ملائكه يم نو په داسي ويلو سره هغه نه كافر كيږي .

۴۹. كه يو څوک ووايي چي زه نبي يم نو په داسي ويلو سره هغه كافر كيږي .

۵۰. يو سړی د يو ښځي سره د بل چا د موجودتيا پرته نكاح وكړي او هغه ووايي چي ما الله ﷻ او رسول ﷺ شاهدان كړي دي يا داسي ووايي چي د الله ﷻ دغه ملائكه مي شاهده كړل نو په داسي ويلو سره هغه كافر كيږي .

۵۱. كه يو څوک داسي ووايي چي راسته او چپه خوا والا ملائكي مي شاهداني كړې نو په داسي ويلو سره هغه نه كافر كيږي .

## د كفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د قرآن كريم سره دی :

۱. كه يو څوک ووايي چي قرآن مخلوق دی نو هغه كافر كيږي .

۲. كه يو څوک د قرآن كريم د يو آيت څخه انكار وكړي يا په هغه پوري مسخرې وكړي يا عيب پر ووايي نو په دغه ټولو صورتو كي هغه كافر كيږي .

۳. كه يو څوک د دريا يا سورنا سره قرآن كريم ووايي نو هغه كفر وكړ .

۴. يو څوک قرآن كريم وايي او بل سړی د هغه په اوربدو سره ووايي چي دا د څه طوفان اواز دی نو د هغه دا ويل كفر دی .

۵. كه يو څوک ووايي چي ما ډېر قرآن كريم ووايه مګر زما ګناه معاف نه سوه نو په داسي ويلو سره هغه كافر كيږي .

٦. يو ځوک يو چا ته ووايي چي د تا د قل هو الله پوست را وايستی يا داسي ووايي چي تا د الم نشرح ګرېوان ونيوی ، يا هغه سړي ته چي پر يو ناروغ يې سورة ياسين وايه ووايي چي ياسين د مړي په خوله کي مه اېږده ، يا داسي ووايي چي تر انا اعطيناک الکوثر زيات کوتاه، يا يو ځوک قرآن کريم وايي او د هغه يو کلمه نه په ياد کېدل نو هغه ته ووايي چي (والتفت الساق بالساق) يا يو چا ته ډکه پياله راوړي او ورته ووايي (کاسا دهاقا) يا يو چا ته د مسخرو په توګه ووايي چي (فکانت سرابا) يا د ناپ او تللو په وخت کي د مسخرو په توګه ووايي چي (واذا کالوهم او وزنوهم يخسرون) يا يو چا ته داسي ووايي چي تا د الم نشرح لنګوټه تړلې ده او د هغه مراد دا وي چي تا د علم اظهار کړی دی ، يا يو ځوک خلک راجمع کړي او هغه ووايي چي (فجمعناهم جميعا) يا داسي ووايي چي (وحشرناهم فلم نغادر منهم احدا) يا يو چا ته ووايي چي ته (والنازعات نزعا) ولي وايې د نون په پېښ سره او په زور ورکولو سره او مراد د هغه طنز کول وي ، يا يو پک سړي ته ووايي چي زه خو تا ته ځکه لوی وايم چي الله تعالی فرمايلي دي (کل بل ران)، يا يو چا ته وويل سي چي لمانځه ته ولاړ سه يا د جماعت لمانځه ته ولاړ سه او هغه په جواب کي ورته ووايي چي زه يوازي لمونځ کوم د الله تعالی قول دی (ان الصلوة تنهی) نو په دغه ټول صورتو کي کافر کيږي .

٧. يو ځوک يو چا ته ووايي چي تا خپل کور داسي پاک کړی دی لکه والسماء والطارق نو ځيني عالمان وايي چي په داسي ويلو سره هغه نه کافر کيږي ، امام ابوبکر اسحاق رحمة الله عليه وايي که چيري ددې ويونکی جاهل وي نو نه کافر کيږي او که عالم وي نو کافر کيږي .

٨. که چيري يو ځوک ووايي چي (قائما صفاصفا)سوی دی نو په دغه جملې کي لويه خطره ده چي هغه به کافر سي .

٩. کله چي يو ځوک ووايي چي قرآن عجمي دی نو هغه کافر سو او که چيري داسي ووايي چي په قرآن کريم کي يوه کلمه عجمي ده نو هغه ته په کافر ويلو کي تلوار نه دی پکار، دا دفکر خبره ده .

١٠. يو ځوک يو چا ته ووايي چي قرآن کريم ولي نه وايې او هغه په جواب کي ورته ووايي چي زه د قرآن کريم څخه بېزاره يم نو هغه کافر کيږي .

١١. د يو چا د قرآن کريم يو داسي سورت په ياد دی چي ډېر يې وايي بل سړی هغه ويونکي ته ووايي چي تا دا سورت کمزوری ليدلی دی نو هغه په داسي ويلو سره کافر کيږي .

۱۲. که يو چا قرآن کريم په عجمي ژبه مثلاً فارسي کي نظم کړی نو هغه دي قتل کړل سي ځکه چي هغه کافر سو .

**د کفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د لمانځه، روژې او زکوة سره دی :**

۱. يو څوک يو ناروغ مسلمان ته ووايي چي ته لمونځ وکړه، هغه په جواب کي ووايي چي قسم په خدای زه به هيڅکله لمونځ ونه کړم او بيا يې هيڅکله لمونځ ونه کړ تر دې چي مړ سو نو هغه ته به کافر ويل کيږي او که چيري يوازي داسي ووايي چي زه لمونځ نه کوم نو د هغه په داسي ويلو کي څلور احتماله دي ۱: يو خو دا چي لمونځ نه کوي ځکه چي کړی يې دی، ۲: دوهم دا چي لمونځ نه کوي يعني ستا په حکم سره يې نه کوي ځکه چي تر تا غوره څوک سته چي هغه حکم کړی دی، ۳: دريم دا چي نه يې کوي يعني د بې باکۍ او فسق په توګه ووايي، په دغه درو سره صورتو کي هغه نه کافر کيږي، ۴: څلورم دا چي لمونځ نه کوي په دې وجه چي پر ما لمونځ واجب نه دی او نه ما ته د دې حکم راکړل سوی دی په دغه څلورم صورت کي هغه کافر کيږي ، او که چيري هغه په جواب کي يوازي دا ووايي چي زه لمونځ نه کوم نو هغه په دغه وجهو سره نه کافر کيږي .

۲. يو چا ته وويل سي چي لمونځ وکړه او هغه په جواب کي ووايي چي زه ليونی يم چي لمونځ وکړم او پر خپل ځان باندي تکليف راولم ، يا داسي ووايي چي زما لپاره نور خلک لمونځ کوي ، يا داسي ووايي تا چي لمونځ وکړی نو څه ګټه دي تر لاسه کړه يا داسي ووايي چي زه لمونځ ولي وکړم زما مور او پلار خو مړه سوي دي ، يا داسي ووايي چي لمونځ کول او نه کول دواړه برابر دي، يا داسي ووايي چي دومره لمونځونه مي کړي دي چي زړه مي په موړ سوی دی ، يا داسي ووايي چي لمونځ خو داسي شی نه دی چي پاته سي خرابيږي نو دا ټول جوابونه کفريه دي .

۳. يو څوک يو چا ته ووايي چي راځه د فلاني کار لپاره لمونځ وکړو ، هغه ورته ووايي چي ما ډېر لمونځونه کړي دي او هيڅ حاجت مي پوره سوی نه دی او هغه دا خبره د طنز او سپکاوی په توګه وکړي نو په دې سره هغه کافر کيږي .

۴. يو فاسق سړی يو مسلمان ته په مخاطب کولو سره ووايي چي راځئ مسلماني وګورو او د دې څخه وروسته هغه د فسق مجلس ته اشاره وکړي نو هغه کافر کيږي .

۵. که يو څوک ووايي چي بې لمانځي کېدل څومره غوره دي نو هغه په داسي ويلو سره کافر کيږي .

٦. یو څوک یو چا ته ووایي چي لمونځ وکړه چي د بندګۍ په خوږوالي پوه سي یا په فارسي کي ووایي چي نماز بخوان تا حلاوت نماز بیابي او ددې په جواب کي هغه ووایي تو مکن که حلاوت بې نمازي به بیني ، یعني ته لمونځ مه کوه چي د بې لمانځۍ خوند محسوس کړل سي نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي .

٧. یو څوک غلام ته ووایي چي لمونځ وکړه ، هغه ووایي چي زه لمونځ نه کوم ځکه چي ددې ثمره زما بادار ته رسیږي نو هغه په داسي ویلو سره کافر کیږي .

٨. یو څوک یو چا ته ووایي چي لمونځ وکړه او هغه په جواب کي ورته ووایي الله تعالی زما په مال کي تاوان وکړی نو زه د هغه په حق کي تاوان کوم نو دا جواب هم کفر دی.

٩. یو سړی یوازي د روژې په میاشت کي لمونځ کوي او بیا وروسته یې نه کوي او وایي چي دا ډېر دی یا داسي وایي چي دا به ډېر زیات وي ځکه چي د روژې د میاشتي هر لمونځ د اویا لمونځو برابر دی نو هغه په داسي ویلو سره کافر کیږي .

١٠. که یو څوک په قصد سره د قبلې څخه پرته بلې خوا ته په مخ کولو سره لمونځ وکړي مګر په اتفاقي توګه د هغه خوا څخه قبله ووتل نو امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه وایي چي هغه کافر سو او په دې باندي فقیه ابو للیث رحمة الله علیه عمل کړی دی .

١١. که یو څوک په قصد سره بې اودسه لمونځ وکړي یا په ناپاکو جامو کي په قصد سره لمونځ وکړي نو هغه کافر سو .

١٢. یو سړي ته قبله معلومه نه ده نو هغه فکر وکړ چي قبله کومي خوا ته ده زړه یې دا ومنل چي دې خوا ته قبله ده مګر بیا هغه ددغه خوا په پرېښودو سره بلي خوا ته لمونځ وکړ نو امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه د داسي سړي په باره کي وایي چي زه د هغه په حق کي د کفر بېره لرم ځکه چي هغه د قبلې څخه مخ واړوی او د نورو مشائخو د هغه په کفر کي اختلاف دی ، شمس الائمه حلواني رحمة الله علیه وایي چي کله هغه د قبلې په پرېښودو سره د سپکاوي په توګه بلي خوا ته لمونځ وکړی نو ظاهره ده چي هغه کافر کیږي، او که چیري په داسي صورت کي په یو وجه اخته سو د مثال په توګه د نورو خلکو سره یې لمونځ کوی چي هغه بې اودسه سول او د شرم په وجه هغه فکر وکړ چي ظاهر نه سي نو د پټولو لپاره یې بې اودسه لمونځ وکړ یا دښمن نژدې وو او په ولاړه یې په داسي حالت کي لمونځ وکړ چي هغه ځای پاک نه وو نو ځیني مشائخ وایي چي په دغه صورت کي هغه نه کافر کیږي ځکه چي هغه داسي کول د سپکاوي په توګه نه دي کړي مګر که چیري د یو ضرورت یا حیاء په وجه په داسي

صورت كي اخته سي نو هغه ته پكار دي چي په خپل قيام (ولاړه) سره هغه د لمانځه د قيام اراده ونه كړي او كله چي د هغوى سره ركوع ته ځي نو د ركوع قصد دي نه كوي او نه دي د ركوع تسبيح وايي ، په ناپاكو جامو كي په لمانځه كولو سره ځيني علماء وايي چي هغه كافر كيږي .

١٣. يو څوك ووايي چي لمونځ فرض دى مگر ركوع او سجده فرض نه ده نو په داسي ويلو سره هغه نه كافر كيږي ځكه چي په دې كي ددغه تاويل گنجائش دى چي د لمانځه څخه د هغه مراد دجنازې لمونځ وي چي په هغه كي ركوع او سجدې فرض نه دي .

١۴. كه يو څوك د ركوع او سجدې د فرض كېدو څخه انكار وكړي نو هغه كافر كيږي ځكه چي هغه د اجماع او تواتر رد وكړى .

١۵. يو څوك ووايي كه چيري كعبه شريفه قبله نه واى او ددې پر ځاى بيت المقدس قبله واى نو بيا به هم ما كعبې شريفي ته په مخ كولو سره لمونځ كولاى او بيت المقدس ته به مي په مخ كولو سره لمونځ نه كولاى يا داسي ووايي كه فلانى قبله واى نو ما به هغه خوا ته مخ كولاى يا داسي ووايي كه فلاني خوا ته قبله واى نو هغه خوا ته به مي مخ نه كولاى يا داسي ووايي چي قبلې دوې دي يوه كعبه او بله بيت المقدس نو په دغه ټولو صورتو كي هغه كافر كيږي .

١٦. ابراهيم بن يوسف رحمة الله عليه ويلي دي كه يو چا د ځان ښوونې لپاره لمونځ وكړ نو هغه ته ثواب نه وركول كيږي بلكه د هغه په عمل نامه كي گناه ليكل كيږي او ځينو ويلي دي چي په دې سره كافر كيږي او ځيني وايي چي په دغه صورت كي نه گناه سته او نه ثواب سته او د هغه چا په ډول دى كوم چي لمونځ يې نه وي كړى .

١٧. يو څوك يو كافر ته راسي او د يوه يا دوو وختو لمونځ يې و نه كړ كه چيري هغه لمونځ د كافر د تعظيم په وجه پرې ايښى وي نو كافر كيږي او د قضائي لمنځو قضا ور باندي نه سته او كه چيري د فسق په وجه يې لمونځ نه وي كړى نو نه كافر كيږي او هغه قضاء لمونځونه به راگرځوي .

١٨. يو څوك په دارالاسلام كي اسلام قبول كړي او د يوې مياشتي څخه وروسته د هغه څخه د پنځه وختو د لمانځه په باره كي پوښتنه وسي او هغه په جواب كي ووايي چي ما ته معلوم نه دي چي هغه پر ما فرض دي نو په دې سره هغه كافر كيږي مگر كه چيري هغه په نورو مسلمانانو كي او سيږي نو بيانه كافر كيږي .

۱۹. که یو څوک مؤذن ته د اذان کولو پر وخت ووایي چې تا درواغ وویل نو هغه کافر کیږي .
۲۰. یو سړی د اذان په اوریدو سره د انکار په توګه ووایي چې دا څه شور او شر دی نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي او که چیري د اذان په اوریدو سره هغه داسي ووایي چې زه یې نه ادا کوم نو په داسي ویلو سره هم کافر کیږي، ځیني علماء وایي چې مطلق په دغه جواب سره نه کافر کیږي .
۲۱. که یو څوک ووایي چې کاش د روژې میاشت نه وای نو په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی او صحیح قول دادی چې دا قول پر نیت موقوف دی که چیري هغه یې په دې نیت سره ووایي چې د رمضان حقوق هغه ادا کولای نه سي نو نه کافر کیږي .
۲۲. که یو څوک د رمضان د میاشتي د راتلو پر وخت داسي ووایي چې درنه میاشت یا درونډ میلمه راغلی نو هغه کافر کیږي .
۲۳. کله چې د رجب میاشت راسي نو یو څوک ووایي چې ددې څخه وروسته به په خرابۍ کي اخته سو که چیري هغه دا د محترمو میاشتو لپاره د سپکاوي په توګه ویلي وي نو کافر کیږي او که چیري پر نفس باندي د بار ظاهرولو لپاره یې ویلي وي نو بیا نه کافر کیږي .
۲۴. یو څوک ووایي چې د رمضان میاشت دي ژر تیره سي نو ځیني علماء وایي چې په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي او ځیني وایي چې نه کافر کیږي .
۲۵. که یو څوک ووایي چې دومره روژې په تر څو پوري وي زما زړه په موړ سو نو د هغه داسي ویل کفر دی .
۲۶. همدارنګه یو څوک ووایي چې الله تعالی د اطاعت لپاره عذاب جوړ کړی که چیري د دغه جملې تاویل وکړي نو نه کافر کیږي . یا داسي ووایي که الله تعالی د اطاعت فرض کړی نه وای نو زموږ لپاره به غوره وای که چیري د دغه جملې یو څوک تاویل وکړي نو کافر کیږي.
۲۷. که یو څوک ووایي چې لمونځ زما وړ نه دی یا حلال زما لپاره مناسب نه دي یا داسي ووایي چې لمونځ د څه لپاره وکړم ښځه او کوچنیان خو زه لرم ، یا داسي ووایي چې ما لمونځ په سرتاخ کي ایښی دی نو په دغه ټولو صورتو کي کافر کیږي .

**د کفر هغه موجبات چې د هغو تعلق د علم او علماؤ سره دی :**

۱. که یو څوک بېله یو ظاهري سببه د یو عالم سره بغض ولري نو په دې سره د کافر کېدو ېېره ده.
۲. که یو څوک په خپلو کي د صلح کونکي په باره کي ووایي چې دده دلیل زما لپاره داسي دی لکه د خنزیر دلیل نو د هغه د کافر هم ېېره ده .

۳. همدارنګه که یو څوک بیله سببه یو عالم ته بد ووایي نو هغه هم کافر کیږي.
۴. که یو څوک ووایي چي ستا د علم په مقعد (د شا شرمګاه) کي د خره ذکر (د مخ شرمګاه) او د هغه علم څخه د هغه مراد د دین علم وي نو هغه هم کافر کیږي.
۵. یو جاهل سړی د یني علم تر لاسه کونکي ته داسي ووایي چي ته دا څه زده کوې دا ټول قصې او داستانونه دي یا داسي ووایي چي دا ټول دوکه دي یا داسي ووایي چي زه د علم د حیلې څخه منکریم نو دا ټولي جملې کفریه دي.
٦. یو سړي پر لوړ ځای کښیني او بیا خلک د هغه څخه د مسخرو په توګه مسئلې پوښتل شروع کړي او بیا هغه مسخرې کوي او ټول ور باندي خاندي نو هغوی ټول د دغه فعل په وجه کافر کیږي.
۷. یو څوک داسي ووایي چي زما د علم د مجلس سره څه کار دی، یا داسي ووایي چي کوم څوک د دغه شیانو په ادا کولو قدرت لري؟ کوم چي علماء وایي نو هغه کافر کیږي.
۸. که یو څوک ووایي چي په علم په کاسه کي نه سو ساتلای یعني د غه علم د خوراک په پیاله کي د ساتلو وړ نه دی یا داسي ووایي چي علم څه کوم زما زر پکار دي نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي.
۹. که یو څوک ووایي چي زما په خپل کورنۍ کي دومره بوخت یم چي د علم مجلس ته نه سم رسېدلای او په دې سره د هغه مقصد د علم سپکاوی وي نو د هغه د کفر بېره ده.
۱۰. یو فقیه عالم د علم تذکره کوي یا یو صحیح حدیث یې بیان کړي او یو بل چا په اورېدو سره ووایي چي دا هیڅ نه دي او هغه یې رد کړ، یا داسي ووایي چي دا خبره څه پکار راځي موږ ته خو روپۍ پکار دي نن سبا د روپو عظمت دی علم په څه کار راځي نو دا کفر دی.
۱۱. که یو څوک ووایي چي تر پوهي غوره فساد کول دي نو دا کفر دی.
۱۲. یو ښځه چي د هغې خاوند عالم وي داسي ووایي چي پر عالم خاوند دي لعنت وي نو هغه کافره کیږي.
۱۳. که یو څوک ووایي چي د عالمانو فعل د کافرانو په ډول دی نو په داسي ویلو سره هغه وخت کافر کیږي.
۱۴. د یو چا د یو عالم سره پر یو خبره جګړه سوه او هغه عالم هغه ته شرعي وجه بیان کړه نو دده په اورېدو سره هغه سړی ووایي چي دا د عالمانو چم مه کوه دلته هیڅ نه چلیږي نو د داسي سړي د کفر بېره ده.

۱۵. که یو څوک یو عالم ته ووايي چي اې پوهه! یا اې علویک!، نو په داسي ویلو سره هغه نه کافر کیږي که چیري د هغه نیت د دین سپکاوی نه وي.

۱۶. یوه واقعه نقل سوې ده چي یو عالم خپل یو کتاب د یو دوکاندار په دوکان کي کښېښود ی او په یو کار پسي ولاړی، بیا کله چي هغه د عالم د دوکان سره تېرېدی نو دوکاندار هغه ته وواېل چي ستا څخه اره هېره سوه، عالم ورته وویل ستا په دوکان کي زما کتاب دی اره نه سته، دوکاندار ورته وویل نجار په اره سره لرګي پرې کوي او ته په کتاب سره د خلکو غاړي پرې کوي، عالم و شیخ امام ابوبکر بن فضل رحمه الله ته دد غه واقعې شکایت وکړ نو د هغه سړي د قتل حکم يې وکړ.

۱۷. یو سړی خپل ښځي ته په غصه سو او ورته يې وویل چي ته د خدای ﷻ اطاعت کوه او د ګناه څخه يې منع کړه، ښځي په جواب کي وویل چي زه الله ﷻ او علم څه پېژنم ما خپل ځان په دوږخ کي اچولی دی نو هغه په دې سره کافره سوه.

۱۸. یو چا ته وویل سي چي د علم زده کونکی د ملائکو پر وزرو ځي، هغه وویل دا دروا غ دي نو هغه کافر کیږي.

۱۹. که یو څوک ووايي چي د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله قیاس صحیح نه دی نو هغه کافر کیږي ځکه چي هغه مطلق د قیاس د صحت څخه انکار وکړ.

۲۰. که یو څوک خپل دښمن ته ووايي چي زما سره شریعت ته ولاړ سه او هغه ورته ووايي چي یو عسکر راوله نو زه به در سره ولاړ سم بېله زوره نه سم تللای نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي ځکه چي هغه د شریعت مقابله وکړه، او که چیري هغه داسي ووايي چي زما سره قاضي ته ولاړ سه او هغه په جواب کي داسي ورته ووايي نو نه کافر کیږي، او که چیري هغه داسي ووايي چي زما سره به شریعت او حیله ګټور نه وي یا داسي ووايي چي زما لپاره د خرما حلوا ده شریعت څه کوم نو دا ټول صورتونه د کفر دی، او که چیري داسي ووايي چي کله تا زر اخیستل نو هغه وخت شریعت او قاضي چیري وو نو په داسي ویلو سره هم هغه کافر کیږي، په متاخرینو کي علماؤ کي ځیني وايي که چیري هغه د قاضي څخه د ښار قاضي مراد اخیستی وي نو نه کافر کیږي.

۲۱. یو چا ته وویل سي چي په دې باره کي د شریعت حکم دادی او هغه په جواب کي ووايي چي زه په رواج باندي عمل کوم په شریعت باندي عمل نه کوم نو په دې ویلو سره د ځینو په نزد کافر کیږي.

۲۲. يو سړی خپل ښځي ته ووايي چي ته څه وايې او د شريعت حکم څه دی او ښځي په لوړ آواز سره ورته وويل چي اينک شرع را نو هغه کافره کيږي او د هغې نکاح ماتيږي .
۲۳. يو څوک د خپل مخالف په وړاندي د امامانو فتوا وړاندي کړي او هغه فتوا رد کړي او ووايي چي دا د فتوا انبار تا ولي راوړی دی ، ځينو ويلي دي چي هغه کافر کيږي ځکه چي هغه د شريعت حکم رد کړ . همدارنګه که چيري هغه د فتوا په باره کي هيڅ ونه وايي مګر په اخيستلو سره يې پر مځکه وغورځول او دا يې وويل چي دا څه شريعت دی نو په داسي کولو سره هم هغه کافر کيږي .
۲۴. يو سړی د يو عالم څخه د خپل ښځي په باره کي د طلاق مسئله وپوښتي او هغه په جواب کي ورته ووايي چي ستا ښځه طلاقه سوه ، پوښتنه کونکی ورته ووايي چي زه طلاق نه پيژنم نو د هغه په داسي ويلو سره هغه کافر کيږي .
۲۵. د دوو کسانو په مينځ کي جګړه وسوه او په هغو کي يوه دوهم ته د علماؤ فتوا راوړه مګر هغه وويل چي داسي نه ده لکه څرنګه چي فتوا سوې ده يا داسي ووايي چي زه په دې عمل نه کوم نو هغه ته به د سزا په توګه سزا ورکول کيږي .

**د کفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د حلال، فاسق، فاجر او نورو خبرو سره دی :**

۱. څوک چي د حلال د حرام کېدو يا د حرام د حلال کېدو عقيده ولري نو هغه کافر کيږي مګر که يو څوک حرام ته حلال له دې کبله ووايي چي دا رواج سي يا د جهالت په وجه داسي ووايي نو هغه کافر نه دی مګر دا هغه په صورت کي دی چي هغه حرام حرام بعينه وي او د هغه د حلال کېدو يقين ولري نو بيا کافر دی او که چيري حرام حرام لغيره وي او هغه ته حلال ووايي نو نه کافر کيږي مګر د هغه حرام بعينه په حلال ګڼلو کي به کافر وي کله چي د هغه بعينه حرمت په دليل قطعي سره ثابت دي مګر که چيري د حرام بعينه حرمت د خبر احاد په ذريعه ثابت وي نو د هغه د حلال کېدو په عقيده کي به کافر نه وي .
۲. يو چا ته وويل سي چي يو حلال دي زيات خوښ دی که دوه حرامه او هغه ووايي چي دواړه نو په دې باره کي د کفر ببره ده .
۳. همدارنګه هغه وخت د کفر ببره ده چي کله داسي ووايي چي موږ ته مال پکار دی که هغه حلال وي که حرام وي . او که چيري داسي ووايي چي تر څو پوري زه حرام پيدا کوم حلال نه خورم نو په داسي ويلو سره نه کافر کيږي .

۴. که یو سړی حرام مال یو فقیر ته د ثواب په نیت ورکړي او د ثواب امید ولري نو هغه کافر کیږي ، که چیري فقیر ته دا معلومه وي چي دا مال حرام دی او دديٍ سربېره هغه مال واخلي او ورکونکي ته دعاء وکړي او هغه ورکونکی آمین ووایي نو هغه کافر کیږي .
۵. یو سړی ته وویل سي چي حلال مال خوره ، هغه ووایي چي زما حرام مال خوښ دی نو هغه کافر کیږي ، او که چیري ددې په جواب کي داسي ووایي چي په دغه دنیا کي یو حلال خوړونکی پیدا کړه چي زه سجده ورته وکړم نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي .
٦. د یو فاسق زوی شراب وڅیښي نو بیا د هغه قریبان راسي او پر هغه روپۍ وپاشي نو هغوی ټول کافران سول او که چیري داسي ورته ووایي چي مبارک دي سه نو په دې سره هم کافر کیږي .
۷. که یو څوک ووایي چي د شرابو حرمت د قرآن کریم څخه ثابت نه دی نو هغه کافر کیږي .
۸. یو چا شراب څښونکي ته وویل چي چي د قرآن کریم څخه د شرابو حرمت ثابت دی نو ته ولي شراب څښې توبه ولي نه کوې نو شراب څښونکي په جواب کي وویل چي ایا د مور د شېدو څخه هم صبر کیدای سي نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي په دې وجه چي یا خو دا استفهام دی یا په شرابو او شیدو کي برابروالی ظاهرول دي .
۹. که یو څوک د حیض په حالت کي د خپل ښځي سره جماع (کوروالي) کول حلال وګڼي نو هغه کافر کیږي .
۱۰. که یو څوک د خپل ښځي سره لواطت کول جائز وګڼي نو هغه هم کافر کیږي ، په نوارد کي د امام محمد رحمة الله علیه څخه روایت دی چي په دغه دواړو صورتو کي نه کافر کیږي او دا صحیح ګرځول سوي دي .
۱۱. یو سړي شراب وڅښل او بیا یې وویل کوم څوک چي زموږ سره په دغه کیف کي شریک دي اصل خوشحالي د هغه ده او کوم څوک چي زموږ سره په دغه کیف کي ناراضه دی نو هغه په تاوان کي دی نو هغه کافر سو . همدارنګه که چیري هغه په شراب څښلو کي بوخت وي نو هغه ووایي چي مسلمان کېدل ښکاره کوم یا مسلمان کېدل ظاهریږي نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي .
۱۲. که یو بد کار او شرابي داسي ووایي که د شرابو یو څاڅکی ولویږي نو جبرائیل علیه السلام به یې په خپلو پښو سره راپورته کړي نو په دې سره هغه کافر کیږي .

۱۳.يو فاسق ته يو چا وويل چي ته هره ورځ داسي سهار كوې چي الله تعالى او مخلوق ته تكليف وركوې هغه وو ايي چي ښه كوم نو هغه كافر كيږي.

۱۴.كوم څوک د حرام خوراک خوړلو پر وخت بسم الله وو ايي نو امام مشتملي رحمة الله عليه وايي چي هغه كافر كيږي او همدارنګه كه چيري هغه د حرام خوراک څخه د فارغه كېدو وروسته الحمد لله وو ايي نو د ځينو متاخرينو رايه داده چي په دغه صورت كي هغه نه كافر كيږي.

۱۵.يو سړى د شرابو پياله پورته كړي او په بسم الله ويلو سره يې وڅښني نو هغه په اتفاق سره كافر سو همدارنګه هغه سړى هم كافر كيږي چي د زنا كولو پر وخت بسم الله وو ايي يا د خمار كولو پر وخت بسم الله وو ايي.

۱۶.دوه كسان جګړه سره وكړي او په هغوى كي يو وو ايي چي لا حول ولاقوة الا باالله، او بل سړى وو ايي چي زه لاحول څه په وكړم يا په لاحول سره لوږه نه ختميږي يا داسي وو ايي چي لاحول د ډوډۍ ځاى نه سي نيولاى نو په دغه ټولو صورتو كي هغه كافر كيږي.

۱۷.همدارنګه كه يو سړى سبحان الله وو ايي او بل سړى هغه ته وو ايي چي تا د سبحان الله نور ختم كړ يا داسي وو ايي چي تا د هغه پوست وكښى نو هغه كافر كيږي.

۱۸.كه يو چا ته وويل سي چي لااله الاالله وو ايه او هغه وو ايي چي زه يې نه وايم ځيني مشائخ وايي چي دا كفر دى او ځينو ويلي دي كه چيري د هغه مراد دا وي چي ستا په حكم سره يې نه وايم نو نه كافر كيږي او ځينو ويلي دي چي مطلقا كافر كيږي او كه چيري په جواب كي هغه وو ايي چي تا د كلمې په ويلو سره څه تر لاسه كړي دي چي زه يې هم وو ايم نو كافر كيږي.

۱۹.يو پاچا ته ترچې راغلى او د هغه پر ترچي باندي يو څوک وو ايي چي يرحمک الله، بل سړى يرحمک الله ويونكي ته وو ايي چي د پاچا لپاره داسي مه وايه نو داسي ويونكى كافر كيږي.

**د كفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د قيامت د ورځي او د قيامت سره متعلق شيانو سره دى:**

۱. كه يو څوک د جنت، دوږخ، ميزان، پل صراط او عمل نامې څخه انكار وكړي نو هغه كافر كيږي.

۲. همدارنګه كه يو څوک د مرګ څخه وروسته د بيا ژوندي كېدو څخه انكار وكړي نو هغه هم كافر دى.

۳. كه يو ثوک ووايي چي زه نه پوهيږم چي يهود او نصارا په قيامت كي كله راپاڅي نو هغوی به د اور په عذاب كي اخته كړل سي كه يا نو په داسي ويلو سره هغه كافر كيږي .
۴. كه يو ثوک په جنت كي د داخلېدو څخه وروسته د الله تعالى د دېدار څخه انكار وكړي نو هغه هم كافر كيږي يا د مرگ څخه وروسته د قبر د عذاب څخه انكار وكړي يا د انسان د حشر او نشر څخه انكار وكړي مگر د انسان څخه پرته د نور مخلوق د حشر څخه انكار كونكی نه كافر كيږي همدارنگه هغه ثوک هم نه كافر كيږي كوم چي داسي ووايي چي د عذاب او ثواب تعلق يوازي د روح سره خاص دی .
۵. يو ثوک بل چا ته ووايي چي گناه مه كوه ځكه چي يو بله ورځ هم سته ، او هغه په جواب كي ووايي چي د هغه دنيا چا ته خبر دی نو هغه كافر كيږي .
٦. د يو سړي د يو چا پر ذمه پور وي او هغه ته ووايي كه زما پور دلته نه راكوې نو په قيامت كي به يې در څخه اخلم ، هغه سړی په جواب كي ووايي چي هو قيامت به راځي ، كه چيري هغه دغه الفاظ د قيامت د توهين په اراده وويل نو هغه كافر كيږي .
۷. يو سړی پر يو چا باندي ظلم وكړي او مظلوم ووايي چي د قيامت ورځ راتلونكې ده د هغه ورځي څخه وبېرېږه ، ظالم په جواب كي ووايي چي فلانی خر به په قيامت كي وي نو په دې سره هغه كافر كيږي .
۸. يو سړی خپل پوروړی ته ووايي چي زما پور په دنيا كي راكړه په قيامت كي به روپۍ نه وي او هغه ورته ووايي چي ښه دی لس روپۍ نوري راكړه او هغه په دنيا كي زما څخه مه اخله نو په دې سره هغه كافر كيږي .
۹. كه يو ثوک ووايي چي زما د حشر سره څه كر دی يا داسي ووايي چي زه د قيامت څخه نه بېرېږم نو هغه كافر كيږي .
۱۰. يو ثوک خپل دښمن ته ووايي چي زه به خپل حق ستا څخه په قيامت كي اخلم او هغه ورته ووايي چي په هغه ورځ به په رش كي ما چيري پيدا كړې ، د مشائخو د هغه په كفر كي اختلاف دی ، فقيه ابو الليث رحمة الله عليه وايي چي په دې سره هغه نه كافر كيږي .
۱۱. يو ثوک ووايي چي په دغه دنيا كي ښه او سېدل پكار دي په هغه دنيا كي چي څه وي هغه به وي نو په دې سره هغه كافر كيږي .
۱۲. يو چا ته وويل سي چي ته د آخرت په وجه د دنيا څخه تېښته كوه او هغه ورته ووايي چي د نقد په پرېښودو سره پر پور باندي ثوک باور كوي نو هغه كافر كيږي .

۱۳.یو څوک ووايي چي څوک په دغه دنيا کي بې عقله وي هغه به په هغه دنیا کي کي د هغه سړي په ډول وي چي د هغه کڅوړه ښیري وي يعني بېکاره وي ، امام ابوبکر محمد بن الفضل رحمة الله عليه وايي که چيري په دې سره د هغه مقصد مسخرې او طنز وي نو دا د کفر سبب دی.

۱۴.که يو څوک ووايي چي زه په ستا سره دوږخ ته ځم مگر د ننه نه سم تللای نو هغه کافر کيږي.

۱۵.که يو څوک ووايي چي تر څو پوري ته د رضوان جنت لپاره يو شی نه يوسې نو تر هغه وخته به د جنت دروازه در ته خلاصه نه سي نو په داسي ويلو سره هغه کافر کيږي.

۱٦.يو څوک د نيکۍ حکم کونکي ته ووايي چي دا څه شور مو جوړ کړی دی ، که چيري دغه جمله يې د انکار او رد په توګه ويلې وي نو د هغه د کافر کېدو بېره ده.

۱۷.يو څوک يو سړي ته ووايي چي د فلاني سړي کور ته په ورتلو سره د نيکۍ حکم ورکړه ، هغه په جواب کي ووايي چي هغه زما سره څه کړي دي يا زما هغه ته د تکليف ورکولو څه وجه ده يا داسي ووايي چي زه ځيني جلا يم د دغه پالتو کار سره مي څه تعلق دی نو دا ټول کفريه الفاظ دي.

۱۸.يو څوک د يو سړي سره د تعزيت کولو په وخت کي ووايي څه چي د هغه د ځان څخه نه کم سوه هغه پر تا زياتي و سول نو په دې سره هم د کفر بېره ده يا داسي ووايي چي پر تا باندي زياتوب سوی دی نو دا جهالت او غلطي ده ، يا داسي ووايي چي د فلاني په کمېدو سره ستا پر ځان راغلل نو دا هم د جهالت دی او که چيري داسي ووايي چي هغه مړ سو مګر خپل ځان يې تا ته وسپاری نو هغه کافر کيږي.

۱۹.يو سړی ناروغ وي او بيا ښه سي ، بل سړی هغه ته ووايي چي فلانی خر يې بيا را واستوی نو دا هم کفر دی.

۲۰.يو سړی ناروغ سي او د هغه ناروغي زياته او اوږده سي ، ناروغ په ستومانه کېدو سره الله جل جلاله ته ووايي چي يا د اسلام په حالت کي مرګ راکړې يا د کفر په حالت کي نو دا هم د کفر سبب دی.

۲۱.يو سړی په ډول ډول مصيبتو کي اخته سو او په دې سره د بېرېدو سره هغه وويل اې الله ! تا زما مال هم واخيستی ، زما اولاد دي هم واخيستی او داسي داسي دي وکړل نو زما سره دا څه کوې او ته زما څخه څه غواړې يا داسي نور جملې ووايي نو هغه کافر کيږي.

**د کفر هغه موجبات چي د هغو تعلق د تلقين، کفر او ارتداد سره دی :**

١. کله چي يو سړی يو چا ته د کفر د کلمې تلقين وکړي نو هغه کافر کيږي که څه هم د مسخرو په توګه وي .

٢. که يو څوک د يو چا ښځي ته ووايي چي مرتده سه او په داسي کولو سره د خپل خاوند څخه جلاوالی اختيار کړه ، د امام اعظم ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما څخه روايت دي که يو څوک يو چا ته حکم وکړي چي کافر سه نو حکم ورکونکی کافر کيږي که څه هم هغه کافر سي يا نه سي ، امام ابوالليث رحمه الله وايي کله چي يو سړی يو چا ته د کفر د کلمې تعليم ورکوي نو هغه کافر کيږي همدارنګه که يو سړی يا ښځي ته د مرتد کېدو حکم ورکړي نو هغه هم کافر کيږي .

٣. امام محمد رحمه الله وايي که يو سړی مجبور کړل سي چي د کفر کلمه په ژبه ووايي کنه نو د هغه سره به داسي وکړل سي يعني د ځان يا د يو اندام د ضائع کېدو خبر ورکړي او هغه د بيري څخه د کفر کلمه په ژبه سره ووايي نو اوس د دې څو صورتونه دي که چيري هغه د کفر کلمه په ژبه داسي کړي چي د هغه زړه پر ايمان مطمئن وي او په زړه کي يې د کفر خواهش نه وي بلکه يوازي په ژبه سره د کفر کلمه ادا سوې وي نو په دغه صورت کي به هغه نه کافر کيږي او که چيري په ژبه سره د کفر کلمه ويونکی ووايي چي ما دا فکر کړی وو چي په خپل باره کي د پخوانۍ زمانې د کفر د درواغ خبرو کولو سره به خلاصون تر لاسه کړم ما د راتلونکي کفر اراده نه وه کړې نو په دغه صورت کي د قانون په توګه د هغه د کفر فيصله ورکول کيدای او قاضي به د هغه او د هغه د ښځي په مينځ کي جلاوالی راولي او که چيري هغه ووايي چي د کفر کلمې ويلو پر وخت زما په زړه کي دا خبره وي چي په تېره زمانه کي د کفر درواغ خبر ورکړم مګر په پخوانۍ زمانه کي د درواغ کفر زما اراده نه وه کړې بلکه په راتلونکي کي مي اراده وکړه نو په دغه صورت کي به د خدای جل جلاله په نزد هم کافر کيږي او د دنيا په حکم کي به هم کافر کيږي .

٤. يو سړی مجبور کړل سي چي هغه صليب ته په مخ کولو سره لمونځ وکړي نو د دې درې صورتونه دي ١: که چيري هغه دا ووايي چي د زور په وجه مي صليب ته لمونځ کړی دی مګر په زړه کي مي د دغه عقيدې وهم هم نه دی تېر سوی نو هغه نه کافر کيږي نه د قضا په توګه او د الله جل جلاله په نزد ، ٢: که چيري هغه ووايي چي زما په زړه کي دا خبره تېره سوه چي د الله تعالی لپاره لمونځ کوم د صليب لپاره يې نه کوم نو په دغه صورت کي هم هغه نه کافر

كيږي ، ۳: كه چيري هغه ووايي چي زما په زړه كي دا خبره وه چي زه د الله تعالى لپاره لمونځ وكړم مگر ما هغه پرېښودل او د صليب لپاره مي لمونځ وكړ نو په دغه صورت كي به هغه د قضاء په توگه هم كافر وي او د الله ﷻ په نزد به هم كافر وي .

۵. يو مسلمان ته وويل سي چي پاچا ته سجده وكړه كنه نو قتل به سې ، نو غوره دادي چي سجده ونه كړي .

٦. كه يو سړى د كفر كلمه په قصد سره د ژبي څخه وباسي مگر د كفر عقيده يې پيدا نه سوه نو ځيني خلك وايي چي هغه نه كافر كيږي او ځيني خلك وايي چي هغه كافر كيږي او دا صحيح قول دى .

۷. يو سړى د كفر كلمه په ژبه سره ادا كړي مگر هغه ته دا معلومه نه ده چي دا د كفر كلمه ده مگر هغه دا په خپل اختيار سره ويلې وي نو د ټولو علماؤ په نزد هغه كافر كيږي او د جهالت عذر نه منل كيږي او ځيني وايي چي هغه نه كافر كيږي .

۸. مسخرې كونكى چي د كفر كلمه د سپكاوي په توگه ووايي نو هغه د ټولو په نزد كافر كيږي كه څه هم د هغه عقيده د هغه پر خلاف وي .

۹. د يو سړي د ژبي څخه د كفر كلمه په غلطۍ سره جاري سوه په داسي توگه چي هغه بل څه ويل غوښتل مگر د كفر كلمه يې پر ژبه راغلل نو هغه نه كافر كيږي .

۱۰. د مجوسيانو د خولۍ پر سر كولو سره مسلمان كافر كيږي البته د گرمۍ يا يخ څخه د ساتني لپاره كه داسي وكړي نو نه كافر كيږي .

۱۱. د زنار په اغوستلو سره مسلمان كافر كيږي مگر په جگړه كي د جاسوسۍ لپاره كه داسي وكړي نو نه كافر كيږي .

۱۲. يو څوك ووايي چي ته څه كوې تر دې غوره كفر كونكى دى كه په دې سره د هغه نيت د كفر ښه گڼل وي نو هغه كافر كيږي او ځيني علماء لكه فقيه ابو الليث رحمة الله عليه وايي چي يو ازي په دغه جملې سره سړى كافر كيږي كه څه هم د هغه نيت هر څه وي ،

۱۳. مجوسيان چي د نوروز په ورځ څه كوي كه يو مسلمان د هغه په موافقت كي د هغه سره ولاړ سي نو كافر كيږي همدارنگه كه هغه د نوروز په ورځ داسي يو شى راواخلي چي مخكي يې نه رانيوى او دغه رانيول د نوروز د تعظيم لپاره وي نو كافر كيږي . د خوراك، څښناك او د ژوند د اړتياوو د يو شي په رانيولو سره نه كافر كيږي ، په دغه ورځ كه يو مسلمان مشركانو ته د دغه ورځي د تعظيم لپاره يو تحفه واستوي كه څه هم هغه معمولي شى وي نو

هغه کافر کيږي مگر که چيري د هغوی د کوچنيانو په سرخريلو کي د عوت قبول کړي نو په دې سره نه کافر کيږي .

۱۴.د کفارو خبري او معاملې ښه گڼونکی کافر کيږي د مثال په توگه داسي ووايي چي د خوراک پر وخت د مجوسيانو مذهب غوره دی چي هغه وخت خبري نه کوي يا د مجوسيانو په نزد دا ښه دي چي د حيض په حالت کي د ښځي سره ناسته او ولاړه هم ونه کړل سي په دې ويلو سره سړی کافر کيږي .

۱۵.که د يو چا د عزت په وجه د هغه د جامو اغوستلو پر وخت ذبح وکړي نو هغه کافر کيږي او دا ذبيحه مرداره ده او د هغه خوړل جائز نه دي همدارنگه د غير الله د عظمت د اظهار لپاره د يو حيوان ذبح کول يا د غازيانو او حاجيانو د راتللو پر وخت د هغوی د عظمت لپاره داسي کول د کفر سبب دی .

۱٦.کوم حيوان چي د يو پير يا پيري په نامه پرېښودل سي او په نوم ورکولو سره هغه ته شهرت ورکړل سي لکه څرنگه چي جاهل او بې عقيدې خلک يو حيوان پرېږدي او وايي چي دا پسه د شيخ سدو په نامه دی يا دغه غوا د احمد کبير ده يا دا چرگ د فلاني صاحب دی يا د غير الله د نامه د عظمت او تقرب لپاره داسي وکړي نو دا ټول د کفر خبري دي .

۱۷.همدارنگه د بزرگانو پر قبر يا د درياب پر غاړه د حيوان ذبح کول او د يو پيري نذر ورکول دا ټول داسي کارونه دي چي د هغه په وجه سړی کافر کيږي او داسي ذبيحه د مردار په حکم کي ده چي د هغه خوړل صحيح نه دي په داسي صورت کي د څاروي د ذبح کولو پر وخت که بسم الله ووايي يا نه يې ووايي په دواړو صورتو کي هغه حرام دي ځکه چي د غير الله په نامه ذبح سوی دی نو د بسم الله په ويلو سره هيڅ گټه نه تر لاسه کيږي ، همدارنگه الاشباه والنظائر په تنوين الابصار، درمختار، منح الغفار، فتاوی عالمگيري او مطالب المؤمنين کي ذکر سوي دي . په ځينو کتابو کي دا هم صراحت سوی دی چي د غير الله په نامه د پرېښودل سوي حيوان ذبح کونکی هم کافر دی او دا ذبيحه حرامه ده، په علماؤ کي ابوحمص کبير ابودفاق، عبدالله کاتب،عبدالواحد، ابوالحسن نووي او داسي نورو مشهورو علماؤ دا ليکلي دي او دې ته يې صحيح ويلي دي ، په تفسير نيشاپوري کي ليکلي دي چي د ټولو علماؤ پردغه مسئله اتفاق دی چي کوم مسلمان يو څاروی د الله تعالی څخه پرته د بل د تقرب او تعظيم لپاره ذبح کړي نو هغه مرتد دی او د هغه د ذبح سوي څاروي هغه حکم دی کوم چي د يو مرتد د ذبح سوي څاروي حکم دی ، په صحيح

حديث كي راغلي دي چي هغه سړی ملعون دی کوم چي د غير الله د تعظيم لپاره څاروی ذبح کړي لکه څرنګه چي د حديث په مشهور کتاب مشکوة شريف کي دي او شاه عبدالعزيز محدث دهلوي رحمة الله عليه په خپل کتاب تفسير عزيزي کي د دغه آيت کريمه (وما اهل لغير الله) کي ليکلي دي چي هغه څاروي چي د غير الله په نامه سره شهرت ورکړل سوی دی هغه د خنزير څخه هم بد دی او مردار دی ، کوم کسان چي په دې باره کي نور تفصيل کتل غواړي نو هغوی دي تفسير عزيزي مطالعه کړي انشاء الله تعالی د هغه په مطالعه سره به دا مسئله واضحه سي.

١٨. يو ښځه پر خپل ملا باندي د رسۍ په تړلو سره ووايي چي دا زنار دی نو هغه کافره سوه.

١٩. يو سړی داسي ووايي چي د خيانت کولو څخه کفر غوره دی نو اکثر علماء وايي چي په داسي ويلو سره هغه کافر سو او پر دې باندي د ابوالقاسم صغار فتوا ده.

٢٠. يو سړي يو ښځه ووهل او هغه ښځي ورته وويل چي ته مسلمان نه يې، سړي ددې په اوريدو سره وويل چي هو زه مسلمان نه يم نو د هغه په داسي ويلو سره هغه کافر کيږي.

٢١. يو سړي ته وويل سي چي ايا ته مسلمان نه يې ؟ هغه ووايي چي يا نو دا هم کفر دی.

٢٢. يو ښځه خپل خاوند ته ووايي چي په تا کي ديني حميت او اسلامي غيرت نه سته ته دا خوښوې چي زه د پردي خلکو سره خلوت وکړم ، خاوند په جواب کي ووايي چي هو په ما کي ديني حميت او اسلامي غيرت نه سته نو په داسي ويلو سره هغه کافر کيږي.

٢٣. يو سړي خپل ښځي ته داسي ووايي چي اې يهوديې! يا اې مجوسيې! يا اې کافري!، ښځه ددې په اوريدو سره ووايي چي زه هم داسي يم يا هغه ووايي چي داسي يم نو ته ما ته طلاق راکړه يا داسي ووايي که داسي نه وي نو ستا سره به څرنګه اوسيږم ، يا داسي ووايي که داسي نه وي نو ستا سره به مي مينه نه کولای، يا تا به زه نه ساتلای، نو په داسي ويلو هغه ښځه کافره کيږي او که چيري ددې په جواب کي هغه ووايي که زه داسي يم نو ما مه ساته نو په دې سره هغه نه کافره کيږي.

٢٤. که چيري يو ښځه خپل خاوند ته ووايي چي اې کافره! اي يهودي! او خاوند د هغه په جواب کي ووايي چي زه داسي يم يا داسي ووايي که داسي نه وي نو ته به مي نه ساتلای نو هغه په داسي ويلو سره کافر سو او که چيري هغه ووايي چي زه داسي يم نو ته زما سره مه اوسه نو په دغه صورت کي هغه نه کافر کيږي.

٢٥. كه يو ځوک پردي سړي ته ووايي چي اې كافره!، يا اې يهودي! او هغه ووايي چي زه همداسي يم زما سره ته مه اوسيږه، يا هغه داسي ووايي كه داسي نه وي نو ستا سره به نه اوسيدلای يا داسي يو بله جمله ووايي نو هغه كافر كيږي .

٢٦. يو سړي د يو كار اراده وكړه او د هغه ښځي ورته وويل كه ته دا كار وكړې نو كافر به سې خاوند هغه كار وكړ او د ښځي خبري ته يې توجه ونه كړه نو هغه خاوند نه كافر كيږي .

٢٧. كه يو پردی سړي يو مسلمان ته ووايي چي اې كافره ! يا پردی ښځي ته ووايي چي اې كافري! او مخاطب سړی او ښځه په جواب كي هيڅ ونه وايي يا يو خاوند خپل ښځي ته ووايي چي اې كافري! او ښځي په جواب كي هيڅ ونه ويل يا ښځي خپل خاوند ته وويل چي اې كافره! خاوند هيڅ جواب ور نه كړي نو په دغه صورت كي د ابوبكر اعمش بلخي رحمة الله عليه قول دی چي ويونكی كافر دی او نور د بلخ علماء وايي چي هغه نه كافر كيږي او صحيح جواب دادی كه د ويونكي اراده يوازي بد ويل وي نو هغه نه كافر كيږي او كه هغه دا عقيده هم ولري چي دا مسلمان كافر دی او بيا هغه ته په كافر سره ووايي نو هغه ددې په وجه كافر كيږي .

٢٨. كه يو ښځه خپل زوی ته ووايي چي كافر زويه! نو دا د كفر سبب نه دی او ځينو ويلي دي چي دا كفر دی همدارنګه يو سړی خپل زوی ته ووايي چي اې كافره! نو هغه هم نه كافر كيږي او كه يو ځوک خپل حيوان ته ووايي چي اې كافره! نو په دې سره هم نه كافر كيږي .

٢٩. كه يو ځوک يو مسلمان ته ووايي چي اې كافره! ، يا اې يهودي، يا اې مجوسي! او هغه مسلمان په جواب كي لبيک ووايي نو هغه كافر كيږي او كه داسي ووايي چي زه بېرېدم چي كافر نه سم نو په دې سره نه كافر كيږي،

٣٠. كه يو ځوک يو چا ته ووايي چي زه تا دومره په تكليف كړم چي زما زړه وغوښتل چي كافر سم نو هغه كافر كيږي .

٣١. كه يو ځوک ووايي چي دا زمانه د مسلمان پاته كېدو نه ده بلكه دا زمانه د كافر كېدو ده ، نو ځينو ويلي دي چي په دې سره كافر كيږي او صاحب محيط ليكلي دي چي زما په نزد صحيح دادی چي نه كافر كيږي .

٣٢. يو مجوسي او يو مسلمان په يوه ځای كي وي ، يو سړی مجوسي ته اواز وكړي چي اې مجوسي! اوس كه چيري مسلمان په دې ګڼلو سره جواب وركړي چي ما ته وايې نو هغه نه كافر كيږي په شرط ددې چي هغه دواړه د بلونكي په يو كار كي بوخت وي او كه چيري

دواړه په یوه کار کي بوخت نه وي بلکه دواړه په جلا جلا کارو کي بوخت وي نو پر هغه باندي د کفر بېره ده.

۳۳. که یو مسلمان ووایي چي زه ملحد یم نو هغه کافر کیږي او که چیري داسي ووایي چي ما ته معلومه نه ده چي په دغه جملې سره سړی کافر کیږي نو هغه به ددې په وجه معذور نه ګڼل کیږي.

۳۴. یو سړی یو جمله په خوله سره ووایي چي خلکو هغه د کفر کلمه وګڼل حالانکه په حقیقت کي هغه د کفر کلمه نه وه مګر هغه ته خلکو وویل چي ته کافر سوې او ستا او ستا د ښځي په مینځ کي به جلاوالی واقع کیږي او ددې په جواب کي که چیري هغه ووایي چي کافر شده ګیر وزن طلاق شده ګیر، نو کافر کیږي او د هغه او د هغه د ښځي په مینځ کي جلاوالی واقع کیږي.

۳۵. که یو سړی ووایي چي زه فرعون یم، یا داسي ووایي چي زه ابلیس یم نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي.

۳۶. یو سړی یو بدکاره سړي ته نصیحت کوي او د توبې ترغیب ورکوي مګر هغه په جواب کي ووایي چي (از پس این همه کلاه مغان بر سر نهم) نو په داسي ویلو سره هغه کافر کیږي.

۳۷. یوه ښځه خپل خاوند ته ووایي چي ستا سره اوسیدل تر کافر کېدو غوره دي نو هغه کافره سوه.

۳۸. یوه ښځه ووایي که چیري زه دا کار وکړم نو کافره به یم، ابوبکر محمد بن الفضل رحمة الله علیه وایي چي په داسي ویلو سره هغه کافره کیږي او د هغې نکاح ماته سوه، د قاضي علي السعدي رحمة الله علیه وېناه ده چي دا جمله تعلیق او یمین دی کفر نه دی.

۳۹. یوه ښځه خپل خاوند ته ووایي ته به ددې وروسته پر ما ظلم کوې یا داسي ووایي چي که ته ما فلانی شي نه راوړې نو زه به کافره سم نو هغه سمدستي په داسي ویلو سره کافره سوه.

۴۰. یو سړی د مثال په توګه ووایي چي زه مجوسي وم مګر مسلمان سوم او دا د حکایت په توګه ووایي د عقیدې په توګه یې ونه وایي نو په دې سره هغه نه کافر کیږي.

۴۱. یو سړی یو مسلمان ته ووایي چي الله تعالی دي ستا څخه ایمان واخلي او هغه په جواب کي ووایي چي آمین نو هغوی دواړه کافران کیږي.

۴۲.یو سړي یو چا ته تکلیف ورکړ او هغه ورته وویل چي ما ته تکلیف مه راکوه زه مسلمان یم ، تکلیف ورکونکي ورته وویل که مسلمان یې که کافر ، نو تکلیف ورکونکی کافر کیږي ، یا داسي ووایي که ته کافر سې نو زما څه تاوان دی نو په داسي ویلو سره هم کافر کیږي .

۴۳.یو کافر اسلام قبول کړی او خلکو هغه تحفې ورکړې ، یو مسلمان د هغه په لېدو سره وویل چي کاشکي زه هم کافر وای او بیا مسلمان سوی وای نو خلکو به ما ته هم تحفې راکړي وای ، یا هغه دا خبره په ژبه ونه کړه مگر په زړه کي یې دا خواهش وکړ نو هغه کافر سو .

۴۴. یو سړی خواهش وکړ چي کاش شراب حرام نه وای نو په دې سره نه کافر کیږي .

۴۵. که یو سړی خواهش وکړي چي کاش الله تعالی ظلم او زنا کول حرام کړي نه وای یا ناحقه قتل یې حرام کړی نه وای نو هغه کافر کیږي ځکه چي دا دواړه هغه شیان دي چي هیڅکله حلال نه وه یعني په اول صورت کي د داسي شي خواهش وو چي محال نه دی او په دوهم صورت کي یې د داسي شي خواهش وکړ چي محال دی .

۴۶. همدارنګه یو څوک خواهش وکړي چي کاش د ورور او خور په مینځ کي نکاح حرامه نه وای نو په دې سره هغه کافر کیږي ځکه چي دا په شروع کي حلال وو نو محال ورته نه سي ویل کیدای ، خلاصه دا چي کوم شی یو وخت حلال وي او وروسته حرام سوی وي نو د هغه د حلال کېدو خواهش کول د کفر سبب نه دی.

۴۷. یو مسلمان د یو ښکلي عیسائي ښځي په لېدو سره خواهش وکړي چي کاش زه عیسائي وای او د هغې سره مي واده کړی وای نو هغه کافر کیږي .

۴۸. یو سړي یو چا ته وویل چي پر حق خبره زما مرسته کوه او هغه ورته وویل چي مرسته پر حق هم کیږي او پر ناحق هم کیږي مگر ستا مرسته به کوم نو هغه کافر کیږي .

۴۹.که یو څوک ووایي چي ما دغه درخته پیدا کړې ده نو هغه په دې ویلو سره نه کافر کیږي ځکه چي د هغه مراد به د درختي لګول وي مگر که یو څوک حقیقتا پیدا کول مراد واخلي نو هغه کافر کیږي .

۵۰.یو سړي ووایي تر څو چي فلانی سړی موجود وي یا داسي ووایي چي تر څو زما بازو موجود وي زما رزق نه کمیږي، ځینو مشائخو ویلي دي چي په دې سره هغه کافر کیږي او ځینو علماؤ ویلي دي چي پر هغه د کفر بېره ده .

۵۱.که یو څوک ووایي چي تصوف بدبختي ده نو دا ډېره بده خبره ده .

۵۲. یو څوک د سپوږمۍ شاوخوا دائره ووینی او دعوه وکړي چې باران به کیږي او په داسې ویلو سره هغه د غیب ویلو دعوه وکړي نو هغه کافر کیږي.

۵۳. یو نجومي یو چا ته وویل چې ستا ښځه حامله ده او هغه پر دې عقیده وکړه نو هغه کافر سو.

۵۴. یو سړی د ګوګو کوترې اواز واورې او بیا یو چا ته ووایي چې ته به ناروغ سې او مړ به سې یا یو مصیبت به در باندې راسي نو په دې کې د مشائخو اختلاف دی.

۵۵. یو چا ناجائز خبره وکړه او بل سړي هغه ته وویل چې دا ته څه وایې په داسې ویلو سره به ته کافر سې او هغه ورته ووایي چې زه څه وکړم چې کافر کیږم کافر دې سم نو په داسې ویلو سره هغه کافر کیږي.

۵۶. یو سړی د قرآن کریم په ویلو کې د ضاد پر ځای زاء ووایي یا د اصحاب الجنة پر ځای اصحاب النار ووایي نو د داسې سړي امامت جائز نه دی. او که یو څوک یې په قصد سره ووایي نو کافر کیږي.

۵۷. که یو څوک ووایي چې قسم دې ستا په ژوند وي یا زما په ژوندٔ ي یا داسې بل قسم وکړي نو پر هغه د کفر بېره ده.

۵۸. یو سړی ووایي چې رزق خو الله تعالی ورکوي مګر هغه د بنده څخه حرکت غواړي ځینو ویلي دي چې دا شرک دی.

۵۹. یو سړی ووایي چې زه د عذاب او ثواب څخه خلاص یم نو ویل کیږي چې په دې سره هغه کافر کیږي.

٦۰. که یو څوک ووایي چې فلاني سړی څه وایي زه به یې کوم که څه هم هغه کفر وي نو په دې سره هغه کافر کیږي.

٦۱. که یو څوک ووایي چې زه د مسلمانۍ څخه بېزاره یم نو هغه کافر کیږي.

٦۲. د مامون رشید د زمانې یوه واقعه نقل سوې ده چې د وخت خلیفه د یو فقیه څخه د هغه سړي په باره کې پوښتنه وکړه چې د جامې اوبدونکی قتل کړي نو پر دغه قاتل باندې څه واجب دي، فقیه ورته وویل چې تغاریب واجب دی، مامون حکم وکړ چې فقیه دې ووهل سي نو هغه ووهل سو تر دې چې هغه مړ سو، بیا مامون وویل چې ما دا حکم ددې لپاره ورکړی وو چې هغه د شریعت سپکاوی وکړی او د شریعت سپکاوی کول کفر دی.

٦۳. که یو چا توره کمبله اغوستې وي او یو بل چا د هغه په لېدو سره ورته مدثر وویل نو دا کفر دی.

٦۴. که یو څوک ظالم پاچا ته عادل ووایي نو هغه کافر کیږي او ځینو ویلي دي چي هغه نه کافر کیږي .

٦۵. که یو څوک یو ظالم پاچا ته ووایي اې خدا ! نو هغه کافر کیږي او که ووایي چي اې بارخدا ! نو اکثر مشائخ وایي چي په دې سره نه کافر کیږي .

٦٦. د یو عالم څخه چي صغار نومیږي د هغه خطبو په باره کي پوښتنه وسوه چي د جمعې په ورځ پر منبر ویل کیږي او سلطان ته د العادل الاعظم یا شهنشاه اعظم یا مالک رقاب الامم ، یا سلطان ارض الله ، یا مالک بلاد الله، یا معین خلیفة الله په لقب سره یادوي نو ایا د پاچا په خطبه کي په دغه الفاظو سره یادول جائز دي که یا ؟ هغه په جواب کي وویل چي دا جائز نه دي ځکه چي په دې کي اکثر الفاظ د کفر دی او ځیني معصیت او ځیني کذاب دی او د شهنشاه لفظ د اعظم د لفظ څخه پرته د الله تعالی د سماؤ لپاره خاص دی په هغه سره د بندګانو صفت کول جائز نه دی او د مالک رقاب الامم جمله د پاچا لپاره درواغ دي همدارنګه پاچا ته سلطان ارض الله یا په داسي بل لقب سره یادول هم درواغ دي .

٦٧. امام ابومنصور ویلي دي که یو څوک د چا په مخکي مځکه مچ کړي یا د هغه په مخکي کښېنته سي یا خپل سر کښېنته کړي نو هغه نه کافر کیږي ځکه چي د هغه مقصد د هغه تعظیم او تکریم دی عبادت نه دی او نورو مشائخو ویلي دي چي د ظالم په مخکي کښېنته کېدل لویه ګناه ده او ځینو عالمانو ویلي دي چي په دې سره هغه مطلق کافر کیږي . او ځینو ویلي دي چي په دې کي تفصیل دی که چیري د عبادت اراده یې وي نو کافر کیږي او که د تعظیم اراده یې وي نو نه کافر کیږي مګر د هغه دغه فعل به حرام وي او که یو اراده یې نه وي نو د اکثرو په نزد کافر کیږي ، مځکه مچول د سجدې کولو په ډول دي مګر پر مځکه باندي د تندي ایښودلو څخه کم جرم دی ،

٦٨. که یو څوک دا عقیده ولري چي خراج د پاچا ملکیت دی نو دا کفر دی .

٦٩. که یو څوک د چا سره بد کړي او هغه ووایي چي دا ټول ستا راوړل سوی مصیبت دی د خدای ﷻ په دې کي دخل نه سته نو دا هم کفر دی .

۷۰. که یو څوک د پاچا د خوښي او مبارکۍ لپاره قرباني وکړي نو هغه کافر کیږي او قرباني به د مردار په حکم کي وي او د هغه خوړل به صحیح نه وي.

۷۱. چیري چي دا دهندوانو رواج وي چي پر یو چا باندي غمي ډانې راوخیژي نو ښځه د یو ډبري نوم دانه کښېږدي او د هغه په عبادت کولو سره د دانو څخه شفاء غواړي او دا عقیده

لري چي په دې سره هغه ښه کیږي دا د کفر سبب دی او هغه ښځه کافره کیږئ او که چیرې هغې خاوند هم په دې راضي وي نو هغه هم کافر کیږي.

۷۲. همدارنګه د دریاب غاړې ته په تللو سره د اوبو عبادت کول او هلته پسه وغیره ذبح کول مشرکانو رواج دی او د کفر سبب دی او هغه پسه د مردار په حکم کي دی او د هغه غوښې خوړل حرام دي.

۷۳. همدارنګه په کور کي د عکسونو جوړول او اېښودل او د هغو عبادت کول یا کوچني د پیدا کېدو پر وخت نقشه جوړول او پر هغه تېل اچول او بیا د هغه عبادت کول داسي نور ډېر کارونه کول د مشرکانو رواج دی او د کفر سبب دی.

۷۴. که یو څوک ووایي چي نن سبا خیانت ونه کړم او دروغ ونه وایم نو ګزاره نه کیږي یا داسي ووایي چي تر څو پوري په رانیولو او پلورلو کي دروغ ونه وایې نو ډوډۍ به پیدا نه کړې، یا یو څوک یو چا ته ووایي چي ته ولي خیانت کوې، یا ورته ووایي چي ته ولي دروغ وایې او هغه په جواب کي ورته ووایي چي ددې څخه پرته بله چاره نه سته نو به داسي ویلو سره هغه کافر کیږي.

۷۵. که یو څوک یو چا ته ووایي چي ته دروغ مه وایه او هغه په جواب کي ورته ووایي چي دا خبره خو تر کلمې زیاته صحیح ده نو هغه کافر کیږي.

۷٦. که یو څوک په غصه سي او بل څوک د هغه په غصه کي لېدو سره ووایي چي تر غصې خو کفر غوره دی نو هغه کافر کیږي.

۷۷. که یو څوک یو ناجائزه خبره وکړي او بل سړی ورته ووایي چي دا ته څه وایې په دې سره کافر کیږې او هغه په جواب کي ورته ووایي که زه کافر کیږم نو ته به څه کوې نو هغه ددې په ویلو سره کافر کیږي.

۷۸. د یو چا په زړه کي د یو داسي شي خطره راغلل چي هغه د کفر سبب وه که چیرې هغه په دغه حالت کي هغه پر ژبه راوړي او بده یې وګڼل نو دا د ایمان نښه ده او که د کفر په اراده هغه پر ژبه راوړي نو هغه وخت به کافر سي.

۷۹. که یو سړی په خوښي سره د کفر کلمه پر ژبه راوړي مګر د هغه زړه پر ایمان باندي قایم وي نو هغه کافر کیږي او د الله جل جلاله په نزد به مؤمن نه وي.

که یو څوک داسي خبره وکړي چي د هغه په کفر کېدو کي اختلاف وي نو ویونکي ته پکار دي چي توبه وکړي او د نکاح تجدید وکړي.

کوم ځوک چي په هېره سره داسي الفاظ د ژبه څخه وباسي چي هغه د کفر سبب نه وي نو هغه
على حاله مؤمن دى او هغه ته به د توبې حکم ورکول کيږي مګر د نکاح د تجديد حکم به نه
ورکول کيږي.
که يو ځوک داسي خبره وکړي يا داسي کار وکړي چي د هغه يو څو صورتونه د کفر وي او يو
صورت يې داسي وي چي کفر نه لازميږي نو پر مفتي باندي لازم دي چي د هغه پر عدم کفر
باندي رجحان وکړي مګر که چيري هغه سړى په صراحت سره هغه صورت اختيار کړى وي کوم
چي د کفر سبب دى نو هغه وخت به تاويل ګټور نه وي مګر که چيري د ويونکي په نيت کي هغه
صورت وي چي په هغه سره سړى نه کافر کيږي نو هغه مسلمان دى او که چيري هغه صورت
اختيار کړي چي د کفر سبب دى نو د هيڅ مفتي فتوا د هغه لپاره کار نه ورکوي او هغه ته به د
توبې حکم ورکول کيږي چي توبه وکړي او د هغه خبري څخه رجوع وکړي او د خپل ښځي سره
بيا نکاح وکړي.
د مسلمان لپاره دا مناسب دي چي هغه سهار او ماښام لاندينى دعاء ووايي، انشاء الله تعالى د
کفر او شرک څخه به په هر صورت کي خوندي وي ځکه چي رسول الله ﷺ داسي فرمايلي دي،
هغه دعاء دا ده:

اللهم اني اعوذبک من ان اشرک بک شيئا وانا اعلم واستغفرک لما لا اعلم.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د مرتد سزا قتل دى

﴿۳۳۷۹﴾: عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ أُتِيَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ بِزَنَادِقَةٍ فَأَحْرَقَهُمْ فَبَلَغَ

د حضرت عکرمة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت علي رضي الله عنه ته يو څو زنديقان (مجوسيان، آتش
پرست او نور ملحد او مرتد) راوستل سول نو هغه په اور کي وسوځول،

ذٰلِكَ ابْنَ عَبَّاسٍ فَقَالَ لَوْ كُنْتُ أَنَا لَمْ أُحْرِقْهُمْ لِنَهْيِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

دا خبره چي ابن عباس رضي الله عنه ته ورسيدل نو هغه وويل: که زه واى نو هغوى به مي په اور کي نه
واى سوځلي ځکه چي نبي کريم ﷺ فرمايلي دي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُعَذِّبُوا بِعَذَابِ اللّٰهِ وَلَقَتَلْتُهُمْ لِقَوْلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ . رواه البخاري .

تاسو داسي عذاب مه ورکوئ کوم چي د الله تعالى سره مخصوص وي ما به هغوی قتل کړي وای ځرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي څوک خپل اسلام مذهب بدل کړي نو هغه قتل کړئ . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\ ٢٦٧، رقم: ٦٩٢٢.

**تشريح**: زنديق د مجوسيانو د يو قوم نوم دی چي د زردشت مجوسي د اختراع کړي کتاب (زند) پيروان دي ، مګر په عامه اصطلاح کي هر ملحد ته زنديق ويل کيږي ، دلته هم د زنديق څخه هر ملحد في الدين مراد دی چي د اسلام په پرېښودو سره مرتد سوی وي ، ځيني علماء وايي چي په دغه روايت کي کومو خلکو ته زنديق ويل سوي دي هغه په اصل کي د عبدالله ابن سبا د قوم څخه وه چي د اسلام په حدودو کي د فتنې او فساد کولو او د امت د ګمراه کولو لپاره يې خپل ځان مسلمان ظاهروی او د حضرت علي ﷛ په باره کي يې د خدايي دعوه کول ، حضرت علي ﷛ د هغوی ددغه عظيمي فتنې ختمولو لپاره ټول ونيول او د هغوی څخه يې غوښتنه وکړه چي ټول توبه وکړئ او ددغه فتنې د خپرولو څخه منع سئ مګر کله چي هغوی انکار وکړ نو حضرت علي ﷛ يوه کنده وکښل او په هغه کي يې اور بل کړی او هغه ټول يې په دغه کنده کي وغورځول .

نقل سوي دي چي کله د ابن عباس ﷛ ذکر سوی قول حضرت علي ﷛ ته ورسيدی نو هغه وفرمايل چي بېشکه ابن عباس ﷛ ريښتيا ويلي دي ، ددې څخه معلومه سوه چي حضرت علي ﷛ په دغه مسئله کي پر خپل اجتهاد باندي عمل وکړ او ددې لپاره يې هغوی ټول وسوځل چي يوازي دا خلک نه بلکه نور خلک هم ددغه فتنې څخه منع سي .

## چا ته د اور سوځلو سزا مه ورکوئ

﴿٣٣٨٠﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ النَّارَ لَا يُعَذِّبُ بِهَا إِلَّا اللهُ . رواه البخاري

د حضرت عبدالله ابن عباس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د اور عذاب يوازي د الله تعالى سره خاص دئ (د بل چا لپاره د اور عذاب ورکول جائز نه دي) بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١١٥، رقم: ٢٩٥٤.

## د خوارجو نښاني

﴿۳۳۸۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ سَيَخْرُجُ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې: ډير ژر په آخره زمانه کي به داسي يو قوم پيدا سي

قَوْمٌ فِي آخِرِ الزَّمَانِ أَحْدَاثُ الْأَسْنَانِ سُفَهَاءُ الْأَحْلَامِ يَقُولُونَ مِنْ خَيْرِ

چي د نوعمر او کم عقل کېدو سربېره به د غوره خلکو په ډول خبري کوي د هغوی ايمان به د

قَوْلِ الْبَرِيَّةِ لَا يُجَاوِزُ إِيمَانُهُمْ حَنَاجِرَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ كَمَا يَمْرُقُ

هغوی د حلق څخه وړاندي نه ځي د مذهب څخه به هغوی داسي وزي څرنګه چي د ليندۍ څخه

السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ فَأَيْنَمَا لَقِيتُمُوهُمْ فَاقْتُلُوهُمْ فَإِنَّ فِي قَتْلِهِمْ أَجْرًا لِمَنْ

قَتَلَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه.

غشي وځي، په تاسو کي چي څوک د هغه قوم سره يو ځای سئ هغه دي قتل کړي د دې په قتلولو کي به هغه سړي ته د قيامت په ورځ ثواب ورکول کيږي څوک چي هغه قتل کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٢٨٣، رقم: ٦٩٣٠، ومسلم ٢\٧٤٦، رقم: ١٥٤-١٠٦٦.

**د لغاتو حل**: الاحلام: اى ضعفاء العقول (کم عقله). البرية: اى الخليقة. (زوړ).

**تشريح**: خلکو ته به يې نيکي خبري بيانولې، ددې څخه مراد دادی چي ذکر سوي خلک به هغه غوره اقوال او ښه خبري بيانوي کوم چي په عامه توګه د الله تعالى د نيکو بندګانو پر ژبو جاري وي يعني د قرآن کريم آيت، مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د مشکوة شريف په نسخو کي (من خير قول البرية) دی يعني د خير تعلق د قول سره دی، دلته ددې مطابق ترجمه او مطلب بيان سوی دی حال دا چي په مصابيح کي (من قول خير البرية) يعني په دې کي د خير تعلق د برية سره دی د هغه مطلب به دا وي چي هغه خلک به د غوره انسان اقوال بيانوي نو په دغه صورت کي به د قرآن کريم د آيت پر ځای د رسول الله ﷺ حديثونه مراد دي. مګر علماء کرام

وايي چي د جملې زيات مناسب ترکيب هغه دی کوم چي دلته په مشکوة کي نقل سوی دی ځکه چي په حديثو کي د خوارج په باره کي نقل سوي دي چي د قرآن کريم آيت وايي او هغه ته به په خپل غلط عقيدې او نظريې باندي استدلال کول او د هغه آيات به غلط تاويل کوي.

لکه څرنګه چي غشي د ښکار د منځ څخه وځي: ددې مطلب دادی چي څرنګه يو غشی د ښکار د مينځ څخه وځي او هغه په ښکار کي په ژر پيوست کېدو سره سمدستي د وتلو په وجه هغه غشی د ښکار په وينو وغيره لړل سوی نه وي همدارنګه هغه خلک به هم د وخت د امام او علماء حق د اطاعت څخه وځي ، طيبي رحمة الله عليه وايي چي ددغه مثال مراد د هغه خلکو ددين په دائره کي داخلېدل او بيا ددين د دائرې څخه وتل او د غشي په ډول چي په ښکار کي په پيوست کېدو سره وځي او لړل کيږي نه پر دغه خلکو به ددين د يو خبري اثر نه کېدل ظاهر دي او د هغه منشاء د هغه خوارج ښودل دي کوم چي د وخت د امام او د اسلامي حکومت پيروان نه وي او پر خلکو باندي وسله پورته کوي ، په شروع کي ددغه خوارجو ظهور د حضرت علي رضي الله عنه په خدمت کي وسو چي حضرت علي رضي الله عنه د هغوی څخه اکثره ووژل.

## د خوراجو په باره کي د علماؤ فيصله

خطابي رحمة الله عليه وايي چي د امت د علماؤ پر دې اتفاق دی چي د خوارجو ډله د ګمراهۍ سربېره د مسلمانانو د ډلو څخه يوه ډله ده ، د هغوی سره نکاح کول هم جائز دي او د هغوی ذبيحه خوړل هم صحيح دي او د هغوی شاهدي هم معتبره ده ، نقل سوي دي چي د حضرت علي رضي الله عنه څخه ددغه خلکو په باره کي پوښتنه وسول چي ايا دا خلک کافران دي ؟ هغه وفرمايل چي هغوی خو د کفر څخه را تښتيدلي دي (نو هغوی ته کافران څنګه ويل کيدای سي) ، ددې څخه وروسته پوښتنه ځيني وسول چي ايا هغوی منافقان دي ؟ هغه وفرمايل منافق خو الله تعالی ډېر لږ يادوي حال دا چي خوارج سهار او ماښام الله تعالی يادوي ، بيا پوښتنه ځيني وسول چي هغوی څوک دي ؟ حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل : هغوی (په مسلمانانو کي) د يو ډلي خلک دي ' فتنې او ګمراهي هغوی راګير کړي دي نو هغوی ړانده او کاڼه سوي دي ، لکه څرنګه چي وښوول سول چي خوارج د مسلمانانو د يو ډلي نوم دی چي په ګمراهۍ کي اخته دي ، ددغه ډلي بنيادي عقيده داده چي بندګان يوازي په لوی ګناهو سره نه بلکه په کوچني ګناهو سره هم کافر کيږي .

## د خوارج په اړه د رسول الله ﷺ پیشګوئي

﴿٣٣٨٢﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكُونُ أُمَّتِي فِرْقَتَانِ فَتَخْرُجُ مِنْ بَيْنِهِمَا مَارِقَةٌ يَلِي قَتْلَهُمْ أَوْلَاهُمْ بِالْحَقِّ. رواه مسلم.

د حضرت ابوسعيد خدري رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د امت به دوې ډلي سي د هغو دواړو ډلو په منځ كي به يوه بله ډله راووزي د هغو په قتل به هغه سړی واک تر لاسه کوي کوم چي په هغه ډلو كي حق ته زيات نژدې وي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ٢\٧٤٦، رقم: ١٥١- ١٠٦٤.

**تشريح**: د دوو ډلو څخه مراد يو د حضرت علي رضی الله عنه د حاميانو ډله ده او دوهمه د حضرت معاويه رضی الله عنه د حاميانو ډله ده، ددغه دواړو ډلو په مينځ كي چي كوم دريمه ډله پيداسي هغه ته خوارج وويل سول، د خوارجو د فنا كولو او د هغوی د فتنې او فساد د فع كولو ته حضرت علي رضی الله عنه متوجه سو ځكه چي هغه وخت د حضرت علي رضی الله عنه شخصيت حق ته زيات نژدې او تر ټولو لوی مصداق وو.

## د مسلمان قتل كفر ته نژدې دی

﴿٣٣٨٣﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ لَا تَرْجِعُنَّ بَعْدِي كُفَّارًا يَضْرِبُ بَعْضُكُمْ رِقَابَ بَعْضٍ. متفق عليه.

د حضرت جرير رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع كي وفرمايل: زما وروسته مه كافران كيږئ چي په تاسو كي ځيني د ځيسو غاړي وهي (چي دا كار د كفارو دئ). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\٢٦، رقم: ٧٠٨٠، ومسلم١\٨١. رقم: ١١٨- ٦٥.

**تشريح**: په تاسو كي يو د بل غاړه وهل شروع كړي: دا ستيناف دي يعني يوه جلا جمله ده چي ددې منع د كفر په ذريعه مه پسي ګرځي لپاره وضاحت او بيان دي يعني پوښتنه كونكي پوښتنه وكړه چي د كفر په ذريعه وروسته ګرځيدل څنګه ممكن دي نو په جواب كي وفرمايل سول چي د

مسلمانانو په خپلو کي د يو بل غاړه وهل يعني دا يو داسي عمل دی چي د کافرانو د عمل مشابه دي يا دا عمل يې کفر ته نژدې ورسوی .

﴿٣٣٨٤﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا الْتَقَى

د حضرت ابوبکرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي يو ځای سي

الْمُسْلِمَانِ حَمَلَ أَحَدُهُمَا عَلَى أَخِيهِ السِّلَاحَ فَهُمَا فِيْ جُرُفِ جَهَنَّمَ فَإِذَا قَتَلَ

دوه مسلمانان په داسي حال کي چي پر يو بل يې سلاح راکښلې وي نو هغوی دواړه د دوږخ پر غاړه دي بيا که په هغوی کي يو بل ووژني

أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ دَخَلَاهَا جَمِيعًا وفي رواية إِذَا الْتَقَى الْمُسْلِمَانِ بِسَيْفَيْهِمَا

نو دواړه به دوږخ ته ځي ، د ابوبکرة رضي الله عنه يو بل روايت دئ چي هر کله دوه مسلمانان توري

فَالْقَاتِلُ وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا الْقَاتِلُ فَمَا بَالُ الْمَقْتُولِ

قَالَ إِنَّهُ كَانَ حَرِيصًا عَلَى قَتْلِ صَاحِبِهِ . متفق عليه.

راوکاږي او يو بل ته مخامخ سي نو قاتل او مقتول دواړه به جهنم ته ځي ، ما عرض وکړ چي د قاتل دوږخ ته تلل خو څرګند دي مګر مقتول به په کومه وجه دوږخ ته ځي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : مقتول خو هم د خپل مقابل د وژلو حريص وو. (له دې کبله به هغه هم دوږخ ته ځي.) بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٩٢، رقم: ٦٨٧٥، ومسلم ١٤\٢٢١٣، رقم: ١٤– ٢٨٨٨.

**تشريح** دا دواړه به دوږخ ته يو ځای غورځول کيږي، په دې باره کي علماؤ ليکلي دي چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي په هغه دواړو کي يو هم پر حق نه وي مګر که چيري په هغوی کي يو پر حق وي نو د دوږخ په اور کي به هغه يو غورځول کيږي کوم چي پر ناحقه وي مګر دا هم په هغه صورت کي دی کله چي په اشتباه او تاويل سره قتل نه وي سوی او هغه هم د خپل ملګري پر قتل اماده وي ، ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي دغه ارشاد ددې دليل دی چي د يو کار کول محض پر تياري کولو باندي هم مؤاخذه کيږي په ذکر سوي صورت کي هم دا نوعيت دی چي هغوی دواړه د يو بل پر قتل اماده او د يو بل د سر وهونکي وه مګر که چيري د مقتول

محض دفاع اراده وي او د هغه په نیت کي د دوهم د قتل خواهش او اراده نه وي نو د هغه څخه به مؤاخذه نه کیږي ځکه چي شریعت د دفاعي کاروایي اجازه ورکړې ده.

## د مرتد سزا

﴿۳۳۸۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَرٌ مِنْ عُكْلٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د عکل د قبیلي څو کسان د رسول الله ﷺ په خدمت کي

فَأَسْلَمُوا فَاجْتَوَوُا الْمَدِينَةَ فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَأْتُوا إِبِلَ الصَّدَقَةِ فَيَشْرَبُوا مِنْ

حاضر سول او اسلام یې قبول کړ، مګر د مدینې هوا د هغوی موافق نه وه، رسول الله ﷺ هغوی ته حکم وکړ چي هغوی د زکوة د اوښانو د اوسیدو ځای ته ولاړ سي او د هغو د بولو او شیدو

أَبْوَالِهَا وَأَلْبَانِهَا فَفَعَلُوا فَصَحُّوا فَارْتَدُّوا وَقَتَلُوا رُعَاتَهَا وَاسْتَاقُوا الْإِبِلَ

څخه دي چېښل کوي، هغوی داسي وکړل او ښه سول، بیا هغوی د دین اسلام څخه واوښتل مرتد سول او قتل یې کړل ساربانان د هغه اوښانو او روان یې کړل اوښان

فَبَعَثَ فِي آثَارِهِمْ فَأُتِيَ بِهِمْ فَقَطَعَ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ وَسَمَلَ أَعْيُنَهُمْ ثُمَّ لَمْ

نو رسول الله ﷺ په هغو پسي سپاره ولیږل هغوی یې نیولي راوستل او په دغه جرم کي یې د هغوی لاسونه او پښې پرې کړې او سترګي یې ځیني وکښلې، بیا

يَحْسِمْهُمْ حَتَّى مَاتُوا. وفي رواية فسمروا اعينهم وفي رواية امر بمسامير

د هغوی لاسو او پښو ته د وینو بندولو لپاره په ګرمو تیلو کي داغ ورنه کړل سو تر څو چي هغوی مړه سوه، او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي د هغوی په سترګو کي ګرم سیخونه

فاحميت فكحلهم بها وطرحهم بالحرة يستسقون فما يسقون حتى ما توا. متفق عليه.

ومنډل سول، او په یوه روایت کي داسي دي چي نبي کریم ﷺ د سیخونو د ګرمولو حکم ورکړ او کله چي هغه ګرم کړل سول نو هغوی د هغوی په سترګو کي وګرځول سول او بیا هغوی د مدینې په سنګستان کي وغورځول سول او هغوی به اوبه غوښتلې او اوبه به نه ورکول کیدلې

تر څو چي مړه سول. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٠٩، رقم: ٦٨٠٣، ومسلم ١٣\١٢٩٦، رقم: ٩- ١٦٧١.

**د لغاتو حل**: فاجتووا: في الاجتواء ای کرهوا هواء المدينة وماءها (هو او اوبه نه لګېدل).

**تشریح**: د هغه اوښانو بولي او شيدې دي وڅښي: ددغه ارشاد څخه امام محمد رحمة الله عليه دا استدلال کړی دی چي د کومو حيوانانو غوښه حلاله وي د هغو بولي هم (د علاج په توګه) پاکي دي دا قول د امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهما هم دی مګر د امام اعظم ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما په نزد د هغه حيوانانو بولي ناپاکي دي د هغوی له خوا ددغه ارشاد تاويل داسي کيږي چي د هغه ناروغۍ د نوعيت په اعتبار رسول الله ﷺ ته د وحي په ذريعه دا معلومه سوې وه چي د هغوی د ناروغي درملنه يوازي د اوښ بولي دي ځکه نو رسول الله ﷺ په خاصه توګه هغه خلکو ته حکم ورکړ، امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه وايي چي څرنګه د اوښ بولي څيښل د درملني څخه پرته حلالي نه دي همدارنګه د دواء په توګه څيښل هم حلال نه دي ځکه چي پر دې باندي هيڅوک متفق نه دی چي په بولو کي د يو ناروغۍ شفاء ده مګر د امام ابويوسف رحمة الله عليه په نزد د يو ناروغۍ د درملني لپاره څيښل حلال دي.

ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي سره ددې چي رسول الله ﷺ د مثله څخه منع فرمايلې ده مګر رسول الله ﷺ هغه خلکو ته دا سزا ورکړه ددې وجه يا خو داده چي هغه خلکو د اوښانو د شپانو سره دا چلن کړی وو ځکه نو رسول الله ﷺ د قصاص په توګه د هغه خلکو سره هم داسي معامله وکړه، او يا دا وجه ده چي هغه مفسدانو يو ډېر لوی جرم کړی وو يعني مرتد سوي هم وه او شپانه يې هم قتل کړي وه او غلا يې هم کړې وه چي ټول اوښان يې د ځان سره بوتلل او د وخت امام ته دا حق حاصل دی چي د داسي جرم په صورت کي د زجر او تنبيه په توګه مجرم ته ډول ډول سزاوي ورکړي، ځکه نو رسول الله ﷺ ددې سره سم د هغه خلکو سره هم داسي معامله وکړه.

علامه نووي رحمة الله عليه وايي چي ددغه حديث د معنی او مقصد په باره کي د علماؤ اختلاف دی، ځيني حضرات وايي چي په دغه حديث کي کومه واقعه نقل سوې ده دا واقعه د هغه آيت کريمه د نازلېدو څخه مخکي دي په کوم کي چي د شرعي سزاوو او غلو لپاره په سزا کي صريح احکام بيان سوي همدارنګه رسول الله ﷺ چي د مثله کومه منع فرمايلې ده هغه هم ددغه واقعې څخه وروسته حکم دی، په دې اعتبار سره دا حديث منسوخ دی مګر د نورو حضراتو قول دادی چي دا حديث منسوخ نه دی بلکه په دغه وخت کي هغه آيت نازل سوی دی چي په هغه کي د لار

وهونکو د سزا بیان سوی دی چي هغوی دي قتل کړل سي یا پانسی دي کړل سي یا د هغوی یو لاس او یوه پښه دي پرې کړل سي مګر رسول الله ﷺ چي دغه خلکو ته کومه سزا ورکړل هغه د قصاص په توګه وه چي هغوی د اوښانو د شپانو سره کومه معامله کړې وه د هغوی سره هم هغه معامله وکړل سول.

اوس پاته سوه دا خبره چي په آخر وخت کي به هغه مفسدانو ته آرام ولي نه ورکړل سو، نو په دې باره کي د ځینو علماؤ وینا ده چي دا هم د قصاص په توګه وو چي هغه مفسدانو هم د اوښانو کتونکي همدارنګه بېله اوبو ورکولو په تکلیف سره وژلي وه نو د هغوی سره هم داسي وکړل سول چي هغوی اوبه غوښتلې مګر اوبه ور نه کړل سوې مګر ځیني حضرات وایي چي هغوی ته د اوبو نه ورکولو حکم رسول الله ﷺ نه وو کړی بلکه خلکو هغه مفسدانو ته د نفرت او غصې د اظهار په توګه د خپل طرف څخه هغوی ته اوبه نه وې ورکړې، په دې باره کي مسئله داده چي د علماؤ پر دې اتفاق دی چي څوک د مرګ د سزا وړ وګرځول سي او د هغه قتلول واجب سي که چیري هغه اوبه وغواړي نو د اوبو ورکولو څخه دي انکار نه کیږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مثله ممانعت

﴿٣٣٨٦﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنَ قَالَ كَانَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحُثُّنَا عَلَى الصَّدَقَةِ وَيَنْهَانَا عَنِ الْمُثْلَةِ. رواه ابوداؤد و رواه النسائي عن انس

د حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به موږ ته د صدقې او خیرات ورکولو شوق راکوئ او د مثله (لاسونه، پښې یا بل اندام پرې کولو) څخه به یې منع کولو. ابوداؤد او نسائي د حضرت انس څخه روایت کړی دئ.

**تخریج**: سنن ابي داود ٣/ ١٢٠، رقم: ٢٦٦٧.

**تشریح**: د بدن یو اندام لکه پزه، غوږ، سترګه، یا بل اندام پرې کولو ته مثله وایي، د مثله څخه منع د ځینو حضراتو په نزد حرام دی یعني مکروه تحریمي دي او د ځینو حضراتو په نزد مکروه تنزیهي دي مګر صحیح قول د تحریم دی، تر دې مخکي په حدیث شریف کي دا خبره ښوول سوې ده چي د رسول الله ﷺ له خوا د هغه مفسدانو د اندامو پرېکول د قصاص په توګه وو.

## د حيوانانو سره د رسول الله ﷺ د رحمت جذبه

﴿٣٣٨٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ

عبد الرحمن بن عبد الله د خپل پلار څخه روايت کوي چي په يوه سفر کي موږ د رسول الله ﷺ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ فَرَأَيْنَا حُمَّرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ

سره وو، رسول الله ﷺ پر يوه موقع د قضاء حاجت لپاره تشريف ويوړ، موږ يوه سره مرغۍ وليدل چي د هغې سره دوه بچيان وه،

فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا فَجَاءَتِ الْحُمَرَةُ فَجَعَلَتْ تُفَرِّشُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

موږ د هغې بچيان ونيول، هغه مرغۍ راغلل خپل وزريې پر مځکه خپاره کړل او نس يې د مځکي سره ولګوئ، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ تشريف راوړ

وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ فَجَعَ هٰذِهِ بِوَلَدِهَا رُدُّوا وَلَدَهَا إِلَيْهَا وَرَأَى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ

او وه يې فرمايل ددې بچيان چا ونيول او په مصيبت يې اخته کړل، ددې بچيان بيرته ورکړئ، بيا رسول الله ﷺ د ميږيانو غارونه وليدل

حَرَّقْنَاهَا قَالَ مَنْ حَرَّقَ هٰذِهِ قُلْنَا نَحْنُ قَالَ إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ

إِلَّا رَبُّ النَّارِ. رواه ابوداؤد

چي موږ هغه سوځلي وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا ميږيان چا سوځلي دي؟ موږ عرض وکړ موږ سوځلي دي، رسول الله ﷺ راته وفرمايل: دا مناسب نه دي چي څوک يو چا ته د اور عذاب ورکړي، د اور عذاب ورکونکی يوازي الله تعالى دی چي رب د اور دی. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ١٣/١٢٥، رقم: ٢٦٧٥.

**د لغاتو حل**: حُمرة: طائر صغير كالعصفور. (يو کوچنی مرغه).

**تشريح**: حُمّره د يو مرغه نوم دی چي د چوغکي په ډول کوچنی او سور رنګ يې دی، د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د اور په ذريعه چا ته عذاب ورکول يوازي الله ﷻ ته ښايي او دا تر ټولو لوی عذاب دی ځکه نو هيڅ انسان ته دا حق حاصل نه دی چي هغه يو څوک په اور کي وسوځي.

## د حیوانانو سره د رسول الله ﷺ د رحمت جذبه

﴿۳۳۸۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ

عبد الرحمن بن عبد الله د خپل پلار څخه روایت کوي چې په یوه سفر کې موږ د رسول الله ﷺ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَانْطَلَقَ لِحَاجَتِهِ فَرَأَيْنَا حُمَّرَةً مَعَهَا فَرْخَانِ

سره وو، رسول الله ﷺ پر یوه موقع د قضاء حاجت لپاره تشریف ویوړ، موږ یوه سره مرغۍ ولیدل چې د هغې سره دوه بچیان وه،

فَأَخَذْنَا فَرْخَيْهَا فَجَاءَتِ الْحُمَرَةُ فَجَعَلَتْ تُفَرِّشُ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

موږ د هغې بچیان ونیول، هغه مرغۍ راغلل خپل وزرېې پر مځکه خپاره کړل او نس یې د مځکې سره ولګوئ، په دغه وخت کې رسول الله ﷺ تشریف راوړ

وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ فَجَعَ هَذِهِ بِوَلَدِهَا رُدُّوا وَلَدَهَا إِلَيْهَا وَرَأَى قَرْيَةَ نَمْلٍ قَدْ

او وه یې فرمایل ددې بچیان چا ونیول او په مصیبت یې اخته کړل، ددې بچیان بیرته ورکړئ، بیا رسول الله ﷺ د میږیانو غارونه ولیدل

حَرَّقْنَاهَا قَالَ مَنْ حَرَّقَ هَذِهِ قُلْنَا نَحْنُ قَالَ إِنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُعَذِّبَ بِالنَّارِ إِلَّا رَبُّ النَّارِ. رواه ابوداؤد

چې موږ هغه سوځلي وه، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا میږیان چا سوځلي دي؟ موږ عرض وکړ موږ سوځلي دي، رسول الله ﷺ راته وفرمایل: دا مناسب نه دي چې څوک یو چا ته د اور عذاب ورکړي، د اور عذاب ورکونکی یوازې الله تعالی دی چې رب د اور دی. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۱۳\۱۲۵، رقم: ۲۶۷۵.

**د لغاتو حل**: حُمرة: طائر صغير كالعصفور. (یو کوچنی مرغه).

**تشریح**: حُمّره د یو مرغه نوم دی چې د چوغکې په ډول کوچنی او سور رنګ یې دی، د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چې د اور په ذریعه چا ته عذاب ورکول یوازې الله ﷻ ته ښایي او دا تر ټولو لوی عذاب دی ځکه نو هیڅ انسان ته دا حق حاصل نه دی چې هغه یو څوک په اور کې وسوځي.

د مېږيو په باره کي مسئله داده که چيري مېږي په تکليف رسولو کي شروع وکړي يعني په خپه يو ځوک وچيچي نو د هغه وژل پکار دي کنه نو وژل يې مناسب نه دي، همدارنګه د مېږيو سوري په اور سوځل هم منع دي او د مېږيو په اوبو کي اچول مکروه دي، که چيري يو مېږی يې وچيچي نو يوازي د هغه مېږي وژل پکار دي د نورو مېږيانو وژل پکار نه دي.

## د يوې باطلي ډلي په اړه پيشګوئي

﴿۳۳۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت ابو سعيد خدري او انس بن مالک رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَيَكُونُ فِي أُمَّتِي اخْتِلَافٌ وَفُرْقَةٌ قَوْمٌ يُحْسِنُونَ الْقِيلَ

وفرمايل: زما په امت کي به اختلاف او فرقه والی پيدا سي، په هغوی کي به يوه داسي ډله وي چي خبري به ښه کوي

وَيُسِيئُونَ الْفِعْلَ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الدِّينِ

مګر عمل به يې بد وي، هغوی به قرآن وايي مګر قرآن به د هغوی د حلق څخه نه کښته کيږي (يعني د قرآن د ويلو هيڅ اثر به نه وي) هغوی به د مذهب (اسلام) څخه داسي ووزي

مُرُوقَ السَّهْمِ مِنَ الرَّمِيَّةِ لَا يَرْجِعُونَ حَتَّى يَرْتَدَّ السهم عَلَى فُوقِهِ هُمْ شَرُّ

لکه څرنګه چي غشی د ليندۍ څخه وزي، هغوی به د مذهب په لوري تر هغه وخته رانسي تر څو پوري چي غشی د خپل ليندۍ په لور رانسي، دا خلک د بدترين

الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ طُوبَى لِمَنْ قَتَلَهُمْ وَقَتَلُوهُ يَدْعُونَ إِلَى كِتَابِ اللهِ وَلَيْسُوا

مخلوقات او د حيوانانو څخه به وي، زيری دئ هغه چا ته چي هغوی قتل کړي او هغوی دوی قتل کړئ (يعني د دوی د قتل په صورت کي به هغوی غازيان وي او د دوی د لاسه به خپله د قتل کېدو په صورت کي شهيدان وي) دوی به خلک د الله تعالی د کتاب په لور رابولي (او د سنت

مِنَّا فِي شَيْءٍ مَنْ قَاتَلَهُمْ كَانَ أَوْلَى بِاللهِ مِنْهُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ مَا سِيمَاهُمْ

قَالَ التَّحْلِيقُ. رواه ابوداؤد.

رسول او احادیث نبوي د پرېښودلو ترغیب به ورکوي )، دوی زموږ څخه نه دي (یعني په هیڅ خبره کي دوی مسلمان نه دي ) څوک چي دوی قتل کړي هغه به تر ټولو زیات الله تعالی ته نژدې وي ، صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! د دوی شناخت به څه وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : سر خریل . ابوداؤد .

**تخریج** : سنن ابي داود ١٢٣\١٥، رقم: ۴۷٦٥.

**د لغاتو حل** : التحليق: ای استئصال الشعر والمبالغة في الحلق (په سر خریلو کي مبالغه)

**تشریح** : زما په امت کي به اختلاف او افتراق پیدا سي: ددې مطلب دادی چي زما په امت کي به داسي خلک پیدا سي چي په خپلو کي به اختلاف کوي او د خپلو مقصدو لپاره به د امت د اتحاد ختمولو هڅه کوي .

یوه ډله به ښه خبري کوي .... : دغه جمله د مخکنۍ جملې وضاحت او بیان دی یعني په امت کي چي کوم خلک د اختلاف پیدا کولو هڅه کوي د هغوی به یو خاص ښنه دا وي چي هغوی به ډېري ښه ښه خبري کول مګر د هغوی عمل به ډېر خراب وي د هغوی د ژبي څخه دا ظاهرېږي چي په ټول امت کي داخلک دي چي د دین فدایان دي د الله ﷻ او د رسول ﷺ ریښتوني پیروان دي او د مسلمانانو خیرخواه دي مګر د هغوی د عمل او کردار به دا حال وي چي هغوی به د خپلو مقصدو لپاره به د دښمنانو آله کار وي او د خپل نفس غلامان به وي او د خپل خواهشاتو بندګان او د مال او عزت په حرص کي به اخته وي او د هغوی بنیادي مقصد به د امت د اتحاد دړي وړي کول وي .

یقرءون القرآن : (دا خلک به قرآن کریم وایي) : دغه جمله یا خو استیناف یعني یوه جلا جمله ده چي د مخکني عبارت د وضاحت او بیان لپاره ده یا د شاطبي رحمة الله عليه د مذهب سره سم بدل دی او یا ددې څخه د نفس اختلاف وضاحت مراد دی چي ډېر ژر زما د امت په خلکو کي به اختلاف پیدا سي . او هغوی به پر دوو ډلو وویشل سي په هغوی کي به یوه ډله پر حق وي او یوه ډله به پر باطل وي ، علامه طیبي رحمة الله عليه وایي چي د دغه تاویل تائید د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه هم کېږي کوم چي د دغه باب په اول فصل کي نقل سوی دی چي (تكون امتي فرقتين فتخرج من بينهما مارقة يلي قتلهم اولاهم بالحق) په دغه صورت کي به وویل سي چي قوم لفظ د وروستنۍ جملې موصوف دی او د هغه خبر (یقرءون القرآن) دی او د دغه جملې مقصد دادی چي په دواړو ډلو کي د یوې ډلي په ګوته کول دي حال دا چي د دوهمي ډلي ذکر یې څکه پرې

اینبی دی چي هغه په خپله مفهوم کیږي.

لایجاوز تراقیهم : د هغوی ویل به د هغوی تر حلق نه تیریږي: ددې مطلب دادی چي هغه خلک به په بنیادي توګه سره په ګمراهۍ کي اخته وي او محض د آله کار په توګه به قرآن کریم وایي ځکه د هغوی د قرائت اثر به د هغوی د مخارج حروف او د هغوی د آوازو څخه مخکي نه ځي چي د هغه په وجه به د قرآن کریم د آیت هیڅ اثر هم د هغوی پر زړه نه وي او نه به د هغوی نور اندامونه عمل کوي ، د قرآن کریم په کومو خبرو چي یقین او اعتماد کول لازم دي پر هغه به هغوی اعتقاد او یقین نه لري او د قرآن کریم په کومو خبرو چي عمل کول ضروري وي په هغه به د هغوی عمل نه وي یا ددې جملې دا معنی ده چي الله تعالی به د هغوی قرائت د دنیا څخه پورته کوي یعني هغه به نه قبلوي یعني د هغوی قرائت به د هغوی تر خلکو مخته نه ځي.

حتی یرتد السهم علی فوقه: تر څو چي غشی خپل لیندۍ ته رانه سي ، دا تعلیق بالمحال دی یعني څرنګه چي غشي د خپل لیندۍ په ځا یکي بېرته راتلل محال دی همدارنګه ددغه خلکو دین ته بیا راتلل هم محال دي یعني دغه جمله د الله تعالی ددغه ارشاد (یلج الجمل في سم الخیاط) په ډول ده او ددغه جملې منشاء ددې خبري تائید او شدت سره بیانول دي چي هغه خلک به په سخت جهالت او ګمراهۍ کي اخته وي او دغه غلط ګمان به د هغوی په زړه او دماغ کي ناست وي چي موږ پر حق او هدایت باندي یو ځکه د هغوی په دین کي بېرته راتلل به ناممکن وي.

سر خریل : دا خبره کیدای رسول الله ﷺ ددې لپاره فرمایلي وي چي په هغه زمانه کي د سر خریلو رواج نه وو بلکه اکثرو خلکو به وېښتان پرېښودل ، ددغه ارشاد مقصد د سر خریلو بدي یا تحقیر کول نه دي ځکه چي سر خریل د الله تعالی د شعار او د هغه د طاعت څخه یو عمل دی او د هغه خلکو د عادت څخه دی کوم چي د الله تعالی نېک او صالح بندګان وي، ځیني حضرات وایي چي د تخلیق څخه مراد سر خریل نه دي بلکه خلق د خلکو په حلقه کي کښېنول مراد دي چي د هغه خلکو له خوا به محض د لیدني او تکلیف په توګه وي.

## هغه درې صورتونه چي په هغو کي مسلمان ته د مرګ سزا ورکول کیږي

﴿۳۳۸۹﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ دَمُ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د هیڅ مسلمان چي ذدې

امْرِئٍ مُسْلِمٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ إِلَّا بِإِحْدَى

شاهدي ورکوي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او محمد ﷺ د الله تعالى رسول دئ،

ثَلَاثٍ رَجُلٌ زَنَى بَعْدَ إِحْصَانٍ فَإِنَّهُ يُرْجَمُ وَرَجُلٌ خَرَجَ مُحَارِبًا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ

وژل حلال نه دي خو په دغه درو خبرو کي یوه خبره په وقوع کي راتلو سره د هغه وژل حلالیږي:
(۱) یو خبره خو داده چي د نکاح وروسته زنا وکړي په دې صورت کي به سنگسار کیږي. (۲) دویمه خبره داده چي څوک د الله تعالى او د رسول الله ﷺ خلاف جنگ ته راووزي،

فَإِنَّهُ يُقْتَلُ أَوْ يُصْلَبُ أَوْ يُنْفَى مِنَ الْأَرْضِ أَوْ يَقْتُلُ نَفْسًا فَيُقْتَلُ بِهَا. رواه ابوداؤد

يعني قتل کوي او د الله او د هغه د رسول پر خلاف سرکښي کوي، په دې صورت کي به هغه وژل کیږي یا به په دار کیږي او یا به بندي کیږي (يعني څه ډول چي د جرم کیفیت وي) (۳) دریمه خبره دا چي یو څوک قتل کړي نو د هغه په بدله کي به قاتل هم ووژل سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۲۲، رقم: ۴۳۵۳.

**تشريح**: د محصن کېدو څخه مراد دادی چي هغه مسلمان چي ازاد وي او مکلف وي او په صحيح نکاح سره يې صحبت کړی وي يعني واده يې سوی وي او بيا د هغه وروسته زنا وکړي نو د هغه سزا داده چي په سنگسارولو سره مړ کړل سي.

د لار وهونکو لپاره درې سزاوي بيان سوي دي: ۱: قتل دي کړل سي، ۲: په دار دي کړل سي، ۳: بندي دي کړل سي، ددغه درو سزاوو تفصيل دادی که چيري هغه لار وهونکی غلا ونه کړي بلکه یو څوک يې وژلی وي نو په دغه صورت کي به هغه قتل کیږي او که چيري هغه غلا کړې وي او څوک يې قتل کړی هم وي نو په دغه صورت کي به هغه په دار کړل سي، اوس د هغه په باره کي امام مالک رحمه الله وايي چي دي ژوندی په دار کړل سي تر څو مړ سي مگر امام شافعي رحمه الله وايي چي د هغه په قتل کولو سره دي د هغه مړي په دار وزړول سي تر څو نورو خلکو ته عبرت سي.

دریمه سزا د بند ده، ددې لپاره په حديث کي (ينفي في الارض) الفاظ دي ددې معنی د امام شافعي رحمه الله په نزد دادی چي هغه دي پرله پسې د ښار څخه وايستل سي يعني دي په يو

ښار کي او سيدو ته نه پرېږدي بلکه د يوه ښار څخه دي يې بل ښار ته باسي تر څو هغه کرار او آرام تر لاسه نه کړي ، مګر د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په نزد د دغه الفاظو معنی داده چي هغه دي بندي کړل سي او دا د بند سزا په هغه صورت کي دي کله چي هغه نه مال غلا کړی وي او نه يې څوک قتل کړی وي بلکه پر لاره تلونکی سړی يې بېرولی وي او همدارنګه هغه د لاري د امن او عافيت له خوا خلک په بېره کي اخته کړي وي ، د حديث د اجزاوو چي په هغه کي د لار وهونکي د ذکر سوو سزاوو حکم دی هغه په اصل کي د قرآن کريم د دغه آيت کريمه څخه مستنبط دي :

إِنَّمَا جَزَاءُ الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللهَ وَرَسُولَهُ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوْا أَوْ يُصَلَّبُوْا أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُم مِّنْ خِلافٍ أَوْ يُنفَوْا مِنَ الأَرْضِ . سورة المائدة : ٣٣

ژباړه : بېشکه کوم خلک چي د الله (جل جلاله) او د هغه د رسول (صلی الله عليه وسلم) سره جنګ کوي او په هيواد کي فساد يعني بد امني پيدا کوي نو د هغوی سزا داده چي هغوی دي قتل کړل سي يا په دار دي کړل سي يا هغوی څخه د هر يوه دي يوې خوا ته لاس او بلي خوا ته پښه پرې کړل سي يا د مځکي څخه په ايستلو سره دي بندي خانې ته واستول سي .

په دې اعتبار سره په ظاهره په حديث کي د (او ينفی في الارض) اولنی عبارت (او يقطع يده ورجله من خلاف) کېدل هم پکار وه چي دا حديث د ذکر سوي آيت پوره مطابق سوی وای مګر دا قوي احتمال لري چي په اصل حديث کي دغه عبارت وي البته دلته د حديث د راوي څخه په هيره پاته سوي وي يا راوي د اختصار په وجه په قصد سره حذف کړي وي .

په حديث کي حرف د (او) او د قرآن کريم په آيت کي هم او د تفصيل د اظهار لپاره دی مګر ځيني حضرات وايي چي د تخيير لپاره دی يعني د دې ظاهرولو لپاره دی چي د وخت امام او حاکم ته دا اختيار دی چي هغه د ذکر سوي تفصيل د لحاظ کولو څخه پرته په دغه سزاوو کي چي کومه سزا مناسب وګڼي هغه سزا دي لار وهونکي ته ورکړي .

## مسلمان بيرول منع دي

﴿٣٣٩٠﴾ : وَعَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ حَدَّثَنَا أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن ابي ليلي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله صلی الله عليه وسلم اصحابو موږ ته بيان کړی دئ

أَنَّهُمْ كَانُوا يَسِيرُونَ مَعَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَامَ رَجُلٌ مِنْهُمْ

چي د رسول الله ﷺ صحابه کرامو به د شپې د رسول الله ﷺ سره سفر کوئ (یوه ورځ) یو سړی د

فَانْطَلَقَ بَعْضُهُمْ إِلَى حَبْلٍ مَعَهُ فَأَخَذَهُ فَفَزِعَ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا. رواه ابوداؤد.

دوی سره بیده سو بیا نور خلک ولاړ سوه او د بیده سړي نژدې چي کومه رسۍ پرته وه هغه یې پورته کړه او دا بیده سړی د هغه بل څخه و بیریدئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: د هیڅ مسلمان لپاره دا جائز نه ده چي هغه یو مسلمان و بیروي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٥\٢٧٣، رقم: ٥٠٠٤.

## د اسلام عزت د کفر په ذلت سره مه سودا کوئ

﴿٣٣٩١﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَخَذَ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي د یو جزیې والا

أَرْضًا بِجِزْيَتِهَا فَقَدْ اسْتَقَالَ هِجْرَتَهُ وَمَنْ نَزَعَ صَغَارَ كَافِرٍ مِنْ عُنُقِهِ فَجَعَلَهُ فِي عُنُقِهِ فَقَدْ وَلَّى الْإِسْلَامَ ظَهْرَهُ. رواه بوداؤد.

مځکه رانیول هغه خپل هجرت مات کړ او چا چي د کافر ذلت د هغه د غاړي و ایستئ او په خپله غاړه کي یې واچوئ نو هغه د اسلام څخه مخ وګرځوئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٤٥٩، رقم: ٣٠٨٢.

**د لغاتو حل**: صَغار: اى ذلة في عنقه.

**تشريح**: مطلب دادی که یو مسلمان د یو ذمي څخه یوه خراجي (محصول والا) مځکه رانیول نو پر هغه مسلمان به د هغه مځکي هغه محصول عائد کیږي کوم چي د هغه مځکي د اول مالک پر ذمه عائد وو او همدارنګه هغه مسلمان لکه د دارالاسلام ته چي د هجرت کولو په وجه د کوم حقوقو او کوم شرف او عزت په دائره کي وو د هغه څخه به ځي او د یوه کافر ذلت به په خپل لاس په خپل غاړه کي اچوي.

او چا چي د کافر ذلت د هغه د غاړي څخه وایستی ...الخ: په حدیث کي د غه الفاظ په

اصل کي د اولنيو الفاظ بيان او د هغه وضاحت دی چي کوم مسلمان د يو کافر جزيه پر خپل ذمه واخلي هغه گويا د اسلام ورکړی عزت ورکولو سره د کفر ذلت او رسوائي په بيع واخيستل او همدارنګه هغه کفر د اسلام په بدل کي وګرځوي.

خطابي رحمه الله وايي چي دلته د جزيې څخه مراد خراج دی يعني که يو مسلمان د يو کافر څخه يو خراجي مځکه رانيسي نو د هغه مځکي خراج نه ساقط کيږي بلکه اوس به پر هغه مسلمان باندي عائد کيږي، د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله دا مذهب دی.

## مسلمان دي په کافرانو کي نه ګډيږي

﴿۳۳۹۲﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو لښکر د خثعم د قبيلې په لور

سَرِيَّةً إِلَى خَثْعَمٍ فَاعْتَصَمَ نَاسٌ مِنْهُمْ بِالسُّجُودِ فَأَسْرَعَ فِيهِمُ الْقَتْلَ فَبَلَغَ

وليږئ په هغو کي ځينو خلکو د لښکر په ليدو سره لمونځ پيل کړ او پر سجده پريوتل، خو د هغوی په وژلو کي د تلوار څخه کار واخيستل سو د هغوی د سجدې اعتبار يې ونه کړئ هغوی

ذَلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُمْ بِنِصْفِ الْعَقْلِ وَقَالَ أَنَا بَرِيءٌ

يې قتل کړل، ددې پېښې خبر چي نبي کريم ﷺ ته ورسيدئ نو رسول الله ﷺ د هغه وژل سوو خلکو وارثانو ته د نيمي ضمان ورکولو حکم وکړ او وه يې فرمايل: زه د هر هغه مسلمان څخه

مِنْ كُلِّ مُسْلِمٍ يُقِيمُ بَيْنَ أَظْهُرِ الْمُشْرِكِينَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ لِمَ قَالَ لَا

تَتَرَاءَى نَارَاهُمَا. رواه ابوداؤد.

بريئ الذمة يم چي د کافرانو په منځ کي اوسيدل اختياروي، صحابه کرامو عرض وکړ اې د الله رسوله! دا ولي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل (مسلمان او کافر بايد دومره ليري ليري وي) چي د يو بل اور ونه ويني (يعني چي اور بل کړل سي نو معلوم نسي). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۰۴، رقم: ۲٦۴۵.

**د لغاتو حل**: خثعم: قبيلة من اليمن. (د يمن يوه قبيله)

**تشريح**: رسول الله ﷺ د هغه مقتولينو د مسلمان کېدو د علم کېدو سربېره د هغوی وارثان د

پوره ديت ورړ ونه گرځول بلکه د نيم ديت ورکولو حکم يې وکړ، ددې سبب دا وو چې هغه خلکو د مشرکينو په مينځ کي د هستوګني په اختيارولو سره ګويا په خپل قتل کي مرسته وکړه لکه ځرنګه چې رسول الله ﷺ ددې اظهار هم وفرمايه چې زه د هر هغه مسلمان ځخه بېزاره يم کوم چې د مشرکينو او کفارو په مينځ کي هستوګنه کوي.

چې هغوی په خپلو کي د يو بل اور ونه ليدای سي، مطلب دا دی چې مسلمان او کافر دې د يو بل ځخه دومره ليري اوسيږي که چيري دواړه اور بل کړي نو د مسلمان اور کافر ته ونه رسيږي او د کافر اور مسلمان ته ونه رسيږي لکه ځرنګه چې په ژباړه کي وضاحت سوی دی، په دغه جمله کي د رسول الله ﷺ د هغه بيزارۍ علت مذکور دی چې رسول الله ﷺ د کافرانو په مينځ کي د اوسيدونکو مسلمانانو په اړه ظاهر کړی دی.

## بېله پلټني ځوک مه وژنئ

﴿۳۳۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْإِيمَانُ قَيَّدَ الْفَتْكَ لَا يَفْتِكُ مُؤْمِنٌ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه ځخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ايمان د ناڅاپه قتل ځخه منع کوي، مؤمن سړی دې ناڅاپه ځوک نه قتلوي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۱۲، رقم: ۲۷۶۹.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چې مسلمان بايد په غفلت کي يو ځوک قتل نه کړي او يو ځوک دې هغه د حال د تحقيق او پلټني ځخه پرته چې هغه مسلمان دی که کافر دې قتل نه کړي، ذمي کافر د اسلامي حکومت له خوا د هغه ځان او مال د ساتني د عهد او يقين ورکولو په سايه کي وي ځکه د هغه هم دا حکم دی چې هغه دې نه قتل کيږي مګر که يو مفسد او غدار وي چې هغه د مسلمانانو په تاوان پسي لګيدلی وي او فتنه او فساد خپروي نو د هغه خبره بېله ده، لکه ځرنګه چې کعب ابن اشرف يهودي يا ابورافع يهودي ناڅاپه قتل کړل سو ددې ځخه پرته دا دواړه خلک چې رسول الله ﷺ قتل کړل هغه د الله تعالی خاص حکم دی او ځيني حضرات دا هم وايي چې ددغه دواړو قتل ددغه منع ځخه مخکي واقع سوی دی.

## د غلام مرتد کېدل

﴿۳۳۹۴﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ إِلَى الشِّرْكِ فَقَدْ حَلَّ دَمُهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جرير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي غلام شرک ته وتښتي نو د هغه وژل حلال دي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۲۸، رقم: ۴۳٦۰.

**تشريح**: د هغه وژل به حلال وي: ددې مطلب دادی که چيري داسي غلام قتل کړل سي نو د قاتل څخه به مؤاخذه نه کيږي او نه به پر هغه څه واجب وي ددې لپاره چي هغه غلام د مشرکانو ساتنه اختيار کړې ده او دارالاسلام يې پرې ايښی دی او که چيري د يو غلام دارالحرب ته وتښتي بلکه مرتد هم سي نو د هغه قتلول به په اعلی طريقه حلال وي.

## د رسول الله ﷺ بې ادبي کوونکی...

﴿۳۳۹۵﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ يَهُودِيَّةً كَانَتْ تَشْتُمُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يوې يهودی ښځي په رسول الله ﷺ پسي بد ويل او د

وَتَقَعُ فِيهِ فَخَنَقَهَا رَجُلٌ حَتَّى مَاتَتْ فَأَبْطَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَمَهَا. رواه ابوداؤد.

رسول الله ﷺ عيب به يې وايه، يوه سړي دا خفه کړه تر څو چي مړه يې کړه، نبي کريم ﷺ د هغې وينه باطله (معاف) کړه. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۲۹، رقم: ۴۳٦۲.

**تشريح**: په دغه حديث کي ددې دليل دی که يو ذمي کافر د رسول الله ﷺ په مبارک شان کي بې ادبي وکړي نو هغه خپل عهد مات کړی چي د هغه په وجه په اسلامي حکومت کي هغه ته د خپل ځان او مال ساتنه تر لاسه وه او هغه د مباح الدم حربي په ډول کيږي لکه څرنګه چي د امام شافعي رحمه الله مذهب دی مګر امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله وايي چي ددې په وجه د هغه ذمي عهد نه ماتيږئ دا مذهب د فقهي په کتابو کي د کتاب الجزيه په آخر کي ذکر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

﴿۳۳۹۷﴾: عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا رَجُلٍ خَرَجَ يُفَرِّقُ بَيْنَ أُمَّتِي فَاضْرِبُوا عُنُقَهُ. رواه النسائي.

د حضرت اسامة بن شريک رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چي زما د امت د بيلولو لپاره ووځي نو د هغه غاړه ووهئ (پرې کړئ). نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۷\۹۳، رقم: ۴۰۲۳.

**تشريح**: د وخت امام او خليفه د اتحاد او اجتماعيت بنيادي محور وي، د هغه اطاعت او فرمانبرداري پر هر مسلمان باندي ځکه لازم ده چي د دې په وجه نه يوازي دا چي د اسلام د تعليم اجتماعيت تقاضا پوره کيږي بلکه مسلمانان د يوه بيرغ لاندي متفق او معتمد کېدو سره د اسلام د ښمن او د مسلمان مخالف طاقتونو په مقابله کي يو ټينګ پاڼ جوړيږي او همدارنګه هغوی د اسلام د شان او شوکت پاته ساتلو فريضه پوره کوي مګر که چيري يو سړی په دغه اجتماعي دائره کي نه وي نو هغه يوازي د يوې بدی کونکی نه دی بلکه د پوره امت د اتفاق او اتحاد ختمولو هڅه کوي ځکه فرمايل سوي دي که يو مسلمان د وخت د امام پر خلاف سرکښي او بغاوت اختيار کړي او که هغه ته يو شک او شبه وي يا يو اعتراض وي نو د هغه شک او شبه او اعتراض دي ليري کړل سي مګر د دې سربيره که چيري هغه د خپل دغه حرکت څخه منع نه سي او د اصلاح يو کوښښ د هغه د سرکښی او بغاوت څخه منع نه کړي نو بيا هغه دي قتل کړل سي لکه څرنګه چي حضرت علي رضي الله عنه د خوارجو سره وکړل.

### د خوارجو په اړه پيشګوئي

﴿۳۳۹۸﴾: وَعَنْ شَرِيكِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ كُنْتُ أَتَمَنَّى أَنْ أَلْقَى رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ

د حضرت شريک بن شهاب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه په دې اميد وم چي د رسول الله ﷺ يو صحابي ووينم،

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْأَلُهُ عَنِ الْخَوَارِجِ فَلَقِيتُ أَبَا بَرْزَةَ فِي يَوْمِ عِيدٍ

او د هغه څخه د خوارجي حال و پوښتم، (يعني کوم خوارج چي نن سبا پيدا سوي دي ايا د دوی

په اړه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي) نو د اختر په ورځ زه د ابوبرزه سره يو ځای سوم چي

فِي نَفَرٍ مِنْ أَصْحَابِهِ فَقُلْتُ لَهُ هَلْ سَمِعْتَ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ يَذْكُرُ الْخَوَارِجَ قَالَ

د ملګرو يوه ډله ورسره وه. ما د هغه څخه پوښتنه وکړه ايا تا د رسول الله ﷺ څخه د خوارجو په اړه څه اوريدلي دي ، هغه وويل :

نَعَمْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ بِأُذُنِي وَرَأَيْتُهُ بِعَيْنِي أُتِيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

هو ما د رسول الله ﷺ څخه په خپلو غوږو سره اوريدلي دي او په خپلو سترګو سره مي ليدلي دي ، يو وار رسول الله ﷺ ته مال راغلئ ،

وَسَلَّمَ بِمَالٍ فَقَسَمَهُ فَأَعْطَى مَنْ عَنْ يَمِينِهِ وَمَنْ عَنْ شِمَالِهِ وَلَمْ يُعْطِ مَنْ

رسول الله ﷺ هغه د خپل راسته او چپه لوري په خلکو وويشئ او کوم خلک چي شاته ناست وه هغوی ته يې هيڅ ورنه کړل ،

وَرَاءَهُ شَيْئًا فَقَامَ رَجُلٌ مِنْ وَرَائِهِ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ مَا عَدَلْتَ فِي الْقِسْمَةِ رَجُلٌ

د رسول الله ﷺ د شا د لوري څخه يو سړی ولاړ سو او عرض يې وکړ اې محمد ﷺ! تا انصاف

أَسْوَدُ مَطْمُومُ الشَّعْرِ عَلَيْهِ ثَوْبَانِ أَبْيَضَانِ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

ونه کړ دا سړی تور وو ، وربښتان يې خريلي وه او دوې سپيني جامې يې اغوستي وي ، د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ په غصه سو

وَسَلَّمَ غَضَبًا شَدِيدًا وَقَالَ وَاللَّهِ لَا تَجِدُونَ بَعْدِي رَجُلًا هُوَ أَعْدَلُ مِنِّي ثُمَّ

او وه يې فرمايل : قسم په الله ! زما څخه وروسته به تاسو هيڅوک زيات انصاف کونکی بيا تر لاسه نه کړئ ، د دې وروسته

قَالَ يَخْرُجُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ قَوْمٌ كَأَنَّ هَذَا مِنْهُمْ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ لَا يُجَاوِزُ

رسول الله ﷺ وفرمايل : په آخره زمانه کي به يو قوم پيدا سي (مطلب دا سړی د هغه قوم څخه دئ) هغه قوم به قرآن وايي مګر قرآن به د هغو د حلق څخه نه وځي

تَرَاقِيَهُمْ يَمْرُقُونَ مِنَ الْإِسْلَامِ كَمَا يَمْرُقُ السَّهْمُ مِنَ الرَّمِيَّةِ سِيمَاهُمُ

هغوی به د اسلام څخه داسي ووځي لکه څرنګه چي غشی د ښکار لپاره وځي د هغوی نښه به

التَّحْلِيقُ لَا يَزَالُونَ يَخْرُجُونَ حَتَّى يَخْرُجَ آخِرُهُمْ مَعَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ

فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ هُمْ شَرُّ الْخَلْقِ وَالْخَلِيقَةِ. رواه النسائي.

سر خريل وي دا قوم به هميشه كرار راوځي تر څو چي د دوی آخري سړی به مسيح دجال سره خروج وکړي ، هر کله چي تاسو هغوی سره يو ځای سئ نو هغوی مړه کړئ ، هغوی په انسانانو او حيوانانو کي بد مخلوق دي ، نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۱۱۹\۷، رقم: ۴۱۰۳.

## د قيامت په ورځ به د اهل حق مخان منور او د اهل باطل مخان تور وي

﴿۳۳۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي غَالِبٍ قَالَ رَأَى أَبُو أُمَامَةَ رُءُوسًا مَنْصُوبَةً عَلَى دَرَجِ

د حضرت ابو غالب رحمه الله څخه روايت دئ چي ابو امامة د دمشق په لاره کي سرونه زړيدلي وليدل

دِمَشْقَ فَقَالَ أَبُو أُمَامَةَ كِلَابُ النَّارِ شَرُّ قَتْلَى تَحْتَ أَدِيمِ السَّمَاءِ خَيْرُ قَتْلَى

، ابو امامة وويل دا د دوږخ سپي دي، او تر آسمان لاندي بدترين مقتولان هم دادي خو چا چي دوی وژلي دي هغه ډير ښه وژونکي دي، بيا

مَنْ قَتَلُوهُ ثُمَّ قَرَأَ { يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ } إِلَى آخِرِ الْآيَةِ قُلْتُ

هغه دا آيت ووايه : يوم تبيض وجوه وتسود وجوه، (په هغه ورځ به ډير مخونه سپين وي او ډير به تور وي) ابو غالب وايي ، ما د ابو امامة څخه پوښتنه وکړه

لِأَبِي أُمَامَةَ أَنْتَ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ لَمْ

تا دا خبره د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي ده ؟ هغه وويل که ما نه وای

أَسْمَعْهُ إِلَّا مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا أَوْ حَتَّى عَدَّ سَبْعًا مَا حَدَّثْتُكُمُوهُ . رواه

الترمذي و ابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن.

اوريدلې مګر يو وار يا دوه واره يا درې واره يا تر څو چې اووه واره يې وشمېرل نو هيڅکله به مي تاته نه بيانولای . ترمذي، او ابن ماجة . ترمذي ويلي دي دا حديث حسن دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ٥\ ٢١٠، رقم: ٣٠٠٠، وابن ماجه ١\ ٦٢، رقم: ١٧٦١.

**د لغاتو حل**: درج: اى طريقة. (لاره)

**تشريح**: حضرت ابو امامه رضي الله عنه چي کوم آيت ووايه هغه پوره آيت داسي دی :

يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ فَأَمَّا الَّذِينَ اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ أَكْفَرْتُم بَعْدَ إِيمَانِكُمْ فَذُوقُواْ الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ . سورة آل عمران ١٠٦.

ژباړه : په هغه ورځ به ډېر مخونه سپين (منور) وي او ډېر مخونه به تور وي نو د چا مخونه چي تور وي هغوی ته به وويل سي چي تاسو د ايمان راوړلو څخه وروسته بيا کافر سوي ياست تاسو چي کوم کفر کړی دی د هغه په بدله کي عذاب وڅکئ .

په حديث کي چي د کومو خلکو د سرونو ذکر سوی دی د هغوی په باره کي علماء کرام وايي چي هغوی مرتد وه او ځيني حضرات وايي چي بدعتيان وه حال دا چي د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه نقل سوي دي چي هغوی خوارج وه .

==========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَـــابُ الْحُدُوْدِ

## (د حدودو بيان)

**د حد معنى** : حدود د حد جمع ده او د حد اصل معنى د ممنوع ده او هغه شي ته هم حد ويل كيږي كوم چي د دوو شيانو په مينځ كي حائل وي، د شريعت په اصطلاح كي حدود هغه سزاوو ته وايي كوم چي د الله ﷻ د كتاب او د رسول ﷺ د سنتو څخه ثابت او متعين وي لكه غلا، زنا، د شرابو څښنلو او داسي نوري سزاوي، د حد لفظ اصل معنى د ممنوع يا حائل په فكر كي ساتلو سره دا واضح كيږي چي شرعي سزاوو ته حدود له دې كبله وايي چي دغه سزاوي بندګان په ګناهو كي د اخته كېدو څخه منع كوي او د هغه بيره د انسان او جرم په مينځ كي حائل وي.

حدود الله د محارم په معنى كي هم نقل سوي دي لكه څرنګه چي الله تعالى فرمايلي دي : (تلك حدود الله فلا تقربوها)، همدارنګه مقادير شرعي يعني د درو طلاقو تاكل او داسي نورو معناوو كي هم نقل سوي دى لكه څرنګه چي الله تعالى فرمايلي دي (تلك حدود الله فلا تعتدوها) مګر واضحه دي وي چي په دغه دواړو كي هم د حدود اطلاق پر اصل معنى يعني ممنوع په اعتبار دى چي د محارم قربت يعني د هغوى سره نكاح او خلوت هم ممنوع دى او د مقادير شرعي څخه تجاوز كول هم ممنوع دى.

**د سزاوو تفصيل** : شرعي قانون چي د جرم او سزا كومه قاعده ټاكلې ده په هغه كي د فكر كولو څخه معلوميږي چي په شريعت كي سزاوي پر درې ډوله دي ۱: هغه سزاوي چي الله تعالى ټاكلي دي مګر د هغه اجراء يې بندګانو ته پرې ايښى وي او په هغه كي د يو خارجي طاقت لكه حاكم يا حكومت دخل نه سته ، شريعت د داسي سزا نوم كفاره ايښى دى لكه د قسم په خلاف كولو يا په رمضان كي بېله شرعي عذر د روژې ماتولو كفاره.

۲: هغه سزاوي چي د كتاب الله او سنت رسول الله څخه ثابتي دي او ورسره متعين دي ، د دغه سزاوو د جاري كولو اختيار حاكم يا حكومت ته دى مګر په دې كي د قانون جوړوني حق هيڅا ته نه سته داسي سزا ته په شريعت كي حد وايي لكه د غلا، زنا، شراب څښنلو او داسي نوري سزاوي، ۳: هغه سزاوي چي كتاب الله او سنت رسول الله ټاكلي نه دي مګر د كومو خرابو كارو چي دغه سزاوي دي هغه يې د جرمو په فهرست كي داخل كړي دي او د سزا ټاكل يې حكومت يا

حاكم ته سپارلي دي چي هغه د وخت ، محال او ضرورت سره سم سزا وټاكي ، يعني په داسي سزا كي حكومت ته د قانون جوړوني حق هم حاصل دی مګر په دغه دائره كي په دننه پاته كېدو سره كوم چي شريعت ټاكلي دي ، داسي سزا ته په شريعت كي تعزير ويل كيږي .

**په حد او تعزير كي فرق** : په حد او تعزير كي بنيادي فرق دادی چي حد په شريعت كي عقوبت دی چي د الله تعالى حق ګرځول سوی دی ځكه نو دې ته حق الله ويل كيږي په دې وجه چي په دې كي هيڅ بنده ته تصرف نه سته او تعزير ته حق العباد ويل كيږي په دې وجه چي بنده په دې كي تصرف كولای سي يعني كه يو حكمت ويني نو د تعزير وړ مجرم معاف كولای هم سي او د موقع، محل او جرم د نوعيت په اعتبار په سزا كي كمي او زياتوب او تغير او تبديل هم كولای سي، خلاصه دا چي حد د الله تعالى له خوا ټاكلی دی چي په هغه كي هيڅ تصرف ممكن نه دی او تعزير د قاضي يا حكومت له خوا وي ، ددغه د عدم تقدير او تحقيق په وجه تعزير ته حد نه سي ويل كيدای .

قصاص هم د بنده حق دی چي هغه په خپل اختيار سره مجرم معافولای سي ځكه دې ته هم حد نه سي ويل كيدای ، قصاص هم د الله تعالى له خوا ټاكلی سوې سزا ده او په دغه ټاكل سوي سزا كي هيڅ بنده ته د رد او بدل هيڅ حق نه سته په دې اعتبار سره قصاص هم په حد كي شمېرل كيدای سي ځكه فقهاء قصاص ته حد هم وايي او تعزير هم ورته وايي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ له خوا د زنا د يوې مقدمې فيصله

﴿٣٤٠٠﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَزَيْدِ بْنِ خَالِدٍ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه او حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي دوه كسان رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحَدُهُمَا اقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَقَالَ الْآخَرُ

ﷺ ته په شخړه راغلل ، په هغوی كي يوه وويل (اې د الله رسوله!) زموږ په منځ كي د كتاب الله سره سمه پريكړه وكړه ، دويم وويل :

أَجَلْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَاقْضِ بَيْنَنَا بِكِتَابِ اللّٰهِ وَأْذَنْ لِي أَنْ أَتَكَلَّمَ قَالَ تَكَلَّمْ قَالَ

هو ، اې د الله رسوله! زموږ په منځ كي د كتاب الله سره سم حكم وكړئ، او ما ته د ښېښني بيانولو

اجازت راكړئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ووايه! هغه ووېل:

إِنَّ ابْنِي كَانَ عَسِيفًا عَلَى هَذَا فَزَنَى بِامْرَأَتِهِ فَأَخْبَرُونِي أَنَّ عَلَى ابْنِي الرَّجْمَ

زما زوى ددغه سړي سره مزدور وو، هغه دده د ښځي سره زنا وكړه، خلكو ما ته ووېل ستا زوى به سنګسار سي،

فَافْتَدَيْتُ مِنْهُ بِمِائَةِ شَاةٍ وَبِجَارِيَةٍ لِي ثُمَّ إِنِّي سَأَلْتُ أَهْلَ الْعِلْمِ فَأَخْبَرُونِي أَنَّ

ما د هغه په بدله كي سل پسونه او يوه مينزه وركړه، بيا ما د علماؤ څخه د مسئلې پوښتنه وكړه هغوى ووېل:

مَا عَلَى ابْنِي جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيبُ عَامٍ وَإِنَّمَا الرَّجْمُ عَلَى امْرَأَتِهِ فَقَالَ رَسُولُ

ستا زوى به سل دورې وهل كيږي، او د يوه كال لپاره به جلا وطنه كيږي او هغه ښځه به سنګسار كيږي ځكه چي هغه واده سوې ده، ددې پېښي په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

اللَّهِ ﷺ أَمَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَأَقْضِيَنَّ بَيْنَكُمَا بِكِتَابِ اللَّهِ أَمَّا غَنَمُكَ

خبردار! قسم دى په هغه ذات چي د هغه په لاس كي زما ساه ده زه به ستاسو په منځ كي د كتاب الله سره سمه پريكړه وكړم ستا وينځه او ستا پوسونه به

وَجَارِيَتُكَ فَرَدٌّ عَلَيْكَ واما ابنك فعليه جَلْدَ مِائَةً وَتغريب عَامًا واما انت يا

تاته بيرته دركول كيږي او ستا زوى به سل دورې وهل كيږي او د يوه كال لپاره به جلا وطن كيږي، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل اې

انيس فاعد الى امراة هذا فان اعْتَرَفَتْ فَارْجُمْهَا فَاعْتَرَفَتْ فَرَجَمَهَا. متفق عليه

انيس! ته هغه ښځي ته ورسه، كه هغه د جرم اقرار وكړي نو هغه سنګسار كړئ نو هغې ښځي اقرار وكړ او انيس هغه سنګسار كړل. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\ ٥٢٣، رقم: ٦٦٣٣، ومسلم ٣\ ١٣٢٤، رقم: ٢٥- ١٦٩٧.

**د لغاتو حل**: عسيفا: اى اجيرا ثابت الاجرة. (مزدور)

**تشريح** د كتاب الله څخه مراد قرآن كريم نه دى بلكه د الله تعالى حكم مراد دى ځكه چي په

قرآن كريم كي د رجم حكم مذكور نه دى مگر دا هم احتمال دى چي د كتاب الله ځخه قرآن كريم مراد وي په دغه صورت كي به ويل كيږي چي دغه واقعه د هغه وخت ده كله چي د رجم آيت د قرآن كريم ځخه منسوخ التلاوت سوى نه وو .

د يوه كال لپاره به د وطن ځخه وايستل سي: په دې باره كي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادى چي د يو كال جلا وطني هم په حد كي داخله ده يعني د هغه په نزد د ناواده سوي زنا كونكي حد دادى چي هغه سل دُرې ووهل سي او د يوه كال لپاره جلا وطنه هم كړل سي حال دا چي امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د يوه كال جلاوطني پر مصلحت باندي محمول كوي او وايي چي يو كال جلا وطني د حد په توگه نه ده بلكه د مصلحت په توگه ده كه چيري د وخت امام يا حكومت د يو سياسي او حكومت مصلحت سره سم دا ضروري وگڼي نو د يوه كال لپاره دي يې جلا وطنه كړي ، ځيني حضرات وايي چي د اسلام په شروع كي دا حكم نافذ او جاري وو مگر كله چي دغه آيت كريمه (الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة) يعني زنا كونكې او زنا كونكى دې په سلو دُرو ووهل سي، نازل سو نو دا حكم منسوخ سو.

فاعترفت فرجمها : يعني هغه ښځي اقرار وكړ او حضرت انيس رضي الله عنه هغه سنگسار كړل ، ددې ځخه په ظاهره دا معلوميږي چي د زنا د حد جاري كېدو لپاره يو وار اقرار كول كافي دي لكه ځرنگه چي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دى مگر امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه وايي چي په ځلورو مجلسو كي ځلور واره اقرار كول ضروري دي ، دلته په حديث كي چي د كوم اقرار ذكر سوى دى ددې ځخه امام ابو حنيفة رحمة الله عليه هغه اقرار (يعني ځلور واره) مراد اخلي چي په دې باره كي معتبر او مقرر دى د نورو حديثو ځخه دا صراحتا ثابت دي چي ځلور واره اقرار كول ضروري دى .

## د غير محصن زنا كونكي سزا

﴿۳۴۰۱﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ فِيمَنْ زَنَى وَلَمْ يُحْصَنْ جَلْدَ مِائَةٍ وَتَغْرِيبَ عَامٍ . رواه البخاري.

د حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم ځخه د بې واده واده سړي زناكار لپاره داحكم اوريدلى دئ چي هغه دي سل دورې ووهل سي او د يوه كال لپاره دي د وطن ځخه وشړل سي . بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٥٦، رقم: ٦٨٣١.

**تشريح** محصن هغه عاقل او بالغ مسلمان ته وايي چي واده يې کړی وي او د خپل ښځي سره يې کورو الي هم کړې وي، غير محصن سړی که چيري زنا وکړي نو د هغه سزا د دغه حديث سره سم سل دُرې او د يوه کال جلاوطني ده، د جلا وطنۍ په باره کي چي کوم تفصيل دی هغه مخکي بيان سوی دی، په دُرو باندي د وهلو په باره کي دا حکم دی چي پر سر، مخ او ستر باندي ونه وهل سي.

## د محصن زناکونکي سزا

﴿٣٤٠٢﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَقِّ

د حضرت عمر ﷛ څخه روايت دئ چي الله تعالى محمد ﷺ د حق سره راليږلی دئ

وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ فَكَانَ مِمَّا أُنْزِلَ عَلَيْهِ آيَةُ الرَّجْمِ رَجَمَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ

او پر هغوی يې خپل کتاب نازل کړی دئ په هغه کي د سنگسارۍ آيت هم سته، رسول الله ﷺ

وَرَجَمْنَا بَعْدَهُ وَالرَّجْمُ فِي كِتَابِ اللّٰهِ حَقٌّ عَلَى مَنْ زَنَى إِذَا أَحْصَنَ مِنَ الرِّجَالِ

سنگسارۍ کړی وو او د هغوی څخه وروسته موږ هم سنگسار کړی دئ او رجم د الله تعالى په کتاب کي ثابت دئ پر هغه سړي چي زنا وکړي او هغه واده کړی وي که هغه سړی وي

وَالنِّسَاءِ إِذَا قَامَتِ الْبَيِّنَةُ أَوْ كَانَ الْحَبَلُ أَوِ الِاعْتِرَافُ. متفق عليه.

يا ښځه، کله چي شاهدان موجود وي يا حمل ښکاره سي يا د جرم اقرار وي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٣٧، رقم: ٦٨٢٩، ومسلم ٣\١٣١٧، رقم: ١٥-١٦٩١.

**تشريح** په مخکني حديث کي د هغه زناکونکي سزا بيان سوې وه چي هغه غير محصن وي، کوم څوک چي د محصن کېدو سربېره زنا وکړي او د هغه جرم ثابت سي نو د هغه سزا رجم يعني سنگسارول دي چي هغه په ډبرو ويشتلو سره مړ کړل سي.

د کوم آيت څخه چي د رجم حکم ثابت دی هغه مخکي په قرآن کريم کي موجود وو مگر وروسته د هغه تلاوت منسوخ سو يعني د هغه الفاظ په قرآن کريم کي پاته نه کړل سول مگر د هغه حکم پاته سو هغه آيت دا دی:

الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما البتة نكالا من الله والله عزيز حكيم.

د حديث په آخر کي د جرم د ثبوت لپاره په درو شيانو کي يو ضروري گرځول سوی دی يعني ۱: شاهد، ۲: محل، ۳: اقرار، په دغه درو شيانو کي د حمل تعلق د هغه ښځي سره دی چي بې خاونده وي مگر د هغې حکم هم منسوخ سوی دی او د شاهدانو او اقرار اوس هم موجود دی چي محصن زنا کونکي دی هغه وخت سنگسار کړل سي کله چي د هغه جرم د شاهدانو په ذريعه ثابت سي يا هغه خپله د خپل جرم اعتراف او اقرار وکړي.

## وادہ سوی زنا کونکی دي سنگسار کړل سي

﴿۳۴۰۲﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خُذُوا

د حضرت عبادة بن صامت ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما څخه (د زناکار

عَنِّي خُذُوا عَنِّي قَدْ جَعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيلًا اَلْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتغريب عام وَالثَّيِّبُ بِالثَّيِّبِ جَلْدُ مِائَةٍ وَالرَّجْمُ. رواه مسلم.

او زناکارې په اړه) حکم تر لاسه کړئ (او) زما څخه (د دوی په اړه) حکم واخلئ، الله تعالى د ښځو لپاره يو طريقه ټاکلې ده، ناواده ښځه که د ناواده سړي سره زنا وکړي نو سل دورې دي ووهل سي او د يو کال لپاره دي جلاوطن کړل سي او واده کړی سړی که د واده سوي ښځي سره زنا وکړي نو سل دورې دي ووهل سي او دواړه دي سنگسار سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۳۱۶، رقم: ۱۲- ۱۶۹۰.

**تشريح**: الله ﷻ د ښځو لپاره لاره ټاکلې ده: دا په اصل کي د دغه آيت کريمه وضاحت دی:

أَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيلاً.

علامه توربشتي ﷫ وايي چي رسول الله ﷺ دغه ارشاد هغه وخت فرمايلي دی کله چي د زاني او زانيه لپاره حد مشروع سوی وو، د رسول الله ﷺ په ارشاد کي د لاري څخه مراد حد دی چي تر دې مخکي مشروع سوی نه وو بلکه په دې باره کي هغه حکم مشروع وو کوم چي په دغه آيت کريمه کي ذکر دی:

وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ فَإِنْ شَهِدُوا فَأَمْسِكُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُنَّ الْمَوْتُ أَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيلاً.

ژباړه : ستاسو په ښځو کي چي کومه ښځه د بې حيايۍ کار وکړي پر هغوی باندي په خپلو کي څلور کسان شاهدان کړئ که هغوی شاهدي ورکړي نو تاسو هغوی په کورو کي بندي کړئ تر دې چي مرګ د هغې خاتمه وکړي يا الله تعالی د هغوی لپاره يو لار وټاکي.

خلاصه دا چي الله تعالی په دغه آيت کي دا فرمايلي دي چي کله ښځي زنا وکړي او د شاهدانو په ذريعه د هغوی جرم ثابت سي نو هغوی په کور کي بندي کړئ تر دې چي په دغه بند کي مړې سي ، او يا د الله تعالی له خوا د هغوی لپاره يو لار يعني يو حد وټاکل سي ، کله چي الله تعالی د حد حکم نازل کړ نو رسول الله ﷺ دا ارشاد وفرمايه چي الله تعالی د ښځو لپاره دغه لار يعني حد ټاکلی دی ، بيا د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ د حد وضاحت وفرمايه.

د دغه حديث شريف څخه معلومه سوه که چيري يو محصن (واد سوی) زنا وکړي نو هغه دي سل دُرې ووهل سي او سنګسار دي هم کړل سي لکه چي په علماء ظواهر ، صحابه کرام او تابعينو کي ځينو کسانو په دې عمل کړی دی مګر د جمهورو علماؤ په اتفاق سره دا فيصله ده چي کوم زنا کونکی د سنګسار وړ وګرځول سي د هغه په باره کي د سل دُرو سزا کالعدم وي يعني هغه به يوازي سنګسار کيږي په سلو دُرو به نه وهل کيږي ځکه دا نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ ماعز (چي د واده کېدو سربېره يې زنا کړې وه) يوازي سنګسار کړی وو او د هغه د سل دُرو وهلو حکم يې نه وو کړی ، همدارنګه په راتلونکي حديث کي چي د يوې غامديه ښځي کومه واقعه بيان سوې ده يا د حضرت انيس ﷛ چي کوم حديث مخکي تېر سوی دی د هغه څخه هم دا ثابتيږي.

﴿۳۴۰۴﴾: وَعَنْ عبدالله ابْنِ عُمَرَ أَنَّ الْيَهُودَ جَاءُوا إِلَى رسول الله صَلَّى اللَّهُ

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ څخه روايت دئ چي د يهودو يوه ډله د رسول الله ﷺ په خدمت کي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرُوا لَهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْهُمْ وَامْرَأَةً زَنَيَا فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللَّهِ

حاضره سول عرض يې وکړ چي د هغوی د قوم څخه يو سړی او يوې ښځي زنا کړې ده ، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل :

ﷺ مَا تَجِدُونَ فِي التَّوْرَاةِ فِي شَأْنِ الرَّجْمِ قَالُوا نَفْضَحُهُمْ وَيُجْلَدُونَ قَالَ

تاسو په تورات کي د رجم په اړه څه تر لاسه کوئ؟ هغوی عرض وکړ موږ زنا کوونکی ذليل او

رسوا كوو، او هغوی په دورو وهل كيږي،

عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ سَلَامٍ كَذَبْتُمْ إِنَّ فِيهَا الرَّجْمَ فَأَتَوْا بِالتَّوْرَاةِ فَنَشَرُوهَا فَوَضَعَ

عبدالله بن سلام ورته وويل: تاسو دروغ وايا ست، تورات راوړئ په هغه كي د رجم حكم هم سته ، هغوی تورات راوړ او په هغوی كي تورات راوړونكي سړي د رجم پر آيت

أَحَدُهُمْ يَدَهُ عَلَى آيَةِ الرَّجْمِ فَقَرَأَ مَا قَبْلَهَا وَمَا بَعْدَهَا فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ

لاس كښېښودئ او هغه يې پټ كړ او مخكي او وروسته آياتونه يې وويل، عبدالله بن سلام

سَلَامٍ ارْفَعْ يَدَكَ فَرَفَعَ يَدَهُ فَإِذَا فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ فَقَالُوا صَدَقَ يَا مُحَمَّدُ

ورته وويل خپل لاس ليري كړه نو وه يې ليدل چي هلته د رجم آيت موجود وو، يهودو وويل: عبدالله بن سلام رښتيا وويل

فِيهَا آيَةُ الرَّجْمِ فَأَمَرَ بِهِمَا النبي ﷺ فَرُجِمَا. و في رواية قَالَ ارْفَعْ يَدَكَ

په دې كي د رجم آيت موجود دئ، بيا رسول الله ﷺ پر هغه دواړو زناكونكو باندي د رجم حكم وكړ، او هغوی سنگسار كړل سول، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي عبدالله بن سلام وويل

فَرَفَعَ فَإِذَا آيَةُ الرَّجْمِ تَلُوحُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ انَّ فِيهَا آيَةَ الرَّجْمِ وَلٰكِنَّنَا

خپل لاس ليري كړه هغه چي خپل لاس ليري كړ نو هلته د رجم آيت موجود وو، لاس ايښودونكي وويل اې محمد! په تورات كي د رجم آيت موجود دئ مگر موږ

نَتَكَاتَمُهُ بَيْنَنَا فَأَمَرَ بِهِمَا فَرُجِمَا. متفق عليه.

دا پټوو، نو رسول الله ﷺ د دواړو د سنگسارولو حكم وكړ او هغوی سنگسار كړل سول، بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٦٦، رقم: ٦٨٤١، ومسلم ٣\١٣٢٦، رقم: ٢٦ - ١٦٩٩.

**تشريح** حضرت عبدالله بن سلام ﷺ مخكي يهودي وو مگر الله تعالی هغه د هدايت پر لار روان كړ او مسلمان سو، نوموړی په يهودو كي د لوړي درجې د عالمانو څخه شمېرل كيدی او په تورات باندي يې پوره عبور درلودی، په مجلس نبوي كي چي يهودو د خپل روايتي تلبيس

او تحريف څخه كار اخيستى او رسول الله ﷺ ته يې دا ويل چي په تورات كي د زنا كونكى د سنگسارولو حكم نه سته بلكه موږ په تورات كي دا ليدلي دي چي كوم سړى زنا وكړي هغه دي د تعزير په توگه ذليل او خوار كړل سي او په دُرو دي ووهل سي ، حضرت عبد الله ابن سلام رضي الله عنه د هغوى تكذيب وكړ او وه يې ښوول چي تاسو كومه خبره كوئ هغه تحريف دى په تورات كي هم دا حكم موجود دى او بيا چي كله يې تورات را وغوښتى نو په هغه كي د ذكر سوي د رجم د آيت ښوول يې وغوښتل نو پر هغه وخت هم يهودو خپل عياري او مكاري وښوول او په هغوى كي يو سړى چي د هغه نوم عبد الله ابن صوريا وو پر هغه ځاى خپل لاس كښېښود چيري چي د رجم آيت ذكر وو او د هغه مخكي او روسته آيا تو نه ويل يې شروع كړل مگر عبد الله ابن سلام رضي الله عنه د هغوى ددغه عيارۍ راز ښكند كړل .

كه چيري دلته دا اشكال پيدا سي چي د رجم سزا كېدو لپاره محصن كېدل ضروري دي او د محصن كېدو لپاره مسلمان كېدل شرط دي نو رسول الله ﷺ هغه يهوديانو ته چي مسلمانان نه وو د رجم حكم ولي ورکړ .

ددې جواب دادى چي رسول الله ﷺ هغه يهوديانو ته د رجم حكم ځكه وركړ چي هغه د تورات د حكم لاندي وه او د يهوديانو په مذهب كي د رجم سزا لپاره محصن كېدل شرط نه وه ، او بيا دا چي رسول الله ﷺ په دې باره كي مخكي د تورات په حكم عمل كوى مگر كله چي په قرآن كريم كي ددغه حكم نازل سو نو د تورات حكم منسوخ سو .

دلته دا ښوول هم ضروري دي چي د امام شافعي رحمه الله په نزد د محصن كېدو لپاره مسلمان كېدل شرط نه دي يعني د هغه په مذهب كي د محصن اطلاق پر هغه واده سوي سړي باندي هم كيږي چي مسلمان نه وي او د حنفيه په مذهب كي د امام ابويوسف رحمه الله هم يو قول دادى.

دلته دا اشكال هم پيدا كيږي چي رسول الله ﷺ محصن د يهوديانو په وينا هغه دواړه څرنگه سنگسار كړل ځكه چي د يهوديانو شاهدي خو معتبره نه ده ؟ ددې جواب دادى چي دا څه ضروري دي چي رسول الله ﷺ يوازي د هغه يهوديانو په وينا حكم نافذ كړى وي بلكه په ظاهره دا مفهوم كيږي چي يا خو هغه دواړه د زنا اقرار كړى دى يا د هغوى د زنا به څلور شاهدان تېر سوي دي او په هغه وجه به رسول الله ﷺ هغه دواړه سنگسار كړي وي .

دلته ملا علي قاري رحمه الله په تفصيل سره بحث كړى دى چي دلته يې يوازي خلاصه نقل سوې ده ، عالمان د هغه په كتاب (مرقاة) كي نور تفصيل كتلاى سي.

## د زنا د اقرار کونکي مجرم په باره کي د رسول الله ﷺ فيصله

﴿٣٤٠٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ وَهُوَ فِي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ په مسجد کي وو چي يو سړى راغلى

الْمَسْجِدِ فَنَادَاهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

او نعره يې وکړه اې د الله رسوله ! ما زنا کړې ده ، رسول الله ﷺ د هغه څخه مخ واړوئ ،

وَسَلَّمَ فَتَنَحَّى لِشِقِّ وَجْهِهِ الَّذِي أَعْرَضَ قِبَلَهُ فَقَالَ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَعْرَضَ عَنْهُ

هغه سړى بيا رسول الله ﷺ ته ورمخته سو او وه يې ويل ما زنا کړې ده ، رسول الله ﷺ بيا مخ

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا شَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ دَعَاهُ النَّبِيُّ ﷺ فَقَالَ

څيني واړوئ ، هر کله چي هغه څلور واره دغه الفاظ وويل او شهادت پوره سو نو نبي کريم ﷺ
ځان ته نژدې راوبلى او ورته وه يې فرمايل :

أَبِكَ جُنُونٌ قَالَ لَا فَقَالَ أَحْصَنْتَ قَالَ نَعَمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ اذْهَبُوا بِهِ

ايا ته ليونى يې ، هغه عرض وکړ : يا ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا تا واده کړى دئ ؟ هغه
عرض وکړ چي هو ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل دئ بوځئ

فَارْجُمُوهُ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ فَأَخْبَرَنِي مَنْ سَمِعَ جَابِر بن عبدالله يَقُوْلُ

او سنګسار يې کړئ ، ددې حديث د يو راوي ابن شهاب رحمه الله بيان دئ چي ما ته هغه سړي چي
هغه د جابر بن عبد الله څخه دا اوريدلي وه چي وه يې ويل

فَرَجَمْنَاهُ بِالْمَدِيْنَةِ فَلَمَّا أَذْلَقَتْهُ الْحِجَارَةُ هَرَبَ حَتَّى أَدْرَكْنَاهُ بِالْحَرَّةِ

موږ په مدينه منوره کي هغه سړى سنګسار کړ کله چي د هغه بدن په ډبرو ولګيدئ نو هغه
وتښتېدئ تر دې چي موږ هغه د مدينې په ډبرينه مځکه کي راونيوئ

فَرَجَمْنَاهُ حَتَّى مَاتَ متفق عليه و في رواية للبخاري عن جابر بعد قوله

او بيا مو سنگسار کړ تر څو چې هغه مړ سو . بخاري او مسلم، د بخاري په روايت کې چې د جابر ﷺ څخه نقل دي دا الفاظ دي

قال نعم فامر به فرجم بالمصلى فلما اذلقته الحجارة فر فادرك فرجم حتى مات فقال له النبي صلى الله عليه وسلم خيرا وصلى عليه .

کوم وخت چې هغه سړي د واده کېدو اقرار وکړ ، رسول الله ﷺ د هغه د سنگسارولو حکم وکړ نو هغه په عيدگاه کې سنگسار کړل سو ، کله چې هغه په ډبرو ولگيدئ نو هغه وتښتېدئ هغه ونيول سو او بيا سنگسار کړل سو تر څو چې هغه مړ سو د هغه د مرگ وروسته رسول الله ﷺ د هغه تعريف وکړ او د هغه د جنازې لمونځ يې ادا کړ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٣٦، رقم: ٦٨٢٥، ومسلم٣\١٣١٨، رقم: ١٦- ١٦٩٢.

**د لغاتو حل**: اذلقته: اى اصابته بحدها فعقرته.

**تشريح**: هغه څلور واره اقرار وکړ : يعني هغه سړي د څلورو خواوو څخه په راتلو سره د رسول الله ﷺ په مخکې د خپل جرم اقرار وکړ او هر وار يې د مجلس په بدلولو سره همدارنگه په څلورو مجلسونو کې څلور واره د خپل جرم اقرار وکړ ، امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د هغه د رسول الله ﷺ په مخکې څلور خواوو څخه په راتلو سره اقرار کولو څخه دا استدلال کړی دی چې د زنا د جرم د ثبوت لپاره د ملزم په څلورو مجلسونو کې څلور واره اقرار کول شرط دي .

ايا ته ليونی يې : يعني پر تا باندې ليونتوب خپور دی چې خپله گناه په خپله ښکاره کوې او د سنگسارېدو په ذريعه د خپل هلاکت سبب گرځې ، حالانکه پکار خو دا وه چې ته الله جل جلاله ته توبه او استغفار وکړې او د راتلونکي لپاره د هرې بدۍ څخه د ځان ساتنې پخه اراده وکړې ، علامه نووي رحمة الله عليه وايي چې د رسول الله ﷺ د ارشاد مقصد د هغه سړي د حال تحقيق کول وو ځکه چې په عامه توگه سره هيڅ انسان د خپل جرم او گناه پر اقرار باندې ټينگار نه کوي چې د هغه په سزا کې هغه مرگ ته مخامخ سي بلکه هغه په دې کې د خپل خلاصون لاره لټوي چې پر خپل گناه باندې په پښېمانه کېدو سره توبه او استغفار وکړي او د دې په ذريعه خپله گناه ختم کړي .

خلاصه دا چې دغه ارشاد دا خبره واضح کوي چې په داسې معاملاتو کې د مسلمان د حالت په تحقيق او پلټنه کې پوره کوښښ کول پکار دي چې د يو جرم په سزا کې د يو مسلمان د ځان ساتنې لپاره هغه ته يو قانوني گټه ورسول کيږي او دا جمله دې ته اشاره کوي که يو ليونی

دا ووايي چي ما زنا کړې ده نو هغه دغه اقرار به د اعتبار وړ نه وي او نه به پر هغه حد جاري کيږي.

ايا ته محصن يې ؟ : امام نووي رحمة الله عليه واي چي په دغه جمله کي دې ته اشاره ده چي د وخت امام يا قاضي باندي دا لازم دي چي هغه د دغه شيانو په باره کي پلټنه وکړي چي د رجم د سزا د جاري کېدو لپاره شرط دي لکه محصن کېدل او داسي نور که څه هم د زنا کولو جرم خپله د هغه د اقرار څخه ثابت سوی وي يا د شاهدانو په ذريعه ثابت سوی وي، او د دغه ارشاد څخه کنايةً دا هم معلوميږي که يو سړی د خپل اقرار څخه رجوع وکړي نو هغه ته په معافي ورکولو سره د زنا حد د هغه څخه ساقط کيدای سي.

هغه وتښتيدی : ابن همام رحمة الله عليه وايي که يو سړی د يو حد يا تعزير په وجه وژل کيږي نو هغه دي په درولو سره ووژل سي په زړولو سره دي نه وژل کيږي، او ښځه دي په کښېنولو سره ووژل سي بلکه که چيري يو ښځي ته د رجم سزا ورکول کيږي نو غوره داده چي د يوې کندي په کښېنولو سره په هغه کي تر سينې پوري ښخه کړل سي او بيا سنګسار کړل سي ځکه چي په دې کي د هغې د ستر پټېدل رعايت کيږي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ د غامديه لپاره کنده کښېنلې وه.

تر دې چي مړ هغه په حره کي ونيوی : په دې باره کي مسئله داده که چيري يو سنګسار کېدونکی سړی د سنګسارولو په مينځ کي وتښتيږي نو په هغه پسې کېدل نه دي پکار په شرط د دې چي هغه د زنا جرم په خپل اقرار سره ثابت سوی وي او که چيري د هغه د زنا جرم د شاهدانو په ذريعه ثابت سوی وي نو بيا په هغه پسې کېدل پکار دي او سنګسار دي کړل سي تر دې چي هغه مړ سي ځکه چي د هغه تښتېدل په اصل کي د هغه رجوع ظاهروي او دغه رجوع په هغه صورت کي په کار راځي کله چي هغه د زنا جرم په خپله اقرار سره ثابت کړی وي مګر که چيري د شاهدانو په ذريعه جرم ثابت سوی وي نو د هغه رجوع به په کار نه راځي.

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي علماؤ کرامو ليکلي دي چي په دغه جمله (فرجم بالمصلی) يعني هغه په عيدګاه کي سنګسار کړل سو : دلته د مصلي څخه مراد هغه ځای دی چيري چي د جنازې لمونځ ورکول کيږي، د يوه روايت څخه د دې تائيد هم کيږي.

بخاري رحمة الله عليه او داسي نور عالمان وايي چي په دې کي دې ته اشاره ده چي چيري د جنازې لمونځ او د اخترو لمونځ کيږي که هغه مسجد نه وي ګرځول سوی دی نو هغه ځای د مسجد په حکم کي نه دی ځکه چي د جنازې او اخترو د لمانځه کولو د ځای د هغه حکم دی کوم چي د مسجد دی نو هغه ځای په وينو لړلو څخه د ساتني لپاره او د هغه د پاکی او احترام په وجه په هغه ځای کي دي رجم نه کيږي.

## په مسجدو نو كي دي حد او تعزير نه جاري كيږي

علامه ابن همام رحمة الله عليه وايي چي په مسجد كي دي پر چا باندي حد نه جاري كيږي او نه دي يو چا ته تعزير وركول كيږي ځكه چي پر دې د ټولو علماؤ اجماع او اتفاق دى ، او د دې بنياد د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دى :

(قال جنبوا مساجد كم صبيانكم و مجانينكم ورفع اصواتكم و شرائكم وبيع و اقامة حدودكم و جمروها في جمعكم وضعوا على ابوابها المطاهر) .

ژباړه : رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو خپل مسجدونه د خپلو كوچنيانو، ليونيانو، شور كولو، رانيولو او پلورلو او حد قائمولو څخه وساتئ او د جمعې په ورځ مسجدو ته ګربتي (يو خوشبويي لرونكى بوټي) وركړئ او د مسجدو په دروازو د طهارت (اوداسه) ځاى جوړ كړئ.

## تر څو چي د زنا كونكي په باره كي پوره پلټنه ونه سي تر هغو فيصله مه كوئ

﴿٣٤٠٦﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا أَتَى مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله ماعزبن مالک نبي كريم ﷺ ته حاضر سو نو

وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُ لَعَلَّكَ قَبَّلْتَ أَوْ غَمَزْتَ أَوْ نَظَرْتَ قَالَ لَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كيداى سي تا مچه اخيستې وي يا لاس دي وروړى وي او يا دي ورته كتلي وي، هغه عرض وكړ چي يا، اې د الله رسوله ! ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

أَنِكْتَهَا لَا يَكْنِي قَالَ فَعِنْدَ ذٰلِكَ أَمَرَ بِرَجْمِهِ . رواه البخاري .

ايا تا (په حقيقت كي) زنا كړې ده او كه نه؟ هغه عرض وكړ چي هو، (ما جماع كړې ده) د دې وروسته رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حكم وكړ. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\١٣٥، رقم: ٨٢٤ .

## د حد قائم كيدل ګناه ساقطوي

﴿٣٤٠٧﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ جَاءَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ماعزبن مالک رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ طَهِّرْنِي فَقَالَ وَيْحَكَ ارْجِعْ فَاسْتَغْفِرِ اللّٰهَ وَتُبْ إِلَيْهِ قَالَ

عرض يې وكړ چي اې د الله رسوله ! ما پاک کړئ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : پر تا افسوس دئ بيرته ولاړ سه بخښنه وغواړه او الله پاک ته توبه وكاږه، راوي ويلي دي چي

فَرَجَعَ غَيْرَ بَعِيدٍ ثُمَّ جَاءَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ طَهِّرْنِي فَقَالَ النبي ﷺ مِثْلَ

هغه ولاړئ او بيرته ژر راغلی او عرض يې وکړ اې د الله رسوله ! ما پاک کړئ، رسول الله ﷺ بيا ورته هغه الفاظ وويل کوم چي يې مخکي ويلي وه،

ذَالِكَ حَتّٰى إِذَا كَانَتُ الرَّابِعَةُ قَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فِيمَ أُطَهِّرُكَ فَقَالَ مِنَ

څلور واره همداسي وسول، په څلورم وار رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چي د څه شي څخه دي پاک کړم، هغه عرض وکړ

الزِّنٰى فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَبِهِ جُنُونٌ فَأُخْبِرَ أَنَّهُ لَيْسَ بِمَجْنُونٍ فَقَالَ أَشَرِبَ

د زنا څخه، نبي کريم ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه: ايا دا ليونی سوی دئ ؟ صحابه کرامو عرض وکړ چي نه، بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا ده شراب څښلي دي ؟

خَمْرًا فَقَامَ رَجُلٌ فَاسْتَنْكَهَهُ فَلَمْ يَجِدْ مِنْهُ رِيحَ خَمْرٍ فَقَالَ أَزَنَيْتَ قَالَ

يو سړی ولاړ سو د هغه خوله يې بوی کړه مګر بوی نه وو، بيا رسول الله ﷺ د ماعز څخه پوښتنه وکړه ايا تا زنا کړې ده، هغه عرض وکړ :

نَعَمْ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ فَلَبِثُوا يَوْمَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً ثُمَّ جَاءَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فَقَالَ

هو. نو رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ او هغه سنګسار کړل سو، دوې درې ورځي همداسي تيري سوې يوه ورځ نبي کريم ﷺ تشريف راوړ او وه يې فرمايل :

اسْتَغْفِرُوا لِمَاعِزِ بْنِ لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ قُسِمَتْ بَيْنَ أُمَّةٍ لَوَسِعَتْهُمْ ثُمَّ جَاءَتْهُ

د ماعز بن مالک د مغفرت لپاره دعاء وکړئ، هغه داسي توبه کښلې ده که پر ټول امت وويشل سي نو د هغه ثواب د ټولو لپاره بس دئ، بيا يوه ښځه چي

امْرَأَةٌ مِنْ غَامِدٍ مِنَ الْأَزْدِ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ طَهِّرْنِي فَقَالَ وَيْحَكِ ارْجِعِي

د ازد قبیلې د غامد ښځه وه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره سوه او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! ما پاکه کړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: پر تا دې افسوس وي بیرته ولاړه سه

فَاسْتَغْفِرِي اللّٰهَ وَتُوبِي إِلَيْهِ فَقَالَتْ تُرِيدُ أَنْ تُرَدِّدَنِي كَمَا رَدَّدْتَ مَاعِزَ بْنَ

د الله ﷻ څخه بخښنه وغواړه او الله ﷻ ته توبه وباسه، ښځې عرض وکړ ایا تاسو دا غواړئ لکه څرنګه چې تاسو ماعز ستون کړی وو ما هم ستنوئ،

مَالِكٍ إِنَّهَا حُبْلَى مِنَ الزِّنَى فَقَالَ آنْتِ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ لَهَا حَتَّى تَضَعِي مَا فِي

هغه خو د زنا څخه حامله ده، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ته حامله يې، هغې عرض وکړ چې هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: صبر کوه تر څو چې ستا د نس څخه کوچنی پیدا سي،

بَطْنِكِ قَالَ فَكَفَلَهَا رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ حَتَّى وَضَعَتْ قَالَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ

د راوي بیان دئ چې یو انصاري د هغې ښځې ذمه داري واخیستل تر څو چې د هغې کوچنی پیدا سو، بیا څه وخت وروسته هغه انصاري ښځه حاضره سوه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ قَدْ وَضَعَتِ الْغَامِدِيَّةُ فَقَالَ إِذًا لَا نَرْجُمُهَا وَنَدَعُ وَلَدَهَا

او عرض يې وکړ چې د هغې غامدې ښځې څخه کوچنی پیدا سوی دئ، رسول الله ﷺ وفرمایل: اوس موږ هغه نه سنګسارو او د هغې کوچنی په دغه حالت کې نه پرېږدو

صَغِيرًا لَيْسَ لَهُ مَنْ يُرْضِعُهُ فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ إِلَيَّ رَضَاعُهُ يَا

چې څوک تی ورکونکی نه وي، یو انصاري ودریدئ او عرض يې وکړ چې اې د الله رسوله! د هغه د رضاعت (شېدو ورکولو) زه ذمه دار یم،

نَبِيَّ اللّٰهِ قَالَ فَرَجَمَهَا. وَفِي رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ لَهَا اذْهَبِي حَتَّى تَلِدِي فَلَمَّا وَلَدَتْ

نو نبي کریم ﷺ د هغې ښځې د سنګسارولو حکم وکړ، او په یوه روایت کې داسې الفاظ دي کله چې هغې ښځې د خپل حمل اظهار وکړ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: بیرته ولاړه سه او صبره کوه تر څو چې کوچنی پیدا سي، کله چې هغې کوچنی راوړئ

قَالَ اذْهَبِي فَأَرْضِعِيهِ حَتَّى تَفْطِمِيهِ فَلَمَّا فَطَمَتْهُ أَتَتْهُ بِالصَّبِيِّ فِي يَدِهِ كِسْرَةُ

نو نبي کریم ﷺ هغې ته وفرمایل کوچنی ته شیدې ورکوه او صبر کوه چې هغه د تي څخه پرې کړې، کله چې یې هغه د تي څخه پرې کړ نو هغه کوچنی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر کړ د کوچني په لاس کې د ډوډۍ ټوټه وه

خُبْزٍ فَقَالَتْ هٰذَا يَا نَبِيَّ اللهِ قَدْ فَطَمْتُهُ وَقَدْ أَكَلَ الطَّعَامَ فَدَفَعَ الصَّبِيَّ إِلَى

هغې عرض وکړ اې د الله رسوله! ما دا کوچني د تي څخه پرې کړ او اوس ده ته خوراک ورکول پیل سوي دي، رسول الله ﷺ هغه کوچنی یو مسلمان ته حواله کړ

رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَحُفِرَ لَهَا إِلَى صَدْرِهَا وَأَمَرَ النَّاسَ فَرَجَمُوهَا

او بیا یې حکم وکړ چې د دې ښځې لپاره تر سینې پورې یوه کنده وکا ږي، بیا یې خلکو ته د هغې د سنګسارولو حکم وکړ، سنګسار پیل سو،

فَيُقْبِلُ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ بِحَجَرٍ فَرَمَى رَأْسَهَا فَتَنَضَّحَ الدَّمُ عَلَى وَجْهِ خَالِدٍ

خالد بن ولید په یوه ډبره هغه پر سر وویشتل د هغې د سر څخه وینه د خالد پر مخ ولوېدل،

فَسَبَّهَا فَقَالَ نَبِيُّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْلًا يَا خَالِدُ فَوَالَّذِي نَفْسِي

خالد هغه بده وګڼل او رسول الله ﷺ د هغه ښکنځل واورېده، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل اې خالده! خوله پټه کړه زما دې په هغه ذات قسم وي چې

بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَصَلَّى عَلَيْهَا وَدُفِنَتْ . رواه مسلم .

د هغه په لاس کې زما ساه ده دغه ښځې داسې توبه کښلې ده که داسې توبه محصول یا عشر اخیستونکی وکاږي نو د هغه ظلم او ستم به وبخښل سي، بیا رسول الله ﷺ حکم وکړ چې د هغې د جنازې لمونځ دې ادا کړل سي او ښخه دې کړل سي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣٢١\٣، رقم: ٢٢- ١٦٩٥.

**د لغاتو حل**: فاستنکهه: ای طلب نکهته ای رائحة فمه، لیعلم ا شارب هو ام غیر شارب. (د خولې بوی کتل). صاحب مکس: المکس: اصله الجنایة، ویطلق علی الضریبة التي یاخذها الماکس، ای العشار.

**تشریح**: بېله شکه ماعز داسي توبه وکړه ...الخ: ددغه ارشاد په ذریعه رسول الله ﷺ د ماعز رضي الله عنه د سعادت او د هغه د توبې فضیلت ظاهر کړ چي هغه داسي توبه وکړه چي مغفرت او رحمت لازموي چي د هغه لمن د مخلوق پر یو لوی ډلي باندي سایه کونکې کیدای سي.

دلته د حد قائمېدو ته توبه په دې اعتبار ویل سوي دي چي څرنګه د توبې په ذریعه ګناه رژیږي همدارنګه په حد جاري کولو سره هم ګناه ختمیږي.

تر څو چي ته د خپل کوچني د زېږېدني څخه فارغه نه سې: ابن مالک رحمة الله علیه وایي چي ددغه ارشاد څخه معلومه سوه چي حامله ښځه تر څو پوري د ولادت څخه فارغه نه سي پر هغې باندي حد نه قائمیږي تر څو د یو بې ګناه (چي د هغې په نس کي دی) هلاکول لازم نه سي.

اوس موږ دا نه سنګساروو: ددې څخه ثابته سوه چي ولد الزنا د سزا او هلاکت سبب نه دی ځکه چي هغه په دې باره کي بې ګناه دی.

ما هغه د تي څخه پرې کړی دی ... الخ: ددې څخه معلومه سوه چي کوم خلک په غیر شرعي توګه او نامناسبو طریقو سره د خلکو څخه محصول او ټیکس تر لاسه کوي هغوی لوی ګناه کار دي ځکه چي داسي محصول اخیستل داسي دي لکه د یو سړی مال چي په زور او ظلم سره واخیستل سي.

د حدیث په آخري جمله کي لفظ د صلی د مسلم په ټولو روایاتو کي په صاد او د لام په زبر (یعني د معروف په صیغه) منقول دی، ددې څخه دا ثابتیږي چي رسول الله ﷺ د هغه ښځي د جنازې لمونځ کړی وو حال دا چي د طبري په نزد او د ابن ابي شیبه او ابوداؤد په روایت کي دغه لفظ د صاد په پېښ او د لام په زبر (یعني مجهول صیغه) سره منقول دی ددې څخه دا ثابتیږي چي د هغې ښځي د جنازې لمونځ نورو خلکو ورکړ رسول الله ﷺ ور نه کړ، د ابوداؤد په روایت کي په صراحت سره دا نقل سوي دي چي (لم یصل علیها) یعني رسول الله ﷺ د هغې د جنازې لمونځ ونه کړ بلکه رسول الله ﷺ خلکو ته د جنازې د لمانځه ورکولو حکم ورکړ، په دې وجه د رجم سوي د جنازې د لمانځه ورکولو په باره کي اختلاف دی، د امام مالک رحمة الله علیه په نزد د هغه د جنازې لمونځ ورکول مکروه دی او امام احمد رحمة الله علیه وایي چي د وخت امام او اهل فضل دي یې نه کوي نور خلک یې کولای سي، د امام شافعي او امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیهما مذهب دادی چي د هغه د جنازې لمونځ دي وکړل سي بلکه د هغه سړي د جنازې لمونځ دي وکړل

سي چي کلمه ویونکی او اهل قبله وي که څه هم هغه فاسق او فاجر وي یا پر هغه حد قائم سوی وي ، په یوه روایت کي د امام احمد رحمۃ اللہ علیہ څخه هم داسي نقل سوي دي .

قاضي عیاض رحمۃ اللہ علیہ وایي چي د صحیح مسلم په ټولو روایتو کي لفظ د صلی د صاد او لام په زبر یعني د معروف په صیغې سره نقل سوی دی حال دا چي د طبري په نزد دغه لفظ د صاد په پېښ (یعني مجهول) دی او ابن شیبه ، ابوداؤد او امام نووي هم داسي نقل کړي دي نو په دې باره کي دا خبره زیاته مناسب ده چي دغه لفظ په اصل کي په معروف صیغه سره دی البته مخکني الفاظ (ثم امر بها) یعني ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ حکم وکړ، ددې څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ خلکو ته د هغه ښځي د غسل ورکولو، کفن ورکولو او د جنازې د لمانځه ځای ته د وړلو حکم ورکړ، ددې تائید د هغه عبارت څخه هم کیږي کوم چي د مسلم په روایت کي دي چي (امر بها النبي ﷺ فرجمت ثم صلی علیها فقال له عمر تصلی علیها یا نبي الله و قد زنت) دا روایت په صراحت سره دا ثابتوي چي رسول الله ﷺ د هغې د جنازې لمونځ کړی وو ، او د ابوداؤد په روایت کي دا الفاظ دي چي (ثم امر هم ان یصلوا علیها) یعني رسول الله ﷺ دا حکم وکړ چي د هغې د جنازې لمونځ دي وکړل سي ، قاضي عیاض رحمۃ اللہ علیہ دا وضاحت کړی دی چي که څه هم مسلم په خپل روایت کي د رسول الله ﷺ د ماعز ابن مالک د جنازې د لمانځه کولو ذکر نه دی کړی مګر په بخاري کي دا ذکر سوی دی .

اوس پاته سوه دا خبره چي د مسلم په اکثرو روایتو کي لفظ د صلی د معروف په صیغه سره نقل سوی دی نو دلته د مشکوة مؤلف دغه لفظ د مجهول په صیغې سره ولي نقل کړی دی، په دې کي شک نه سته چي که څه هم اثبات پر نفي مقدم دی په دې اعتبار سره د مشکوة مؤلف ته دغه لفظ د معروف په صیغه سره په نقل کولو سره اثبات ته ترجیح ورکول پکار وه مګر کله چي هغه په معتمد او صحیح نسخو کي ولیدل چي په دې باره کي مختلف روایتونه دي چي رسول الله ﷺ د هغه ښځي د جنازې لمونځ وکړ که یا ؟ نو هغه لفظ د صلی د مجهول په صیغه سره نقل کولو ته ترجیح ورکړه چي په دغه صورت کي دواړه احتماله مخلوط پاته سي مګر د دغه حقیقت څخه هم انکار نه سي کیدای چي دغه صورت د ابهام څخه خالي نه دی ځکه چي په دې باره کي غوره دادي چي د جمهور متابعت او د نقل مشهور سره سم د موافقت په وجه دغه لفظ د معروف په صیغه سره قبول کړل سي چي رسول الله ﷺ د هغې د جنازې لمونځ کړی وو .

په هر حال دغه حدیث پر دې دلالت کوي چي حد هغه ګناه ختموي چي د هغه په سزا کي د هغه نفاذ او اجراء کیږي د مثال په توګه زید زنا وکړه او پر هغه باندي د دغه جرم په سزا کي حد

جاري کړل سي نو هغه به د زنا د ګناه څخه خلاص سي او په آخرت کي به د هغه څخه پر دغه زنا باندي هیڅ نیوکه نه کیږي.

امام نووي رحمة الله علیه وایي چي دلته د هغه ښځي په باره کي دوه روایتونه نقل سوي دي او په ظاهره دوهم روایت د اول روایت مخالف دی ځکه چي د دوهم روایت څخه دا معلومیږي چي هغه ښځه هغه وخت سنګسار کړل سوه کله چي هغې خپل کوچنی د تي څخه پرې کړی وو او هغه ډوډۍ خوړل شروع کړي وه مګر په اول روایت کي دا معلومیږي چي هغه د کوچني د ولادت څخه وروسته سنګسار کړل سول نو د دوهم روایت د صحیح مفهوم سره سم د اول روایت تاویل کول ضروري سول تر څو د دواړو روایتو مفهوم یو ډول سي ځکه چي د دواړو روایتو تعلق د یوې واقعې سره دی او دواړه روایتونه صحیح دي، نو تاویل دادی چي په اول روایت کي چي دا بیان سوی دی چي یو انصاري ولاړ سو او وه یې ویل زه د دغه کوچني د تي ورکولو ذمه دار یم نو هغه دا خبره هغه وخت کړې ده کله چي هغه ښځي خپل کوچنی د تي څخه پرې کړی وو او د تي ورکولو د ذمه دار کېدو څخه د هغه مراد دا وو چي زه د دغه کوچني د روزني ذمه دار یم او هغه خپل دغه مفهوم مجازًا په تي ورکولو سره تعبیر کړ.

## د مینزي زنا

﴿۳۴۰۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې:

زَنَتْ أَمَةُ أَحَدِكُمْ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا ثُمَّ إِنْ

که په تاسو کي د چا مینزه زنا وکړي او د هغې زنا کول څرګند سي نو پر هغې دي شرعي حد جاري کړل سي، لعن طعن دي پر مینځو نه وي او پر دې دي لعن او طعن نه کیږي بیا که دا دویم

زَنَتْ فَلْيَجْلِدْهَا الْحَدَّ وَلَا يُثَرِّبْ عَلَيْهَا ثُمَّ إِنْ زَنَتْ الثَّالِثَةَ فَتَبَيَّنَ زِنَاهَا فَلْيَبِعْهَا وَلَوْ بِحَبْلٍ مِنْ شَعَرٍ . متفق علیه.

وار زنا وکړي نو دویم وار دي سزا ورکړل سي او بد رد دي ورته نه ویل کیږي، بیا که دا دریم وار زنا وکړي او د هغې زنا څرګنده سي نو وه دي پلورل سي که څه هم په یوه وېښتنه رسۍ سره وي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۴۲۱\۱۴، رقم: ۲۲۳۴، ومسلم ۱۳۲۸\۳، رقم: ۳۰- ۱۷۰۳.

**د لغاتو حل**: لایُثَرب: ای لایعیب علیها. (عیب دي ورباندي نه ویل کیږي)

**تشریح**: نو پر هغې حد جاري کړئ: یعني هغه دي پنځوس دُرې ووهي، څرګنده دي وي چي د مینزي او غلام حد د آزاد سړي او ښځي په نسبت نیم دی او د مینزي او غلام لپاره د سنګسارولو سزا مشروع نه ده.

امام شافعي رحمه الله د دغه حدیث څخه استدلال کړی دی چي بادار ته دا حق حاصل دی چي هغه پر خپل مملوک باندي خپله حد جاري کړي حال دا چي د حنفي علماؤ په نزد دا جائز نه دي، د هغه دغه حکم (هغه دي حد پر جاري کړي) دا په اصل کي پر سبب باندي محمول دي یعني د هغه حکم مطلب دا دی چي بادار دي پر خپل زنا کونکي مینزي باندي د حد جاري کېدو سبب او واسطه سي په دې توګه چي هغه مینزه دي د حاکم په مخکي وړاندي کړي چي هغه حد پر جاري کړي.

او هغې ته پیغور نه ورکوي: ددې مطلب دا دی چي د حد جاري کولو څخه وروسته دي پر هغه مینزي باندي لعنت او طعن نه وایي او نه دي هغې ته د حد جاري کولو پیغور ورکوي ځکه چي هغې د حد په صورت کي د خپل ګناه کفاره ورکړل او هغه د ګناه څخه پاکه سوه نو اوس پر هغې باندي لعنت او پیغور ولي وکړل سي، دا حکم په خاصه توګه د مینزي لپاره نه دی بلکه د ازاد سړي او ښځي لپاره هم دا حکم دی مګر څرنګه چي مینزي د توبیخ او ملامتۍ محل وي نو په خاصه توګه سره د مینځو په باره کي دا حکم بیان کړل سو.

هغه مینزه دي وپلوري: ددې مطلب دا دی که چیري بادار غواړي نو هغه دي د حد جاري کولو څخه وروسته خپل مینزه خرڅه کړي او که چیري غواړي نو د حد جاري کولو څخه مخکي دي یې خرڅه کړي مګر د حدیث د ظاهري مفهوم څخه دا معلومیږي چي د حد جاري کولو څخه مخکي باید وپلورل سي.

امام نووي رحمه الله وایي چي د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي د فاسق، فاجر او ګناه کارو سره او سیدل پرېښودل او همدارنګه د مینزي پلورل مستحب دي مګر د علماؤ ظواهر په نزد دا واجب دي.

## پر ناروغ باندي د حد جاري کولو مسئله

﴿۳۴۰۹﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ أَقِيمُوا عَلَى أَرِقَّائِكُمُ الْحَدَّ مَنْ أَحْصَنَ

حضرت علي رضي الله عنه خلک مخاطب کړل او ورته وه یې ویل: ای خلکو که ستاسو مینزي او غلامان

زنا وكړي نو هغوی ته شرعي سزا ورکړئ كه هغه واده سوي وي

مِنهُمْ وَمَنْ لَمْ يُحْصِنْ فَإِنَّ أَمَةً لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَنَتْ فَأَمَرَنِي

يا نه ، د رسول الله ﷺ يوې مينزي زنا کړې وه نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي

أَنْ أَجْلِدَهَا فَإِذَا هِيَ حَدِيثُ عَهْدٍ بِنِفَاسٍ فَخَشِيتُ إِنْ أَنَا جَلَدْتُهَا أَنْ أَقْتُلَهَا

زه (علي) هغه په دورو ووهم ، مگر د هغې تازه كوچنى پيدا سوی وو زما سره بيره پيدا سوه كه زه هغه په دورو ووهم نو هغه به مړه سي ،

فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَحْسَنْتَ . رواه مسلم و في

ما نبي كريم ﷺ ته ددې خبري يادونه وكړه ، نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل تا ښه وكړل (چي په دغه حالت كي دي هغې ته سزا ورنه كړل) ، مسلم ،

رواية ابي داؤد قَالَ دَعْهَا حَتّٰى يَنْقَطِعَ دَمُهَا ثُمَّ اَقِمْ عَلَيْهَا الْحَدَّ وَ اَقِيْمُوا الْحُدُوْدَ عَلٰى مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ .

د ابوداؤد په روايت كي بيا داسي الفاظ دي چي رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل : دا تر هغه وخته پوري پرېږده چي ددې د نفاس وينه بنده سي بيا پر دې حد جاري كړه او پر خپلو غلامانو باندي حدونه قائموئ .

**تخريج**: صحيح مسلم: ۳\۱۳۳۰، رقم: ۳۴ – ۱۷۰۵، سنن ابي داود ۴\۶۱۷،

**تشريح**: ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي د حد په سزا كي كه چيري ښځه د نفاس په حالت كي وي نو پر هغې دي تر هغه وخته پوري حد نه جاري كيږي تر څو چي هغه د نفاس څخه پاكه نه سي ځكه چي نفاس يو ډول ناروغي ده او ناروغ ته د هغه تر ښه كېدو پوري وخت وركول پكار دي .

ابن همام رحمة الله عليه وايي كه چيري يو ناروغ زنا وكړي او د هغه د محصن كېدو په وجه هغه د رجم مستحق وگرځول سي نو هغه دي په ناروغۍ كي رجم كړل سي او كه چيري د غير محصن كېدو په وجه د دُرو وهلو مستحق وگرځول سي نو هغه دي تر هغه وخته پوري په دُرو نه وهل كيږي تر څو چي هغه د ناروغي ښه نه سي مگر كه چيري هغه په يو داسي ناروغۍ كي اخته وي

چي د هغه څخه د ځان ساتني امید نه وي لکه دق، سل او داسي نوري ناروغی یا هغه ناقص او ضعیف الخلقت وي نو په دغه صورت کي د امام اعظم ابو حنیفة او امام شافعي رحمة الله علیهما په نزد مسئله داده چي (د سزا پوره کولو لپاره دي) هغه د خرما په یو داسي لوی ښانګي سره ووهل سي چي په هغه کي سل کوچنی کوچنی ښانګي وي او په هغه ښانګي دي یو وار ووهل سي چي د هغه یوه یوه ښانګه د هغه پر بدن ولګیږي ځکه ویل سوي دي چي د دغه مقصد لپاره د خپاره سوو ښانګو استعمالول ضروري دي.

دا خبره دي په ذهن کي وي چي د ضائع کېدو د بیري څخه د دُرو وهلو حد دي نه په سختي ګرمي کي جاري کیږي او نه په سخت یخ کي بلکه د دې لپاره دي د معتدلي هواء انتظار وکړل سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### دزنا د اقرار څخه رجوع کول...

﴿۳۴۱۰﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ مَاعِزٌ الْأَسْلَمِيُّ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دی چي ماعز اسلمي رضي الله عنه راغلی او د رسول الله ﷺ په

وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ زَنَى فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الْآخَرِ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ

خدمت کي یې عرض وکړ چي ما زنا کړې ده، رسول الله ﷺ مخ ځني واړوئ، هغه بیا له هغه بل اړخ څخه راغلی نو وه یې ویل:

زَنَى فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ جَاءَ مِنْ شِقِّهِ الْآخَرِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ قَدْ زَنَى

ما زنا کړې ده، رسول الله ﷺ بیا مخ ځني واړوی هغه بیا له هغه بل اړخ څخه راغلی نو وه یې ویل چي ما زنا کړې ده،

فَأَمَرَ بِهِ فِي الرَّابِعَةِ فَأُخْرِجَ إِلَى الْحَرَّةِ فَرُجِمَ بِالْحِجَارَةِ فَلَمَّا وَجَدَ مَسَّ

په څلورم وار پر هغه د زنا اقرار وکړل سو، نو رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ نو هغه د مدیني ډبریني مځکي ته ولیږل سو او هلته سنګسار کړل سو،

الْحِجَارَةِ فَرَّ يَشْتَدُّ حَتَّى مَرَّ بِرَجُلٍ مَعَهُ لَحْيُ جَمَلٍ فَضَرَبَهُ بِهِ وَضَرَبَهُ النَّاسُ

کله چي د هغه پر بدن ډبري ولګيدې نو هغه په تيزۍ سره وتښتېدی تر دې چي هغه د يوه سړي سره تير سو چي د هغه سره د اوښ هډوکی وو هغه په هډوکي ووهئ

حَتَّى مَاتَ فَذَكَرُوا ذٰلِكَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ فَرَّ حِينَ وَجَدَ

تر څو چي هغه مړ سو، رسول الله ﷺ ته د دې پېښي يادونه وسول چي کله پر هغه ډبري ولګيدې او مرګ ورته څرګند سو نو هغه وتښتېدی،

مَسَّ الْحِجَارَةِ وَمَسَّ الْمَوْتِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ . رواه الترمذي

رسول الله ﷺوفرمايل : تاسو هغه ولي نه پرېښودئ . ترمذي

و ابن ماجة . و في رواية هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ فَيَتُوبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ

او ابن ماجه، او په يوه روايت کي د اا الفاظ دي که تاسو هغه پرې ايښی وای نو ډيره ممکن وه چي هغه توبه کړې وای او الله ﷻ د هغه توبه قبوله کړې وای.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۷، رقم: ۱۴۲۸، وابن ماجه ۲\ ۸۵۴، رقم: ۲۵۵۴. سنن ابي داود ۴\ ۵۷۳، رقم: ۴۴۱۹.

**تشريح**: يتوب فيتوب الله عليه: ددې مطلب دادی چي هغه خو د خپل دغه بد کار څخه رجوع کړې وي (يعني په ندامت او شرمندګۍ سره يې د الله ﷻ څخه د خپل دغه ګناه معافي غوښتې وي او الله تعالی د هغه د توبې په قبلولو سره رجوع ورته کړې وي يعني د رحمت په نظر هغه ته متوجه سوی وي او د هغه ګناه يې معاف کړې وي).

دا حديث ددې دليل دی که يو سړی اول خو د خپل زنا اقرار وکړي او بيا وروسته ووايي چي ما زنا نه ده کړې، يا ما درواغ ويلي دي، يا زه د خپل اقرار څخه رجوع کوم نو په دغه صورت کي د هغه څخه حد ساقط کيږي، همدارنګه که چيري هغه د حد قائمېدو په دوران کي د خپل اقرار څخه رجوع وکړي نو څومره حد چي پاته دی هغه به ساقط سي حال دا چي ځيني علماء وايي چي د هغه څخه حد نه ساقطيږي.

## د ماعز رضي الله عنه د جرم اعتراف

﴿۳۴۱۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِمَاعِزِ بْنِ مَالِكٍ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ماعز بن مالک ته وفرمايل :

أَحَقٌّ مَا بَلَغَنِي عَنْكَ قَالَ وَمَا بَلَغَكَ عَنِّي قَالَ بَلَغَنِي أَنَّكَ وَقَعْتَ بِجَارِيَةِ آلِ

ايا دا ﭘﻬﺒﻨﻪ رښتيا ده چي ستا په اړه ما ته را رسيدلې ده هغه عرض وکړ زما په اړه تاسو ته څه ځرګند سوي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ما ته ځرګنده سوې ده چي تا د فلاني سړي د مينځي سره زنا کړې ده،

فُلَانٍ فَشَهِدَ أَرْبَعَ شَهَادَاتٍ ثُمَّ أَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ. رواه مسلم.

هغه عرض وکړ چي هو، هغه څلور واره ددې اقرار وکړ، رسول الله ﷺ د هغه د سنګسار کولو حکم وکړ نو هغه په ډبرو ووژل سو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۳۲۰/۳، رقم: ۱۹- ۱۶۹۳.

**تشريح**: ددغه حديث په باره کي د مصابيح پر مؤلف باندي دا اعتراض کيږي چي هغه دغه حديث د اول فصل پر ځاى دلته په دوهم فصل کي ولي نقل کړى دى.

ددغه حديث څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ ته د ماعز رضي الله عنه د زنا کولو خبر وو بيا رسول الله ﷺ د هغه څخه د جرم اعتراف وکړ حال دا چي د نورو حديثو څخه ددې پر خلاف ثابتيږي، يعني په دې اعتبار سره په هغه حديثو کي تضاد معلوميږي نو د هغو په مينځ کي د تطبيق وجه به دا وي چي په اصل کي په دغه حديث کي د اختصار خيال ساتل سوى دى او د پوره واقعې نقل کولو څخه پرته يوازې د رجم ذکر سوى دى حال دا چي په نورو حديثو کي واقعه په پوره تفصيل سره ذکر سوې ده نو دا اغلب دى چي رسول الله ﷺ ته به د ماعز رضي الله عنه د زنا کولو علم د مخکي څخه سوى وو او بيا وروسته رسول الله ﷺ د ماعز څخه د هغه اقرار وکړ او هغه صورت يې اختيار کړ کوم چي په نورو حديثو کي په تفصيل سره ذکر سوى دى، کله چي ماعز رضي الله عنه د خپل زنا اقرار وکړ نو رسول الله ﷺ به مخ ځني واړوى همدا رنګه رسول الله ﷺ په څلورو مجلسو کي څلور واره اقرار په وکړ او بيا يې د سنګسارولو حکم وکړ، په دې اعتبار سره په حديثو کي هيڅ تضاد پاته نه سو

## د نورو د عيب پټول وکړئ

﴿۳۴۱۲﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نُعَيْمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ مَاعِزًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

حضرت يزيد بن نعيم د خپل پلار څخه روايت کوي چي ماعز د نبي کريم ﷺ په خدمت کي

وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ عِنْدَهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَأَمَرَ بِرَجْمِهِ وَقَالَ لِهَزَّالٍ لَوْ سَتَرْتَهُ بِثَوْبِكَ

څلور واره د خپلي زنا اقرار وکړ او رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ، بیا رسول الله ﷺ هزال (چا چي رسول الله ﷺ د زنا د پېښي څخه خبر کړی وو) ته وفرمایل: که تا پر هغه پرده

كَانَ خَيْرًا لَكَ قَالَ ابْنُ الْمُنْكَدِرِ أَنْ هَزَّالًا أَمَرَ مَاعِزًا أَنْ يَأْتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُخْبِرَهُ. رواه ابوداؤد.

اچولې وای نو غوره به وای، ددې حدیث یو راوي ابن منکدر وایي چي هزال ماعز پر دې اماده کړی وو چي هغه دنبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سي او د خپل جرم اقرار وکړي او د پېښي څخه یې خبر کړي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۴۱، رقم: ۴۳۷۸.

**تشريح**: د هزال رضي الله عنه یوه مینزه وه چي د هغې نوم فاطمه وو، هغه ازاده سوې وه او د هغه فاطمې سره ماعز رضي الله عنه زنا وکړه، کله چي هزال رضي الله عنه په دې خبر سو نو ماعز رضي الله عنه یې دې ته اماده کړی چي هغه رسول الله ﷺ ته ورسي او ددغه پیښي څخه یې خبر کړي او د خپل جرم اقرار وکړي په دې وجه رسول الله ﷺ هزال رضي الله عنه ته وفرمایل که تا د هغه ګناه نه وای څرګنده کړې بلکه پر هغه دي پرده اچولې وای نو دا به ستا لپاره غوره وای چي ددې په وجه الله تعالی ته په خیر سره نازولی وای او ستا د ګناهونو پرده یې کړې وای.

## حاکم ته د حد معافولو اختیار نه سته

﴿۳۴۱۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه

الْعَاصِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَعَافُّوا الْحُدُودَ فِيمَا بَيْنَكُمْ فَمَا بَلَغَنِي مِنْ حَدٍّ فَقَدْ وَجَبَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ددې څخه وړاندي چي د هغه خبر ما ته راورسیږي تاسو په خپل منځ کي حدود معاف کوئ.. مګر کله چي پېښه ما ته راورسیږي نو

سزا واجب سي . ابو داؤد او نسائي .

**تخريج** سنن ابي داود ۱۴\۵۴۰، رقم: ۴۳۷۶، والنسائي ۸\۷۰، رقم: ۴۸۸۶،

**تشريح** حدود معافوئ او محوه كوئ يې : دا په اصل كي عوامو ته وينا ده او هغوى ته ددغه احسان تلقين كول كيږي كه چيري په تاسو كي د يو سړي څخه ګناه او جرم وسي نو د هغه قضيه د حاكم په مخكي مه ايږدئ بلكه د هغه څخه معافي كوئ نو رسول الله ﷺ د خپل ارشاد (كه د جرم اطلاق ما ته راورسيږي ...) په ذريعه دا واضحه كړه چي ددې خبري دليل دى كه چيري هغه قضيه حاكم ته ورسيږي او په هغه كي حد واجب سي نو د هغه حد معافول به د هغه لپاره جائز نه وي.

د حديث مفهوم پر دې دلالت كوي كه يو مملوك څخه يو ډول ګناه وسي نو د هغه بادار ته نه خو په خپله پر هغه باندي حد جاري كول پكار دي او نه د هغه لپاره دا مناسب دي چي هغه مملوك حاكم ته بوځي بلكه پكار دي چي هغه معاف كړي .

دا خبره دي په ذهن كي وي چي په حديث كي د معافولو كوم حكم راغلى دى هغه د وجوب په توګه نه دى بلكه د استحباب په توګه دى .

## د عزت دارو خطاوي معافول پكار دي

﴿۳۴۱۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَقِيلُوا ذَوِي الْهَيْئَاتِ عَثَرَاتِهِمْ إِلَّا الْحُدُودَ . رواه ابوداؤد .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : د عزتمندو خلكو د خطاوو څخه تيروتنه كوئ مګر شرعي حدود مه معافوئ . ابو داؤد .

**تخريج** سنن ابي داود ۱۴\۵۴۰، رقم: ۴۳۷۵.

**تشريح** مطلب دا دى كه چيري د هغوى څخه په غلطۍ كي يو ګناه وسي او ناڅاپه په يو لړزه كي اخته سي نو هغوى دي معاف كړل سي په سزا او عقوبت كي په اخته كولو سره هغوى ذليل او رسوا مه كوئ كه څه هم د هغه ګناه تعلق د حقوق الله سره وي يا د حقوق العباد سره وي يعني ددغه حكم مخاطب هغه حاكمان دي چي د هغوى د شرعي سزاوو د جاري كولو ذمه دار دي كه څه هم ځيني حضرات دا فرمايي چي ددې مخاطب نور خلك هم دي او دا حكم هم د استحباب په توګه دى .

## د شک فائده ملزم ته پکار ده

﴿۳۴۱۵﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِدْرَءُوا الْحُدُودَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تر څو پوري چي ممکن وي حدود د مسلمانانو څخه ليري ساتئ

عَنِ الْمُسْلِمِينَ مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنْ كَانَ لَهُ مَخْرَجٌ فَخَلُّوا سَبِيلَهُ فَإِنَّ الْإِمَامَ

که لږ هم د ژغورلو موقع وي نو هغه پرېږدئ ځکه چي د امام (حاکم) په معاف کولو کي غلطي

أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعَفْوِ خَيْرٌ مِنْ أَنْ يُخْطِئَ فِي الْعُقُوبَةِ. رواه الترمذي و قال قد روي عنها و لم يرفع وهو اصح.

کول په سزا کي د غلطۍ کولو څخه غوره دي، دا ترمذي روايت کړی دئ او وايي چي دا د حضرت عائشې څخه مرفوع نه دی روايت کړل سوی او هم دا زيات صحيح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۵، رقم: ۱۴۲۴.

**تشريح**: ددغه ارشاد مخاطب په اصل کي حاکمان دي هغوی ته دا لارښوونه سوې ده که د يو مسلمان په باره کي يو داسي قضيه هغوی ته راسي چي د هغه سزا حد وي د مثال په توګه د زنا قضيه نو هغوی بايد چي تر څو پوري کيدای سي د هغه مسلمان ددغه حد څخه د ساتني هڅه وکړي او د شبه چي کومه موقع راځي د هغه ګټه دي ملزم ته ورسوي، نه يوازي دي بلکه هغوی دي د ملزم د عذر تلقين وکړي يعني د هغه څخه دي پوښتنه وکړي چي ايا ته ليونی يې، ايا تا شراب څښلي دي، ايا داسي خو نه ده چي تا د هغه ښځي سره د زنا پر ځای د هغې څخه مچه اخيستې وي يا په شهوت سره دي مس کړې وي، مقصد دا چي د هغه څخه دي دا ډول پوښتني وکړل سي چي هغه د تلقين د عذر په وجه يو عذر بيان کړي چي په هغه سره د حد جاري کېدل ونه سي او هغه خلاص سي، د ماعز ﷛ او داسي نورو کسانو څخه چي رسول الله ﷺ دا ډول پوښتني وکړې نو د هغه مقصد هم د عذر تلقين وو، په پای کي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د امام د معافولو خطاء د سزا ورکولو د خطاء څخه غوره ده، ددې مقصد هم د ذکر سوې خبري مبالغه او تاکيد کول دي او دا واضحه کول دي که يو حاکم د يو مقدمې فيصله کولو سره ملزم خلاص کړي او د هغه په فيصله کي يو غلطي وسي يا هغه ملزم د سزا ورکولو فيصله وکړي او

په هغه کي يو غلطي وسي نو که څه هم د غلطي په اعتبار دواړي فيصلې محل نظر وي او د انصاف پر معيار باندي پوره ونسي مګر د ملزم په خلاصون کي په هر حال د يو مسلمان ځان او عزت وساتل سي ځکه دا غلطي به د هغه غلطۍ څخه غوره دي چي د سزا په فيصله کي وکړل سي او د هغه په نتيجه کي يو مسلمان د خپل ځان او عزت څخه لاس پريولي .

## په زوره زنا کولو سره يوازي نارينه ته حد ور کول کيږي

﴿۳۴۱۶﴾: وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ اسْتُكْرِهَتْ امْرَأَةٌ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ

د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَرَأَ عَنْهَا الْحَدَّ وَأَقَامَهُ عَلَى الَّذِي أَصَابَهَا وَلَمْ يُذْكَرْ أَنَّهُ جَعَلَ لَهَا مَهْرًا . رواه الترمذي .

د يوې ښځي سره زور وکړل سو ( يعني په زوره زنا ورسره وکړل سول) نبي کريم ﷺ هغه ښځه معاف کړه او پر سړي يې حد قائم کړ ، راوي دا دې ذکر ونه کړ چي رسول الله ﷺ هغې ته مهر هم وټاکئ که يا ، ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۵، رقم: ۱۴۵۳.

**تشريح**: د راوي په ذکر کولو سره دا نه لازميږي چي په داسي صورت کي مهر نه واجبيږي ځکه چي د نورو حديثو څخه دا ثابته ده چي د کومي ښځي سره په زور زنا سوې وي د هغې لپاره مهر واجب دي او دلته د مهر څخه مراد عقر دی او عقر د حرام کوروالي او صحبت تشبه ته وايي او ددې اطلاق پر يو داسي مقدار باندي کيږي که د حرام صحبت مزدوري اخيستل حلال وي نو هغه مقدار به واجب وي ، برجندي په فتاوی عالمګيري کي ليکلي دي چي عقر مهل مثل ته وايي ددې مطلب دادی چي د زنا بالجبر په صورت کي د زنا کونکي سړي ښځي ته کوم مال ورکړل سي د هغه مقدار د هغه ښځي د مهر مثل برابر کېدل پکار دي .

﴿۳۴۱۷﴾: وَعَنْهُ أَنَّ امْرَأَةً خَرَجَتْ عَلَى عَهْدِ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرِيدُ

د حضرت وائل بن حجر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي يوه ښځه د لمانځه

الصَّلَاةَ فَتَلَقَّاهَا رَجُلٌ فَتَجَلَّلَهَا فَقَضَى حَاجَتَهُ مِنْهَا فَصَاحَتْ وَانْطَلَقَ وَمَرَّتْ

په اراده د باندي ووتل ، يو سړي هغه ونيول پر هغې يې جامه واچول او د هغې څخه يې خپل حاجت پوره کړ (يعني زنا يې ورسره وکړه)

عِصَابَةٌ مِّنَ الْمُهَاجِرِيْنَ فَقَالَتْ إِنَّ ذَاكَ الرَّجُلَ فَعَلَ بِي كَذَا وَكَذَا فَأَخَذُوا

هغې ښځي شور وکړ سړي هغه پرېښودل او ولاړی ، د مهاجرينو يو ډله د هغې ښځي سره نژدې تير سول نو هغه ښځي دوی ته وويل چي دغه سړي زما سره داسي داسي وکړل ، هغوی سړی

الرَّجُلَ فَأَتَوْا بِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهَا اذْهَبِي فَقَدْ غَفَرَ

ونيوئ او رسول الله ﷺ ته يې وړاندي کړ ، نو رسول الله ﷺ هغه ښځي ته وفرمايل ته ولاړه سه الله تعالی ته وبخښلې ،

اللَّهُ لَكِ وَقَالَ لِلرَّجُلِ الَّذِي وَقَعَ عَلَيْهَا ارْجُمُوهُ وَقَالَ لَقَدْ تَابَ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا

أَهْلُ الْمَدِينَةِ لَقُبِلَ مِنْهُمْ . رواه الترمذي و ابوداؤد .

او د هغه سړي په اړه چي زنا يې کړې ده وفرمايل دی بوځئ او سنګسار يې کړئ ، د هغه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه توبه وکښل (په سزا خوړلو سره يې) داسي توبه وکښل که د مدينې خلکو داسي توبه کړې وای نو توبه به يې قبوله سوې وای . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۴۵، رقم: ۱۴۵۴، وابوداود ۴\۵۴۱، رقم: ۴۳۷۹.

**د لغاتو حل** فتجللها : ای فغشيها بثوبه (پټه يې کړه په جامه سره.) عِصابة : ای جماعة قوية (ستره ډله)

**تشريح** د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي هغه سړی د خپل جرم په سزا تر لاسه کولو سره داسي توبه کړې ده که چيري دغه توبه د مدينې د اوسيدونکو په مينځ کي وويشل سي نو نه يوازي دا چي د هغه ټولو توبه به قبوله سوې وای بلکه د هغه ثواب به د ټولي مدينې د اوسيدونکو لپاره کافي وای يعني ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ دا واضحه کړل چي دغه سړی که څه هم يوه لويه بې حيايي کړې ده مګر کله چي پر هغه حد جاري کړل سو نو هغه د خپل جرم څخه پاک سو او وبخښل سو .

## د یوې زنا دوې سزاوي

﴿۳۴۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلًا زَنَى بِامْرَأَةٍ فَأَمَرَ بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجُلِدَ الْحَدَّ ثُمَّ أُخْبِرَ أَنَّهُ مُحْصَنٌ فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي د يوې ښځي سره زنا وکړه ، نبي کريم ﷺ د هغه په دورو وهلو حکم وکړ هغه په دورو ووهل سو د هغه وروسته رسول الله ﷺ ته و ښودل سوه چي هغه واده کړی دئ نو رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ نو هغه سنګسار کړل سو . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۸٦، رقم: ۴۴۳۸.

**تشريح**: رسول الله ﷺ اول په دُرو باندي د وهلو حکم ورکړ : په دې باره کي دا احتمال دی چي رسول الله ﷺ ته به دا ښوول سوي وه چي هغه سړی غير محصن دی او دا هم احتمال دی چي رسول الله ﷺ ته به ښوول سوي نه وه ځکه رسول الله ﷺ د دُرو وهلو سزا ورکړه مګر وروسته چي دا ثابته سوه چي دا سړی محصن دی او د محصن کېدو په وجه د رجم مستحق دی نو د هغه د رجم حکم يې ورکړ ، ددې څخه دا خبره ثابته سوه که د وخت امام يو چا ته د حد سزا ورکړه بيا وروسته هغه ته دا معلومه سي چي دغه مجرم د حد د دغه سزا نه بلکه د حد د يو بلې سزا وړ دی نو د هغه حاکم لپاره دا ضروري ده چي هغه ته دوهم وار سزا ورکړي کوم چي د هغه مجرم په شرعي توګه وړ وي .

## ناروغ مجرم ته د سزا ورکولو طريقه

﴿۳۴۱۹﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ أَنَّ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى

د حضرت سعيد بن سعد بن عبادة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ كَانَ فِي الْحَيِّ مُخْدَجٍ سَقِيمٍ فَوُجِدَ عَلَى أَمَةٍ مِّنْ إِمَائِهِمْ

کي حاضر سو هغه سړی ډير کمزوری او ناروغ وو ، هغه د محل د يوې ښځي سره زنا کړې وه ،

يَخْبُثُ بِهَا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذُوا لَهُ عِثْكَالًا فِيهِ مِائَةُ

شِمْرَاخٍ فَاضْرِبُوْهُ ضَرْبَةً . رواه في شرح السنة وفي رواية ابن ماجه نحوه

نبي كريم ﷺ حكم وكړ چي ده د وهلو لپاره د خرماوو يوه څانګه واخلئ چي په هغه کي کوچنۍ کوچنۍ سل څانګي وي او په هغه څانګو يې داسي په يو وار ووهئ چي ټولي څانګي د هغه پر بدن ولګيږي . شرح السنة او ابن ماجة .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٠\٣٠٣، رقم: ٢٥٩١، وابن ماجه ٢\٨٥٩، رقم: ٢٥٧٤.

**د لغاتو حل**: مَخدَج: اى ناقص الخلقة (عيبجن). عثكالا: اى كباسة وهي للرطب بمنزلة العنقود للعنب. (بناخله). شِمراخ: الاغصان الصغيرة الموجودة على العتكال (پر بناخلې کوچنى کوچنى بناخونه)

**تشريح**: يو وار يې ووهئ : ددې مطلب دادی چي په هغه لوی څانګي يې داسي ووهئ چي د هغه ټولو سل څانګو وار د هغه پر بدن ولګيږي ، ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د وخت حاکم ته ددې خبري خيال ساتل پکار دي چي کوم سړي ته د دُرو سزا ورکول کيږي هغه بايد مړ نه سي او دا مسئله مخکي هم بيان سوې ده که چيري يو ناروغ سړی د يو حد مستوجب وي نو پر هغه دي تر هغه وخته پوري حد نه جاري کيږي تر څو چي هغه روغ نه سي او د کوم ناروغ چي د ښه کېدو اميد نه وي پر هغه دي داسي حد جاري کړل سي لکه څرنګه چي په حديث کي ذکر سوی دی .

## د لواطت سزا

﴿٣٤٢٠﴾: وَعَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت عکرمة د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي

وَسَلَّمَ مَنْ وَجَدْتُمُوْهُ يَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُوْلَ بِهِ .

رواه الترمذي وابن ماجة .

کوم سړی چي تاسو د قوم لوط په ډول په عمل کولو وويني نو فاعل او مفعول دواړه ووژنئ . ترمذي او ابن ماجة .

**تخريج**: سنن الترمذي ٤\٤٧، رقم: ١٤٥٦، وابن ماجه ٢\٨٥٦، رقم: ٢٥٦١.

**تشريح**: په شرح السنه کي ليکلي دي چي د غلام (لواطت) د حد په باره کي د علماؤ اختلاف دی، د امام شافعي رحمه الله په دوو قولو کي زيات صحيح قول او د صاحبينو قول دادی چي د

فاعل (لواطت كونكي) حد هغه دی کوم چي د زنا كونكي حد دی يعني که هغه محصن وي نو سنګسار دي كړل سي او كه غير محصن وي نو سل دُرې دي ووهل سي او د يوه كال لپاره دي جلا وطنه كړل سي كه هغه سړی وي كه يا ښځه، حال دا چي د يو ډلي رجحان دې ته خوا ته دی چي لواطت كونكی دی په هر حال سنګسار كړل سي كه هغه محصن وي يا غير محصن وي ، د امام مالک او امام محمد رحمة الله عليهما قول هم دادی ، د امام شافعي رحمة الله عليه دوهم قول دادی چي لواطت كونكی او لواطت كړل سوی دواړه دي قتل كړل سي لكه څرنګه چي د حديث د ظاهري مفهوم څخه معلوميږي .

اوس پاته سوه دا خبره چي د هغوی د قتل طريقه دي څه وي ؟ ځيني حضرات وايي چي هغوی دي د غره د سر څخه را وغورځول سي ، په دې باره كي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دادی چي د لواطت سزا تعزير دی يعني د هغه اختيار حاكم ته دی چي هغه د حالاتو او حكمت په لحاظ سره كومه سزا چي غواړي جاري كولای سي ، د دېوال لاندي دي ئې كړي او كه هغه غواړي نو لواطت كونكی دي قتل كړي دي كله چي دغه خرابي د هغه عادت ګرځېدلې وي او كه غواړي نو هغه دي په بنديخانه كي واچول سي .

## د حيوان سره د بد فعلی سزا

﴿۳۴۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَتٰى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : كوم څوک چي

بَهِيمَةً فَاقْتُلُوهُ وَاقْتُلُوهَا مَعَهُ قِيلَ لِابْنِ عَبَّاسٍ مَا شَأْنُ الْبَهِيمَةِ قَالَ مَا

د حيوان سره بد فعلي وكړي هغه سړی او حيوان قتل كړئ ، د ابن عباس رضي الله عنهما څخه پوښتنه وسول چي په دې كي د حيوان څه قصور دئ؟ هغه وويل : ما

سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذٰلِكَ شَيْئًا وَلٰكِنْ أَرَى كَرِهَ أَنْ

په دې اړه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه هيڅ نه دي اوريدلي ، البته زما خيال دئ چي د داسي حيوان

يُؤْكَلَ مِنْ لَحْمِهَا أَوْ يُنْتَفَعَ بِهَا وَقَدْ فُعِلَ بِهَا ذٰلِكَ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة .

غوښه خوړل یا ددې څخه ګټه اخیستل چي بدفعلي ورسره سوې وه مکروه دي . ترمذي ،ابوداؤد او ابن ماجة .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۴٦، رقم: ۱۴۵۵، وابوداود في السنن ۴\٦۰۹، رقم: ۴۴٦۴، وابن ماجه في السنن ۲\۸۵٦، رقم: ۲٦۵۳.

**تشريح**: هغه قتل کړئ : ددې مراد دادی چي هغه سخت ووهئ یعني د هغه د قتلولو حکم د سخت زجر او تهدید په توګه دی د هغه په حقیقت کي قتلول مراد نه دي .

د هغه سره حیوان هم قتل کړئ : ددغه حکم حکمت ځیني حضرات دا بیانوي که چیري هغه حیوان ژوندی وساتل سي نو کیدای سي چي کوم سړي د هغه سره بدفعلي کړې وي د هغه نطفه د هغه په رحم کي قرار تر لاسه کړي او د هغه په نتیجه کي یو حیوان د انسان په صورت پیدا سي ځکه ددغه صورت څخه د ساتني لپاره د هغه وژل ضروري دي یا دا چي د هغه حیوان په موجودتیا کي د هغه مالک د دنیاوي ذلت او رسوائي سره مخامخ کیدای سي ځکه نو هغه دي ووژل سي .

په شرح مظهر کي لیکلي دي چي څلور سره امامان پر دې متفق دي چي کوم سړی د یو حیوان سره بدفعلي وکړي هغه دي نه قتل کیږي بلکه د تعزیر په توګه یو بله سزا دي ورکړل سي او دا حدیث پر زجر او توبیخ باندي محمول دی ، پاته سوه د حیوانانو خبره نو ځیني حضرات وایي که هغه حیوان داسي وي چي د هغه غوښه خوړل کیږي نو هغه دي قتل کړل سي او که د هغه غوښه نه خوړل کیږي نو د هغه په باره کي دوه صورتونه دي که ددغه حدیث ظاهري مفهوم په نظر کي وي نو هغه دي قتل کړل سي او که دا خیال وساتل سي چي د حیوانانو غوښه خوړل مقصد یا حلال نه وي نو د هغه د ذبح کولو منع منقول ده نو هغه حیوان دي نه قتل کیږي .

## لواطت بدترین عمل دی

﴿۳۴۲۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي عَمَلُ قَوْمِ لُوطٍ . رواه الترمذي و ابن ماجة .

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په خپل امت کي چي د کومي خبري ما ته زیاته بیره ده هغه د قوم لوط عمل دئ . ترمذي او ابن ماجه .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۴۷، رقم: ۱۴۵۷، وابن ماجه ۲\۸۵٦، رقم: ۲٦۵۳.

**تشريح**: زما سره ددې بېره ده چي زما د امت خلک د نفساني خواهشاتو په ښکار کېدو سره بې صبري ونه کړي او په دغه خرابۍ کي اخته نه سي ، يا دا مطلب دی چي زما د امت خلک په دې کي اخته نه سي او ددې په وجه هغوی د الله تعالی په عذاب کي راګير نه سي .

## يوه کس ته دوې سزاوي

﴿٣٤٢٣﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنْ بَكْرِ بْنِ لَيْثٍ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي د بني بکر د قبيلې يو سړی د رسول الله ﷺ په

وَسَلَّمَ فَأَقَرَّ أَنَّهُ زَنَى بِامْرَأَةٍ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فَجَلَدَهُ مِائَةً وَكَانَ بِكْرًا ثُمَّ سَأَلَهُ الْبَيِّنَةَ

خدمت کي حاضر سو او اقرار يې وکړ چي ده د يوې ښځي سره زنا کړې ده څلور واره يې وويل ، نبي کريم ﷺ هغه په دورو ووهئ ځکه چي هغه واده نه وو کړی بيا نبي کريم ﷺ شاهدان طلب

عَلَى الْمَرْأَةِ فَقَالَتْ كَذَبَ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ فَجَلَدَهُ حَدَّ الْفِرْيَةِ . رواه ابو داؤد

کړل پر ښځه باندي ، ښځي وويل قسم په خدای دا سړی دروا غجن دئ، نبي کريم ﷺ هغه سړي ته دويمه سزا د تهمت لګولو ورکړه او په دورو ووهل سو . ابو داؤد .

**تخريج**: ابو داود في السنن ٤\٦١١ ، رقم: ٤٤٦٧.

**تشريح**: شاهدان وغواړئ : ددې مطلب دادی چي کله هغه سړی او ښځه د زنا اقرار وکړي نو د هغه پر اقرار باندي هغوی ته د زنا سزا ورکړل سوه يعني سل دُرې ووهل سوه او دې خبري هغه ښځه هم د زنا کونکې وګرځول ځکه رسول الله ﷺ هغه سړي ته وويل اوس ته داسي شاهدان راوله چي د هغه ښځي سره ستا زنا ثابته کړي مګر هغه سړی د شاهدانو راوستلو څخه عاجزه سو نو هغه ښځي وويل قسم په خدای دا سړی دروا غجن دی دی ما ته د زنا نسبت کوي حالانکه زه ددې څخه پاکه يم ، همدارنګه هغه ښځي دا ثابته کړه چي هغه سړی پر هغه ښځي تهمت ويلی دی نو رسول الله ﷺ هغه سړي ته دوهمه سزا د تهمت ورکړل يعني اتيا دُرې يې ووهی .

## پر حضرت عائشې (رض) باندي د تهمت لګونکو سزا

﴿٣٤٢٤﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا نَزَلَ عُذْرِي قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ فَذَكَرَ ذَالِكَ فَلَمَّا نَزَلَ مِنَ الْمِنْبَرِ أَمَرَ بِالرَّجُلَيْنِ وَالْمَرْأَةِ فَضُرِبُوا

حَدَّهُمْ . رواه ابوداؤد .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دئ چي کله زما د برائت (بې ګناه کېدو) په اړه آیاتونه نازل سول نو نبي کريم ﷺ پر منبر ددې یادونه وکړه بیا چي د منبر څخه راکښته سو نو دوو خلکو او یوې ښځي ته یې د تهمت ویلو سزا ورکړل . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\٦١٨، رقم: ۴۴۷۴.

**تشریح** ځیني خلکو پر بي بي عائشې ﷺ باندي (نعوذباالله) د زنا تهمت لګولی وو او د رسول الله ﷺ په زړه کي هم په دې باره کي شک سوی وو مګر الله ﷻ د هغې برائت (پاکېدل) نازل کړل او د هغه څخه دا ثابته سوه چي د هغې پر پاکي لمني باندي کوم څاڅکی غورځول سوی وو د هغه تعلق محض د یو سازش او د یو څو خلکو فساد او فتنه خپرول وو ، کله چي د بي بي عائشې صدیقې ﷺ د پاک لمنی په ثبوت کي آیاتونه نازل سول چي په سورة نور کي دي نو رسول الله ﷺ پر منبر باندي په درېدو سره یوه خطبه وفرمایل او دا اعلان یې وکړ چي الله تعالی د حرم نبوي د تقدیس او حرمت عزت وساتی او بي بي عائشه ﷺ یې پاک لمنه وګرځول او ددې په ثبوت کي یې آیاتونه ذکر کړل ، بیا د منبر څخه په راکښته کېدو سره رسول الله ﷺ پر هغه خلکو د قذف حد (د تهمت لګولو سزا) جاري کولو حکم وکړ چا چي په دغه ناپاک فلان کي برخه اخیستې وه په هغه کي دوه خلک وه چي د یوه نوم مسطح او د بل نوم حسان ابن ثابت وو او یوه ښځه وه چي د هغې نوم حمنه بنت حجش وو چي په دغه واقعه کي تر ټولو لویه فتنه اچونکې وه دوی ټول په اتیا اتیا دُرو ووهل سول .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په زوره زنا کي یوازي زنا کوونکی د حد حقدار دی

﴿۳۴۲۵﴾: عَنْ نَافِعٍ أَنَّ صَفِيَّةَ بِنْتَ أَبِي عُبَيْدٍ أَخْبَرَتْهُ أَنَّ عَبْدًا مِنْ رَقِيقِ

د حضرت نافع ﷺ څخه روایت دئ چي د ابو عبید لور بي بي صفیې هغه ته بیان وکړ چي د

الْإِمَارَةِ وَقَعَ عَلَى وَلِيدَةٍ مِنَ الْخُمُسِ فَاسْتَكْرَهَهَا حَتَّى اقْتَضَّهَا فَجَلَدَهُ عُمَرُ وَلَمْ يَجْلِدْهَا مِنْ أَجْلِ أَنَّهُ اسْتَكْرَهَهَا . رواه البخاري .

امارت يو غلام د غنيمت د مال د يوې مينزې سره په زوره زنا وکړه او د هغې پيغلتوب يې زائل کړ، حضرت عمر رضي الله عنه هغه غلام ته دورې ورکړې او مينزې ته يې هيڅ سزا ورنه کړل، ځکه چې د هغې سره په زوره زنا سوې وه. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\ ٣٢١، رقم: ٦٩٤٩.

**د لغاتو حل**: افتضها: اى اخذ بكارتها. (د پيغلتوب پرده زائلول).

## د ماعز بن مالک پېښه

﴿٣٤٢٦﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنُ نُعَيْمِ بْنِ هَزَّالٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ مَاعِزُ بْنُ مَالِكٍ

حضرت يزيد بن نعيم بن هزال د خپل پلار ځخه روايت کوي چې ماعز بن مالک رضي الله عنه يتيم وو،

يَتِيمًا فِي حِجْرِ أَبِي فَأَصَابَ جَارِيَةً مِنَ الْحَيِّ فَقَالَ لَهُ أَبِي ائْتِ رَسُولَ اللهِ صَلَّى

زما پلار د هغه روزنه کړې وه، هغه د قبيلې د يوې مينزې سره زنا وکړه، زما پلار هغه ته وويل چې ته نبي کريم ﷺ ته ورسه،

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبِرْهُ بِمَا صَنَعْتَ لَعَلَّهُ يَسْتَغْفِرُ لَكَ وَإِنَّمَا يُرِيدُ بِذَلِكَ

او پېښه ورته بيان کړه کيدا ی سي رسول الله ﷺ ستا د بخښني دعاء وکړي، زما د پلار مقصد رسول الله ﷺ ته د ليږلو يوازي همدغه وو چې

رَجَاءَ أَنْ يَكُونَ لَهُ مَخْرَجًا فَأَتَاهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ

دده د ګناه د تلافي يو سبب راووځي، ماعز د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ چې اې د الله رسوله ! ما زنا کړې ده تاسو د کتاب الله حکم پر ما جاري کړئ،

كِتَابَ اللهِ فَأَعْرَضَ عَنْهُ فَعَادَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي زَنَيْتُ فَأَقِمْ عَلَيَّ كِتَابَ

رسول الله ﷺ د هغه ځخه مخ واړوئ هغه بيا د رسول الله ﷺ مخته راغلئ او وه يې ويل اې د الله رسوله ! ما زنا کړې ده پر ما باندي د الله حد قائم کړئ،

اللهِ حَتَّى قَالَهَا أَرْبَعَ مِرَارٍ قَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّكَ قَدْ قُلْتَهَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ

هغه همداسي ځلور واره د خپلې زنا اقرار وکړي ، رسول الله ﷺ وويل تا خو ځلور واره وويل

فَبِمَنْ قَالَ بِفُلَانَةٍ فَقَالَ هَلْ ضَاجَعْتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ هَلْ بَاشَرْتَهَا قَالَ نَعَمْ

اوس وو ايه چي تا د چا سره زنا کړې ده ، هغه عرض وکړ د فلانۍ ښځي سره ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا ته ورسره په څنګ سوی وې هغه وويل هو ،

قَالَ هَلْ جَامَعْتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأَمَرَ بِهِ أَنْ يُرْجَمَ فَأُخْرِجَ بِهِ إِلَى الْحَرَّةِ

بيا رسول الله ﷺ وويل : ايا تا د هغې سره معانقه (غاړه په غاړه کېدل) کړې وه ، هغه عرض وکړ چي هو ، بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا تا د هغې سره جماع هم کړې ده ؟ هغه عرض وکړ چي هو ، د راوي بيان دئ ددې وروسته رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ ،

فَلَمَّا رُجِمَ فَوَجَدَ مَسَّ الْحِجَارَةِ جَزِعَ فَخَرَجَ يَشْتَدُّ فَلَقِيَهُ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ

هغه د مدينې ډبريني مځکي ته بوتلل سو او رجم پيل سو ، کله چي هغه د ډبرو ويشتل برداشت نه کړل نو هغه چغې کړې او وه تښتېدئ ، په لاره کي عبد الله بن

أُنَيْسٍ وَقَدْ عَجَزَ أَصْحَابُهُ فَنَزَعَ لَهُ بِوَظِيفِ بَعِيرٍ فَرَمَاهُ بِهِ فَقَتَلَهُ ثُمَّ أَتَى

انيس رضي الله عنه ورسره يو ځای سو د هغه ملګري ستړي سوي وه يا دا چي د ماعز سنګسارونکي په ډبرو ويشتلو ستړي سوي وه ، عبد الله د اوښ د پښې هډوکي پورته کړ او په هغه يې ماعز

النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَٰلِكَ لَهُ فَقَالَ هَلَّا تَرَكْتُمُوهُ لَعَلَّهُ أَنْ يَتُوبَ فَيَتُوبَ اللَّهُ عَلَيْهِ . رواه ابوداؤد.

وويشتئ ، تر څو چي هغه يې مړ کړ ، بيا عبد الله بن انيس د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او پېښه يې عرض کړل ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : کاش چي تاسو هغه پرې ايښی وای کيدای سوه چي هغه توبه کړې وای او الله تعالی د هغه توبه قبوله کړې وای . ابوداؤد .

**تخريج** سنن ابي داود ۴\۵۷۳ – ۵۷۴ ، رقم : ۴۴۱۹.

**د لغاتو حل** بوظيف : مُستَدِق الذراع والساق من الخيل والابل وغيرهما .

**تشريح** هغه يې حَرّه ته بوتلی : ابن همام رحمه الله وايي چي د بخاري په روايت کي دادي چي

ماعز ﷺ په مصلى كي رجم كړل سو او د مسلم او ابوداؤد په روايت كي دادي چي هغه بقيع غرقد ته بوتلل سو ، په دغه دواړو روايتو كي په ظاهره تضاد معلوميږي مګر دا خبره دي په ذهن كي وي چي د مصلى څخه د جنازې د لمانځه كولو ځاى مراد دى او د جنازې د لمانځه ځاى په بقيع غرقد كي وو نو بيا به هيڅ تضاد پاته نه سي ، پاته سوه دا خبره چي د ترمذيؒ په روايت كي نقل سوي دي چي د ماعز ﷺ په څلورم وار اقرار كولو څخه وروسته د هغه د رجم حكم جاري كړل سو نو هغه حره ته بوتلل سو او هلته رجم كړل سو نو ددې تاويل به دا كيږي چي كله هغه د ډبرو په ويشتلو سره وتښتيدى نو خلك ور پسې سول تر دې چي حره ته ورسول سو دا تاويل ځكه ضروري دى چي دا خبره نه ثابتيږي چي ماعز ﷺ د رجم كولو لپاره حره ته رسول سوى وو ځكه چي صحاح او د حسان روايتونه ددې خبري مؤيد دي چي په شروع كي ماعز ﷺ د رجم كولو لپاره حرم ته نه وو بيول سوى مګر كله چي د هغه رجم كول شروع سول نو هغه په تښتېدو سره حره ته تللى وو يا دا توجيه وكړل سي چي مصلى به د حره په شاوخوا كي وه نو يوه رواي د مصلى ذكر وكړ او بل راوي د حره ذكر وكړ په دغه صورت كي به د دواړو حديثو په مفهوم كي ورته والى پيدا سي .

## د زنا د زياتوب وبال

﴿٣٤٢٧﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي په

يَقُولُ مَا مِنْ قَوْمٍ يَظْهَرُ فِيهِمُ الزنا إِلَّا أُخِذُوا بِالسَّنَةِ وَمَا مِنْ قَوْمٍ يَظْهَرُ فِيهِمُ الرُّشَا إِلَّا أُخِذُوا بِالرُّعْبِ . رواه احمد.

كوم قوم كي زنا ښكاره سي (يعني خپره سي) نو هغه قوم په قحط (وچ كالى) كي اخته كيږي او په كوم قوم كي چي رشوت خپور سي پر هغوى رعب غالب سي . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ٢٠٥\١٤.

**د لغاتو حل** بالسَنَة: الجدب: (وچ كالي). الرُشا: هى الواصلة الى الحاجة بالمصانعة: (رشوت)

**تشريح** رشوت هغه مال ته وايي چي يو سړي ته په دې شرط ور كړل سي چي هغه به د هغه په كار كي مرسته ورسره كوي، ځيني حضرات په دغه تعريف كي دا قيد هم زيات كړى دى چي په

هغه كار كي دومره مشقت او تكليف نه وي چي د هغه مزدوري په عامه توگه د وركړل سوي مال په اندازه وركول كيږي لكه د يو پاچا يا يو حاكم په مخكي يو خبره د سفارش په توگه كول يا په هغه كي مرسته او هڅه كول ، ددې څخه معلومه سوه چي د محنت او تكليف په اندازه مال وركولو ته رشوت نه ويل كيږي همدارنگه كه چيري بېله شرطه مال وركړل سي نو دا هم د رشوت په حكم كي نه دى .

په هر حال ددغه حديث څخه معلومه سوه چي رشوت يوازي يوه ټولنيزه خرابي او يوه شرعي گناه نه ده بلكه يو اخلاقي ظلم هم دى چي د هغه سزا په آخرت كي هم وركول كيږي مگر د هغه وبال په مختلفو صورتو كي دى په دنيا كي هم ظاهريږي ، د لته په حديث كي دا ذكر سوي دي چي د رشوت نحوست ټول قوم په خپل غېږ كي اخلي او هغه په بې غيرته كولو سره د پرديو په هيبت كي او د خپلو په بېره كي اخته كړي .

د پرديو هيبت داسي مسلط كيږي چي رشوت اخيستونكى خپل ضمير او ايمان پلوري او كله چي هغه د خپل ضمير او ايماندارۍ د شتمنۍ څخه محروم سي نو په هغه كي د دننه ټوله توانايي او قوت ختم سي كوم چي هغه ته د پرديو په مقابله كي د عظمت او غوره والي احساس وركوي او د خپلو بېره داسي مسلط كيږي كه يو حاكم او كاركونكى رشوت نه اخلي نو هغه خپل حكم پر هر ادنا او اعلى كس باندي جاري كوي او د خپل منصب د فرضو په ادا كولو كي هيڅ ډول خطره نه محسوس كوي ، مگر كله چي هغه په رشوت اخيستلو ولړل سي نو بيا پر هغه باندي يو بېره مسلط سي چي هغه قدم پر قدم د خپل منصب د فرضو د ادا كولو او د احكامو د جاري كولو څخه خطره محسوس كوي چي د هغه يو حكم يا كار څخه يو داسي سړى ناراضه نه سي چي د هغه څخه هغه ته د رشوت په صورت كي ناجائزه مالي گټه تر لاسه كيږي يا د هغه د رشوت د جرم راز دار دى ددې نتيجه دا سي چي كله د رشوت وباء عامه سي او ددې په وجه هر حاكم او كاركونكى په هيبت او بېره كي اخته سي نو د حكومت ټول نظام د ډېر خوفناكه بدحالۍ ، بې باورۍ او لاقانونيت ښكار سي او ټول قوم په بې اطمينانۍ ، مصيبتو او پريشانيو كي اخته سي

## لواطت د لعنت باعث دى

﴿٣٤٢٨﴾ : وَعَنِ بْنِ عَبَّاسٍ وَأَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس او ابوهريرة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ مَلْعُونٌ مَّنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ . رواه رزين، وفي رواية له عن ابن عباس أَنَّ عَلِيًّا أَحْرَقَهُمَا وَأَبَا بَكْرٍ هَدَمَ عَلَيْهِمَا حَائِطًا .

څوک چي د لوط د قوم عمل (يعني لواطت) کوي هغه ملعون دئ ، رزين ، او دابن عباس په روايت کي دا الفاظ چي حضرت علي رضي الله عنه د لواطت فاعل او مفعول وسوځل او حضرت ابوبکر رضي الله عنه پر هغوی ديوال ونړوئ .

**تخريج** رواه رزين.

**تشريح** په جامع صغير کي امام احمد رحمة الله عليه د حضرت حسن رحمة الله عليه په سند سره چي د ابن عباس رضي الله عنه څخه کوم روايت نقل کړي دی په هغه کي دا الفاظ دي چي کوم څوک خپل مور ته بد رد وايي هغه ملعون دی او کوم څوک چي د غير الله په نامه ذبح کوي هغه ملعون دي او کوم څوک چي د (اسلامي پاچاهی) د مځکي په سرحدو کي رد و بدل وکړي هغه معلون دی او کوم څوک چي ړانده ته غلطه لار وښيي هغه ملعون دی او کوم څوک چي د حيوان سره بد فعلي وکړي هغه ملعون دی او کوم څوک چي د قوم لوط په ډول عمل وکړي (يعني لواطت) نو هغه ملعون دی.

﴿٣٤٢٩﴾ : وَعَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ إِلَى رَجُلٍ أَتَى رَجُلًا أَوْ امْرَأَةً فِي دُبُرِهَا .رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : الله تعالى هغه سړي ته د رحمت په نظر نه ګوري چي د سړي يا ښځي سره لواطت کوي . ترمذي، دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج** سنن الترمذي ١٢ \ ٤٦٩ ، رقم: ١١٦٥.

## د حيوان سره بد فعلي

﴿٣٤٣٠﴾ : وَعَنْهُ اَنَّهُ قَالَ مَنْ أَتَى بَهِيمَةً فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ .رواه الترمذي وأبو داود وقال الترمذي : عن سفيان الثوري أنه قال : وهذا أصح من الحديث

الأول وهو : " من أتى بهيمة فاقتلوه " والعمل على هذا عند أهل العلم .

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دئ چي څوک د حيوان سره بد فعلي وکړي پر هغه شرعي حد نسته ، ترمذي ، ابوداؤد ، ترمذي ويلي دي چي د سفيان ثوري بيان دئ چي دا حديث د لومړني حديث څخه چي په هغه کي د حيوان سره د بدفعلي کونکي د وژلو حکم دئ زيات صحيح دئ او د علماء پر دې عمل دئ .

**تخريج** سنن الترمذي ٤\٤٦١، رقم: ١٤٥٥، وابوداود ٤\٦١٠، رقم: ٤٤٦٥.

**تشريح** په ظاهره دا معلوميږي چي دا حديث د ابن عباس ﷛ خپل قول دی مګر په دغه صورت کي د سفيان ثوري ﷫ دغه قول چي دا حديث د اول حديث څخه زيات صحيح دی ددې څه معنی نه پاته کيږي نو صحيح خبره داده چي دا د ابن عباس ﷛ خپل قول نه دئ بلکه د نبي کريم ﷺ ارشاد دئ .

## په حد جاري کولو کي فرق مه کوئ

﴿٣٤٣١﴾ : وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَقِيمُوا حُدُودَ اللّٰهِ فِي الْقَرِيبِ وَالْبَعِيدِ وَلَا تَأْخُذْكُمْ فِي اللّٰهِ لَوْمَةُ لَائِمٍ . رواه ابن ماجة .

د حضرت عبادة بن صامت ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په قريب او بعيد (يعني نژدې او ليري تړلو قريبانو کي) حدود الهي جاري کړئ په دې کي د ملامت کونکي پروا مه کوئ . ابن ماجه

**تخريج** سنن ابن ماجه ٢\٨٤٩، رقم: ٢٥٤٠.

**تشريح** د قريب او بعيد څخه نژدې او ليري قريبان مراد دي، که چيري مجرم ستا ليري قريب وي نو بيا هم حد ور باندي جاري کړه او که نژدې قريب دي وي نو بيا هم حد ور باندي جاري کړه داسي دي نه وي چي د ليري پر قريب باندي حد جاري کړئ او پر نژدې قريب باندي د حد جاري کولو څخه منع سئ يا دا چي د قريب څخه مراد کمزوري دی چي هغه ته رسيدل نژدې وي او پر هغه باندي حد جاري کول اسان وي او د بعيد څخه مراد قوي وي چي هغه رسيدل او پر هغه باندي حد جاري کول مشکل وي او دا مراد د حديث مقصد ته زيات نژدې دی ځکه چي دلته هم

هدايت وركول مقصد دي چي پر هر مجرم باندي حد جاري كړه كه څه هم هغه شتمن وي يا غريب وي، پاچا وي يا فقير وي، كمزورى وي يا قوي وي، قريب وي يا پردى وي.

## د حد جاري كولو دوې فائدې

﴿٣٤٣٢﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِقَامَةُ حَدٍّ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله جل جلاله د حدودو څخه د

مِنْ حُدُودِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِنْ مَطَرِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً فِي بِلَادِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ. رواه ابن ماجة ورواه النسائي عن ابوهريرة.

يو حد جاري كول تر دې غوره دي چي په ښارونو كي څلوېښت ورځي پرله پسې د رحمت باران اوريږي. ابن ماجة او نسائي دا حديث د حضرت ابو هريره څخه روايت كړئ دى.

**تخريج** سنن ابن ماجه ٢\٨٤٨، رقم: ٣٥٣٧.

**تشريح** ددې وجه داده چي حد جاري كول مخلوق د ګناه او معاصي څخه منع كول دي او دا د آسمان د دروازو خلاصول يعني د بركتو نازلېدو سبب دى، ددې پر خلاف حدود معافول يا د هغه په جاري كولو كي سستي كول يا د مخلوق ته په ګناه او معاصي كي د اخته كېدو موقع وركول دي او دا سي كول په وچ كالى كي د اخته كېدو سبب دى او دا يوازي د انسان نه بلكه د غير انساني مخلوق د هلاكت او بربادۍ سبب دى، لكه څرنګه چي نقل سوي دي چي حبارۍ د انسانانو د ګناهو په وجه د وچ كالى څخه مړ سي يعني انسان په عامه توګه سره د بدۍ پر لاره روان سي او د ګناه زياتوب راسي نو د هغه په نحوست سره الله تعالى باران نه اوروي او كله چي باران نه كيږي نو يوازي د انسان لپاره وچ كالي نه وي بلكه د هغه په وجه مرغان او حيوانان هم د خپل رزق څخه محروم كيږي او مړه كيږي.

حبارى د يو حيوان نوم دى او دلته په خاصه توګه ددې لپاره ذكر سو چي هغه د ليري ليري څخه د خپل خوراک پلټنه كوي.

==========

# بَابُ قَطْعِ السَّرَقَةِ

## (د غله د لاس پرېكولو بيان)

علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي په قطع السرقة كي اضافت د مضاف په حذف كولو سره مفعول ته دی يعني د معنى په اعتبار دا عنوان داسي دی (باب قطع اهل السرقة).

**د سرقه معنى** : سرِقه : د سين په زور او د راء په زېر سره د غلا په معنى دی او د شريعت په اصطلاح كي ددې مفهوم دادی چي يو مكلف سړی د يو چا د مال څخه په پټه سره يو څه واخلي چي پر هغه باندي نه د هغه ملكيت وي او نه شبه ملكيت وي.

**د غلا سزا او د هغه نصاب** : دا خبره د عنوان څخه معلومه سوه چي په اسلامي شريعت كي د غلا سزا د لاس پرېكول دي مګر په دې باره كي د فقهاؤ اختلاف دی چي د څومره مال په غلا كولو سره د لاس پرېكولو حكم جاري كيږي، امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه وايي چي د سرقه نصاب د مال هغه اندازه چي پر هغه باندي د لاس پرېكېدو سزا وركول كيږي كم او كم لس درهمه (تقريبا اووه نيمي ماشې سپين زر) دي ددې څخه د كم مال پر غلا باندي د لاس پرې كولو سزا نه وركول كيږي، امام شافعي رحمة الله عليه څلورمه برخه د دينار يا درې درهمه سپين زر يا ددې قيمت د سرقه نصاب ګرځوي، د هغه دليل هغه حديثونه دي چي په هغه كي د څلورمي برخي د دينار غلا كونكي ته د لاس پرې كېدو سزا وركول ذكر سوي دي او هغه وخت څلورمه د دينار د درو درهمو سره برابر وو او د يوه دينار ماليت د دوولس درهمو برابر وو، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دليل دغه ارشاد دی :

(لاقطع الا في دينار او عشرة دراهم)

ژباړه : تر يوه دينار يا لس درهمو څخه په كمه غلا كي د لاس پرې كول نه سته.

د هدايې د قول مطابق په دې باره كي پر اكثر باندي عمل كول تر اقل باندي په عمل كولو غوره دي ځكه چي معامله د يو انساني اندام د پرې كولو ده او په اقل كي د عدم جنايت شبه كېداى سي.

څرګنده دي وي چي د فقهاؤ ددغه اختلاف بنياد پر دې خبره دی چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كي د لاس پرې كېدو سزا د يوه سپر پر غلا كولو باندي وركړل سوې ده، د امام شافعي رحمة الله عليه له خوا دا ويل كيږي چي هغه وخت د يوه سپر قيمت درې درهمه وو حال دا چي (د حنفيه له خوا) شمني رحمة الله عليه وايي چي په هغه زمانه كي د هغه قيمت لس درهمه وو، د حضرت عبدالله ابن

عمرو ابن العاص رضی اللہ عنہ څخه ابن ابي شيبه دا نقل کړي دي او په کافي کي هم دا نقل سوي دي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي د يوه سپر پر غلا کولو باندي د لاس پرې کېدو سزا ورکړل سوې ده او د هغه قيمت لس درهمه وو.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د امام شافعي رحمة الله عليه مستدل حديث

﴿۳۴۳۳﴾: عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ تُقْطَعُ يَدُ السَّارِقِ إِلاَّ بِرُبُعِ دِينَارٍ فَصَاعِدًا. متفق عليه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: لاس دي نه پرې کيږي د غل مگر په څلورمه د دينار او يا تر دې زيات کي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۹۶، رقم: ۶۷۸۹، ومسلم ۳\۱۳۱۲، رقم: ۶ – ۱۶۸۶.

**تشريح** دا حديث د امام شافعي رحمة الله عليه د هغه مذهب دليل دی چي د څلورمي برخي د دينار څخه پر کم مال باندي لاس نه پرې کيږي يعني د هغه په نزد د سرقې د نصاب کم از کم مقدار د دينار څلورمه برخه ده، ملا علي قاري رحمة الله عليه په خپل کتاب کي د دغه حديث په تشريح کي ډېر تفصيلي بحث کړی دی او په دغه مسئله کي چي د علماؤ کوم اختلاف دی د هغه په نقل کولو سره د حنفيه مذهب ډېر ټينګ دليلونه يې ثابت کړي دي.

### د سپر د قيمت په تعين کي اختلافي اقوال

﴿۳۴۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَطَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَ سَارِقٍ فِي مِجَنٍّ ثَمَنُهُ ثَلاَثَةُ دَرَاهِمَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د سپر په غلا چي د هغه بيه درې درهمه وه د غله لاس پرې کړ. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۹۷، رقم: ۶۷۹۸، ومسلم ۳\۱۳۱۳، رقم: ۶ – ۱۶۸۶.

**د لغاتو حل** مجن: الترس (سپر)

**تشريح** شمني رحمة الله عليه وايي چي دا حديث د هغه روايت معارض دی کوم چي ابن ابي شيبه د

حضرت عبد الله ابن عمرو ابن العاص رضی الله عنه څخه نقل کړی دی، په هغه کي يې ويلي دي چي د هغه سپر قيمت لس درهمه وو، د ابن عباس او عمرو ابن شعيب رضي الله عنهما څخه هم داسي نقل سوي دي او شيخ ابن همام رحمه الله هم د ابن عمر او ابن عباس رضي الله عنهما څخه دا خبره نقل کړې ده چي د هغه سپر قيمت لس درهمه وو، او عيني د هدايې په حاشيه کي هم داسي ليکلي دي، نو په دې وجه د حنفيه دا مذهب دی چي د لاس پرې کېدو سزا پر هغه غله باندي جاري کيږي چي هغه کم از کم د لسو درهمو په اندازه مال غلا کړی وي ددې څخه پر کم مال باندي دا سزا نه سي ورکول کيږي، او کوم چي د ابن عمر رضی الله عنه ددغه روايت تعلق دی چي د هغه څخه د هغه سپر قيمت درې درهمه ثابتيږي نو په دې باره کي د حنفيه له خوا ويل کيږي چي دا د ابن عمر رضی الله عنه خپل اجتهاد او خپله رايه ده چي هغه د سپر قيمت درې درهمه ټاکلی وو حالانکه په حقيقت کي هغه سپر د لسو درهمو وو.

لکه څرنګه چي د اکثرو روايتو څخه ثابته ده او شيخ عبد الحق او ملا علي قاري رحمة الله عليهما په خپل خپل تشريح کي په ډېر تفصيل سره بحث کړی دی، د علم خاوندان هغه کتابو ته مراجعه کولای سي.

## د ټولو امامانو د مذهب خلاف يو حديث

(٣٤٣٥): وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللَّهُ السَّارِقَ يَسْرِقُ الْبَيْضَةَ فَتُقْطَعُ يَدُهُ وَيَسْرِقُ الْحَبْلَ فَتُقْطَعُ يَدُهُ. متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل: پر غله دي د الله تعالى لعنت وي چي هګۍ پټوي او د هغه لاس دي پرې کړل سي او يا رسۍ غلا کوي نو د هغه لاس دي پرې کړل سي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): في الموضع السابق رقم: ٦٧٩٩، ومسلم ١٣٤١/٣.

**تشريح** امام نووي رحمه الله وايي چي ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي بېله تعينه پر يو ګناه کار باندي لعنت ويل جائز دي او دا خبره د الله تعالى ددغه ارشاد: أَلَا لَعْنَةُ اللَّهِ عَلَى الظَّالِمِينَ. څخه هم ثابتيږي. مګر د يو سړي په متعين کولو سره (يعني د هغه د نامه په اخيستلو سره) پر هغه لعنت ويل جائز نه دي.

د سرقې د نصاب په باره کي دا حديث دا پر دې دلالت کوي چي د څلورمي برخي د دينار يا

دريو درهمه څخه د کم مال پر غلا باندي د لاس پرې کېدو سزا جاري کيدای سي حال دا چي په څلورو امامانو کي د هيڅ يوه په مذهب کي په څلورمه برخه د دينار يا درېو درهمه څخه کم کي د لاس پرې کېدو سزا نه سته ، په دې اعتبار سره دا حديث د ټولو امامانو د مذهب خلاف دی نو د هغه ټولو حضراتو له خوا دا ويل کيږي چي دلته د بيضې څخه مراد بيضه آهن مراد دی چي هغه ته خول (جنګي خولۍ) ويل کيږي چي مجاهدين او عسکريې پر سر کوي .

همدارنګه د رسۍ څخه مراد د کبنتۍ رسۍ ده چي ډېره قيمتي وي ، ددې څخه پرته ځيني حضرات داهم وايي چي د اسلام په شروع کي د هګۍ او رسۍ پر غلا کولو باندي هم د لاس پرېکېدو سزا ورکول کېدل مګر وروسته هغه منسوخ کړل سو ، ځيني حضرات وايي چي ددغه ارشاد څخه مراد دادی چي د هغه د غلا داسي عادت جوړيږي چي د کوچني او کم شي په غلا کولو سره بيا لوی لوی شيان غلا کول هم شروع کړي چي د هغه په نتيجه کي هغه ته د لاس پرې کولو سزا ورکول کيږي .

ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي د حاکمانو او پاچاهانو معمول ته اشاره کړې ده چي هغوی د شرعي حد په توګه نه بلکه د انتظامي او سياسي حکمت سره سم د دومره کم شي پر غلا باندي هم د لاس پرې کولو سزا ورکول .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ميوو پر غلا سزا د لاس پرېکول سته که يا؟

﴿۳۴۳۶﴾: عَنْ رَّافِعِ ابْنِ خَدِيْجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا كَثَرٍ . رواه مالك والترمذي وابوداؤد والنسائي و الدارمي وابن ماجة

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د درختو د ميوو او د سپينو خرماوو په غلا کي لاس نه پرې کيږي . ابوداؤد ، مالک، ترمذي، نسائي ، دارمي، او ابن ماجه.

**تخريج** مالک في الموطا ٢\ ٨٣٩، رقم: ٣٢، والترمذي في السنن ۴\ ۴٢، رقم: ١۴۴٩، وابوداود في السنن ۴\ ۵۴٩، رقم: ۴٣٨٨، والنسائي ٨\ ٨٧، رقم: ۴٩۶٢، وابن ماجه ٢\ ٨۶۵، رقم: ٢۵٩٣، والدارمي في السنن ٢\ ٢٢٨، رقم: ٢٣٠۴.

**تشريح** دا حديث د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله مستدل دی ، هغه ددې پر بنياد وايي چي د لندې ميوې پر غلا باندي لاس نه سي پرې کيدای که څه هم هغه ميوه په درخته کي لګيدلې وي

او هغه فصل چي په پرې کولو سره په درمند کي جمع سوی نه وي د هغه په غلا کي هم د لاس پرې کولو سزا نه سته پر دې باندي غوبنه، شيدې او هغه شيان هم قياس سوي دي کوم چي ژر خرابيږي چي د هغه په غلا کي هم لاس نه پرې کيږي ، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه څخه پرته نور ټول حضرات د دغه شيانو پر غلا کولو باندي د لاس پرې کولو سزا واجب گڼي ، د امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهما دا مذهب دی .

امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه دا هم وايي چي هغه شيان چي ډېر معمولي او حقير وي او په دارالاسلام کي د هر سړي لپاره د مباح په درجه کي وي لکه وابنه، لرگي، ماهيان، مرغان، چونه او داسي نور شيان نو د دغه شيانو پر غلا کونکي باندي د لاس پرې کېدو سزا نه سته .

﴿٣٤٣٧﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار عبدالله بن عمرو بن

الْعَاصِ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ

العاص رضي الله عنه څخه روايت کوي چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه د ميوو په اړه پوښتنه وسول چي پر درخته زړيږي،

قَالَ مَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ . رواه ابوداؤد والنسائي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم و فرمايل : څوک چي ميوه هغه وخت غلا کړي چي هغه د درختو څخه شکول سوې وي او جمع کړې يې وي او د هغه ميوو بيه د يوه سپر بيي ته ورسيږي نو د هغه لاس دي پرېکړل سي . ابوداؤد او نسائي .

**تخريج** ابوداود في السنن ٢\ ٣٣٥، رقم: ١٧١٠، والنسائي ٨\ ٨٤، رقم: ۴٩٥٧.

**تشريح** د حديث مطلب دادی چي پر درخته باندي د لگېدلي ميوې په غلا کولو سره د لاس پرې کولو سزا نه سته ځکه چي هغه محرز نه ده مگر کله چي هغه ميوه د درختي څخه وشکول سي او هغه د وچېدو لپاره جمع کړل سي نو اوس د هغه پر غلا باندي د لاس پرې کېدو سزا واجبيږي ځکه چي په دغه صورت کي هغه محرز سوي دي ، په دې اعتبار سره دا حديث د امام

اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه څخه ماسوا د جمهورو علماؤ دليل دی ځکه چي امام ابوحنيفة رحمة الله عليه وايي چي مېوه تر څو پوري وچه سوې نه وي د هغه پر غلا باندي لاس نه پرې کيږي که څه هم هغه مېوه محرز وي يا غير محرز وي ، ددغه حديث په باره کي د حنفيه له خوا دا ويل کيږي چي په حديث کي (کله چي هغه د وچولو لپاره جمع کړل سوې وي) ددغه قيد تعلق د هغه ميوو د وچېدو څخه وروسته دي لکه څرنګه چي په عربو کي رواج وو چي کوم وخت مېوه د وچېدو لپاره په درمند وغيره کي اچول کېدلې همدارنګه ميوې به د وچېدو څخه وروسته په يو ځای کي جمع کېدلې هم او د حنفيه په نزد هم د هغه مېوو په غلا کي د لاس پرې کېدو سزا سته کوم چي د وچېدو څخه وروسته په درمند وغيره کي جمع سوي وي ، مېوه چي تر څو پوري وچه سوې نه وي تر هغه وخته پوري د هغه په غلا کي د لاس پرې کېدو سزا نه سته که څه هم هغه په درخته کي لګېدلې وي يا په شکولو سره په درمند وغيره کي جمع سوې وي لکه څرنګه چي د ثمر په باره کي په راتلونکي حديث کي بيان سوي دي ، ددې څخه ماسوا دا خبره هم په خيال کي ساتل پکار دي چي دغه حديث نه يوازي د مخکني حديث (لاقطع في ثمر ولاكثر) د مطلق مفهوم معارض دی بلکه د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد (ولا قطع في الطعام) يعني د خوراک د شيانو پر غلا باندي د لاس پرې کېدلو سزا نه سته ، ددغه ارشاد هم معارض دی او د حد په باره کي ضروري ده چي د مسلمان ځان او د هغه د اندامو د ساتني په وجه په حد جاري کولو کي تر خپل وس پوري د احتياط او رعايت د ټولو اړخونو لحاظ وساتل سي او هري داسي اړخ او نکتې ته ترجيح ورکړل سي چي په هغه سره د حد په جارې کېدو کي کم از کم عمل پاته کيږي ځکه ددغه حديث د تعارض په صورت کي هغه حديث ته ترجيح ورکول کيږي چي د هغه مفهوم د ميوې د غلا په باره کي بالکل مطلق دی ، په دې باره کي ملا علي قاري رحمة الله عليه په خپل کتاب مرقاة کي په ډېر تفصيل سره بحث کړی دی ، دعلم خاوندان د نور تفصيل لپاره هلته مراجعه کولای سي .

## پر غير مملوکه غرني حيوانانو باندي د غلا اطلاق نه کيږي

﴿٣٤٣٨﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ الْمَكِيِّ أَنَّ رَسُولَ

د حضرت عبد الله بن عبد الرحمن بن ابي حسين مکي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ مُعَلَّقٍ وَلَا فِي حَرِيسَةِ جَبَلٍ فَإِذَا

وفرمايل : په درختو کي د زړېدلو ميوو پر غلا باندي لاس نسي پرې کېدلای او نه پر غره د

څرېدونکي حيوان پر غلا باندي ، البته چي

آوَاهُ الْمُرَاحُ أَوْ الْجَرِينُ فَالْقَطْعُ فِيمَا يَبْلُغُ ثَمَنَ الْمِجَنِّ . رواه مالك .

حيوان د هغه په ځای کي تړل سوی وي او يا ميوه شکول سوې يو ځای پرته وي لکه (درمند) او بيا غلا کړل سي نو د غلا مال که د سپر بيي ته ورسيږي نو لاس دي پرې کړل سي . مالک .

**تخريج** موطا الامام مالک ٢\ ٨٣١، رقم: ٢٢.

**د لغاتو حل** حريسة: هي دابة ترعى في الجبل و لها من يحفظها. المُراح: هو ما تاوي اليه الابل والغنم بالليل للحرز . (غوجل) .

**تشريح** علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي لفظ د حريسة په اصل کي د مفعول په معنى کي دى ، يعني حريسه جبل د معنى په اعتبار محروسة جبل دى ، او محروسة جبل هغه حيوان ته وايي چي په غرونو کي اوسيږي او خلک د هغه ساتنه نه کوي يعني د چا ملکيت نه وي ، د داسي حيوانانو په باره کي فرمايل سوي دي که يو سړى هغه په نيولو سره راولي نو پر هغه باندي د غلا اطلاق نه کيږي ځکه چي هغه حيوان محرز نه دى او نه د چا په ملکيت کي دى مګر که چيري د مخکي څخه يو سړى هغه حيوان نيولى او تړلى وي نو اوس هغه حيوان د يو سړي په ملکيت کي راغلى دى ځکه نو دوهم سړى که هغه غلا کړي او د هغه قيمت د يوه سپر د قيمت په اندازه يا تر هغه زيات وي نو د هغه غله لاس به پرې کيږي .

## د ډاکو سزا د لاس پرېکول نه دي

﴿٣٤٣٩﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ عَلَى الْمُنْتَهِبِ قَطْعٌ وَمَنْ انْتَهَبَ نُهْبَةً مَشْهُورَةً فَلَيْسَ مِنَّا . رواه ابوداؤد .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د چا مال په زوره واخلي د هغه لاس نسي پرې کېدلای او څوک چي په ښکاره خلک لوټ کړي هغه زموږ څخه نه دئ . ابوداؤد .

**تخريج** ابوداود في السنن ٤\ ٥٥١، رقم: ٤٣٩١.

**تشريح** منتهب : هغه سړي ته وايي چي د خلکو څخه مال په زور اخلي ، همدارنګه د خلکو مال لوټول که څه هم په پټه مال اخيستلو څخه بد تر دى مګر پر داسي سړي باندي د غله د اطلاق

نه کېدو په وجه هغه ته د لاس پرې کېدو سزا نه ورکول کيږي ځکه چي غل هغه سړي ته وايي چي هغه په پټه د خلکو مال وړي .

## خائن د لاس پريکولو حقدار نه دی

﴿۳۴۴۰﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ عَلٰى خَائِنٍ وَّلاَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خيانت کونکي، لوټ کونکي

مُنْتَهَبٍ وَّلاَ مُخْتَلِسٍ قَطْعٌ .رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي

او چمباز لاس پرې کول نسته. ترمذي، نسائي ، ابن ماجة ، دارمي

وَرَوٰى فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ أَنَّ صَفْوَانَ بْنَ أُمَيَّةَ قَدِمَ الْمَدِيْنَةَ فَنَامَ فِي الْمَسْجِدِ

او په شرح السنة کي دا روايت دئ چي صفوان بن اميه مديني ته راغلئ او په يوه مسجد کي يې

وَتَوَسَّدَ رِدَاءَهُ فَجَاءَ سَارِقٌ وَأَخَذَ رِدَاءَهُ فَأَخَذَهُ صَفْوَانُ فَجَاءَ بِهِ إِلٰى رَسُوْلِ

پټو تر سر لاندي کښېښودئ او بيده سو ، غل راغلی او د هغه پټو يې پټ کړ ،صفوان هغه غل ونيوئ او د نبي کريم ﷺ په خدمت کي يې حاضر کړ ،

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ أَنْ تُقْطَعَ يَدَهُ فَقَالَ صَفْوَانُ إِنِّيْ لَمْ أُرِدْ هٰذَا

رسول الله ﷺ حکم وکړ چي د هغه لاس پرې کړل سي ، صفوان عرض وکړ ما ددې لپاره تاسو ته نه دی راوستلی چي تاسو دده لاس پرې کړئ

هُوَ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَلاَّ قَبْلَ أَنْ تَأْتِيَنِيْ

ما خپل څادر ده ته صدقه کړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دلته د راوستو څخه وړاندي دي ولي خپل څادر نه ورته صدقه کوئ .

بِهِ . وروى نحوه ابن ماجه عن عبد الله بن صفوان عن أبيه والدارمي عن ابن عباس .

ابن ماجه د عبدالله بن صفوان څخه او هغه د خپل پلار څخه او دارمي د حضرت ابن عباس څخه

روایت کړی دئ .

**تخریج** الترمذي في السنن ۱۴\ ۴۲، رقم: ۱۴۴۸، والنسائي ۸\ ۸۸، رقم: ۴۹۷۲، وابن ماجه في السنن ۲\ ۸۶۴، رقم: ۲۵۹۱، والدارمي ۲\ ۱۷۵، رقم: ۲۳۱۰.

**تشریح** خائن هغه سړي ته وایي چي هغه ته یو شی د امانت په توګه یا د عاریت په توګه کښېښودل سي یا ورکړل سي او هغه د هغه شي څخه یو برخه یا ټول هضم کړي او دا دعوه وکړي چي هغه شی ضائع سوی دي یا بالکل د هغه څخه انکار وکړي چي هغه شی ما ته نه دی راکړل سوی که څه هم داسي سړی ډېر ګناه کار دی مګر د لاس پرې کېدو وړ نه دی ځکه چي خائن کوم شی قبضه کوي هغه په پوره توګه محرز یعني د خوندي مال په حکم کي وي ، په هدایه کي دا مسئله په تفصیل سره بیان سوې دي .

همدارنګه لوټ کونکی او بد معاشه ته هم د پرې کېدو سزا ځکه نه ورکول کیږي چي هغوی د بل چا مال په پټه نه اخلي لکه څرنګه چي د تېر حدیث په تشریح کي ددې وضاحت سوی دی ، ابن همام رحمة الله علیه وایي چي د څلورو امامانو دا مذهب دی .

تر سر لاندي د څادر اېښودو په باره کي په هدایه کي لیکلي دي چي صحیح خبره داده چي یو شی تر خپل سر لاندي اېښودل .... ،

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي تا هغه مخکي معاف ولي نه کړ او خپل حق دي ولي ورته پرې نه ښودی اوس چي تا ما ته راوستی او د هغه د جرم پر ثابت کېدو باندي ما د هغه د لاس پرې کېدو حکم وکړ نو د هغه لاس پرې کېدل واجب سوي دي اوس په دغه معامله کي ستا هیڅ پاته نه دی بلکه دا د الله تعالی حق دی نو ستا په معافولو سره د هغه جرم نه معافیږي ، ددې څخه معلومه سوه چي کله یو غل د حاکم په مخکي وړاندي سي او د هغه جرم ثابت سي نو بیا هیڅوک یې د سزا څخه خلاصولای نه سي خپله د مدعی او صاحب مال په معافولو سره هم د هغه سزا نه معافیږي مګر حاکم ته د وړاندي کولو څخه مخکي د هغه معافول جائز دي .

ابن همام رحمة الله علیه وایي که یو سړي ته د غلا په وجه د هغه د لاس د پرې کولو سزا واورول سي او بیا هغه غلا سوی شی د هغه مالک هغه غله ته په تحفه کولو سره حواله کړي یا هغه شی پر هغه باندي خرڅ کړي نو په دغه صورت کي د هغه لاس نه پرې کیږي مګر امام زفر ، امام شافعي او امام احمد رحمة الله علیهم وایي چي په دغه صورت کي هم د هغه لاس پرې کیږي او د امام ابویوسف رحمة الله علیه یو قول هم داسي دی ، او د حضرت صفوان رضي الله عنه په ذکر سوي حدیث کي هم ددې تائید کیږي نو ددې جواب دادی چي په یوه روایت کي خو دا حدیث داسي دی لکه څرنګه چي

دلته نقل سوی دی مگر د حاکم وغیره په روایت کي داسي نه دی بلکه د یو څه زیاتوب سره دی نو د هغه زیاتوب په وجه اضطراب واقع سو او اضطراب د حدیث د ضعیف کېدو موجب دی.

## د جهاد په سفر کي دې د غله لاس نه پرې کېږي

﴿٣٤٤١﴾: وَعَنْ بُسْرِ بْنِ أَرْطَاةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لاَ تُقْطَعُ الْأَيْدِيْ فِي الْغَزْوِ. رواه الترمذي والدارمي وأبو داود والنسائي إلا أنهما قالا في السفر بدل الغزو.

د حضرت بسر بن ارطاة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې: په جهاد کي لاسونه مه پرې کوئ. ترمذي، دارمي، ابوداؤد، نسائي، مگر دوی دواړو د غزا پر ځای د سفر الفاظ نقل کړي دي.

**تخریج** الترمذي في السنن ٤ ٥٣، رقم: ١٤٥٠، والدارمي ٢\ ٣٠٣، رقم: ٢٤٩٢، وابوداود ٤\ ٥٦٣، رقم: ٤٤٠٨. والنسائي في السنن ٨\ ٩١، رقم: ٤٩٧٩.

**تشریح** ابن مالک رحمه الله وایي چي ددغه حدیث مطلب دادی چي اسلامي لښکر په دار الحرب کي د کفارو سره په جهاد بوخت وي او امام د هغوی سره نه وي بلکه د لښکر امیر د هغوی مشر وي او هغه وخت (په جهاد کي) یو سړی غلا وکړي نو د هغه لاس دي نه پرې کېږي همدا رنگه نور حدود دي هم نه جاري کېږي، ځینو فقهاؤ په دې عمل کړی دی او ددې بنیاد دغه احتمال دی چي داسي نه هغه سړی د سزا د بیري څخه دار الحرب خپل د هستوګني ځای وګرځوي او په فتنه او ګمراهۍ کي اخته سي یا دا بېره هم کیدای سي چي د هغه په وجه په مجاهدینو کي سستي او تفرقه پیدا سي، علامه طیبي رحمه الله وضاحت کړی دی چي د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی، ځیني حضرات وایي چي په غزا کي د لاس نه پرې کېدو مطلب دادی که چیري د اسلامي لښکر یو کس د غنیمت د مال د ویشتلو څخه مخکي د هغه څخه یو شی پټ کړي نو د هغه لاس دي نه پرې کېږي ځکه د غنیمت په مال کي د هغه حق هم دی.

علامه طیبي رحمه الله وایي چي د ابوداؤد او نسائي په روایت کي چي د سفر کوم لفظ مطلق نقل سوی دی هغه پر دغه مقید محمول سي یعني د سفر څخه د جهاد سفر مراد واخیستل سي.

## په دوهم او دريم وار د غلا كولو سزا

﴿٣٤٤٢﴾: وَعَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سلمة او ابوهريرة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ فِي السَّارِقِ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوْا يَدَهُ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوْا رِجْلَهُ ثُمَّ إِنْ

هر كله چي غل غلا وكړي نو د هغه لاس پرې كړئ بيا چي غلا وكړي نو پښه يې پرې كړئ

سَرَقَ فَاقْطَعُوْا يَدَهُ ثُمَّ إِنْ سَرَقَ فَاقْطَعُوْا رِجْلَهُ. رواه في شرح السنة

بيا چي غلا وكړي نو بل لاس يې پرې كړئ بيا چي غلا وكړي نو بله پښه يې پرې كړئ. شرح سنة.

**تخريج** شرح السنة ١٠\٣٢٦، رقم: ٢٦٠٢،

**تشريح** په اول وار غلا كولو باندي راسته لاس پرې كول او په دوهم وار غلا كولو باندي چپه پښه پرې كول د علماؤ متفق مذهب دی مگر په دريم وار پر غلا كولو باندي چپه پښه پرې كول او په څلورم وار غلا كولو باندي راسته پښه لاس كولو په باره كي د علماؤ اختلاف دی، امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي ددغه حديث مطابق په دريم او څلورم وار پر غلا كولو باندي راسته لاس او چپه پښه دي پرې كړل سي مگر د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دادی چي په دريم وار غلا كولو باندي لاس دي نه پرې كيږي بلكه په بندي خانه كي دي واچول سي تر دې چي په هغه كي مړ سي يا توبه وكړي، د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه ددغه مذهب دليل دادی چي اول خو پر دې خبره باندي د صحابه كرامو اجماع او اتفاق وو دوهم دا چي يو سړی د هغه د څلور لاسو او پښو څخه محروم كول گويا هغه د خپل بدن د بقاء د ټولو ذرائعو او اسبابو څخه محرومول دي چي د هغه په حق كي د سزا څخه زيات يو ډول زياتی دی، او كوم چي ددغه حديث تعلق دی نو اوله خبره خو داده چي په اصل كي دا حديث د تهديد او سياسي حكمت باندي محمول دی دوهمه خبره دا چي محدثين ددغه حديث په صحيح كېدو كي كلام كړی دی، طحاوي رحمة الله عليه په دغه حديث كي پر دغه الفاظو طعن كړی دی چي ما د صحابه كرامو ډېر اثار، قضيې او فيصلې وليدلې مگر د زياتي پلټني سربېره ما ددغه حديث يو بنياد معلوم نه كړ، ددې څخه پرته ما د ډېرو د حديثو د حافظانو سره ملاقات وكړ او هغوی ټولو ددغه حديث د خبرېدو څخه انكار وكړ. ابن همام رحمة الله عليه وايي چي د پښې پرې كولو په باره كي د اكثرو علماؤ قول دادی چي د

گونډې څخه دي پښه پرې کړل سي .

﴿۳۴۴۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ جِيءَ بِسَارِقٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو غل رسول الله ﷺ ته راوستل سو ، رسول الله ﷺ حکم

اقْطَعُوهُ فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّانِيَةَ فَقَالَ اقْطَعُوهُ فَقُطِعَ ثُمَّ جِيءَ بِهِ الثَّالِثَةَ

وکړ چي لاس يې پرې کړئ ، نو د هغه لاس پرې کړل سو ، هغه بيا دوهم وار راوستل سو ، نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي دده پښه پرې کړئ ، په دريم وار هغه په غلا کي راوستل سو ،

فَقَالَ اقْطَعُوهُ فَقُطِعَ ثُمَّ أُتِيَ بِهِ الرَّابِعَةَ فَقَالَ اقْطَعُوهُ فَقُطِعَ فَأُتِيَ بِهِ الْخَامِسَةَ

نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي دده لاس پرې کړئ ، د هغه لاس پرې کړل سو ، په څلورم وار چي بيا په غلا کي راوستل سو نو رسول الله ﷺ وفرمايل دده پښه پرې کړئ نو پښه يې پرې کړل سول ، په پنځم وار په غلا کي راوستل سو

فَقَالَ اقْتُلُوهُ فَانْطَلَقْنَا بِهِ فَقَتَلْنَاهُ ثُمَّ اجْتَرَرْنَاهُ فَأَلْقَيْنَاهُ فِي بِئْرٍ وَرَمَيْنَا

نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي دی دي قتل کړل سي نو هغه قتل کړل سو بيا موږ د هغه مړی راوړ او په څاه کي مو وغورزوئ او سر بيره مو

عَلَيْهِ الْحِجَارَةَ . رواه ابوداؤد والنسائي و روي في شرح السنة في قطع السارق عن النبي صلى الله عليه وسلم اقطعوه ثم احسموه .

په دې روويشتئ ، ابوداؤد ، نسائي ، او په شرح السنة کي د غله د لاس پرې کولو په اړه د رسول الله ﷺ څخه دا الفاظ منقول دي چي د هغه لاس پرې کړئ او په ګرمو تيلو کي يې داغ کړئ .

**تخريج** ابوداود في السنن ۴\۵۶۵ ، رقم: ۴۴۱۰ ، والنسائي ۸\۹۰ ، رقم: ۴۹۷۸ .

**تشريح** او بيا هغه ته داغ ورکړئ : ددې مطلب دادی چي کوم لاس پرې سوی وي هغه ته دي په ګرمو تېلو يا ګرمي او سپيني سره داغ ورکړي چي وينه يې بنده سي ، که داغ ور نه کړل سي نو د بدن ټوله وينه به وبهيږي او غل به هلاک سي .

خطابي رحمة الله عليه وايي چي زما په علم کي داسي فقيه او عالم نه سته چي هغه د غله قتلول

مباح كړي وي كه څه هم هغه هر څومره غلا كړې وي ، هغه وايي چې دا حديث د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد (لايحل دم امرء الا باحدى ثلث) په ذريعه منسوخ دى .

ځيني حضرات وايي چې رسول الله ﷺ د هغه غله د وژلو حكم وكړ نو هغه د سياسي او انتظامي حكمت په وجه وو ، د وخت امام ته دا حق حاصل دى چې هغه د فساد كونكو ، غلو ، بدمعاشانو او ملكي امن او امان د مجرمانو په تعزير كي پر خپل رايه او اجتهاد باندي عمل وكړي او څرنګه چې غواړي هغه ته دي سزا وركړي او ځيني علماء وايي چې رسول الله ﷺ ته به معلومه سوې وي چې هغه سړى مرتد سوى دى ځكه رسول الله ﷺ د هغه قتلول مباح كړل او د هغه د وژلو حكم يې وركړ .

همدارنګه ځيني حضرات دا هم وايي چې دا حديث پر دې خبره محمول دى چې هغه سړي غلا حلاله ګڼل ځكه په وار وار يې غلا كول په دې وجه هغه ته دومره سخته سزا وركړل سوه ، په هر حال په دغه تاويلاتو كي يو تاويل اختيارول ضروري دي ځكه كه چيري هغه مسلمان واى نو د هغه د وژلو څخه وروسته د هغه په راكشولو سره په څاه كي غورځول به هيڅكله مباح نه واى .

## د غله پرې سوى لاس د هغه په غاړه كول

﴿۳۴۴۴﴾ : وَعَنْ فُضَالَةَ بْنُ عُبَيْدٍ قَالَ أُتِيَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ فَقُطِعَتْ يَدُهُ ثُمَّ أَمَرَ بِهَا فَعُلِّقَتْ فِي عُنُقِهِ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة .

د حضرت فضالة بن عبيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د رسول الله ﷺ په خدمت كي يو غل راوستل سو ، د رسول الله ﷺ د حكم سره د هغه غله لاس پرې كړل سو ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل د هغه لاس پرې كړئ او د هغه په غاړه كي يې واچوئ . ترمذي ، ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه .

**تخريج** الترمذي في السنن ۴\۴۱ ، رقم: ۱۴۴۷ ، وابوداود ۴\۵۶۷ ، رقم: ۴۴۱۱ ، والنسائي في السنن ۸\۹۲ ، رقم: ۴۹۸۳ ، وابن ماجه في السنن ۲\۸۶۳ ، رقم: ۲۵۸۷ .

**تشريح** ابن همام رحمه الله وايي چې د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما څخه دا منقول دي چې د غله پرې كړى لاس د هغه په غاړه كي زړول سنت دي حال دا چې د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله په نزد دا د امام يا حاكم پر خوښه موقوف دى كه هغه مناسب وګڼي نو د غله پرې كړى لاس دي د هغه په غاړه كي وزړوي دا سنت نه دي ځكه چې دا ثابت نه دي چې رسول الله ﷺ د

غله پرې کړی لاس د هغه په غاړه کې زړولی وي.

## غل غلام خرڅ کړئ

﴿٣٤٤٥﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَرَقَ الْمَمْلُوكُ فَبِعْهُ وَلَوْ بِنَشٍّ. رواه ابوداؤد والنسائي و ابن ماجة.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: كه غلام غلا وکړي نو هغه خرڅ کړئ که څه هم په يوه نش خرڅ سي. نش: نيمي اوقيې ته ويل کيږي چې شل درهمه کيږي. ابوداؤد. نسائي او ابن ماجه.

**تخريج** ابوداود في السنن ١٤\ ٥٦٨، رقم: ٤٤١٢، والنسائي ٨\ ٩١، رقم: ٤٩٨٠، وابن ماجه في السنن ٢\ ٨٦٤، رقم: ٢٥٨٩.

**د لغاتو حل** بِنَش: اى عشرون درهما نصف اوقية والمعنى بعه ولو بثمن بخس.

**تشريح** نَش: نيم اوقيه يعني شل درهمه ته وايي، مراد دادی چې غلا کونکی غلام وپلوره که څه هم هغه په کم قيمت باندي پلورل کيږي ځکه چې په غلا کولو سره هغه عيب داره سوی دی او عيب داره غلام د ځان سره ساتل مناسب نه دي.

حضرت امام مالک، امام شافعي او اکثر اهل علم وايي که يو غلام غلا وکړي نو د هغه لاس دي پرې کړل سي که څه هم هغه تښتيدلی وي يا تښتيدلی نه وي. په دې باره کي د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله قول دادی که چيري په خاوند او ښځه کي د يو بل څخه مال پټ کړي يا يو غلام د خپل مالک يا د خپل مالک د ښځي څخه يا د خپل مالکي د خاوند د مال څخه غلا وکړي نو د هغه لاس به نه پرې کيږي ځکه چې په عامه توګه سره خاوند ښځي ته د يو بل په مال او غلام ته د خپل بادار او د هغه د کورنيو په مال او اسبابو کي خپله د هغوی په اجازې سره لاس وهنه کولای سي. په دغه صورت کي د حرز شرط پوره نه تر لاسه کيږي کوم چې د لاس پرې کېدو لپاره ضروري دئ.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مجرم د معافولو حق حاكم ته نه ستة

﴿٣٤٤٦﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ أُتِيَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَارِقٍ فَقَطَعَهُ فقَالُوا مَا كُنَّا نَرَاكَ تَبْلُغ بِهِ هَذَا قَالَ لَوْ كَانَتْ فَاطِمَةَ لَقَطَعْتُهَا . رواه النسائي

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په خدمت كي يو غل راوستل سو .رسول الله ﷺ د هغه د لاس پرې كولو حكم وكړ ،صحابه كرامو عرض وكړ چي زموږ دا خيال نه وو چي تاسو به دده لاس پرې كړئ، رسول الله ﷺ وفرمايل : كه فاطمه هم واى نو ما به د هغې لاس پريكړى واى . نسائي .

**تخريج** سنن النسائي ٨\ ٧٢، رقم: ٤٩٩٦.

**تشريح** په ظاهره دا معلوميږي چي هغه غل يو داسي سړى وو چي د هغه سره د رسول الله ﷺ يو قرابت وو يا د رسول الله ﷺ د متعلقينو څخه يو كس وو او په دې وجه د صحابه كرامو د گمان مطابق د هغه سره د نرمۍ او رعايت كولو امكان وو ، رسول الله ﷺ واضحه كړل چي د لاس پرې كولو سزا د الله تعالى حق دى چي د هغه جاري كول پر ما واجب دي په دې كي ستركي پټول نه يوازي دا چي د عدل او انصاف خلاف كار دى بلكه د الله تعالى د حكم او د هغه په حق كي د بې ځايه مداخلت كولو سره سم دى كه چيري زما د زړه ټوټې فاطمې ﷺ هم دا كار كړى وي نو ما به پر هغې هم دغه سزا جاري كړې واى او د هغې لاس به مي پرې كړى واى .

### كه غلام د خپل مالك څخه غلا وكړي نو د هغه لاس نه پرې كيږي

﴿٣٤٤٧﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى عُمَرَ بِغُلَامٍ لَهُ فَقَالَ اقْطَعْ يَدَهُ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي حضرت عمر ﷺ ته يو كس خپل غلام راوستى چي

فَإِنَّهُ سَرَقَ مِرْآةً لِامْرَأَتِي فَقَالَ عُمَرُ لاَ قَطْعَ عَلَيْهِ وَهُوَ خَادِمُكُمْ اَخَذَ مَتَاعَكُمْ . رواه مالك .

ده زما د ښځي څخه هنداره غلا كړې ده تاسو دده لاس پريكړئ . حضرت. عمر ﷺ ورته وويل

دده لاس پریکول واجب نه دي دا ستا خادم دئ ستا شي يې اخيستي دئ. مالک

**تخريج** موطا الامام مالک ۲\۸۳۹، رقم: ۳۳.

**تشريح** حضرت عمر رضی اللہ عنہ د خپل ارشاد په ذريعه پر هغه باندي د لاس پرې کولو سزا نه جاري کولو علت او وجهي ته اشاره وکړه چي هغه د اجازې تر لاسه کول دي چي ستاسو د خادم کېدو په حيثيت سره کله چي هغه ته تاسو سره د اوسيدو او ستاسو دمال او سامان د ساتني اجازه حاصله ده او په دې اعتبار سره ستا او ستا د کور د مال خپله ستا په مرضي سره د هغه په لاس کي دی نو په دغه صورت کي د احراز يعني د مال د بل د لاس څخه خوندي کېدل پاته نه سي او کله چي احراز پاته نه سو نو بيا د لاس پرې کېدو سزا به هم نه وي.

د امام اعظم ابوحنيفة او امام احمد رحمة الله عليهما دا مذهب دی حال دا چي د نورو علماؤ مذهب ددې خلاف دی.

## د کفن کښ سزا

﴿۳۴۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا ذَرٍّ قُلْتُ

د حضرت ابوذر رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل: اې ابوذره! ما وويل

لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ كَيْفَ أَنْتَ إِذَا أَصَابَ النَّاسَ مَوْتٌ يَكُونُ

حاضر يم تا ته اې رسوله د خدای او فرمان برداره دي يم، رسول الله ﷺ وفرمايل: ته به هغه وخت څه کوې چي خلکو ته مرګ (وبا) ورسيږي،

الْبَيْتُ فِيهِ بِالْوَصِيفِ يَعْنِي الْقَبْرَ قُلْتُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ عَلَيْكَ بِالصَّبْرِ

او د کور (يعني د قبر ځای) بيه د يوه غلام د بيي سره برابره سي، ما عرض وکړ چي الله او د هغه رسول بنه پوهيږي (چي هغه وخت به زما څه حال وي) رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه وخت به پر تا

قَالَ حَمَّادُ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ تُقْطَعُ يَدُ النَّبَّاشِ لِأَنَّهُ دَخَلَ عَلَى الْمَيِّتِ بَيْتَهُ.

رواه ابوداؤد.

صبر لازم وي. ددې حديث يو راوي حماد بن ابي سليمان وايي د کفن د غله لاس دي پرې کړل سي خکه چي هغه د مړي په کور کي داخل سو. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\ ۵٦۴، رقم: ۴۴۰۹.

**د لغاتو حل**: الوصيف: العيد، يريد انه يكثر الموت حتى يصير موضع قبر يشتري بعبد من كثرة الموتى.

**تشريح**: حماد ابن سلمه د رسول الله ﷺ د ارشاد ځخه يوه ډېره باريکه نکته پيدا کړه او دا استدلال يې وکړ چي رسول الله ﷺ قبر ته کور فرمايلی دی همدا رنګه د کور په ډول قبر هم حرز سو لکه ځرنګه چي د کور ځخه يو سړی يو شی غلا کړي نو د هغه لاس پرې کيږي همدا رنګه که يو سړی د قبر ځخه کفن غلا کړي نو د هغه لاس دي پرې کړل سي مګر حقيقت دادی چي د حضرت حماد رضي الله عنه دغه استدلال ټينګ نه دی ځکه دا ضروري نه ده چي هغه ځای د حرز په حکم کي وي چي پر هغه د کور اطلاق کيږئ د مثال په توګه يو سړی د يو داسي کور ځخه مال غلا کړي چي د هغه دروازه بنده نه وي يا پر هغه باندي يو ځوک چوکيدار نه وي نو په اتفاق سره د ټولو علماؤ دا فيصله ده چي د هغه لاس به نه پرې کيږي ځکه که چيري هغه د يو کور دننه غلا کړې وي مګر د هغه کور د نه ساتني په وجه هغه حرز پاته نه سو او کله چي په دغه صورت کي د حرز شرط پيدا نه سو نو په دې سره د لاس پرېکولو سزا هم نه جاري کيږي بالکل همدا رنګه قبر ته که ځه هم حرز فرمايل سوي دي مګر هغه حرز يعني خوندي نه دی ځکه د هغه ځخه د کفن د غله لاس نه پرې کيږي.

ابن حمام رحمة الله عليه وايي چي د امام اعظم ابوحنيفة او امام محمد رحمة الله عليهما مذهب دادی چي د لاس پرې کولو سزا د کفن پر غله باندي نه نافذ کيږي حال دا چي د درو امامانو او حنفيه کي د امام ابويوسف رحمة الله عليه قول دادی چي د کفن د غله لاس دي پرې کړل سي، ددغه مسئلې پاته تفصيل په مرقاة کي تر لاسه کولای سئ.

=========

# بَابُ الشَّفَاعَةِ فِي الْحُدُوْدِ

## (په شرعي سزاوو کي د سفارش بيان)

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چي د هغو ځخه دا معلوميږي چي امام يا حاکم ته داسي سفارش کول چي فلانی مجرم معاف کړه او پر هغه حد جاري نه کړل سي دا جائز دي که يا؟ او دا چي حاکم د دغه سفارش اختيار لري که يا؟

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په حدودو کي سفارش نه سته

﴿۳۴۴۹﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَرْأَةِ الْمَخْزُومِيَّةِ الَّتِي سَرَقَتْ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دئ چي قريش د مخزوميي ښځي په اړه ډير فکر مند وه چي هغې غلا کړې وه (او نبي کريم ﷺ د هغې د لاس پرې کولو حکم کړی وو)

فَقَالُوا وَمَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا وَمَنْ يَجْتَرِئُ

قريشو فکر وکړ چي په دې اړه به څوک د رسول الله ﷺ سره خبري وکړي، ځينو خلکو وويل

عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ

حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ ډير محبوب دئ، نو حضرت اسامه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره ددې خبري يادونه وکړه،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَشْفَعُ فِي حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللَّهِ ثُمَّ قَامَ

رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل: ته د الله جل جلاله په حدودو کي سفارش کوې، د دې په فرمايلو سره رسول الله ﷺ ولاړ سو

فَاخْتَطَبَ ثُمَّ قَالَ إِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ قَبْلَكُمْ أَنَّهُمْ كَانُوا إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ

او د خلکو په وړاندي يې خطبه ورکړل بيا يې وفرمايل: ستاسو څخه وړاندي امتونه په دې هلاک سول چي په هغوی کي به غلا وکړل

الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ وَإِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الضَّعِيفُ أَقَامُوا عَلَيْهِ الْحَدَّ وَايْمُ اللَّهِ لَوْ أَنَّ

يو شريف کس نو هغه به يې پرېښود دئ او کله چي به يو کمزوري سړی غلا وکړه نو هغه ته به يې سزا ورکړه، قسم په الله! که

فَاطِمَةَ بِنْتَ مُحَمَّدٍ سَرَقَتْ لَقَطَعْتُ يَدَهَا. متفق عليه و في رواية لمسلم

زما خپل لور فاطمه غلا وکړي نو زه به د هغې لاس هم پرېکړم. بخاري او مسلم، د مسلم په يوه

قَالَتْ كَانَتْ امْرَأَةٌ مَخْزُومِيَّةٌ تَسْتَعِيرُ الْمَتَاعَ وَتَجْحَدُهُ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

روایت کي دا الفاظ دي چي د بي بي عائشې رضي الله عنها بیان دئ چي یوې مخزومي ښځي به عاریتا د یو چا څخه شی واخیستئ بیا به یې د ورکولو څخه انکار کوی ، نبي کریم ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تُقْطَعَ يَدُهَا فَأَتَى أَهْلُهَا أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَكَلَّمُوهُ فَكَلَّمَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا ثُمَّ ذَكَرَ الْحَدِيثَ بِنَحْوِ مَا تَقَدَّمَ .

د هغې د لاس پریکولو حکم وکړ د ښځي خپلوان حضرت اسامه ته راغلل د هغه سره یې په دې اړه خبري وکړې ، حضرت اسامه نبي کریم ﷺ ته عرض وکړ ددې وروسته پورتني حدیث دئ .

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٥١٣، رقم: ٣٤٧٥، ومسلم ٣\١٣١٥، رقم: ٨- ١٦٨٨.

**تشریح**: په حدیث کي چي د کومي ښځي ذکر سوی دی د هغې نوم فاطمه بنت اسود ابن عبدالاسد وو ، هغه د ابو سلمه رضي الله عنه وریره وه او هغه د بني مخزوم څخه وو چي د قریشو یوه لویه قبیله ده ځکه نو قبیلې ته په نسبت کولو سره هغه ته مخزومیه ویل سوي دي .

ددغه حدیث په سبب د ټولو علماؤ پر دې اجماع او اتفاق دی چي کله د یو حد قضیه حاکم یا امام ته ورسیږي نو د هغه څخه وروسته د مجرم په باره کي امام ته سفارش کول هم حرام دي او د بل چا سفارش کول هم حرام دي مګر امام ته د قضیې رسیدو څخه مخکي د سفارش کولو اکثرو علماؤ اجازه ورکړې ده په شرط ددې چي د چا په باره کي سفارش کیږي هغه شر رسونکی او خلکو ته تکلیف رسونکی نه وي همدارنګه که چیري یو سړی داسي جرم او ګناه کړې وي چي پر هغه حد نه جاري کیږي بلکه تعزیر ورکول کیږي نو د هغه په حق کي سفارش کول په هر صورت کي جائز دي که څه هم د هغه قضیه امام ته رسیدلې وي یا نه وي رسیدلې ، ځکه چي په دغه صورت کي سفارش کول نه یوازي دا چي اسان وي بلکه مستحب هم دي په شرط ددې چي د چا په باره کي سفارش کیږي هغه شریر او تکلیف رسونکی نه وي .

د مسلم چي کوم دوهم روایت نقل سوی دی د هغه الفاظو څخه په ظاهره دا معلومیږي چي رسول الله ﷺ هغه ښځي ته په دغه جرم کي د لاس پرې کولو د سزا حکم ورکړی وو چي هغې به د خلکو څخه عاریتا شیانو غوښتل او بیا یې د هغه شي څخه منکره کېدل حال دا چي دا د واقعې خلاف هم دی او د شرعي مسئلې خلاف هم دی ، ددې جواب دادی چي په دریم روایت کي د

انکار ذکر محض د هغه ښځي د حال ښوولو لپاره دی چي هغه ښځه دا ډول وه او هغې ته چي د لاس پرې کولو سزا ورکړل سوې وه نو د هغه تعلق د هغه د غلام د جرم سره وو لکه څرنګه چي په اول روایت کي چي بیان سوی دی ، خلاصه دا سوه چي په دوهم روایت کي لفظ د (وتجحده) څخه وروسته لفظ د (فسرقت) مقدر دی یعني دغه لفظ که څه هم په عبارت کي نه سته مګر ددې معنی به مراد وي ، د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي د کوم چا څخه په عاریت یو شی واخیستل سي او بیا د هغه څخه منکر سي نو هغه ته د لاس پرې کېدو سزا نه ورکول کیږي حال دا چي د امام احمد او اسحاق رحمة الله علیهما قول دادی چي د داسي سړي لاس پرې کول هم واجب دي .

**په دغه باب کي دوهم فصل نه سته .**

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

**په حد کي سفارش کوونکی ګویا د الله ﷻ د حکم مخالفت کوونکی دی**

﴿۳۴۵۰﴾ : عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي

يَقُوْلُ مَنْ حَالَتْ شَفَاعَتُهُ دُونَ حَدٍّ مِنْ حُدُودِ اللّٰهِ فَقَدْ ضَادَّ اللّٰهَ وَمَنْ خَاصَمَ

فرمایل یې : د چا چي سفارش د الله تعالی په حدود قائمولو کي حائل وګرځي هغه د الله تعالی سره ضد وکړ او چا چي په ناحقه او دروا غ خبره کي جګړه وکړه

فِي بَاطِلٍ وَهُوَ يَعْلَمُهُ لَمْ يَزَلْ فِي سَخَطِ اللّٰهِ حَتَّى يَنْزِعَ وَمَنْ قَالَ فِي مُؤْمِنٍ مَا

او هغه د هغه د ناحق کېدو څخه خبر وي هغه همیشه د الله تعالی په غضب کي وي ، تر څو پوري چي د هغه څخه منع نسي او څوک چي د یو مسلمان په اړه یوه داسي خبره وکړي

لَيْسَ فِيهِ أَسْكَنَهُ اللّٰهُ رَدْغَةَ الْخَبَالِ حَتّٰى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ. رواه احمد و

چي په هغه کي نه وي نو هغه تر هغه وخته پوري دوږخیانو په نوونو او وینو کي وي تر څو پوري چي د هغه څخه توبه ونه کړي . احمد ، ابوداؤد

ابوداؤد و في رواية البيهقي في شعب الايمان مَنْ اَعَانَ عَلٰى خَصُوْمَةٍ لاَ يَدْرِيْ اَحَقٌّ اَمْ بَاطِلٌ فَهُوَ فِيْ سَخَطِ اللهِ حَتّٰى يَنْزِعَ.

او بيهقي په شعب الايمان كي ليكلي دي ثوک چي د يوې داسي جګړې مرسته وکړي چي د هغه د حق او ناحق كېدو هغه ته خبر نه وي نو هغه تر هغه وخته پوري په الهي غضب كي وي تر ثو پوري چي د هغه ثخه منع نسي.

**تخريج**: احمد في المسند ٢\٧٠، وابوداود ٤\٢٣، رقم: ٣٥٩٧، والبيهقي في الشعب ٦\١٢١، رقم: ٧١٧٣.

**د لغاتو حل**: رَدغة: طين ووحل كثير.

## د غلا پر اقرار سزا

﴿٣٤٥١﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَيَّةَ الْمَخْزُومِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِلِصٍّ

د حضرت ابو اميه المخزومي ﷜ ثخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ ته يو غل راوستل سو چي

قَدْ اعْتَرَفَ اعْتِرَافًا وَلَمْ يُوجَدْ مَعَهُ مَتَاعٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه په ثرګندو الفاظو سره د خپل غلا اقرار وكړ مګر د هغه سره د غلا مال تر لاسه نه سو، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل:

مَا إِخَالُكَ سَرَقْتَ قَالَ بَلٰى فَأَعَادَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا كُلُّ ذَالِكَ يَعْتَرِفُ فَأَمَرَ

زما خيال دئ چي تا غلا نه ده كړې، هغه وويل: ولي نه هو ما غلا كړې ده، رسول الله ﷺ دويم او دريم وار ورته داسي وفرمايل او هغه هر وار د غلا اقرار وكړ،

بِهِ فَقُطِعَ وَجِيءَ بِهِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَغْفِرْ اللّٰهَ

په پاى كي رسول الله ﷺ د هغه د لاس پريكولو حكم وكړ، د لاس پريكولو ثخه وروسته هغه رسول الله ﷺ ته راوستل سو، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل د الله ﷻ ثخه بخښنه وغواړه

وَتُبْ إِلَيْهِ فَقَالَ أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او توبه وكړه، هغه وويل: زه د الله ﷻ ثخه بخښنه غواړم او توبه كوم، رسول الله ﷺ درې واره

اللَّهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ ثَلَاثًا . رواه ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي هكذا

وفرمايل : اې الله ! دده توبه قبوله کړې . ابوداؤد ، نسائي ، ابن ماجة، دارمي ،

وجدت في الاصول الاربعة و جامع الاصول وشعب الايمان ومعالم السنن عن ابي امية و في نسخ المصابيح عن ابي رمثة بالراء والثاء المثلثة بدل الهمزة والياء .

ما په اصول اربعه ، جامع الاصول، شعب الايمان او د مصابيحو په نسخو کي د ابي رمثه په حوالې سره همدا سي تر لاسه کړې دئ چي رمثه په راءاو ثاء مثلثه سره پر ځاى د همزه او ياء دى .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۵۴۲، رقم: ۴۳۸۰، والنسائي في السنن ۸\۶۷، رقم: ۴۸۷۷، وابن ماجه في السنن ۲\۸۶۶، رقم: ۲۵۹۷، والدارمي ۲\۲۲۸، رقم: ۲۳۰۳.

**تشريح**: زما خيال نه دى : ددې څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي هغه سړى د خپل اقرار څخه رجوع وکړي چي حد ځيني ساقط سي او د هغه لاس پرې نه کړل سي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ د زنا د اقرار کونکي په مخکي همدارنګه جملې ارشاد وفرمايلې چي د هغه مقصد د عذر تلقين وو ، دا د امام شافعي رحمة الله عليه د دوو قولو څخه يو قول دى مګر د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه او نورو امامانو په نزد د عذر تلقين او د رجوع تلقين يوازي د زنا د حد سره خاص دي.

رسول الله ﷺ چي هغه سړي ته د استغفار حکم وکړ نو دا پر دې دلالت کوي چي پر کوم چا باندي حد جاري سوى وي هغه حد يې بالکل (د ګناهو څخه) پاکولاى او خلاصولاى نه سي بلکه هغه ګناه ختموي چي د هغه په وجه پر هغه باندي حد جاري سوى دى چي د حد جاري کېدو څخه وروسته به هغه د پروردګار له خوا د هغه ګناه په سبب دوهم وار په عذاب کي اخته نه کړل سي .

==========

# بَابُ حَدِّ الْخَمْرِ

## (د شرابو چښلو د حد بيان)

**د شرابو حُرمت** : شرابو ته (أم الخبائث) ويل سوي دي ، د نبي كريم ﷺ د پيغمبرۍ څخه مخكي شرابو د ژوند د يو برخي درجه درلودل ، ځكه د بعثت څخه وروسته د اسلام په شروع كي هم ددې رواج پاته وو او په عامه توګه سره خلک د شرابو په څښلو اخته وه مګر ددې د خرابۍ او تاوان په وجه د مسلمانانو په زړو كي خطره هم پيدا كېدل او د حضرت عمر ﷛ د قول (انما تذهب المال وتذهب العقل) يعني شراب مال هم بربادوي او عقل هم ختموي، سره سم په خلكو كي دا احساس هم ورځ په ورځ زياتيدى چي ددې جائز كېدل څومره ژر ختم سي هغومره به ښه وي ، او آخوا ټوله خلک په دغه لعنت كي اخته وه او دا يو داسي عادت وو چي د هغه ريښې په ټوله ټولنه كي تر ليري پوري خپرې سوې وي ځكه د شريعت حكمت دا وو چي ددغه حرمت جاري كېدل په يو وار د منع كېدو پر ځاى په تدريجي توګه په عمل كي راسي او د عامو خلكو په زړو كي ددغه نفرت داسي ځاى كړل سي چي د شريعت مقصد هم پوره سي او خلک ددغه لعنت څخه هم خلاصون تر لاسه كړي ، كله چي ځينو صحابه كرامو د رسول الله ﷺ څخه د شرابو په باره كي پوښتنه وكړه نو په دې باره كي تر ټولو مخكي دغه آيت كريمه نازل سو :

يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ قُلْ فِيهِمَا إِثْمٌ كَبِيرٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَإِثْمُهُمَآ أَكْبَرُ مِن نَّفْعِهِمَا

ژباړه / (اې محمد ! ﷺ) خلک ستا څخه د شرابو او خمار په باره كي پوښتنه كوي ، ورته ووايه چي په دغه دواړو كي لويه ګناه ده او په ظاهره د خلكو لپاره (دوكه وركونكې) څه ګټه هم سته مګر د دې ګناه تر ګټو زياته ده .

كومو نيكو كسانو چي د مخكي څخه د شرابو د بدو اثراتو احساس درلودى او كوم خلک چي ددې د خرابۍ څخه په طبيعت كي هم بېزاره وه د هغوى لپاره هم دا كافي وه چي قرآن كريم شرابو ته كبيره ګناه وويل نو هغوى شراب څښل بالكل پرېښودل مګر په دغه آيت كي د شرابو د حرام كېدو يو واضح او قطعي حكم نه سته ځكه نو ډېرو خلكو د شرابو څښل جاري وساتل تر څو په دې باره كي د قرآن كريم دوهم آيت نازل سو :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ لاَ تَقْرَبُواْ الصَّلاَةَ وَأَنتُمْ سُكَارَى حَتَّىَ تَعْلَمُواْ مَا تَقُولُونَ

ژباړه : اې مؤمنانو ! تاسو په داسي حالت كي لمانځه ته مه ورځئ چي كله تاسو د نشې په حالت كي مست ياست تر څو چي تاسو پوهېږئ چي په خولو سره څه وايا ست .

دغه آيت كريمه د شرابو څښلو بوختيا ته يو بل ټك ورکړ او د لمانځه په وختو كي د شرابو څښل بالكل پرېښودل سول ، مگر د لمانځه څخه پرته په نورو وختو كي د خلكو په نزد اوس هم د شرابو څښل بند نه سوه ، په پاى كي په دريم هجري كال كي دغه دريم آيت كريمه نازل سو چي په هغه كي د شرابو حرام كېدل واضح كړل سول :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ إِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالأَنصَابُ وَالأَزْلاَمُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطَانِ فَاجْتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ . سورة المائدة: ٩٠

ژباړه : اې مؤمنانو ! په دې كي شک نه سته چي شراب او خمار او بُتان او قرعه اندازي دا ټول چټل شيان او د شيطان د كارو څخه دي نو د دې څخه بالكل ځان وساتئ چي خلاصون تر لاسه كړئ .

د دغه آيت كريمه د نازلېدو څخه وروسته شراب څښل بالكل بند سول ، د شرابو منگيان مات كړل سول او شراب د مدينې منورې په كوڅو كي د مردارو اوبو په ډول بهېدل او د شرابو د حرمت حكم نافذ سو .

**د شراب څښلو سزا** : د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دى چي د قرآن كريم او سنت د حكم او د امت د اجماع سره سم شراب حرام دي او كوم څوک چي شراب وڅښي هغه د حد وړ دى چي د جمهورو علماؤ د قول مطابق اتيا دُرې وهل دي ، د حنفيه هم دا مذهب دى او د امام شافعي رحمة الله عليه او نورو علماؤ د قول مطابق څلوېښت دُرې وهل دي .

**د سزا جاري كول** : كه يو سړى شراب وڅښي كه څه هم هغه يو ځاڅكى وڅيښي او بيا هغه د حاكم يا قاضي په مخكي وړاندي سي او هغه وخت د شرابو بوى موجود وي يا هغه د نشې په حالت كي وي كه څه هم هغه نشه د نبيذ څښلو په وجه وي او دوه خلک د هغه پر شراب څښلو شاهدي وركړي يا هغه خپله د خپل شراب څښلو يو وار او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد دوه واره اقرار وكړي او دا معلومه سي چي هغه په خپل خوښي سره شراب څښلي دي او د چا په زور يې نه دي څښلي نو پر هغه دي حد جاري كړل سي يعني كه چيري هغه ازاد سړى وي نو هغه دي اتيا دُرې ووهل سي او كه غلام وي نو څلوېښت دُرې دي ووهل سي او دا وهل دي هغه وخت وركړل سي كله چي د هغه نشه ختمه سي ، د زنا په حد كي او په دغه حد كي دي په دُرو داسي ووهل سي چي د بدن پر مختلفو برخو زخم راسي يعني ټولي دُرې دي د بدن پر يوه ځاى نه

ورکول کیږي بلکه پر مختلفو ځایو دي ووهل سي .

که یو سړی د خپل شراب څښنلو اقرار هغه وخت وکړي کله چي د شرابو بوی ختم سوی وي یا دوه کسان د یو سړي پر شراب څښنلو هغه وخت شاهدي ورکړي چي د هغه بوی ختم سوی وي نو پر هغه دي حد نه جاري کیږي همدارنګه که په یو سړي کي یوازي د شرابوبوی پیدا سي یا هغه یوازي د شرابو قی وکړي یا مخکي هغه د خپل شراب څښنلو اقرار وکړي مګر وروسته منکر سي یا هغه د نشې په حال کي اقرار وکړي نو په دغه صورتو کي هم پر هغه حد نه سي جاري کیدای .

څرګنده دي وي چي کومه نشه حد واجبوي هغه داده چي هغه سړی د نر او ښځي، مځکي او آسمان په مینځ کي فرق نه سي کولای مګر د صاحبینو (امام ابویوسف او امام محمد رحمة الله علیهما) قول دادی چي د نشې څخه مراد دادی چي هغه سړی رد او بدل وایي او هسي خبري کوي ، په حنفي مذهب کي فتوا پر دغه قول ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ په زمانه کي د شرابو سزا

﴿۳۴۵۲﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ فِي الْخَمْرِ بِالْجَرِيْدِ وَالنِّعَالِ وَجَلَدَ أَبُوْ بَكْرٍ أَرْبَعِيْنَ . وَ فِيْ رِوَايَةٍ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَضْرِبُ فِي الْخَمْرِ بِالنِّعَالِ وَالْجَرِيْدِ أَرْبَعِيْنَ .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د شرابو چښنلو په سزا کي د خرماوو په لښتو او په چپلانو د وهلو حکم ورکړ او ابوبکر صدیق رضي الله عنه (په خپل خلافت کي) څلوېښت دورې وهل کړي وه، او د حضرت انس رضي الله عنه په یوه بل روایت کي د ا الفاظ دي چي نبي کریم ﷺ به وهلو په حد د شرابو کي په چپلکو او لښتو د خرما څلوېښت واره.

**تخریج:** البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۲\۶۳، رقم: ۶۷۷۳، ومسلم ۳\۱۳۳۱، رقم: ۳۶-۱۷۰۶.

**تشریح:** په اول روایت کي د حد ذکر د عدد د تعین څخه پرته دی په دې اعتبار سره هغه مجمل دی چي د هغه وضاحت بل روایت کړی دی چي په هغه کي د عدد تعین وکړل سو او هغه څلوېښت دی ، دا حدیث د امام شافعي رحمه الله د مذهب دلیل دی ، د امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله د

مذهب دليل هغه حديثونه دي چي په هغو كي د شراب څښنلو شرعي سزا اتيا دُرې وهل بيان سوي دي ، ملا علي قاري رحمة الله عليه دغه حديثونه په خپل مرقاة كي نقل كړي دي .

**اتيا دُرې سزا د صحابه كرامو په زمانه كي وټاكل سول**

﴿۳۴۵۳﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ كَانَ يُؤْتَى بِالشَّارِبِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ

د حضرت سائب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَإِمْرَةِ أَبِي بَكْرٍ وَصَدْرًا مِنْ خِلَافَةِ عُمَرَ فَنَقُومُ إِلَيْهِ

د حضرت ابوبكر د خلافت په ورځو كي او د حضرت عمر د خلافت په پيل كي چي به شراب چښونكي ونيول سو نو موږ به په خوليو ،

بِأَيْدِينَا وَنِعَالِنَا وَأَرْدِيَتِنَا حَتَّى كَانَ آخِرُ إِمْرَةِ عُمَرَ فَجَلَدَ أَرْبَعِينَ حَتَّى إِذَا عَتَوْا وَفَسَقُوا جَلَدَ ثَمَانِينَ . رواه البخاري .

لاسونو ، چمپلانو او څادرونو سره وهئ ، بيا چي د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت آخري دورسو نو د څلوېښت دورو حد و ټاكل سو ، او هر كله چي د شراب چښونكو شمير زيات سو نو د هغه سزا اتيا دورې و ټاكل سول . بخاري .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۶۱، رقم: ۶۷۷۹.

**تشريح** د سائب ابن زيد مراد دا وو چي هغه وخت د شرابو د څښنلو د حد جاري كېدل د عدد د تعين څخه بغير وو مگر صحيح دادی چي د هغه مراد دا ظاهرول دي چي په هغه زمانه كي د شرابو څښنلو سزا دڅلويښت دُرو څخه هم كمه وه لكه څرنگه چي د هغه قول چي ( بيا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه كي د څلوېښتو دُرو سزا وركول شروع كړل) څخه دا ثابتيږي . په هر حال ددغه حديث څخه دا واضحه سوه چي د شرابو د حد په توگه د اتيا درو سزا په عهد نبوي كي نافذ نه وه بلكه د صحابه كرامو په زمانه كي ټاكل سوې ده ، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د شرابو په معامله كي د زياتېدونكي سركښۍ په لېدو سره او د قانوني حكمت سره سم شراب څښنونكي د اتيا درو وهلو سزا وټاكل او پر دې د ټولو صحابه كرامو اجماع او اتفاق سو نو اوس د هيچا ددې خلاف كول جائز نه دي ، د حضرت علي رضي الله عنه ارشاد دادی چي رسول الله ﷺ او حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه به شراب څښنونكي ته د څلوېښت درو وهلو سزا وركول او دا

سزا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه پوره کړه په دې توګه چې هغه د اتيا درو سزا وټاکل او که څه هم
ټول سنت دي مګر پر اتيا درو باندې اجماع او اتفاق دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شرابي د قتل کولو حکم منسوخ دی

﴿۳۴۵۴﴾ : عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې شراب وڅښي هغه

فَاجْلِدُوهُ فَإِنْ عَادَ فِي الرَّابِعَةِ فَاقْتُلُوهُ قَالَ ثُمَّ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په دورو ووهئ او څوک چې په څلورم وار په شرابو څښلو وليدل سي هغه قتل کړئ ، د راوي
بيان دئ ددې وروسته نبي کريم ﷺ ته

بَعْدَ ذَلِكَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الرَّابِعَةِ فَضَرَبَهُ وَلَمْ يَقْتُلْهُ . رواه الترمذي

يو سړی راوستل سو چې هغه په څلورم وار شراب څښلي وه ، رسول الله ﷺ هغه هم ووهئ او
قتل يې نه کړ ، ترمذي ،

و ابوداؤد عن قبيصة بن دويب و في اخرى لهما و للنسائي وابن ماجة
والدارمي عن نفر من اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم منهم ابن
عمر ومعاوية و ابو هريرة والشريد الى قوله فاقتلوه .

ابوداؤد د قبيصه بن ذويب څخه او د ابوداؤد ، ترمذي، نسائي، ابن ماجة او دارمي په يو بل
روايت کې د صحابه کرامو يو ټولی (چې حضرت عمر، حضرت معاويه، حضرت ابوهريرة او
شريد شامل دي) د رسول الله ﷺ څخه تر (فاقتلوه) پوري دا حديث بيان کړی دئ .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۳۹، رقم: ۱۴۴۴.

**تشريح** نو هغه قتل کړئ : ددې څخه مراد دادی چې هغه سړی ښه ووهئ يا دا چې رسول الله
ﷺ دغه حکم د زجر او تهديد په توګه او د قانوني حکمت سره سم ورکړی وو ، ددې تعلق د يو
مستقل قانون او وجوب څخه نه وو او ځيني حضرات وايي چې د اسلام په شروع کې دا حکم وو

مګر بیا وروسته منسوخ سو .

هغه یې قتل نه کړ : ددې څخه دا ثابتیږي چي د قتلولو حکم یا خو د زجر او تهدید او قانوني مصلحت په وجه وو یا مخکي دا حکم وو چي وروسته رسول الله ﷺ په خپل دغه عمل سره دا حکم منسوخ وګرځوی .

امام نووي رحمة الله عليه د امام ترمذي رحمة الله عليه دا قول نقل کړی دی چي زما په کتاب کي د دوو حدیثو څخه پرته بل هیڅ داسي حدیث نه سته چي د هغه پر متروک العمل ګرځولو باندي د ټول امت اجماع او اتفاق وي ، په دغه دواړو کي یو حدیث خو هغه دی چي د هغه څخه دا ثابتیږي که بېره یا باران نه وي نو بیا هم د جمع بین الصلوتین اجازه ده او دوهم حدیث دا دی چي په هغه کي په څلورم وار د شراب څښونکي د قتل کولو حکم دی ، یعني د امام ترمذي ددغه قول د نقل کولو مقصد دا ثابتول دي چي دا حدیث منسوخ دی او د هغه پر منسوخ کېدو د ټولو اتفاق او اجماع ده .

## د شرابي تحقیر

﴿۳۴۵۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَزْهَرَ قَالَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت عبد الرحمن بن ازهر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي زه لکه هغه نندارہ چي اوس هم د خپلو سترګو په وړاندي وینم چي ما یو وار لیدلی وه

عَلَيْهِ إِذْ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَقَالَ لِلنَّاسِ اضْرِبُوهُ فَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ

او هغه دا چي یو سړی چي هغه شراب چښلي وه نبي کریم ﷺ ته راوستل سو ، رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمایل چي دی ووهئ ، په موږ کي ځینو هغه

بِالنِّعَالِ وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْعَصَا وَمِنْهُمْ مَنْ ضَرَبَهُ بِالْمِيتَخَةِ قَالَ ابْنُ

په چمپلانو ووهئ ځیني په لکړو ووهئ ، ځیني د خرماوو په څانګو ووهئ ، ابو وهب د (میتخة)

وَهْبٍ الْجَرِيدَةُ الرَّطْبَةُ ثُمَّ أَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُرَابًا مِنَ الْأَرْضِ فَرَمَى بِهِ فِي وَجْهِهِ . رواه ابوداؤد .

معنا د خرماوو په لنډو لښتو کړې ده، بیا رسول الله ﷺ د مځکي څخه خاوره پورته کړه او د هغه پر مخ یې وپاشل . ابو داؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۶۲۸، رقم: ۴۴۸۹.

**د لغاتو حل**: المِيتخة: هي العصا الخفيفة (سپکه لښته).

## شرابي ته سزا ورکړئ مګر هغه ته ښېرا مه کوئ

﴿۳۴۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِرَجُلٍ قَدْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته يو سړی راوستل سو چي هغه

شَرِبَ الْخَمْرَ فَقَالَ اضْرِبُوهُ فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ وَالضَّارِبُ

شراب څښلي وه، رسول الله ﷺ حکم وکړ دی ووهئ نو په موږ کي ځينو هغه په لاسونو ووهئ، ځيني په جامو ووهئ او ځيني

بِنَعْلِهِ ثُمَّ قَالَ بَكِّتُوهُ فَأَقْبَلُوا عَلَيْهِ يَقُولُونَ مَا اتَّقَيْتَ اللَّهَ مَا خَشِيتَ اللَّهَ وَمَا

په څپلانو ووهئ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: ده ته زورونه او پيغور ورکړئ نو خلک د هغه په لور متوجه سول او ورته وه يې ويل ته د الله ﷻ څخه نه بيريدئ

اسْتَحْيَيْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ أَخْزَاكَ

د الله ﷻ د عذاب خيال نه درته راتلئ او د رسول الله ﷺ څخه دي هم شرم ونه کړ او ځينو خلکو ورته دا هم وويل

اللَّهُ قَالَ لَا تَقُولُوا هَكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ وَلَكِنْ قُولُوا اللَّهُمَّ اغْفِرْ لَهُ

اللَّهُمَّ ارْحَمْهُ. رواه ابوداؤد

الله ﷻ دي تا ذليل او رسوا کړي. (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: داسي مه واياست او شيطان ته په دې خبره سره مرسته مه کوئ بلکه داسي واياست اې الله دی و بخښې او پر ده رحم وکړې. ابوداؤد.

**تخريج** ابوداود في السنن ۴\۶۲۰، رقم: ۴۴۷۷.

**د لغاتو حل** بكتوه: وهو التوبيخ والتعبير باللسان.

**تشريح**. رسول الله ﷺ چي په ژبه سره د خبرداري ورکولو حکم ورکړ هغه د استحباب په توګه وو حال دا چي د رسول الله ﷺ اول حکم (چي هغه ووهئ) د وجوب په توګه وو .

پر ده باندي د شيطان د غالب کېدو مرسته مه کوئ : ددې مطلب دادی چي په بنېرا کولو سره د شيطان مرسته مه کوئ ځکه چي الله تعالی هغه ذليل او خورا کړي نو شيطان به پر مسلط سي يا هغه چي ستاسو څخه دغه بنېرا واوري نو د الله تعالی د رحمت څخه به نا اميده سي او دغه نااميدي به هغه په ګناهو کي اخته کړي همدارنګه به هغه د شيطان د غالب کېدو مقصد هم پوره سي او د هغه پر ګناهو همېشتوب او تکرار به د الله تعالی د غضب سبب هم سي نو په دې اعتبار سره به ستاسو بنېرا د شيطان په غولولو کي مرسته کونکې ثابته سي .

بلکه داسي وايا ست : ددې مطلب يا خو دادی چي د شروع څخه د هغه لپاره د مغفرت او رحمت دعاء کول پکار دي يا دا چي اوس د هغه لپاره دعاء او مغفرت او رحمت کوئ او صحيح خبره داده ، ځکه چي په شروع کي خو هغه ته پېغور ورکول مطلوب وو او ظاهره ده چي په دغه دعاء (اللهم اغفرله) سره د عاء کول يا هغه ته د تنبيه ورکولو هيڅ تعلق نه سي کېدای .

**د جرم د ثبوت پرته سزا نه سته**

﴿۳۴۵۷﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ شَرِبَ رَجُلٌ فَسَكِرَ فَلُقِيَ يَمِيلُ فِي الْفَجِّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي شراب وچښل او نشه سو ، او خلکو په لارکي په داسي حال کي وليدئ چي په ټالې وهلو سره تلئ خلکو هغه ونيوئ

فَانْطُلِقَ بِهِ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا حَاذَى دَارَ الْعَبَّاسِ انْفَلَتَ

او رسول الله ﷺ ته يې حاضر کړ کله چي د حضرت عباس رضي الله عنه د کور مخته ته ورسيدل نو هغه د خلکو د لاس څخه ځان خلاص کړ

فَدَخَلَ عَلَى الْعَبَّاسِ فَالْتَزَمَهُ فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَحِكَ وَقَالَ أَفَعَلَهَا وَلَمْ يَأْمُرْ فِيهِ بِشَيْءٍ . رواه ابوداؤد .

او د حضرت عباس رضي الله عنه سره جخت (يو ځای) سو (يعني د هغه څخه يې سفارش وغوښتئ) هر کله چي نبي کريم ﷺ ته د هغه يادونه وسول نو رسول الله ﷺ وخندل او وه يې فرمايل : ښه هغه داسي وکړل او د هغه په اړه يې څه ونه کړل . ابوداؤد .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۶۱۹، ۶۲۰، رقم: ۴۴۷۶

**د لغاتو حل**: الفج: اى الطريق الواسع بين الجبلتين. (د دوو غرونو په منځ کې لويه لار).

**تشريح**: رسول الله ﷺ نه خو پر هغه سړي د حد جاري کېدو حکم وکړ او نه يې هغه ته بله سزا ورکړل، د دې سبب دا وو چې د هغه شراب څښل نه خو د هغه د اقرار څخه ثابت سول او نه د عادلو شاهدانو په شاهدي سره ثابت سول، که هغه د رسول الله ﷺ په دربار کي په حاضرېدو سره د خپل شراب څښلو اقرار کړي وي نو ايا د شاهدانو په ذريعه د هغه د شراب څښلو جرم ثابت سوی وو نو يقينا به پر هغه حد جاري سوی وای او تر څو چې د هغه سړی په لاره کي د نشې په حالت کي پيدا کېدلو تعلق دی نو مسئله داده چې دشرعي قانون په نظر کي د يو سړی په محض تالی وهلو سره تلل د هغه د نشې د ثبوت لپاره کافي نه دي چې پر هغه حد جاري کول واجب سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### څوک چي په سزا ورکولو کي مړ سي د هغه ديت واجب نه دی

﴿۳۴۵۸﴾: عَنْ عُمَيْرِ بْنِ سَعِيدٍ النَّخَعِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ

د حضرت عمير بن سعيد نخعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د حضرت علي رضي الله عنه څخه دا اوريدلي

اللّٰهُ عَنْهُ يقول مَا كُنْتُ لِأُقِيمَ على حَدًّا أَحَدٍ فَيَمُوتَ فَأَجِدَ فِي نَفْسِي منه

دي هر کله چي زه پر يو سړي شرعي حد قائم کړم او هغه په هغه سزا کي مړ سي نو پر ما د هغه

شيئًا إِلَّا صَاحِبَ الْخَمْرِ فَإِنَّهُ لَوْ مَاتَ وَدَيْتُهُ وَذٰلِكَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَسُنَّهُ. متفق عليه.

هيڅ اثر نسته البته د شراب چېښلو سزا کي که هغه مړ سي نو د هغه به زه ديت ورکوم او دا له دې کبله چي نبي کريم ﷺ د شرابو چښونکي لپاره يوه خاصه سزا نه ده ټاکلې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۶۶، رقم: ۶۷۷۸، ومسلم ۳\۱۳۳۲، رقم: ۳۹ - ۱۷۰۷.

**تشريح**: حد يې نه دی ټاکلی: د دې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د شراب څښلو حد نه دی ټاکلی چي دو مره دُرې دي ووهل سي، که څه هم په ځينو حديثو کي څلوېښت يا د څلوېښت په ډول د عدد ذکر دی ځکه نو که چيري زه يو شرابي اتيا درې ووهم او هغه مړ سي نو زه بېرېږم چي

كيداى سي د غه ظلم ما ته منسوب سي په دې اعتبار سره به زه د هغه ديت ادا كوم او د حضرت علي رضي الله عنه دا خبره محض د احتياط په وجه وه . حالانكه حضرت عمر رضي الله عنه د شراب څښونكي د وهلو تعداد ټاكل وغوښتل او صحابه كرامو په دې باره كي مشوره وركړل ، نو خپله حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل چي شرابي اتيا دُرې وهل زما په نزد زيات ښه دي .

## د حضرت عمر رضي الله عنه له خوا د شراب څښونكي سزا

﴿۳۴۵۹﴾ : وَعَنْ ثَوْرِ بْنِ زَيْدٍ الدِّيلِيِّ أَنَّ عُمَرَ اسْتَشَارَ فِي حَدِّ الْخَمْرِ فَقَالَ لَهُ

د حضرت ثور بن زيد الديلمي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه د شرابو چښلو سزا په ټاكلو كي د صحابه كرامو څخه مشوره واخيستل ،

عَلِيٌّ أَرَى أَنْ تَجْلِدَهُ ثَمَانِينَ فَإِنَّهُ إِذَا شَرِبَ سَكِرَ وَإِذَا سَكِرَ هَذَى وَإِذَا هَذَى افْتَرَى فَجَلَدَ عُمَرُ فِي الْخَمْرِ ثَمَانِينَ . رواه مالك .

نو حضرت علي رضي الله عنه وويل زما په رايه كي اتيا دورې پكار دي ځكه چي كوم وخت سړى شراب وچښي نو مست سي او هر كله چي مست سي نو پوچ وايي او كله چي پوچ وايي نو بهتان لګوي ، حضرت عمر رضي الله عنه دا مشوره قبوله كړه او د شرابو چښلو سزا يې اتيا دورې و ټاكلې . مالك .

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۸۴۲، رقم: ۲.

**تشريح**. حضرت علي رضي الله عنه د خپل رايي په دليل كي يوه ډېره قوي خبره وفرمايل چي د شرابي پر عقل باندي اثر وسي او هغه د نشې په حالت كي هسي خبري كوي او پر يو چا باندي مخامخ الزام لګوي تر دې چي پر نيكو ، پرهيزګاره او پاك لمنو ښځو باندي هم د زنا تهمت لګوي ، په دې اعتبار سره د هغه نشه د قذف باعث كيږي او د قذف سزا اتيا درې وه نو پر قذف باندي په قياس كولو سره د شرابي سزا هم زياته دا كيداى سي ، حضرت علي رضي الله عنه دا خبره د اغلب په اعتبار سره وفرمايل چي زيات وخت شرابي د خپل نشې په حالت كي هسي خبري كوي او پر نورو الزام لګوي او د حكم انحصار پر اغلب باندي كيږي ځكه د هغه شرابي لپاره به دغه سزا وټاكل سي كه هغه د نشې په حالت كي هسي خبري كوي يا نه يې كوي او پر يو چا باندي الزام لګوي په هر حال حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت علي رضي الله عنه دغه رايه ومنل او د شراب څښلو سزا يې اتيا دُرې وټاكل چي ټولو صحابه كرامو اجماع او اتفاق پر وكړ .

# بَابُ مَا لاَ يُدْعٰى عَلَى الْمَحْدُوْدِ

## (په شرعي سزا ور کولو کي د ښيرا نه کولو بيان)

په دغه باب کي دا بيان کيږي که يو سړی يو داسي ګناه وکړي چي د هغه په جه پر هغه حد جاري کيږي او بيا پر هغه حد جاري سي نو د هغه په باره کي هيڅ ډول ښېرا نه کيږي لکه څرنګه چي يو سړی د يو شرابي په باره کي دغه ښېرا وکړه : (اخزاک الله) يعني الله تعالی دي تا ذليل او رسوا کړي، نو رسول الله ﷺ هغه منع کړ چي داسي مه وايه بلکه د هغه په حق کي د مغفرت او رحمت دعاء کوه .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### پر يو ګناه کار باندي لعنت ويل جائز نه دي

﴿٣٤٦٠﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ رَجُلًا اسْمُهُ عَبْدَ اللّٰهِ يُلَقَّبُ حِمَارًا كَانَ

د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ څخه روايت دئ : يو سړی چي نوم يې عبد الله او لقب يې حمار وو

يُضْحِكُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ جَلَدَهُ

هغه به رسول الله ﷺ په خپلو خبرو سره خندوی ، رسول الله ﷺ پر هغه د شرابو چېښلو په علت

فِي الشَّرَابِ فَأُتِيَ بِهِ يَوْمًا فَأَمَرَ بِهِ فَجُلِدَ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ اللَّهُمَّ الْعَنْهُ

کي (يو وار) حد قائم کړی وو بيا په بله يوه ورځ د شرابو چېښلو په علت کي راوستل سو او رسول الله ﷺ پر هغه د درو وهلو حکم ولګوئ ، يو سړي وويل اې الله! پر ده لعنت وکړې

مَا أَكْثَرَ مَا يُؤْتَى بِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْعَنُوهُ فَوَاللّٰهِ مَا عَلِمْتُ إِنَّهُ يُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ . رواه البخاري .

په څو څو واره دی د شرابو چېښلو په جرم کي راوستل کيږي، د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : پر ده لعنت مه کوئ په الله دي مي قسم وي زه پو هيږم چي دا سړی د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ سره مينه لري . بخاري .

**تخريج** البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۷۵، رقم: ۱۷۸۰.

**تشريح** د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د يو ګناه کار په خاص کولو سره پر هغه باندي لعنت ويل جائز نه دي او دا هم معلومه سوه چي د الله او د هغه د رسول مينه د قرب الهي سبب دی نو الله تعالی او د هغه د رسول سره مينه لرونکي باندي لعنت ويل په هيڅ حال کي جائز نه دي ځکه چي د لعنت معنی ده د الله تعالی د رحمت څخه ليري کول.

﴿۳۴۶۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ قَدْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته يو سړی راوستل سو چي هغه

شَرِبَ فقَالَ اضْرِبُوهُ فَمِنَّا الضَّارِبُ بِيَدِهِ وَالضَّارِبُ بِنَعْلِهِ وَالضَّارِبُ بِثَوْبِهِ

شراب څښلي وه، رسول الله ﷺ وفرمايل: دی ووهئ، په موږ کي ځينو هغه په لاسونو ووهئ ځينو په څپليو،

فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ أَخْزَاكَ اللَّهُ قَالَ لَا تَقُولُوا هَكَذَا لَا تُعِينُوا عَلَيْهِ الشَّيْطَانَ. رواه البخاري.

بيا چي هغه سړی ولاړی نو ځيني خلکو وويل الله دي تا ذليل او رسوا کړي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: داسي مه وايا ست شيطان پر ده مه غالب کوئ. بخاري.

**تخريج** البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱\٦٦، رقم: ٦٧٧٧.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### کوم مجرم چي سزا وخوري د هغه سپکتيا مه کوئ

﴿۳۴٦۲﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ الْأَسْلَمِيُّ إِلٰى نَبِيِّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ماعز اسلمي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَشَهِدَ عَلَى نَفْسِهِ أَنَّهُ أَصَابَ امْرَأَةً حَرَامًا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ يُعْرِضُ عَنْهُ

نو شاهدي يې وويل پر خپل ځان چي دی رسيدلی دی يوې ښځي ته په حرام سره او داسي يې

ځلور واره وویل، رسول الله ﷺ د هغه څخه مخ واړوئ

فَأَقْبَلَ فِي الْخَامِسَةِ فَقَالَ أَنِكْتَهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ حَتَّى غَابَ ذٰلِكَ مِنْكَ فِي ذٰلِكَ

مګر څه وخت چي هغه په پنځم وار اقرار وکړ نو رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه ایا تا د هغې ښځي سره جماع کړې ده ؟ هغه وویل چي هو ، بیا رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه تا د هغې سره داسي جماع وکړه چي هغه غائب سو (یعني ستا خاص اندام د هغې په خاص اندام کي داخل

مِنْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ كَمَا يَغِيبُ الْمِرْوَدُ فِي الْمُكْحُلَةِ وَالرِّشَاءُ فِي الْبِئْرِ قَالَ

سو) هغه عرض وکړ چي هو ، بیا رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه ایا ستا خاص اندام د هغې په خاص اندام کي غائب سو لکه څرنګه چي سلائي په رنجنونې کي غائب سي او رسۍ څاه ته

نَعَمْ قَالَ هَلْ تَدْرِي مَا الزِّنَا قَالَ نَعَمْ أَتَيْتُ مِنْهَا حَرَامًا مَا يَأْتِي الرَّجُلُ مِنْ

ولاړه سي ؟ هغه عرض وکړ چي هو ، بیا رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه چي تا ته معلومه ده چي زنا څه ته وايي ؟ هغه عرض وکړ چي هو ، زه د هغې ښځي سره داسي د حرامو مرتکب سوم

أَهْلِهِ حَلَالًا قَالَ فَمَا تُرِيدُ بِهٰذَا الْقَوْلِ قَالَ أُرِيدُ أَنْ تُطَهِّرَنِي فَأَمَرَ بِهِ فَرُجِمَ

څرنګه چي یو سړی د خپلي ښځي سره په حلاله طریقه کوروالي کوي، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ددې قول څخه ستا څه مطلب دئ ؟ هغه عرض وکړ زه غواړم چي تاسو ما (ددې ګناه څخه) پاک کړئ ، نو رسول الله ﷺ د هغه د سنګسارولو حکم وکړ ،

فَسَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِهِ يَقُولُ أَحَدُهُمَا لِصَاحِبِهِ

ددې وروسته رسول الله ﷺ په خپلو صحابوو کي د دوو خلکو څخه دا واوریدل چي په هغوی کي یوه دا وویل: دې سړي ته وګورئ

انْظُرْ إِلَى هٰذَا الَّذِي سَتَرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فَلَمْ تَدَعْهُ نَفْسُهُ حَتَّى رُجِمَ رَجْمَ الْكَلْبِ

چي الله دده پرده پوشي کړې وه خو ده خپل ځان پر کراره نه پرېښودئ، تر څو چي سنګسار کړل سو ، د سپي په ډول سنګسار یدل یې خوښ کړل ، د

فَسَكَتَ عَنْهُمَا ثُمَّ سَارَ سَاعَةً حَتَّى مَرَّ بِجِيفَةِ حِمَارٍ شَائِلٍ بِرِجْلِهِ فَقَالَ أَيْنَ

دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ پټه خوله سو، تر لږ وخت مزل وروسته رسول الله ﷺ د يوه مړه خره سره نژدې تيرېدى چې د هغه نس پړسيدلى وو، او پښې يې پورته نيولي وې هغه ته په كتلو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

فُلَانٌ وَفُلَانٌ فَقَالَا نَحْنُ ذَانِ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ انْزِلَا فَكُلَا مِنْ جِيفَةِ هٰذَا

فلانى او فلانى سړى چيرې دي؟ هغوئ عرض وكړ اې دالله رسوله! موږ حاضر يو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: وركښته سئ او ددغه مردار خره غوښه وخورئ،

الْحِمَارِ فَقَالَا يَا نَبِيَّ اللهِ مَنْ يَأْكُلُ مِنْ هٰذَا قَالَ فَمَا نِلْتُمَا مِنْ عِرْضِ أَخِيكُمَا

هغوى عرض وكړ اې دالله رسوله! ددې غوښه څوک خوړلاى سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: تاسو اوس اوس د خپل ورور بې عزتي كړې ده

آنِفًا أَشَدُّ مِنْ أَكْلٍ مِنْهُ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهُ الْآنَ لَفِي أَنْهَارِ الْجَنَّةِ يَنْغَمِسُ فِيهَا. رواه ابو داؤد.

هغه ددې خره د غوښې خوړلو څخه زياته بده خبره ده په هغه ذات دې مي قسم وي چې د چا په واک كې زما روح ده هغه (سنگسار سوى) اوس د جنت په ويالو كې غوټې وهي. ابو داؤد.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۵۸۰، رقم: ۴۴۲۸.

**د لغاتو حل**: المِروَد: اى الميل (خيره). الرشاء: اى الحبل (رسى). شائل: اى رافع: (لوړ).

﴿۳۴۶۳﴾: وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَصَابَ ذَنْبًا أُقِيمَ عَلَيْهِ حَدُّ ذٰلِكَ الذَّنْبِ فَهُوَ كَفَّارَتُهُ. رواه في شرح السنة

د حضرت خزيمة بن ثابت رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چې يوه گناه وكړه او هغه ته د هغې سزا وركړل سوه نو هغه سزا د هغه د گناهونو كفاره ده. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۰\۳۱۱، رقم: ۲۵۹۴.

## دنيوي سزا د اخرت پاکي ده

﴿٣٤٦٤﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَصَابَ حَدًّا فَعُجِّلَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي يوه داسي ګناه

عُقُوبَتَهُ فِي الدُّنْيَا فَاللَّهُ أَعْدَلُ مِنْ أَنْ يُثَنِّيَ عَلَى عَبْدِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الْآخِرَةِ

وکړي چي د هغې سزا ټاکلې ده او په دنيا کي هغه ته سزا ژر ورکړل سي نو هغه ته به په آخرت کي سزا نسي ورکول کيدلای ځکه چي الله تعالی عادل دئ هغه ته به دويم وار سزا نه ورکوي

وَمَنْ أَصَابَ حَدًّا فَسَتَرَهُ اللَّهُ عَلَيْهِ وَعَفَا عَنْهُ فَاللَّهُ أَكْرَمُ مِنْ أَنْ يَعُودَ فِى

او چا چي يوه ګناه وکړل او الله تعالی د هغه پر ګناه پرده واچول او معاف يې کړل نو الله تعالی زيات بخښونکی دئ په آخرت کي به هم هغه ته سزا ور نه کړي

شَيْءٍ قَدْ عَفَا عَنْهُ. رواه الترمذي و ابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب. هذا الباب خال عن الفصل الثالث

او معاف به يې کړي. ترمذي، ابن ماجة، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ. دا باب دريم فصل نه لري.

**تخريج**: الترمذي ١٧\٥ – ١٨، رقم: ٢٦٢٦، وابن ماجه في السنن ٨٦٨\٢، رقم: ٢٦٠٤.

**تشريح**: او الله تعالی د هغه ګناه پټه کړه ...الخ: ددې مطلب دادی چي هغه سړي په ندامت او شرمندګۍ سره د خپل ګناه څخه توبه وکړه او الله تعالی څخه د مغفرت او بخښني غوښتونکی سو تر دې چي الله تعالی د هغه د ګناه پرده وکړي او همدارنګه هغه يې په دنيا کي معاف کړي نو اوس د هغه شان څخه دا اميد دی چي په آخرت کي يې هم معاف کړي.

## د خپلي ګناه پرده کول تر ښکاره کولو غوره دي

د جمهورو علماؤ مذهب دادی که د يو بنده څخه ګناه وسي نو د هغه ښکاره کول يعني حاکم ته د خپل ګناه اقرار کول که څه هم د ايمان د پوخوالي، د هغه زړه او احساس د سلامتۍ او د هغه د الله تعالی څخه د بيري مظهر دی مګر د هغه په حق کي غوره داده چي هغه د خپلي ګناه په پټولو سره د خپل نفس پرده پټه کړي او د الله تعالی څخه مغفرت او بخښنه وغواړي.

## بَابُ التَّعْزِيْرِ (د سزا او تنبيه بيان)

لفظ د تعزير د عذر څخه دی چي لغوي معنی يې د منع کولو او ملامت کولو ده او د شريعت په اصطلاح کي د دغه لفظ استعمال د هغه سزا په مفهوم کي کيږي کوم چي د حد څخه د کمي درجې وي او د تنبيه او تاديب په توګه يو چا ته ورکول کيږي او دغه سزا ته تعزير په دې وجه وايي چي هغه سړی د دغه ګناه يا جرم د بيا کولو څخه منع سي چي د هغه په وجه هغه ته سزا ورکول کيږي.

**په حد او تعزير کي فرق**: په حد او تعزير کي فرق دا دی چي حد هغه خاص سزا ته وايي کوم چي د کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ څخه ثابت وي او ټاکلې هم وي حاکم يوازي د هغه د جاري کولو اختيار لري د هغه په جوړونه يا په هغه کي د يو ډول تبديلۍ حق نه لري، د دې پر خلاف تعزير هغه سزا ده چي کتاب الله او سنت رسول الله ﷺ ټاکلې نه وي بلکه د هغه ټاکل يې د حاکم پر رايه موقوف کړې وي او هغه د ځای او وخت د تقاضا او ضرورت سره سم چي کومه سزا غواړي ټاکي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د تعزير سزا

﴿٣٤٦٥﴾: عَنْ أَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ نِيَارٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَجْلَدُ فَوْقَ عَشْرِ جَلَدَاتٍ إِلَّا فِيْ حَدٍّ مِّنْ حُدُوْدِ اللهِ. متفق عليه.

د حضرت ابو برده بن نيار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (د يو ګناه په تنبيه کي) تر لس دورو زيات څوک مه وهئ مګر الله تعالی چي د ګناهو کوم حدونه ټاکلي دي په هغه کي زياتي دورې ورکول کيدلای سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١٢\ ١٧٥، رقم: ٦٨٤٨، ومسلم ٣\ ١٣٣٢، رقم: ٤٠-١٧٠٨.

**تشريح**: د دغه حديث څخه دا معلوميږي چي د تعزير په توګه تر لس دُرو وهلو څخه زياته سزا ورکول جائز نه دي مګر علماؤ ليکلي دي چي دا حديث منسوخ دی.

په دې باره کي د فقهاؤ اختلاف دی چي د تعزير په توګه زيات تر زيات د څومره دُرو وهلو

سزا ورکول کیدای سي، د امام اعظم ابو حنیفة او امام محمد رحمة الله علیهما قول دادی چي تر نهه دېرش څخه زیات باید نه وي او امام ابو یوسف رحمة الله علیه وایي چي تر پنځه اویا دُرو پوري ورکول کیدای سي البته د کم تعداد په باره کي پر درو دُرو باندي د ټولو اتفاق دی، همدارنګه پر دغه مسئله باندي هم د ټولو اتفاق دی چي په تعزیر کي کومي دُرې ورکول کیږي د هغو شمېر دي په حد کي د ورکړل سوو دُرو شمېر ته نه رسیږي مګر په سختۍ او شدت کي که چیري تر دې هم زیاتي سي نو پرواه نه لري.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### مجرم پر مخ باندي مه وهئ

﴿٣٤٦٦﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا ضَرَبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَّقِ الْوَجْهَ . رواه أبو داود

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي یو څوک وهل کوي نو پر مخ دي وهل نه کوي. ابو داؤد.

**تخریج**: ابو داود في السنن ٤\٦٣١، رقم: ٤٤٩٣.

**تشریح**: مطلب دادی که یو سړی ته د حد په توګه دُرې ورکول کیږي یا د تعزیر او تادیب په توګه وهل کیږي نو په هر صورت کي دا ضروري ده چي هغه دي پر مخ نه وهل کیږي.

### د بدزبانۍ سزا

﴿٣٤٦٧﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قَالَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي یو څوک یو

الرَّجُلُ لِلرَّجُلِ يَا يَهُودِيُّ فَاضْرِبُوهُ عِشْرِينَ وَإِذَا قَالَ يَا مُخَنَّثُ فَاضْرِبُوهُ

مسلمان ته ووایي اې یهودي، نو هغه شل دورې ووهئ او هر کله چي ورته ووایي اې نرکڼیه نو

عِشْرِينَ وَمَنْ وَقَعَ عَلَى ذَاتِ مَحْرَمٍ فَاقْتُلُوهُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

بيا يې هم شل دورې ووهئ او څوک چې د محرم ښځې سره زنا وکړي هغه ووژنئ. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج** الترمذي ۴\۵۱، رقم: ۱۴۶۲.

**تشريح** مخنث هغه چا ته وايي چې د هغه په اندامو او خبرو په انداز کي ښځيتوب وي او په حرکاتو او سکناتو کي د ښځو مشابه وي چې هغه ته نرښځی هم ويل کيږي.
که يو سړی پر يو غلام يا يو کافر باندي د زنا تهمت ولګوي نو هغه د تعزير په توګه سزا ورکول پکار دي همدارنګه هغه سړي ته دي هم تعزير ورکړل سي چې پر يو مسلمان باندي د زنا څخه پرته د يو بلي بدۍ تهمت ولګوي د مثال په توګه په دغه الفاظو سرهغه مخاطب کړي چې اې فاسقه! اې فاجره!، اې خبيثه!، اې غله!، اې منافقه!، اې بچه بازه!، اې يهودي!، اې د هلکانو سره بازۍ کونکې!، اې سودخوره!، اې ليونيه!، اې مخنثه!، اې خائنه!، اې د رنډۍ زويه، اې د بد کاري ښځي اولاده!، اې بړوا!، اې د زنا کارو او غلو مرسته کونکې!، او اې حرامزاده!،
مګر که چيري يو څوک يو مسلمان په دغه الفاظو سره مخاطب کړي نو هغه د تعزير وړ نه وي : اې خره!، اې سپيه!، اې بيزو!، اې پسه!، اې ګونګيه!، اې ماره!، اې غوايه!، اې ښرموښه!، اې حمامي!، اې د حمامي زويه!، اې ولد الحرامه!، اې ناکسه!، اې سرکښته!، اې مسخره!، اې مسخراچي!، اې دوکه بازه!، اې بې عقله!، اې وهمي!.
مګر په دې باره کي بايد دا واضحه وي چې علماء هغه چا ته تعزير ورکول خوښ کړي دي چې هغه د ذکرسوو الفاظو په ذريعه يو داسي سړی مخاطب کړی چې هغه شريف وي.
خاوند دا حق لري چې هغه خپلي ښځي ته تعزير ورکړي کله چې د هغه د ويلو سربېره د هغه په مخکي د ښکلا او زينت څخه پرهيز کوي يا خپل بسترې ته يې را وغواړي او هغه انکار وکړي يا لمونځ نه کوي يا د جنابت څخه غسل نه کوي يا د هغه د اجازې څخه پرته د هغه د کور څخه د باندي ووځي.
کوم څوک چې د محرمي ښځي سره زنا وکړي هغه ووژنئ : امام احمد رحمه الله د دغه ارشاد پر ظاهري مفهوم باندي عمل کړی دی حال دا چې د جمهورو علماؤ په نزد د دې ظاهري مفهوم مراد نه دی بلکه د دې تعلق يوازي د زجر او تهديد سره دی، ځينو حضراتو ويلي دي چې دغه ارشاد پر دې خبره محمول دی چې کوم سړی په حلال او معمولي ګڼلو سره د يو ښځي سره زنا وکړي نو هغه دي ووژل سي کنه نو د محرمي ښځي سره د زنا کولو هم هغه حکم دی کوم چې د

نورو ښځو سره د زنا کولو دی.

که چیري زنا کونکی محصن (واده سوی) وي نو هغه دي رجم کړل سي او که غیر محصن (ناواده) وي نو هغه دي په دُرو ووهل سي.

## د غنیمت په مال کي د خیانت کونکي سزا

﴿٣٤٦٨﴾: وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا وَجَدْتُمُ الرَّجُلَ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي تاسو یو څوک

قَدْ غَلَّ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَاحْرِقُوا مَتَاعَهُ وَاضْرِبُوهُ. رواه الترمذي وابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث غريب. هذا الباب خال عن الفصل الثالث

ووینئ چي د الله په لار کي یې (د غنیمت په مال کي) خیانت کړی دئ نو د هغه سامان وسوځئ او هغه قتل کړئ. ترمذي، ابوداؤد، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ.

**تخریج**: الترمذي ٤\١٤ ٥٠، رقم: ١٤٦١، وابوداود ٣\١٥٧، رقم: ٢٧١٣.

**تشریح**: د هغه مال او سامان وسوځئ: په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی، ځیني حضرات وایي چي کوم څوک د غنیمت د مال څخه یو شی پټ کړي نو د سزا په توګه د هغه مال او سامان سوځل جائز نه دي، هغوی وایي چي دغه حکم (د هغه مال او سامان وسوځئ) د اسلام په شروع کي جاري وو مګر وروسته منسوخ کړل سو، او یا دغه ارشاد په اصل کي پر تشدید او سختوالي باندي محمول دی، امام احمد رحمه الله د دغه حکم پر ظاهري معنی باندي په محمول کولو سره ویلي دي چي د هغه سړي ټول مال او سامان دي وسوځول سي مګر که چیري د هغه په سامان کي قرآن کریم، وسله او حیوانان هم وي نو هغه دي نه سوځل کیږي او د تعزیر په توګه دي هغه ووهل سي او دا خبره مخکي بیان سوې ده چي د غنیمت د مال څخه د غلا کونکي لاس نه پرې کیږي.

========

# بَابُ بَيَانِ الْخَمْرِ وَ وَعِيْدِ شَارِبِهَا

## ( د شرابو بيان او د شرابو څښلو د وعيد بيان )

په دغه باب کي د شرابو حقيقت بيانيږي چي خمر (شراب) څه ته وايي او بل دا هم بيانيږي چي د شراب څښونکي په باره کي د کومو شيانو خوف دی او د هغه په باره کي کومي سزاوي نقل سوي دي .

**خمر څه ته وايي** ؟ په قاموس کي ليکلي دي چي خمر هغه شي ته وايي چي د هغه په استعمال (څښلو) سره نشه او مستي پيدا کيږي او هغه د انګورو د شيرې په صورت کي وي يا د يو بل شي عرق ، جوشانده يا بل څه وي، صحيح خبره داده چي ددې عام مفهوم واخيستل سي يعني نشه راوستونکی شی که هغه د انګورو د شيرې څخه وي يا د بل شي شيره وي ځکه چي شراب په مدينه منوره کي حرام سوي دي او په هغه زمانه کي په مدينه منوره کي د انګورو شراب نه وه بلکه هغه به د خرماو څخه جوړېدل ، د خمر د تسميې وجه داده چي په لغت کي د خمر معنی ده پټول او شراب د انسان پر عقل باندي خپور سي او د هغه د فهم او شعور قوتونه پټ کړي ځکه نو دې ته خمر وويل سول .

**د نشه کوونکو شيانو ډولونه** : کوم شيان چي نشه پيدا کوي د هغو څو ډولونه دي ، يو ډول خو د شرابو دی چي د انګورو څخه جوړيږي چي د انګورو د عرق په ايستلو سره په يو لوښي سي اچول کيږي او څو ورځي وروسته هغه سم سي او په هغه کي ځګ پيدا سي او هغه نشه کونکي سي . د صحيح او مختار قول سره سم په هغه کي د ځګ پيدا کېدل شرط نه دي او دې ته په عربي کي خمر وايي .

دوهم ډول هغه دی چي د انګورو عرق ته د يو لږ جوش په ورکولو سره هغه کښېښودل سي دې ته په عربي کي باذق او په فارسي کي باده وايي او د انګورو هغه عرق چي هغه دومره پوخ سي چي د هغه څلورمه برخه په سوځېدو سره ولاړه سي او پر درې پر څلور برخه پاته سي چي هغه ته طلا وايي .

دريم ډول نقيع التمر دي چي هغه ته سکر هم وايي يعني د خرما هغه شربت چي تېنګ کړل سي او په هغه کي ځګ پيدا سي . څلورم ډول نقيع الزبيب دي يعني کشمشو هغه شربت چي په هغه کي جوش او ځګ پيدا سي .

په دغه څلورو ډولو کي اول ډول خو بېله قيده حرام دی او پاته درې ډولونه په هغه صورت کي په اتفاق سره حرام دي کله چي هغه ته په جوش ورکولو سره کنبېښودل سي او په هغه کي ټينګوالي پيدا سي ځکه چي په دغه صورت کي په دغه شيانو کي نشه پيدا کيږي مګر که چيري په هغه کي ذکر سوي شيان پيدا نه سي نو هغې ته به حرام نه واي د مثال په ډول د يو څه وخت لپاره په اوبو کي خرما خشته کړل سي تر دې چي هغه اوبه د شربتو په ډول سي او په هغه کي يو ډول تغير واقع نه سي نو د هغه څښل به صحيح وي .

ددې څخه ماسوا د څښلو څلور شيان نور دي چي د هغو څښل د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد حلال دي په شرط ددې چي هغه ته معمولي جوش ورکړل سوی وي چي په هغه کي نشه نه وي پيدا سوې او که چيري په هغه کي نشه پيدا سوې وي نو بيا دغه شيان هم حرام دي . همدارنګه که چيري هغه ته د جوش ورکولو څخه پرته د ډېر وخت لپاره کنبېښودل سي او په هغه کي ځګ پيدا سي نو بيا هغه د هغه څښل حرام دي .

په دغه څلورو شيانو کي يو ډول نبيذ دي يعني هغه مشروب چي د خرما څخه جوړ سوي وي او هغه ته لږ جوش ورکړل سوی وی که په هغه کي ټينګوالی راسي نو د هغه څښل جائز دي .

دريم ډول هغه نبيذ دي چي د شاتو ، غنمو ، وربشو ، جواريو او داسي نورو شيانو په اوبو کي د لږ جوش ورکولو په صورت کي جوړ سوي وي .

څلورم ډول مثلث يمني دي ، ددې صورت دادی چي د انګورو عرق دومره پاخه کړل سي چي د هغه دوې برخي وچي سي او يوه برخه د شرابو په شکل کي پاته سي .

ددغه څلورو شيانو په باره کي امام ابو حنيفة رحمه الله وايي که يو څوک دا شيان د عبادت لپاره د طاقت تر لاسه کولو په قصد وڅښي نو دا جائز دي او که د لهو او لعب په توګه او د جنسي قوت لپاره يې وڅښي نو حرام دي مګر د امام محمد رحمه الله په نزد د عبادت لپاره د طاقت تر لاسه کولو په غرض هم د هغه څښل حرام دي ، په حنفي مذهب کي د اهل تحقيق فتوا د امام محمد رحمه الله پر قول ده لکه څرنګه چي يمني د کنز په تشريح کي ليکلي دي چي د امام مالک ، امام شافعي ، امام احمد او په حنفيه کي د امام محمد رحمة الله عليهم قول دادی چي د کوم شي زياته برخه نشه کونکې وي او انسان مستوي نو د هغه لږ اندازه هم حرام دي که څه هم هغه هر ډول نشه وي ځکه چي د ابن ماجه او دار قطني د روايت مطابق رسول الله ﷺ فرمايلي دي کوم شی چي نشه راولي هغه شراب او ټول نشه کونکي شيان حرام دي نو په حنفي مذهب کي فتوا د امام محمد رحمه الله پر قول ده .

ددې څخه معلومه سوه چې هر نشه کونکې شی شراب دی او حرام دی که هغه د څښناک په صورت کي وي چې د انګورو، خرماوو یا نورو شیانو څخه جوړېږي او یا د غنمو، اوربشو، جوارېو څخه جوړېږي او که هغه د درختي عرق وي یا وانښه وي لکه بنګي او داسي نور، همدارنګه هغه په هره مقدار کي حرام دي که لږ وي یا ډېر وي، که یو څوک خپل ښځي ته د نشې په حالت کي طلاق ورکړي نو د مفتی به قول مطابق د هغه طلاق واقع کیږي که څه هم هغه د شرابو نشه یا د نبیذو او نورو شیانو.

لکه څرنګه چې مخکي وښوول سول چې د امام مالک، امام شافعي، امام احمد بن حنبل او په حنفیه کي د امام محمد رحمة الله علیهم مذهب دادی چې هر نشه کونکې شی حرام دی که هغه لږ وي یا ډېر وي او د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله په نزد هغه څښناک نجس، حرام او د شرابو په حکم کي دی چې په هغه کي جوش، تېنګوالی او ځګ پیدا سوی وي ددې څخه پرته نور شیان تر څو چې په هغه کي نشه نه وي حرام نه دي مګر د حنفي مذهب د احتیاط کونکو مصنفینو په نزد فتوا د امام محمد رحمه الله پر قول ده لکه څرنګه چې په نهایه، عیني، ذیلمي، درمختار، الاشباه والنظائر، فتاوی عالمګیري، فتاوی حمادیه او شرح مواهب الرحمن کي ذکر سوي دي. بلکه په شرح وهبانیه او داسي نورو کي د امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله قول هم د امام محمد رحمه الله د قول مطابق نقل سوی دی په دغه صورت کي دا مسئله د ټولو امامانو او مجتهدینو متفق کیږي، مولانا عبد العلي لکهنوي رحمه الله د یو سوال په جواب کي د تاړي او یو ډول خمیره ډوډۍ د حرمت په ظاهرولو سره پر دغه مسئله باندي تحقیق او وضاحت کړی دی او دېرش یا څلوېښت حنفي او شافعي علماؤ پر هغه باندي د خپل تصدیق مهرونه ثبت کړي دي.

په نشه کونکو شیانو کي یو ډول بنګي او تاریاک دي چې ددغه شیانو خوراک او څښناک هم حرام دی ځکه چې دغه شیان هم د انسان عقل تباه کوي او د الله تعالی د ذکر، لمانځه او نورو شیانو څخه یې منع کوي، علماؤ لیکلي دي چې کوم سړی بنګي او داسي نور شیان حلال ګڼي هغه زندیق او بدعتي دی بلکه فقیه نجم الدین زاهدي رحمه الله پر داسي سړي باندي د کفر حکم لګوي او د هغه قتلول یې مباح ګڼلي دي.

همدارنګه تمباکو هم حرام دي لکه څرنګه چې په درمختار کي لیکلي دي او شاه عبد العزیز محدث دهلوي رحمه الله د چیلم څکولو ته مکروه تحریمي ویلي دي ځکه چې د چیلم څکونکي د خولې څخه د پیازو او وږي په ډول بدبویي وي بلکه په دې کي یو ډول د دوږخیانو مشابهت هم دی لکه څرنګه چې د دوږخیانو د خولې څخه به دود ووځي همدارنګه د چیلم (او

سګريټ څکونکي) د خولې څخه هم دود راوځي ، ددې څخه پرته چيلم څکول يو داسي عادت دی چي يو سليم طبيعت يې مکروه ګڼي او په چيلم څکولو سره په بدن کي ډېره زياته سستي پيدا کيږي او پر ځينو کسانو باندي بې هوشي هم راځي او دا په مفتر کي داخل دی او د يوه روايت سره سم کوم چي امام احمد رحمه الله او نورو حضراتو نقل کړی دی چي کوم شی مفتر يعني سستي پيدا کونکی وي هغه حرام دی ، صاحب د صراح او صحاح د مفتر معنی د سستي پيدا کېدو ليکلې ده او امام ابوالقاسم حسين ابن محمد ابن مفضل راغب په خپل کتاب مفردات القرآن کي د فتر او فتور معنی دا ليکلې ده چي د تيزۍ څخه وروسته کمېدل ، دا معنی پر چيلم څکونکو باندي صادقيږي کومو خلکو چي دا ويلي دي چي د مفتر معنی د بدن ګرميدل هم دي نو دا شاذ معنی ده چي د اکثرو علماء لغت د تحقيق خلاف ده يا ددې څخه دننه ګرمي مراد ده ، په هر حال د چلم څکول د الله تعالی د رضا څخه ليري ده ځکه چي چيلم څکول د مسواک خلاف دی په دې وجه چي مسواک د خولې څخه بديويي پاکوي او چيلم خوله بدبويه کوي او د مسواک په باره کي دا حديث په صحاح کي منقول دی :

(السِّواك مطهرة للفَم ومرضَات للرَبّ)

ژباړه : مسواک د خولې د پاکوالي ذريعه او د الله تعالی د رضا سبب دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### شراب د څه شي څخه جوړيږي ؟

﴿٣٤٦٩﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ النَّخْلَةِ وَالْعِنَبَةِ . رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شراب دِدغه دوو درختو څخه جوړيږي يعني خرما او انګورو څخه . مسلم.

**تخريج** مسلم في الصحيح ٣\١٥٧٣، رقم: ١٣\١٩٨٥.

**تشريح** مراد دادی چي د دوو شيانو څخه شراب جوړيږي ، يعني دلته دا ظاهرول مراد نه دي چي شراب يوازي ددغه دوو شيانو څخه جوړيږي ځکه چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد دی (کل مسکر حرام) يعني هر نشه کونکی شی حرام دی ، په دغه ارشاد کي چي کوم عموميت دی د هغه

څخه هم دا واضحه کیږي.

﴿۳۴۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ خَطَبَ عُمَرُ عَلَى مِنْبَرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ قَدْ نَزَلَ تَحْرِيمُ الْخَمْرِ وَهِيَ مِنْ خَمْسَةِ أَشْيَاءَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالْعَسَلِ وَالْخَمْرُ مَا خَامَرَ الْعَقْلَ. رواه البخاري

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ پر منبر خطبه وویل او وه یې فرمایل: د شرابو حرامیدو حکم نازل سوی دئ او شراب د پنځو شیانو څخه جوړیږي: د انګورو څخه،

د خرماوو څخه، د غنمو څخه، د اوربشو څخه، او د شاتو څخه، او شراب هغه شی دئ چي پر عقل پرده خپروي (یعني عقل ګډ وډ کوي) بخاري

**تخریج** البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۰\۴۵، رقم: ۵۵۸۸.

**د لغاتو حل** خامر: ای ستره (پټ یې کړي).

**تشریح** علماؤ وضاحت کړی دی چي حضرت عمر رضی الله عنه د خپل دغه قول (او شراب هغه شی دی چي پر عقل باندي خپور سي) په ذریعه دې ته اشاره وکړه چي د شرابو انحصار پر دغه پنځو شیانو باندي نه دی بلکه د دې څخه پرته د نورو شیانو څخه هم جوړ سوی مشروب شراب دی چي په هغه کي نشه وي او د هغه په څښلو سره پر عقل او شعور باندي پرده لویږي.

## مخکي د خرماوو څخه شراب جوړېدل

﴿۳۴۷۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ لَقَدْ حُرِّمَتْ الْخَمْرُ حِينَ حُرِّمَتْ وَمَا نَجِدُ خَمْرَ الْأَعْنَابِ إِلَّا قَلِيلًا وَعَامَّةُ خَمْرِنَا الْبُسْرُ وَالتَّمْرُ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي شراب حرام سول نو د انګورو شراب به موږ ډېر کم تر لاسه کول زموږ شراب به اکثر د اومو او وچو خرماوو څخه وه. بخاري.

**تخریج** البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۰\۳۵، رقم: ۵۵۸۰.

**تشریح** د خرما په درخته کي اول غوټي شنې کیږي او دې ته په عربي کي طلع وایي او هغه د

خرماوو لو مړنی حالت وي بيا د هغه څخه وروسته خلال بيا بلغ بيا بسر بيا رطب او بيا د وچېدو څخه وروسته د هغه آخري شکل تمر دی .

## هر نشه کونکی شی حرام دئ

﴿۳۴۷۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الْبِتْعِ وَهُوَ نَبِيذُ الْعَسَلِ فَقَالَ كُلُّ شَرَابٍ أَسْكَرَ فَهُوَ حَرَامٌ . متفق عليه .

د حضرت عائشې ﵂ څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه د شاتو د شيرې حکم وپوښتل سو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د چښلو هر هغه شی چي نشه راولي حرام دئ . بخاري او مسلم .

**تخريج** البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\۴۱، رقم: ۵۵۸٦، ومسلم ۳\۱۵۸۵، رقم: ٦٧-۲۰۰۱.

**تشريح** په دغه حديث کي مبتع د باء په زبر او د تا په جزم سره نقل سوی دی حال دا چي په ځينو ځايو کي د تا په زور سره هم نقل سوی دی ، د عسلو نبيذ هغه عسلو ته وايي چي په يو لوښي کي په اچولو سره پرېښودل سي چي د خرماوو د نبيذ په ډول په هغه کي يو ډول تيزي پيدا سي ، په دې باره کي رسول الله ﷺ وفرمايل که د عسلو نبيذ نشه راولي نو هغه هم حرام دي او د خرما د نبيذو هم دا حکم دی ، ويل کيږي چي د اهل يمن شراب مبتع دی .

## څوک چي په دنيا کي شراب څښي هغه د شراب طهور څخه محروم دی

﴿۳۴۷۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ مُسْكِرٍ خمر و كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فِي الدُّنْيَا فَمَاتَ وَهُوَ يُدْمِنُهَا لَمْ يَتُبْ لَمْ يَشْرَبْهَا فِي الْآخِرَةِ . رواه مسلم

د حضرت ابن عمر ﵄ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر شی چي نشه راولي هغه شراب دي او هر نشه راوستونکی شی حرام دئ او کوم سړی چي په دنيا کي همېشه شراب څښي تر دې چي بې توبې مړ سي نو په آخرت کي به هغه ته د څښلو لپاره شراب نه ورکول کيږي . مسلم.

**تخريج** مسلم في الصحيح ۳\۱۵۸۷، رقم: ۷۳- ۲۰۰۳.

**تشريح** د هغه به په آخرت کي شراب څښل په برخه نه سي : د دې څخه مراد د هغه سړي حالت

بيانول دي چي د شرابو په حلال گڼلو سره همېشه يې څښښي او يا دغه ارشاد پر زجر او توبيخ او د شرابو څښلو پر سخت منع باندي محمول دی او يا دا مراد دی چي هغه سړي ته به په آخرت کي د هغه خلکو سره شراب طهور څښښل په برخه نه سي کوم چي په خلاصون تر لاسه کړي او په جنت کي تر مخه داخل سي.

## د شرابي په اړه وعيد

﴿٣٤٤٧﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَجُلًا قَدِمَ مِنَ الْيَمَنِ فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي يو سړی د يمن څخه راغلی او د رسول الله ﷺ څخه يې د

وَسَلَّمَ عَنْ شَرَابٍ يَشْرَبُونَهُ بِأَرْضِهِمْ مِنَ الذُّرَةِ يُقَالُ لَهُ الْمِزْرُ فَقَالَ النَّبِيُّ

هغه شرابو حکم و پوښتی چي د هغه په وطن کي چښښل کيدل دا شراب د جوارېو څخه جوړېدل او هغه ته مزر ويل کيدل، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَ مُسْكِرٌ هُوَ قَالَ نَعَمْ قَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ إِنَّ عَلَى

ايا هغه نشه راولي؟ هغه عرض وکړ چي هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هر هغه شی چي نشه

اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ عَهْدًا لِمَنْ يَشْرَبُ الْمُسْكِرَ أَنْ يَسْقِيَهُ مِنْ طِينَةِ الْخَبَالِ قَالُوا

راولي حرام دئ، او د الله تعالی عهد دئ څوک چي د نشې شی وچښښي نو په هغه به طينة الخبال وچښښل سي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه

يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا طِينَةُ الْخَبَالِ قَالَ عَرَقُ أَهْلِ النَّارِ أَوْ عُصَارَةُ أَهْلِ النَّارِ.

رواه مسلم.

اې د الله رسوله! طينة الخبال څه شی دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د دوږخيانو خوله يا د دوږخيانو نوونه. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الموضع السابق رقم: ٧٢-٢٠٠٢.

**تشريح**: د شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله د ترجمې څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي د دوږخيانو خوله يا د هغوی د زخمو څخه بهيدونکې وينه او نو د خبال معنی ده او د طينت معنی

ده لاندي خيري .

## د نبيذ په اړه يو حکم

﴿٣٤٧٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ خَلِيطِ التَّمْرِ والبسر وَعَنْ خَلِيطِ الزبيب والتمر وعن خليط الزَّهْوِ وَالرُّطَبِ وَقَالَ انْتَبِذُوا كُلَّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَتِهِ . رواه مسلم

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د اومو او وچو خرماوو يو ځاى کولو سره د نبيذ (شيرې) جوړولو څخه منع فرمايلې ده ، او وچ انګور او وچي خرماوي يو ځاى کولو سره نبيذ جوړولو څخه يې منع فرمايلې ده او وچه اومه خرماوو يو ځاى کولو سره د نبيذ جوړولو څخه يې منع کړې ده او فرمايلي يې دي چي په دې کي هر يو بيل بيل نستېږي . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ١٥٧٦\٣، رقم: ٢٦ – ١٩٨٨.

**د لغاتو حل**: خليط الزهو : اى البسر الملون.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د دوو ميوو يو ځاى کولو او خشتولو څخه منع فرمايلې ده او د جلا جلا خشتول يې جائز ګرځولي دي، په دې کي حکمت دادى چي کله دوه دوله مختلفي ميوې خشتې کړل سي نو پر هغه اوبه ژر اثر کوي ، کومه مېوه چي په اوبو سره ژر تغير قبول کړي په هغه کي نشه پيدا کيږي او د هغه اثر نورو ته هم رسيږي همدارنګه کوم نبيذ چي تياريږي په هغه کي د يو نشه کونکي شى ګډېدو قوي امکان وي چي د هغه امتياز کول ممکن نه وي نو کله چي هغه نبيذ وڅيښل سي نو د يو حرام شي څښل لازميږي، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهما په دې بنياد د دغه حديث په ظاهري معنى باندي عمل کړى دى او ويلي يې دي چي داسي نبيذ څيښل چي د دوو ميوو په خشتولو سره جوړيږي حرام دي که څه هم په هغه کي نشه وي يا نه وي مګر جمهور علماء وايي چي د داسي نبيذ څيښل به په هغه صورت کي حرام وي کله چي په هغه کي نشه وي .

## د شرابو څخه سرکه جوړول

﴿٣٤٧٦﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْخَمْرِ تُتَّخَذُ خَلًّا فَقَالَ لَا . رواه مسلم .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول که د شرابو څخه سورکه جوړه سي نو جائز دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : يا . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٣\١٥٧٣، رقم: ١١- ١٩٨٣.

**تشريح**: حنفيه حضرات وايي که شراب په سورکه تبديل کړل سي نو د هغه خوراک او په کار راوړل به جائز وي که څه هم په شرابو کي د يو شي په اچولو سره د هغه سورکه جوړه سوې وي يا په هغه کي د يو شي اچولو څخه پرته د مثال په توګه د زياتو ورځو ايښودو يا د لمر په ګرمۍ کي د ايښودو په وجه په خپله د هغه څخه سورکه جوړه سوې وي ، امام شافعي رحمه الله وايي که چيري په شرابو کي د يو شي په اچولو سره سورکه جوړه سوې وي نو هغه حلال نه دي او محض د هغه په وجه په هغه شرابو کي هيڅ کله هم پاکي نه راځي او په هغه کي د يو شي اچولو څخه پرته د مثال په توګه د لمر په ګرمۍ کي د ايښودو په وجه د هغه څخه سورکه جوړه سوې وي نو په دې باره کي د هغه دوه قوله دي چي په هغو کي زيات صحيح قول دا دی چي هغه شراب نه پاته کيږي بلکه په هغه کي پاکي راځي او د هغه خوراک او څښاک جائز دي .

د حنفيه حضراتو دليل دادی چي رسول الله ﷺ اول خو بېله يو قيده دا فرمايلي دي چي (نعم الادام الخل) يعني غوره کتغ سورکه ده، نو کوم شی چي سورکه وي د هغه استعمال به حلال وي ، دوهم دا چي کله د شرابو څخه هغه خراب خاصيت ووتی چي د هغه په وجه هغه حرام وو او په هغه کي ښه خاصيت پيدا سو اوس هغه د يو مباح شي په درجه کي سو چي د هغه خوړل او څښل حلال سول، او کوم چي ددغه حديث تعلق دی نو په دې باره کي د حنفيه حضراتو له خوا دا ويل کيږي چي رسول الله ﷺ دې ته حلال ځکه نه دي ويلي چي هغه وخت د شرابو د حرمت د نازلېدو لږ وخت سوی وو او خلکو د اوږده عادت په پرېښودو سره د شرابو څخه مخ ګرځولی وو او دا يو فطري خبره ده چي کله چي انسان يو شی د اوږده عادت څخه وروسته پرېږدي نو هغه شي ته د هغه خواهش تر ډېره وخته پوري وي نو رسول الله ﷺ هغه وخت د شيطان د مداخلت د بيري په محسوس کولو سره چي داسي نه شيطان لعين ته د خپل حربې ازمايلو موقع تر لاسه سي او د هغه په نتيجه کي خلک هغه شی د شرابو څښلو وسيله وګرځوي، رسول الله ﷺ هغه ته حلال ونه فرمايل مګر د شرابو پر حرمت د ډېر وخت تېرېدو او شرابو ته د خلکو د ميلان د شک او شبهې ايستلو څخه وروسته کله چي دا ډول بېره پاته نه سوه او هغه حکمت ختم سو چي د هغه په وجه هغه ته حلال نه ويل کېدل نو هغه حرمت زائل سو او

هغه سورکه د خوراک او څښښاک لپاره حلال وګرځول سوه کوم چي د شرابو څخه جوړه سوې وي ، ددې څخه پرته صاحب د هدايې يو روايت هم نقل کړی دی چي بيهقي په خپل کتاب (معرفت) کي د حضرت جابر ﷺ څخه مرفوع نقل کړی دی چي : خير خلکم خل خمرکم : ژباړه : ستاسو په سورکو کي غوره سورکه هغه ده کوم چي د شرابو څخه جوړه سوې وي .

**شراب د دواء په توګه استعمالول جائز نه دي**

﴿۳۴۷۷﴾: وَعَنْ وَائِلٍ الْحَضْرَمِيِّ أَنَّ طَارِقَ بْنَ سُوَيْدٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْخَمْرِ فَنَهَاهُ أَوْ كَرِهَ أَنْ يَصْنَعَهَا فَقَالَ إِنَّمَا أَصْنَعُهَا لِلدَّوَاءِ فَقَالَ إِنَّهُ لَيْسَ بِدَوَاءٍ وَلَكِنَّهُ دَاءٌ . رواه مسلم .

د حضرت وائل حضرمي ﷺ څخه روايت دئ چي طارق بن سويد ﷺ د رسول الله ﷺ څخه د شرابو په اړه پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ هغه ددې د جوړولو څخه منع کړ ، طارق وويل : موږ دا د دوا په توګه استعمالوو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :دا دواء نه بلکه ناروغي ده . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الموضع السابق، رقم: ١٢- ١٩٨٤.

**تشريح**: اکثرو علماؤ شراب د دواء په توګه استعمال څخه منع کړې ده حال دا چي ځيني علماء وايي که د يو حاذق ډاکټر او معالج په وينا شراب د يو ناروغۍ يوازينی علاج وي يعني علاج کونکی دا ووايي چي په دغه ناروغۍ کي يوازي شراب دواء ده بله دواء يې نه سته نو په دغه صورت کي د هغه استعمال مباح دی ، همدارنګه که په حلق کي ګوله يا بل شی بند سي او د هغه په وجه د ځان د هلاکت بېره وي او هغه وخت اوبه يا بل داسي شی نه وي چي په هغه سره ګوله تېره سي نو په دغه صورت کي د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا فيصله ده چي يوازي دومره شراب څښل حلال دي چي په هغه سره ګوله يا بل شی تر حلق تېر سي

**الله ﷻ په هيڅ حرام شي کي شفاء نه ده ايښې**

د مخکني باب په شروع کي ښوول سوي دي چي د شرابو حرمت د يو وار نازلېدو پر ځای په تدريجي توګه جاري سوی دی ، په دې باره کي چي اول آيت نازل سوی دی هغه هم په دغه وخت کي نقل سوی دی ، په دغه آيت کي دا هم فرمايل سوي دي چي (ومنافع للناس) يعني په دغه شرابو کي د خلکو لپاره څه ګټې هم سته، نو اوس هغه ګټې څه شي دي ؟ په دې باره کي مفسرينو ډېر څه ليکلي دي ، ځينو مفسرينو وضاحت کړی دی چي د ګټو څخه د انساني بدن

روغتيا او شفاء مراد نه ده بلکه انشاط طبع مراد دي چي د هغه اخري نتيجه د بدني مضراتو په صورت کي وي نو دا يقين کول بالکل عبث دی چي شراب د انسان بدن ته گټه رسولای سي يا ددې په ذريعه د يو ناروغۍ څخه خلاصون تر لاسه کيدای سي ، په دې باره کي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد هم په ذهن کي وساتئ چي : الله تعالى په هيڅ حرام شي کي شفاء نه ده ايښې .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شراب څښلو وبال

﴿٣٤٧٨﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي (يو وار)

شَرِبَ الْخَمْرَ لَمْ يَقْبَلْ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ

شراب وڅښي الله تعالى تر څلويښت ورځو پوري د هغه لمونځ نه قبلوي ، وروسته که چيري توبه وکاږي نو الله تعالى د هغه توبه قبلوي

فَإِنْ عَادَ لَمْ يَقْبَلْ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ فَإِنْ

بيا چي هغه دويم وار شراب وڅښي نو تر څلويښت ورځو پوري د هغه لمونځ نه قبليږي او چي کله توبه وکاږي نو د هغه توبه قبلوي، بيا چي

عَادَ لَمْ يَقْبَلْ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ تَابَ اللهُ عَلَيْهِ فَإِنْ عَادَ

په دريم وار شراب وڅښي نو څلويښت ورځو پوري د هغه لمونځ نه قبليږي چي توبه وباسي نو توبه يې قبليږي ،

الرَّابِعَةَ لَمْ يَقْبَلْ اللهُ لَهُ صَلَاةً أَرْبَعِينَ صَبَاحًا فَإِنْ تَابَ لَمْ يَتُبْ اللهُ عَلَيْهِ

بيا چي په څلورم وار شراب وڅښي نو تر څلويښت ورځو پوري د هغه لمونځ نه قبليږي او که توبه وکړي نو توبه يې نه قبليږي او په دوږخ کي به د نوو نو

وَسَقَاهُ مِنْ نَهْرِ الْخَبَالِ . رواه الترمذي و رواه النسائي وابن ماجة

والدارمي عن عبدالله بن عمرو .

د ويالې څخه ژړي اوبه ور وچيښل سي ،، ترمذي، نسائي ، ابن ماجه ، او دارمي دا حديث د عبدالله بن عمرو څخه روايت کړی دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۵۷، رقم: ۱۸۶۲.

**تشريح**: د هغه لمونځ نه قبلوي : ددې مطلب دادی چي هغه سړي ته د خپل لمانځه ثواب نه ورکول کيږي که څه هم د لمانځه د ادا کولو فرض د هغه څخه ساقط کيږي ، دلته په خاصه توګه د لمانځه ذکر کولو مقصد دا دی چي کله د لمانځه په ډول عبادت نه قبليږي چي په ټولو بدني عبادتو کي تر ټولو افضل دی نو نور عبادتونه په طريقه اولی نه قبليږي او د څلوېښتو ورځو شمېر کيدای سي ددې لپاره لګول سوی وي چي د شراب څښونکي په باطن کي د شرابو اثر په مختلفو نوعيتو سره تر دومره وخته پوري وي .

دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د رسول الله ﷺ دا فرمايل چي په څلورم وار توبه نه قبليږي دا په اصل کي د زجر او سختوالي پر تنبيه باندي محمول دی ځکه چي يو ځای فرمايل سوي دي چي کوم سړی د ګناه څخه توبه وکړي او پښيمانه سي او د الله تعالی څخه د بخښني اميد ولري نو هغه اصرار ونه کړي (يعني داسي سړي ته مصر نه ويل کيږئ او د هغه توبه قبليږي) که څه هم په يوه ورځ کي هغه ګناه اويا واره وکړي، او يا دا مراد دي چي کوم سړی په وار وار شراب څښني نو ددغه ام الخبائث د نحوست په وجه هغه ته د حقيقي توبې توفيق نه ورکول کيږي او په آخر کي پر هغه باندي اصرار کونکی مړ سي .

## د نشه کوونکي شي لږ مقدار هم حرام دی

﴿۳۴۷۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ . رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم شی چي په زيات استعمال سره نشه راولي د هغه په لږ اندازه استعمالول هم حرام دي . ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجة .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۵۸، رقم: ۱۸۶۵، وابوداود في السنن ۴\ ۸۷، رقم: ۳۶۸۱، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۱۲۵، رقم: ۳۳۹۳.

**تشريح**: مطلب دادئ چي د مثال په توګه د شرابو يو داسي ډول دی چي د هغه زياته اندازه نشه راولي او کم اندازه يې نشه نه راولي نو داسي نه ده چي د هغه لږ څيښل به جائز وي بلکه د هغه لږ اندازه به هم حرام وي ځکه چي د انسان فطرت دی چي مخکي يو شی په کمه اندازه کي اختياروي او بيا هغه کمه اندازه هغه زياتي اندازې ته رسوي نو د هغه کم څخه هم پرهيز کول ضروري دي.

﴿۳۴۸۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَسْكَرَ مِنْهُ الْفَرْقُ فَمِلْءُ الْكَفِّ مِنْهُ حَرَامٌ . رواه احمد والترمذي و ابوداؤد .

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم شی چي (په اندازه د ۱۶رطلو نشه راولي) نو د هغه يو ورغوی اندازه هم حرام دي . احمد، ترمذي، ابوداؤد .

**تخريج**: احمد في المسند ٦\ ١٣١، والترمذي في الموضع السابق ٤\ ٢٩٣، وابوداود في الموضع السابق ٤\ ٩١، رقم: ٣٦٨٧.

**د لغاتو حل**: الفرق: مکيال معروف بالمدينة وهو ستة عشر رطلا (شپاړس رطله).

**تشريح**: ددغه حديث شريف مطلب هم دادی چي کوم نشه کونکی شی په زياته اندازه کي حرام وي د هغه تر ټولو کمه اندازه هم حرام دي .

## شراب د څشي څخه جوړيږي

﴿۳۴۸۱﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ مِنَ الْحِنْطَةِ خَمْرًا وَمِنَ الشَّعِيرِ خَمْرًا وَمِنَ التَّمْرِ خَمْرًا وَمِنَ الزَّبِيبِ

د غنمو څخه هم شراب جوړيږي د اوربشو څخه هم شراب جوړيږي د خرماوو څخه هم شراب جوړيږي د انګورو څخه هم شراب جوړيږي

خَمْرًا وَمِنَ الْعَسَلِ خَمْرًا . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب.

او د شاتو ځخه هم شراب جوړيږي . ترمذي ، ابوداؤد، ابن ماجة، د ترمذي په قول دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۲۶۲، رقم: ۱۸۷۲، وابوداود في السنن ۴\۸۳، رقم: ۳۶۷۶، وابن ماجه في السنن ۲\۱۱۲۱، رقم: ۳۳۷۹.

**تشريح**: علماؤ ويلي دي چي دلته حصر مراد نه دی چي يوازي ددغه شيانو ځخه شراب جوړيږي بلکه ددغه شيانو په خاصه توګه ذکر ځکه سوی دی چي په عامه توګه سره ددغه شيانو ځخه شراب جوړيږي ، په دغه ارشاد کي دديږ دليل هم دی چي خمر يوازي د انګورو شرابو ته نه وايي حال دا چي ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي دلته د انګورو د شرابو ځخه ماسوا د نورو شيانو شرابو ته خمر مجازا ويل سوي دي او په ديږ کي مناسبت دادی چي ددغه شيانو شراب هم د انسان عقل زائل کوي .

## شراب مال متقوم نه دی

﴿۳۴۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ كَانَ عِنْدَنَا خَمْرٌ لِيَتِيمٍ فَلَمَّا نَزَلَتْ الْمَائِدَةُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْهُ وَقُلْتُ إِنَّهُ لِيَتِيمٍ فَقَالَ أَهْرِقُوهُ . رواه الترمذي .

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي زموږ سره د يو يتيم شراب وه ، کله چي سورة مائدة نازله سوه (چي په هغه کي د شرابو حرمت دئ) نو ما په ديږ په اړه د رسول الله صلى الله عليه وسلم ځخه پوښتنه وکړه او عرض مي وکړ چي دا د يتيم مال دئ ، رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم وکړ چي دا چپه کړئ . ترمذي .

**تخريج** سنن الترمذي ۳\۵۶۳، رقم: ۱۲۶۳.

**تشريح** رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل ارشاد په ذريعه دا واضحه کړل چي شراب متقوم مال نه دی نه يوازي دا چي دديږ ځخه يو ګټه تر لاسه کول د هيڅ مسلمان لپاره حلال نه دي بلکه موږ ته دديږ د سپکاوي حکم سوی دی نو په دغه صورت کي د شرابو تويول ضروري دي .

﴿۳۴۸۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي طَلْحَةَ أَنَّهُ قَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنِّي اشْتَرَيْتُ خَمْرًا

حضرت انس رضي الله عنه د ابو طلحة رضي الله عنه ځخه روايت کوي چي هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کي عرض وکړ چي اې د الله رسوله ! ما ددغه يتيمانو لپاره شراب په بيه اخيستي وه

لِأَيْتَامٍ فِي حِجْرِي قَالَ أَهْرِقْ الْخَمْرَ وَاكْسِرْ الدِّنَانَ. رواه الترمذي و ضعفه

د کومو چي زه پالنه کوم (په هغه شرابو څه وکړم) نو وه يې فرمايل چي شراب چپه کړه (توی يې کړه) او لوښي يې مات کړه، ترمذي،

و في رواية ابي داؤد اَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ اَيْتَامٍ وُرِثُوْا خَمْرًا قَالَ اَهْرِقْهَا قَالَ اَفَلاَ اَجْعَلُهَا خَلاًّ قَالَ لاَ.

او د ابوداؤد په روايت کي د االفاظ دي چي ابو طلحة عرض وکړ زما په پالنه کي د غه يتيمانو ته په ميراث کي شراب رسيدلي دي (په دغه څه وکړم) ورته وه يې فرمايل: چي توی يې کړه هغه بيا عرض وکړ چي سورکه ځيني جوړه کړم، نو وه يې فرمايل چي يا.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۵۸۸، رقم: ۱۲۹۳، وابوداود ۴\۸۲، رقم: ۳۶۷۵.

**د لغاتو حل**: الدنان: جمع دن، وهو ظرفها.

**تشريح**: ابو طلحه رضي الله عنه د شرابو د حرمت نازلېدو څخه مخکي د خپل روزني لاندي يتيمانو لپاره چي کوم شراب رانيولي وه د هغه په باره کي پوښتنه وکړه چي اوس خو شراب حرام سوي دي نو زه په دغه شرابو سره څه وکړم؟ ايا دا توی کړم که يې پرېږدم؟ رسول الله ﷺ حکم ورکړ چي هغه وبيوه، د هغه د لوښو ماتولو حکم يې ځکه ورکړ چي د شرابو نجاست په هغه کي اثر کړی وي او اوس د هغه پاکېدل مخکي نه وه پاته سوي يا دا چي رسول الله ﷺ د شرابو په منع کي د سختۍ ظاهرولو لپاره دا حکم ورکړ چي په کوم لوښي کي هغه شراب پراته وي هغه دي هم مات کړل سي، همدارنګه رسول الله ﷺ د هغه شرابو د سورکې جوړولو څخه هم منع وفرمايل چي د هغه تعلق يا خو د زجر او سختۍ لپاره دی او يا دا منع د نهي تنزيهي په توګه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### هر نشه کونکی شی حرام دی

﴿۳۴۸۴﴾: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ كُلِّ مُسْكِرٍ وَمُفَتِّرٍ. رواه ابو داؤد

د حضرت ام سلمة رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د هغه شي د استعمال څخه منع فرمايلې ده کوم چي نشه راولي او په بدن کي سستي پيدا کوي . ابوداؤد .

**تخريج:** سنن ابي داود ۴\۹۰، رقم: ۳۶۸۳.

**تشريح:** په نهايه کي ليکلي دي چي مفتر هغه شي ته وايي چي د هغه په څکولو سره په زړه او دماغ کي ګرمي پيدا سي او په هغه سره اعضاء رئيسه کي فتور يعني کمزوري پيدا سي ، افتراء الرجل : د يو سړي په باره کي هغه ويل کيږي کله چي د هغه بانو ګان او ورزي کمزوري سي . ددغه ارشاد څخه د خراساني سپيرکي ، بنګ او نورو داسي شيانو د حرمت استدلال کيږي .

## د شراب څښلو په هيڅ صورت کي اجازه نه سته

﴿۳۴۸۵﴾: وَعَنْ دَيْلَمِ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ قُلْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم

د حضرت ديلم حميري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې دالله رسوله !

يا رسول الله إِنَّا بِأَرْضٍ بَارِدَةٍ نُعَالِجُ فِيهَا عَمَلًا شَدِيدًا وَإِنَّا نَتَّخِذُ شَرَابًا مِنْ

موږ د يخ وطن اوسيدونکي يو او موږ د غنمو شراب جوړوو چي زموږ بدن ته توان رسوي ، په

هَذَا الْقَمْحِ نَتَقَوَّى بِهِ عَلَى أَعْمَالِنَا وَعَلَى بَرْدِ بِلَادِنَا قَالَ هَلْ يُسْكِرُ قُلْتُ نَعَمْ

سختو کارونو کي بدنونه قوي کوي او د وطن د يخنۍ څخه مو هم ژغوري ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا هغه نشه راولي ؟ ما عرض وکړ چي هو ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ فَاجْتَنِبُوهُ قَالَ قُلْتُ فَإِنَّ النَّاسَ غَيْرُ تَارِكِيهِ قَالَ ان لَم يتركوه

قَاتِلُوهُمْ . رواه ابوداؤد .

د هغه څخه ځان وژغوره ، ما وويل خلک يې نه پريږدي ، رسول الله ﷺ وفرمايل چي نه يې پريږدي نو جهاد ورسره وکړئ . ابوداؤد .

**تخريج:** سنن ابي داود ۴\۸۹، رقم: ۳۶۸۳.

## د شرابو او خمار ممانعت

﴿۳۴۸۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ

الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَالْكُوبَةِ وَالْغُبَيْرَاءِ وَقَالَ كُلُّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ . رواه ابوداؤد

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د شرابو څښلو او خمار کولو څخه منع فرمایلې ده او د نرد او سطرنج (یو ډول لوبي دي) او غبیرا (یو ډول شراب) څخه یې هم منع فرمایلې ده او فرمایلي یې دي چي هر نشه والا شی حرام دئ. ابوداؤد.

**تخریج:** سنن ابي داود ۴\۸۹، رقم: ۳۶۸۵.

**د لغاتو حل:** الکوبة: قیل النرد ، وقیل الطبل الصغیر (د نرد لوبه یا کوچنی ډول). الغُبیراء: ضرب من الشراب یتخذ من الذرة (یو ډول شراب).

**تشریح:** په قاموس کي لیکلي دي چي کوبه سطرنج ته وایي همدارنګه طبل یعني نغارې او ساز ته هم کوبه وایي دا ټول شیان منع دي ځکه دلته د کوبه څخه چي کوم شي مراد واخیستل سي صحیح دی ، غبیرا د یو ډول شرابو نوم دی چي د نخودو څخه جوړېږي او په عامه توګه سره حبشیانو یه جوړول.

## شرابي به جنت ته نه داخلیږي

﴿۳۴۸۷﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ عَاقٌّ وَّلاَ قَمَّارٌ وَّلاَ مَنَّانٌ وَّلاَ مُدْمِنُ خَمْرٍ . رواه الدارمي وفي رواية له ولا ولد زنية بدل قمار.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د مور او پلار عاق سوی، خمار کونکی، احسان اچونکی، او همیشه شراب څښونکی به جنت ته هیڅکله داخل نسي . دارمي. او د دارمي په یوه بل روایت کي د خمار پر ځای د ولد الزنا الفاظ دي.

**تخریج:** سنن الدارمي ۲\۱۵۳، رقم: ۲۰۹۴،

**تشریح:** د اوسني زمانې په اعتبار هره هغه بازي خمار د چي په هغه کي په عامه توګه شرط تړل کیږي چي ګټونکی به د بایلونکي څخه دومره روپۍ یا فلانی شی اخلي لکه تاش، سطرنج او داسي نور، او همدارنګه لاټرۍ هم د خمار په حکم کي داخله ده.

د طیبي رحمه الله د قول مطابق د منان یوه معنی هغه ده کوم چي د ترجمې څخه ظاهره ده یعني یو فقیر یا اړ کس ته د صدقې او خیرات په ورکولو سره پر هغه احسان اچول مګر دا احتمال هم

لري چي منان په اصل كي د من ځخه وي چي د هغه معنى د قطع كولو ده همدارنګه منان هغه سړي ته وايي چي د قرابت قطع كونكى وي.
دغه حديث چي (ولد الزنا به په جنت كي نه داخليږي) صحيح نه دى او موضوع ګرځول كيداى سي بلكه دا يو ضعيف روايت دى بيا هم كه چيري د هغه د صحيح كېدو احتمال وي نو په هغه صورت كي به تاويل او وضاحت دا وي چي كوم اولاد د زنا په نتيجه كي پيدا كيږي هغه د پلار د روزني او ځارني ځخه محروم وي او د مورد بدفعلى سايه پر هغه وي ځكه هغه په عامه توګه خراب سي او د ظاهري او باطني روزني نه ترلاسه كېدو په وجه په ډول ډول خرابيو او بدو اعمالو كي اخته كيږي او په پاى كي د الله تعالى په عذاب كي اخته سي ، ددې ځخه ماسوا ځرنګه چي په حرامو اسبابو د مثال په توګه په خمار او سود سره په ګټلي مال كي يو ډول نحوست وي همدارنګه په ولد الزنا كي هم يو ډول نحوست وي ځكه چي هغه د داسي نطفې ځخه په وجود راځي چي په حرام ځاى كي په حرامي ذريعې سره پيدا سوى وي يا داسي به وويل سي چي دغه ارشاد (ولد الزنا به په جنت كي نه داخليږي) دا په اصل كي پر زنا كونكي باندي د تعريض او سختۍ مقصد دى چي هغه د ولد الزنا د پيدا كېدو سبب ګرځي.
ددې ځخه پرته ځيني حضرات وايي چي دلته د ولد الزنا ځخه هغه سړى مراد دى چي هغه پر زنا باندي همېشتوب كوي او دا يې عادت وګرځي لكه زړه ورو خلكو ته د بنوالحرب ، يا مسلمانانو ته د بنوالاسلام په نامه ويل كيږي، خلاصه دا چي ددغه ارشاد مطلب دا نه دى چي ولد الزنا محض ددې په وجه چي هغه د زنا په نتيجه كي پيدا سوى دى د الله تعالى په عذاب كي اخته نه وي يا هغه به د جنت د سعادت ځخه محروم وي ځكه چي په كومي بدۍ سره هغه پيدا سوى دى په هغه كي دده هيڅ قصور نه سته.

## د شرابي په اړه يو وعيد

﴿۳۴۸۸﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ بَعَثَنِي

د حضرت ابو امامه ﷺ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى زه د خلكو لپاره

رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ وَهُدًى لِلْعَالَمِينَ وَأَمَرَنِي رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ بِمَحْقِ الْمَعَازِفِ

د رحمت او هدايت سبب راليږلى يم او د باجو، مزاميرو، بتانو، صليب او د جاهليت د ټولو

وَالْمَزَامِيرِ وَالْأَوْثَانِ وَالصُّلُبِ وَأَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ وَحَلَفَ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ بِعِزَّتِهِ لَا

خرابو رسمونو او طريقو د ورانولو حكم يې راكړى دئ او زما بزرګ او برتر الله قسم خوړلى دئ

يَشْرَبُ عَبْدٌ مِنْ عَبِيدِي جَرْعَةً مِنْ خَمْرٍ إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنَ الصَّدِيدِ مِثْلَهَا

چي زما په بندګانو كي كوم بنده د شرابو يو ځاځكي وڅښي زه به پر هغه د دوږخيانو د بدن نوونه وڅښم،

وَلَا يَتْرُكُهَا مِنْ مَخَافَتِي إِلَّا سَقَيْتُهُ مِنْ حِيَاضِ الْقُدُسِ. رواه احمد

او څوک چي زما د بيري شراب څښل پريږدي په هغه به د پاكو حوضو نو څخه (پاک شراب) وڅښم. احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ٥\٢٥٧.

**تشريح**: د باجو څخه ډول ، نغاره، رباب، فيانو او داسي نور د ساز او سروز سامان مراد دى ، همدارنګه د مزامير څخه پاچاهي ساز، تولۍ او داسي نور شيان مراد دي .

دغه حديث د باجې او مزامير پر حرام كېدو باندي دلالت كوي ځكه چي دغه شيان د پخوانۍ زمانې د فاسقانو او ګمراهانو خلكو د رواجو او عاداتو څخه دي .

فقهاؤ ليكلي دي چي راګ او غزلي د سروز سره حرام دي مګر محض په آواز سره ويل مكروه دي او د پرديو ښځو څخه اوريدل حرام دي .

د دار څخه مراد هغه صليبي نښان دى چي د عيسايانو په نزد يو مقدسه نښه او قومي او مذهبي نښه ده چي په دغه ┼ شكل كي وي يعني يو خط بل خط قطع كوي دا په اصل كي د هغه دار نښان دى چي پر هغه باندي د عيسايانو د عقيدې سره سم حضرت عيسى عليه السلام په دار سوى وو په دې مناسبت سره عيسايان دا نښه په مختلفو صورتو كي پر خپل بدن باندي زړوي بلكه پر ځان او تهولو شيانو باندي دغه نښه جوړوي ددې څخه د هغوى مقصد د بركت تر لاسه كول دي او د هغه واقعې غم او حسرت يادول هم دي كوم چي حضرت عيسى عليه السلام ته پيښ سوى وو ، نو رسول الله ﷺ ددغه نښې د نيست او نابود كولو حكم هم وكړ او مسلمانان يې په سختۍ سره منع كړل چي هغوى داسي هيڅ شى استعمال نه كړي چي پر هغه باندي دغه نښه وي او نه بايد پر خپل يو شي باندي داسي نښه جوړه كړي ځكه چي په دې سره د يو پردي قوم مشابهت كيږي چي په اسلام كي سخت حرام دي .

د جاهليت د زمانې د رواجو او عاداتو څخه مراد هغه شيان دي كوم چي بالكل باطل دي او

د اسلام د زمانې څخه مخکې ډېر رواج وه لکه نوحه (پر مړي باندې وېر کول) په خپل کورنۍ یا نسل باندې بې ځایه فخر کول او د نورو د نسب پیغور او طنز کول او داسې نور.

## د مور او پلار پر نافرمان او شرابي باندې د جنت دروازې بندې دي

﴿٣٤٨٩﴾: وَعَنِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثَةٌ قَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمُ الْجَنَّةَ مُدْمِنُ الْخَمْرِ وَالْعَاقُّ وَالدَّيُّوثُ الَّذِي يُقِرُّ فِي أَهْلِهِ الْخَبَثَ. رواه احمد والنسائي.

د حضرت ابن عمر ﵄ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: درې کسان دي چې پر هغوی الله تعالی جنت حرام کړی دئ: یو خو هغه سړی چې هغه همېشه شراب چښني، دویم هغه چې د مور او پلار نافرماني کوي، دریم: دووث چې د خپل کوروالا څخه د زنا کار اخلي. احمد او نسائي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ٢\٦٩، والنسائي ٥\٨٠-٨١، رقم: ٢٥٦٢.

**تشریح**: څوک چې په خپل کورنۍ کې ناپاکي پیدا کړي: ددې مطلب دادی چې کوم څوک خپل ښځه، مینزه یا یو بله قریبه د بدۍ پر لاره روانوي یعني هغوی د پردیو خلکو سره پر کوروالي کولو، مچه اخیستلو او په ناپردګۍ کې د اختلاط وغیره باندې مجبوره کوي یا هغوی ته دا موقع ورکوي او په دغه حکم کې نور توړ ګناهونه لکه شراب څیښل، د جنابت غسل نه کول او داسې نور هم شامل دي یعني هغه سړی خپل ښځه د شرابو پر څیښلو ویني یا هغه د جنابت څخه پر غسل نه کولو ویني یا په یو بله ګناه کې یې ویني او د هغه څخه یې منع نه کړي نو دا هم دوسي ده.

علامه طیبي ﷫ وایي چې دوس هغه بې غیرته سړي ته وایي چې خپله کورنۍ یعني خپل ښځه په یو بدۍ کې ویني مګر نه خو هغه ته ددې په وجه غیرت محسوس کیږي او نه یې د هغه بدۍ څخه منع کوي.

په مجمع البحرین کې لیکلي دي چې دوث ته کشخان او قرنان هم وایي مګر ځیني حضراتو د کشخان او قرنان په مفهوم کې لږ فرق پیدا کړی دی یعني دوس هغه دی چې پردي سړي ته خپل ښځه پرېږدي او کشخان هغه دی چې خپلو خویندو ته پردي خلک پرېږدي او قرنان هغه دی چې خپل لوڼو ته پردي سړي پرېږدي.

﴿۳۴۹۰﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْاَشْعَرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثَةٌ لَا تَدْخُلُ الْجَنَّةَ مُدْمِنُ الْخَمْرِ وَقَاطِعُ الرَّحِمِ وَمُصَدِّقٌ بِالسِّحْرِ . رواه احمد.

د حضرت ابو موسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي ، دري ډوله خلک به جنت ته نه ځي : همیشه شراب څښونکی، د قریبانو سره تعلق پرې کونکی او پر جادو باندي یقین او باور ساتونکی . احمد .

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۳۹۹.

**تشریح**: پر جادو باندي یقین کونکي: ددې څخه مراد هغه سړی دی چي جادو مؤثر بالذات کڼي ، په جادو باندي په دې معنی یقین کول صحیح دي چي هغه د الله تعالی مخلوق دی او د الله تعالی په حکم سره د هغه اثر واقع کیږي لکه څرنګه چي فرمایل سوي دي : (السحر حق) یعني جادو یو حقیقت دی .

## شراب څښل د بت پرستۍ مترادف دی

﴿۳۴۹۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُدْمِنُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي همیشه شراب

الْخَمْرِ إِنْ مَاتَ لَقِيَ اللّٰهَ تَعَالٰى كَعَابِدِ وَثَنٍ . رواه أحمد وروى ابن ماجه عن

څښونکی مړ سي نو الله تعالی به د هغه سره دا سي ملاقات کوي څرنګه چي د بت عبادت کونکي سره ملاقات کوي . احمد او ابن ماجة،

أبي هريرة والبيهقي في " شعب الإيمان " عن محمد بن عبيد الله عن أبيه . قال : ذكر البخاري في التاريخ عن محمد بن عبد الله عن أبيه .

ابن ماجه د ابوهریرة څخه او بیهقي په شعب الایمان کي د محمد بن عبد الله څخه او هغه د خپل پلار څخه ددې یادونه کړې ده بخاري په تاریخ کي د محمد بن عبید الله څخه د هغه د پلار په واسطه روایت کړی .

**تخریج** مسند الامام احمد ۱\۲۷۲. والبيهقي في شعب الايمان ۵\۱۲- ۱۳، رقم: ۵۵۸۷.

﴿۳۴۹۲﴾: وَعَنْ أَبِي مُوْسٰى أَنَّهُ كَانَ يَقُوْلُ مَا أُبَالِيْ شَرِبْتُ الْخَمْرَ أَوْ عَبَدْتُ هٰذِهِ السَّارِيَةَ دُوْنَ اللّٰهِ. رواه النسائي

حضرت ابو موسى رضی اللہ عنہ به ويل چي زه هيڅ كله ددې خيال هم نه كوم چي شراب وڅښم يا د الله تعالى څخه پرته ددې ستون (يا ميل) عبادت وكړم. نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ۸\ ۳۱۴، رقم: ۵٦٦۳.

**د لغاتو حل**: السارية: أي الأسطوانة (ستنه\ ميل).

**تشريح**: ددغه ارشاد څخه د حضرت ابوموسى رضی اللہ عنہ مقصد دا ظاهرول دي چي زما په نزد د شرابو څيښلو او بت پرستۍ دواړو يو حكم دى.

==========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَـــابُ الاَمَارَةِ وَالْقَضَاءِ

## (د امارت او قضاء بيان)

د امارت څخه مراد سرداري او حکمراني ده او د قضاء څخه مراد شرعي عدالت دی، د اسلامي حکومت د نظام دا دوې بنيادي ستني دي ، امير او امام (يعني د هيواد پاچا) د اسلامي قانون محافظ ، د حکومت د نظم او د امر بالمعروف او نهي عن المنکر ذمه دار ، د مذهب د ساتني او د ا سلامي امت د طاقت او قوت امين او د عامو امورو څارونکی وي، د اسلامي ټولني د افرادو تعلق چي د کومو امورو سره دی پر هغه ټول د امير او امام اختيار وي ، قاضي د اسلامي حکومت د مشرتابه په حيثيت د هيوادوالو د حقوقو محافظ وي او هغه د معاملاتو په فيصله کولو کي د شريعت له خوا د حکم حيثيت لري د هغه تر ټولو لويه ذمه داري دا وي چي هغه د خلکو فيصلې د شريعت سره سم وکړي او د هغه ټولو لويه فريضه دا وي چي په عدل، انصاف، امانت او ايمانداری تقاضا په هر حالت کي په نظر کي ولري.

## اسلام او حکومت

اسلام د نړۍ يوازينی مذهب دی او د دنيا تر ټولو لوی طاقت هم دی ، څرنګه چي اسلام د انسانيت عامه د ديني، مذهبي، اخلاقي او اخروي فلاح تر ټولو آخري او مکمل قانون دی همدارنګه هغه يو داسي نه فنا کېدونکی سياسي طاقت هم دی چي د انسانانو د عامي ګټي او عام نظم لپاره په حکومت او سياست سره خپل تعلق څرګندوي.

دا يو نه رد کېدونکی حقيقت دی چي اسلام يوازي يو مذهب نه دی بلکه د مذهب په حيثيت سره نور څه هم دی چي د حکومت، حاکميت، سياست او سلطنت سره يې تعلق دی کوم چي د دغه کائناتو د يو لوی حقيقت څخه دی دې ته محض يو داسي نظام نه سي ويل کيدای چي يوازي د باطن د اصلاح فرض سرته رسوي بلکه دا يو داسي ديني نظام هم دی چي د الله ﷻ د بيري او د الله ﷻ د پيژندګلوۍ د روحاني طاقت سره د دنيا پر مادي نظام باندي د عالمګير غلبې دعوه لري ، همدا وجه ده چي قرآن کريم د اسلامي تصوراتو او نظرياتو چينه ده او نبوي حديثونه چي د قرآني حديثو تشريح کونکي او ترجمه کونکي دي د هغه يوه لويه برخه اسلام او

د حکومت او سیاست تعلق ثابتوي ، چیري چي په تاریخي انداز کي، چیري چي د تعلیمات په اړخ کي او چیري چي د الهي نعمت په ظاهرولو سره پر موږ دا واضحه کیږي چي د اسلام او حکومت په مینځ کي تعلق نه سته بلکه د اسلام د بنیادي عقیدې او تصور مطابق دا ځکه د الله تعالی ملکیت دی او پر دغه ځکه باندي حکومت د الله تعالی حق دی ځکه د اسلام یو بنیادي مقصد دا هم دی چي پر دغه ځکه د الله تعالی حکومت قائم کړل سي او د هغه نازل کړی قانون جاري کړل سي .

په موږ کي چي کوم کمزوري خلک د مذهب او سیاست په مینځ کي د تفریق دیوال حائلوي او اسلام د سیاست او حکومت څخه بالکل بې تعلقه او بې واسطې کول غواړي هغوي په اصل کي د مسلم مخالف عناصرو د هغه چالاک او مکار فلان ښکار دي چي په خپله یې په حقیقي معنی کي تر ننه پوري حکومت د مذهب څخه ازاد نه کړلای سو مګر د مسلمانانو سیاسي پرواز او پر مختګ د کمزوري کولو لپاره د مذهب او سیاست د ځانګړو بحثونو په پیدا کولو سره د مسلمانانو د فکر او عمل په چینه کي د دین او دنیا د جلاوالي زهر پاشي .

په کتاب الامارة والقضاء کي چي کومه برخه شروع کیږي په هغه کي هغه حدیثونه نقل کیږي چي هغه د دغه دعوې واضح دلیلونه دي چي اسلام، حکومت او سیاست دوه مخالف او متضاد شیان نه دي ، په دغه حدیثو کي د امیر، خلیفه، قاضي، منصف، عوام، پاچا، فوځ او دهیواد د نظم او دا سي نورو شیانو سره متعلق چي کوم هدایت او احکام بیانیږي د هغو څخه دا واضحه کیږي چي حکومت او سیاست هم د اسلام یوه موضوع ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د امیر اطاعت د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ اطاعت دی

﴿۳۴۹۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَطَاعَنِي

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي زما اطاعت وکړ

فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَمَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَمَنْ يُطِعْ الْأَمِيرَ فَقَدْ أَطَاعَنِي

هغه د الله ﷻ اطاعت وکړ او چا چي زما نافرماني وکړه هغه د الله ﷻ نافرماني وکړه او چا چي د امیر اطاعت وکړ هغه زما اطاعت وکړ

وَمَنْ يَعْصِ الْأَمِيرَ فَقَدْ عَصَانِي وَإِنَّمَا الْإِمَامُ جُنَّةٌ يُقَاتَلُ مِنْ وَرَائِهِ وَيُتَّقَى بِهِ

او چا چي د امير نافرماني وکړه هغه زما نافرماني وکړه، او څرګند دي وي چي امام د سپر په ډول دئ چي د هغه شا ته جګړه کيږي (يعني د هغه تر قومندي لاندي د دښمن سره جګړه کيږي) او د هغه په نګراني کي امن عافيت تر لاسه کيږي، نو

فَإِنْ أَمَرَ بِتَقْوَى اللهِ وَعَدَلَ فَإِنَّ لَهُ بِذَلِكَ أَجْرًا وَإِنْ قَالَ بِغَيْرِهِ فَإِنَّ عَلَيْهِ مِنْهُ. متفق عليه.

کوم حاکم چي د الله جلاله د بيري سره د هغه د حکم سره سم حکمراني کوي او د انصاف څخه کار اخلي هغه ته به پر دې اجر تر لاسه کيږي او که داسي ونه کړي نو د هغه ګناه به د هغه پر سر وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١٦\٦، رقم: ٢٩٥٧، ومسلم ١٤٦٦\٣، رقم: ٣٣ - ١٨٣٥.

**تشريح**: د امام د سپر سره د تشبيه وجه داده چي څرنګه سپر په جګړه کي د دښمن د غشي او توري څخه ساتنه کوي همدا رنګه د امام وجود د مسلمانانو د دښمن د حملو او د هغوی د آفاتو او مصيبتو څخه د ساتني باعث وي.

## د امير اطاعت ضروري دی

﴿٣٤٩٤﴾: وَعَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنْ أُمِّرَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ مُّجَدَّعٌ يَقُودُكُمْ بِكِتَابِ اللهِ فَاسْمَعُوا لَهُ وَأَطِيعُوا. رواه مسلم

د حضرت ام حصين رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که پر تاسو باندي يو پز پريکړی غلام حاکم جوړ کړل سي او هغه پر تاسو د کتاب الله سره سم حکمراني کوي نو د هغه اطاعت کوئ او حکم يې منئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ٩٤٤\٢، رقم: ٣١١ - ١٢٩٨.

**د لغاتو حل**: مُجدع: ای مقطوع الانف والاذن. (هغه چي غوږ او پزه يې پرې وي).

**تشريح**: د دغه ارشاد مقصد د د اولو الامر د اطاعت او فرمانبرداری اهميت څرګندول دي او د دغه اهميت د زيات واضح کولو لپاره د غلام ذکر سوی دی لکه څرنګه چي يو وار رسول الله

ﷺ وفرمايل : كوم څوک چي مسجد جوړ کړي که څه هم هغه د چړگي د کوډلي په ډول وي ...الخ، ظاهره ده چي مسجد د چړگي د کوډلي په ډول هيڅکله نه سي کيدای بلکه ددغه ارشاد مقصد د مسجد د جوړولو ارزښت او د هغه زيات فضيلت بيانول دي ، همدارنگه دلته د غلام په ذکر کولو سره مبالغه کول مقصد دي يا دا مراد دی که هغه غلام د پاچا يا خليفه نائب وي يا هغه د يو خاص سيمي حاكم جوړ سوی وي ، ددغه تاويل بنياد دادی چي د غلام امير او امام کول جائز نه دي .

واضحه دي وي چي په دغه ټولو حديثو کي هم دا تاويل کيږي چي په هغه کي د غلام د امارت او مشرتوب ذکر دی .

پزه پرې کړي او غوږ پرې کړي : ددې مقصد هم د تاكيد لپاره استعمال سوی دی او ددې څخه مراد حقير غلام دی ، خلاصه دا چي پر مسلمانانو باندي لازم دي چي هغوی د خپل امير او امام اطاعت وکړي او د هغه د منصب ، امارت او امامت پوره عزت او توقير وکړي که څه هم هغه امير په خپل ذاتي حيثيت سره د هر څومره کمي درجې وي .

﴿۳۴۹۵﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا وَإِنِ اسْتُعْمِلَ عَلَيْكُمْ عَبْدٌ حَبَشِيٌّ كَأَنَّ رَأْسَهُ زَبِيبَةٌ . رواه البخاري .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د حاكم حكم اورئ او اطاعت يې کوئ که څه هم ستاسو حاكم يو حبشي غلام جوړ کړل سي چي د هغه د انگور په ډول کوچنی سر وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۲۱، رقم: ۷۱۴۱.

## د غير شرعي حكم اطاعت واجب نه دی

﴿۳۴۹۶﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّمْعُ وَالطَّاعَةُ عَلَى الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ فِيْمَا اَحَبَّ وَكَرِهَ مَا لَمْ يُؤْمَرْ بِمَعْصِيَةٍ فَإِذَا أُمِرَ بِمَعْصِيَةٍ فَلَا سَمْعَ وَلَا طَاعَةَ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د حاكم حكم اوريدل او

اطاعت يې كول پر هر مسلمان فرض دي كه څه هم هغه حاكم يې خوښ وي يا ناخوښه ، تر څو پوري چي حاكم د يو ګناه حكم ورنه كړي او هر كله چي د يو ګناه حكم وركړي نو نه يې اوريدل سته او نه يې منل. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۲۱، رقم: ۷۱۴۱، ومسلم ۳\۱۴۶۹، رقم: ۳۸– ۱۸۴۰.

**تشريح**: د امير او حاكم خبره اوريدل او د هغه د احكامو او فرمانو اطاعت كول پر هر مسلمان باندي واجب دي كه څه هم د هغه حكم او فرمان د طبيعت او خوښي موافق وي يا موافق نه وي مګر شرط دادى چي د هغه حكم د شريعت د حدودو څخه متجاوز نه وي ، كه چيري حاكم او امير يو داسي حكم جاري كړي چي په هغه باندي په عمل كولو سره ګناه لازميږي نو د هغه اطاعت او پيروي واجب نه ده مګر په دغه صورت كي هم د امير او حاكم پر خلاف بغاوت كول يا د هغه سره جنګ كول جائز نه دي .

﴿۳۴۹۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا طَاعَةَ فِي مَعْصِيَةٍ إِنَّمَا الطَّاعَةُ فِي الْمَعْرُوفِ . متفق عليه

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د يو ګناه په كار كي د چا اطاعت واجب نه دئ ، اطاعت يوازي په نيكو كارونو كي واجب دئ . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۲۳۳، رقم: ۷۲۵۷، ومسلم ۳\۱۴۶۹، رقم: ۳۹– ۱۸۴۰.

## د اطاعت عهد

﴿۳۴۹۸﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ بَايَعْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ پر لاس بيعت وكړ او

عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ فِي الْعُسْرِ وَالْيُسْرِ وَالْمَنْشَطِ وَالْمَكْرَهِ وَعَلٰي أَثَرَةٍ عَلَيْنَا

موږ پر دې خبره عهد وكړ چي پر موږ چا ته ترجيح وركړل سي نو موږ به صبر كوو او پر دې خبره

وَعَلٰى أَنْ لَا نُنَازِعَ الْأَمْرَ أَهْلَهُ وَعَلٰي اَنْ نَقُوْلَ بِالْحَقِّ اَيْنَمَا كُنَّا لَا نَخَافُ فِي

مو عهد وكړ چي موږ به حكومت د وړ كس د لاسو څخه په زوره نه اخلو ، او پر دې خبره مو عهد

وکړ چي موږ به حقه خبره کوو په هر ځای کي چي یو د الله ﷻ په حق کي به د ملامت کس څخه نه

اللهِ لَوْمَةَ لائِمٍ وفي رواية عَلَى اَنْ لاَّ نُنَازِعَ الْاَمْرَ اَهْلَهُ إِلَّا أَنْ تَرَوْا كُفْرًا بَوَاحًا عِنْدَكُمْ مِنَ اللهِ فِيهِ بُرْهَانٌ. متفق عليه

بیریږو، او په یوه روایت کي د االفاظ دي چي موږ پر دې خبره عهد وکړ چي موږ به امر (یعني حکومت) د وړ خلکو د لاسو څخه نه کاږو پر ته ددې څخه چي ځرګند کفر ووینو او د الله ﷻ د لوري څخه ستاسو سره د هغه ټینګ دلیل وي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۵، رقم: ۷۰۵۵، ومسلم ۳\۱۴۷۰، رقم: ۴۲- ۱۷۰۹

**تشریح**: پر موږ ترجیح ورکړل سي: ددې مطلب دادی چي موږ انصارو دا عهد وکړ چي پر موږ باندي چا ته ترجیح ورکړل سي نو موږ به دصبر او تحمل لمن د لاس څخه نه ایله کوو او په یو روایت کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ انصارو ته فرمایلي وه چي زما څخه وروسته به ستاسو سره ترجیحي چلن کیږي یعني د بخښني، انعام او منصب د ویش په وخت به پر تاسو نورو خلکو ته ترجیح ورکړل سي نو پر داسي موقع باندي تاسو خلک صبر کوئ، د رسول الله ﷺ وړاند وینه ثابته سوه چي د خلفاء راشدینو د زمانې څخه وروسته کله چي د امیرانو حکومت شروع سو نو د انصارو سره ترجیحي چلن وکړل سو او انصارو د رسول الله ﷺ د ارشاد په عملي کولو کي او د خپل اقرار د ساتني لپاره د هغه ترجیحي چلن خلاف د شکایت پر ځای د صبر او تحمل لار اختیار کړل.

موږ به امر د هغه ځای څخه نه وباسو: ددې مطلب دادی چي موږ د امارت او حکومت غوښتنه او خواهش نه کوو پر موږ چي کوم څوک امیر او حاکم سي موږ به هغه نه معزول کوو او د خپل امیر او حاکم خلاف شور او بغاوت به نه کوو.

د روایت د آخري الفاظو مطلب دادی چي د امیر او حاکم په قول او فعل کي که چیري ځرګند کفر ووینئ نو د هغه د معزول کولو اجازه ده.

## فسق او فجور د منصب د برطرفۍ بنیاد کیدای سي که یا؟

ددغه ارشاد څخه دا معلومه سوه چي د هیواد د پاچا په هغه صورت کي د معزول (برطرفه) کولو اجازه ده کله چي هغه د ښکاره کفر مرتکب سي او د هغه کفر د قرآن او حدیث په رڼا کي په دومره واضحه توګه ثابت سي چي د هغه امام لپاره د هغه کفر یو تاویل کول هم ممکن نه وي، د

مام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د امام د معزول كولو بنياد يوازي د هغه كفر كيداى سي د هغه فسق او فجور د هغه د عزل سبب نه سي كيداى حال دا چي امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي كه امام په فسق او فجور كي اخته سي نو هغه معزول كيداى سي دا مسئله د قاضي او امير هم ده.
څرګنده دي وي چي په دغه مسئله كي د امامانو د اختلاف بنياد دادى چي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد فاسق سړى ددې اهل نه دى چي هغه ته د ولايت ذمه داري وسپارل سي حال دا چي امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه وايي چي فاسق ته د ولايت حق حاصل دى د ده په نزد د فاسق پلار لپاره د خپل نابالغي انجلۍ په نكاح وركول جائز دي.

## فرمانبرداري د توان سره سم

﴿۳۴۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا إِذَا بَايَعْنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى السَّمْعِ وَالطَّاعَةِ يَقُولُ لَنَا فِيمَا اسْتَطَعْتُمْ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره بيعت وكړ يعني ددې عهد مو وكړ چي د رسول الله ﷺ احكام به موږ اورو او اطاعت به يې كوو، او رسول الله ﷺ ددې په جواب كي دا وفرمايل په هغه شي كي چي د هغه په تاسو كي توان وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۹۳، رقم: ۷۲۰۲، ومسلم ۳\۱۴۹۰، رقم: ۹۰– ۱۸۶۷.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د خپل ذكر سوي ارشاد په ذريعه صحابه كرامو ته اساني وركړه چي تاسو څومره فرمانبرداري كولاى سئ هغومره يې وكړي، او يا دغه ارشاد ددغه خبري د تاكيد او سختۍ لپاره وو چي تاسو څومره فرمانبرداري كولاى سئ په هغه كي يو ذول كوتاهي كول نه دي پكار.

## د ټولني په اجتماعيت كي پر خنډ كېدو باندي وعيد

﴿۳۵۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَأَى مِنْ أَمِيرِهِ شَيْئًا فَكَرِهَهُ فَلْيَصْبِرْ فَإِنَّهُ لَيْسَ أَحَدٌ يُفَارِقُ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَيَمُوتُ إِلَّا مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي چي څوك د

خپل حاکم د لوري داسي خبره ويني چي پر هغه ښه نه لګيږي نو صبر دي وکړي ځکه چي څوک د ډلي څخه يوه لوېښت بيل سو او په دې حال کي مړ سو نو د هغه مرګ به د جاهليت مرګ وي.

بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۲۱، رقم: ۷۱۴۳، ومسلم ۳\۱۴۷۷، رقم: ۵۵-۱۸۴۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د امام او امير د اطاعت او فرمانبرداری څخه خپل ځان ازاد کړي او د مسلمانانو ډله اختيار نه کړي او د ټولو مسلمانانو د اجتماع او اتحاد پر خلاف ملا وتړي او بيا په هغه حالت کي مړ سي نو هغه د جاهليت د زمانې د خلکو په مرګ مړ سو، ددغه مشابهت بنياد دادی چي د جاهليت د زمانې خلک د دين څخه وتلی وه ځکه هغوی به نه د خپل امير او مشر اطاعت کوی او نه به يې د خپل امام هدايات منل بلکه هغوی به د هغه څخه په ښکاره د بيزارۍ اظهار کوی، همدارنګه د هغوی په نزد د ملي يووالي او اجتماعي تنظيم هيڅ بندوبست نه وو ځکه هغوی نه پر يو شي باندي اجماع او اتحاد کوی او نه پر يوه لاره باندي متفق کېدل.

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي په اسلام کي د ملي اتحاد او د مسلمانانو پر ټينګ اجتماعي تنظيم باندي پوره باور او د هغه فرمانبرداري کول او په ملي چارو کي د اتفاق او اتحاد لوی اهميت دی بلکه دغه شيان د دين مطلوب دي او د دين د لوړی بنيادي عناصر دي.

### د تعصب خلاف تنبيه

﴿۳۵۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي

مَنْ خَرَجَ مِنَ الطَّاعَةِ وَفَارَقَ الْجَمَاعَةَ فَمَاتَ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً وَمَنْ قَاتَلَ

څوک د امام (خليفه) د اطاعت څخه ووتئ او د اسلام د ډلي څخه بيل سو او په دغه حال کي مړ سو نو د هغه مرګ به د جاهليت د مرګ په ډول وي او څوک چي

تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ يَغْضَبُ لِعَصَبَةٍ أَوْ يَدْعُو إِلَى عَصَبَةٍ أَوْ يَنْصُرُ عَصَبَةً فَقُتِلَ

د يو داسي بيرغ لاندي وجنګيدئ چي د هغه حق او باطل کېدل څرګند نه وي او د تعصب څخه غضبناک سو او د يو تعصب په مرسته يې خلک ځان ته راوبلل او په دې حال کي مړ سو

فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ وَمَنْ خَرَجَ عَلَى أُمَّتِي بسيفه يَضْرِبُ بَرَّهَا وَفَاجِرَهَا وَلَا

نو د جاهلیت په مرګ مړ سو ، او څوک چي زما د امت خلاف توره واخلي ودریږي او د امت ښه او بد خلک يې ووژل او نه يې

يَتَحَاشَى مِنْ مُؤْمِنِهَا وَلَا يَفِي لِذِي عَهْدٍ عَهْدَهُ فَلَيْسَ مِنِّي وَلَسْتُ مِنْهُ .

رواه مسلم

د مؤمن پروا وکړه او نه د عهد والا عهد يې پوره کړ نو هغه کس زما څخه نه دئ او نه زه د هغه څخه يم . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۷٦، رقم: ۵۳- ۱۸۴۸.

## غوره او بد حاکم

﴿۳۵۰۲﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْاَشْجَعِيِّ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عوف بن مالک اشجعي ﷺ څخه روايت دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

قَالَ خِيَارُ أَئِمَّتِكُمُ الَّذِينَ تُحِبُّونَهُمْ وَيُحِبُّونَكُمْ وَيُصَلُّونَ عَلَيْكُمْ وَتُصَلُّونَ

ستاسو په حاکمانو کي غوره هغه وي چي د هغوی سره تاسو مینه کوئ او هغوی ستاسو سره مینه کوي ، او د هغوی لپاره تاسو دعاء کوئ او هغوی ستاسو لپاره دعا کوي ،

عَلَيْهِمْ وَشِرَارُ أَئِمَّتِكُمُ الَّذِينَ تُبْغِضُونَهُمْ وَيُبْغِضُونَكُمْ وَتَلْعَنُونَهُمْ

او بد ترین حاکم هغه دئ چي تاسو د هغوی سره بغض ولرئ او هغوی ستاسو سره بغض ولري ، او تاسو پر هغوی لعنت کوئ

وَيَلْعَنُونَكُمْ قال قلنا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَلَا نُنَابِذُهُمْ عند ذالك قال لَا مَا أَقَامُوا

او هغوی پر تاسو د لعنت کوي، راوي بیان دئ چي موږ (صحابه کرامو) عرض وکړ اې د الله رسوله ! ایا موږ هغه بدترین حاکمان مات نه کړو؟ او عهد چي د هغوی سره مو کړی دئ مات نه کړو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :نه ، تر څو پوري چي هغوئ

فِيكُمُ الصَّلَاةَ لا ما اقاموا فيكم الصلوة الا من ولي عليه وال فراه ياتي

په تاسو کي لمونځ قائموي نه تر څو پوري چي هغوی په تاسو کي لمونځ قائموي، خبردار! کوم سړی چي په تاسو کي حاکم جوړ سي او تاسو د هغه یو داسي کار ووینئ

شيئا من معصية الله فليكره ماياتي من معصية الله ولا ينزعن يدا من طاعة. رواه مسلم

چي د الله تعالی پر نافرماني مبني وي نو تاسو د هغه دغه عمل بد وګڼئ خو د هغه د اطاعت څخه لاس مه کاږي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۸۲، رقم: ٦٦- ۱۸۵۵.

**تشريح**: تر څو چي هغه ستاسو په مینځ کي لمونځ قائموي: ددې څخه دا مفهوم اخیستل کیږي چي د اسلامي هیواد دامیر د لمانځه پرېښودل د مسلمانانو سره د کړي عهد او وفادارۍ ماتولو سبب او د هغه د اطاعت او فرمانبردارۍ څخه د لاس اخیستلو سبب دی ، لکه څرنګه چي د هیواد امیر ښکاره کفر وکړي نو مسلمانان د خپل عهد او وفادارۍ په ماتولو سره هغه معزول کولای سي او د هغه د اطاعت او فرمانبردارۍ څخه لاس اخیستلای سي همدارنګه که چیري هغه لمونځ پریږدي نو مسلمانانو ته دا حق دی چي هغوی د خپل امیر عهد او وفاداري ماته کړي او د هغه اطاعت او فرمانبردارۍ څخه انکار وکړي ځکه چي لمونځ د دین ستن ده او په کفر او ایمان کي فرق کونکی دی ، ددې پر خلاف نورو ګناوي د لمانځه د پرېښودو په ډول نه دي ځکه چي د هغو کول د عهد او وفادارۍ د ماتولو او اطاعت څخه د لاس اخیستنی سبب نه سي کیدای ، په دغه ارشاد کي پر لمانځه پرېښودو باندي سخت زجر او خبرداری دی .

## د حاکم بې لاري

﴿۳۵۰۳﴾: وَعَنْ اُمِّ سَلْمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُوْنُ

د حضرت ام سلمة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي به

عَلَيْكُمْ أُمَرَاءُ تَعْرِفُونَ وَتُنْكِرُونَ فَمَنْ انكر فَقَدْ بَرِئَ وَمَنْ كره فَقَدْ سَلِمَ

داسي حاکم و ټاکل سي چي ښه کارونه به هم کوي او بد هم، چا چي انکار وکړ یعني د هغه د

خراب کار په نسبت د هغه په وړاندي یې وویل چي ستا دا کار د شریعت خلاف دئ نو هغه د خپل فرض څخه خلاص سو او چا چي داسي ونه کړل یعني دومره جرئت یې ونه کړ چي په ژبه سره یې وویل مګر په زړه سره یې د هغه کار بد وګڼئ هغه سالم پاته سو یعني د هغه په ګناه کي د ګډون څخه سالم او خوندي پاته سو ،

وَلَكِنْ مَنْ رَضِيَ وَتَابَعَ قَالُوا أَفَلَا نُقَاتِلُهُمْ قَالَ لَا مَا صَلَّوْا أَيْ مَنْ كَرِهَ بِقَلْبِهِ وَأَنْكَرَ بِقَلْبِهِ . رواه مسلم

مګر څوک چي د هغه په کار راضي سو او د هغه پیروي یې وکړه نو هغه د هغوی په ګناه کي ګډ سو . صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! ایا دهغوی سره وجنګیږو ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :یا ، تر څو پوري چي هغوی لمونځ قائموي نه تر څو پوري چي هغوی لمونځ کوي یعني هغه څوک چي بد ګڼي په زړه کي او انکار کوي په زړه کي . مسلم .

**تخریج** صحیح مسلم ۳\۱۴۸۱، رقم: ۶۳- ۱۸۵۴.

**تشریح** د روایت آخري الفاظ (کوم څوک چي په خپل زړه یې بد وګڼي او په زړه سره انکار وکړي) په دې باره کي شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله علیه دا لیکلي دي چي دا د راوي عبارت دی چي د هغه په ذریعه هغه د حدیث د الفاظو (من کره فقد سلم) وضاحت کړی دی ، حال دا چي ملا علي قاري رحمة الله علیه وایي چي راوي ددغه عبارت په ذریعه د دواړو جملو (فمن انکر ، او من کره ....) وضاحت کړی دی .

## د حاکم په هر وخت کي فرمانبرداري

﴿۳۵۰۴﴾ :وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل

وَسَلَّمَ إِنَّكُمْ سَتَرَوْنَ بَعْدِي أَثَرَةً وَأُمُورًا تُنْكِرُونَهَا قَالُوا فَمَا تَأْمُرُنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ أَدُّوا إِلَيْهِمْ حَقَّهُمْ وَسَلُوا اللَّهَ حَقَّكُمْ . متفق علیه

تاسو به زما څخه وروسته ترجیح ته ګورئ او ډیري داسي خبري دي چي هغه به تاسو بد ګنئ . صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ، هر کله چي داسي وخت راسي نو زموږ لپاره څه حکم دئ

رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تاسو د هغوی حق ادا کوئ او د الله تعالی څخه خپل حق غواړئ بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۵، رقم: ۷۰۵۲، ومسلم ۳\۱۴۷۲، رقم: ۴۵- ۱۸۴۳.

**تشريح** مطلب دادی چي ستاسو حاكمان ستاسو سره ترجيحي چلن كوي په دې توګه چي ستاسو حق تلف كوي نو په داسي صورت كي هم د هغوي سره ستاسو رويه بايد داسي وي چي تاسو د هغوی د حقوقو په ادا كولو كي كوتاهي مه كوئ يعني د هغوی اطاعت او فرمانبرداري كوئ او د هغوی مرسته كونكي اوسئ كه هغوی ستاسو د حق په ادا كولو كي كوتاهي كوي نو پر هغه صبر كوئ او د الله تعالی ﷻ د دربار څخه خواست كوئ چي هغه تاسو ته ستاسو د حق نعم البدل دركړي.

﴿۳۵۵۵﴾: وَعَنْ وَائِلِ ابْنِ حُجْرٍ قَالَ سَأَلَ سَلَمَةُ بْنُ يَزِيدَ الْجُعْفِيُّ رَسُولَ اللّٰهِ

د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي سلمه بن يزيد جعفي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قَامَتْ عَلَيْنَا أُمَرَاءُ يَسْأَلُونَا

پوښتنه وکړه چي اې د الله رسوله! تاسو په دې اړه څه فرمايا ست كه پر موږ داسي امیران مسلط سي چي زموږ څخه

حَقَّهُمْ وَيَمْنَعُونَا حَقَّنَا فَمَا تَأْمُرُنَا قَالَ اسْمَعُوا وَأَطِيعُوا فَإِنَّمَا عَلَيْهِمْ مَا حُمِّلُوا وَعَلَيْكُمْ مَا حُمِّلْتُمْ. رواه مسلم

خپل حق غواړي او زموږ د حق څخه انكار كوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغوی احكام اورئ او اطاعت يې كوئ ځكه چي پر هغوی هغه خبره فرض ده چي هغوی پر خپل ذمه اخيستې ده او پر تاسو هغه شی دئ چي تاسو پورته كړی دئ. مسلم.

**تخريج** صحيح مسلم ۳\۱۴۷۴، رقم: ۴۹- ۱۸۵۶.

**تشريح** دحديث خلاصه داده چي په حاكم او رعيت كي د هر يوه ذمه داري ده او دهغه پوره كول پر هر يوه واجب دي لكه څرنګه چي د حاكم پر اوږو د عامو خلكو د حقوقو ساتنه او هغوی ته د عدل او انصاف وركولو ذمه داري ده او هغه ذمه داري پوره كول پر هغه واجب دي

همدارنګه د رعایت پر اوږو هم د حاکم مرسته او اعانت او د هغه د اطاعت او فرمانبرداری ذمه داري ده او ددغه ذمه داری پوره کول پر رعایا باندي واجب دي نو د دواړو لپاره ضروري ده چي د خپل حد څخه تجاوز و نه کړي .

## د امام د اطاعت نه کوونکي په اړه وعید

﴿۳۵۰۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

يَقُولُ مَنْ خَلَعَ يَدًا مِنْ طَاعَةٍ لَقِيَ اللّٰهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَا حُجَّةَ لَهُ وَمَنْ مَاتَ وَلَيْسَ فِي عُنُقِهِ بَيْعَةٌ مَاتَ مِيتَةً جَاهِلِيَّةً . رواه مسلم

څوک چي د امام (خلیفه) د اطاعت څخه لاس وباسي هغه به د قیامت په ورځ د الله تعالی سره په داسي حال کي یو ځای کیږي چي هیڅ دلیل به د هغه لپاره نه وي او څوک چي په داسي حال کي مړ سي چي د هغه پر غاړه بیعت نه وي نو هغه د جاهلیت په مرګ مړ سو . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴۷۸\۱۳، رقم: ۵۸- ۱۸۵.

## د خلیفه په موجودتیا کي د بل خلیفه اطاعت مه کوئ

﴿۳۵۰۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَتْ بَنُو

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : بني اسرائیلو ته به

إِسْرَائِيلَ تَسُوسُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ كُلَّمَا هَلَكَ نَبِيٌّ خَلَفَهُ نَبِيٌّ وَإِنَّهُ لَا نَبِيَّ بَعْدِي

انبیاؤ ادب ښودئ ، او کله چي به یو نبي وفات سو نو بل نبي به د هغه پر ځای راتلئ مګر زما څخه وروسته هیڅ نبي راتلونکی نه دئ

وَسَيَكُونُ خُلَفَاءُ فَيَكْثُرُونَ قَالُوا فَمَا تَأْمُرُنَا قَالَ فُوا بِبَيْعَةِ الْأَوَّلِ فَالْأَوَّلِ أَعْطُوهُمْ حَقَّهُمْ فَإِنَّ اللّٰهَ سَائِلُهُمْ عَمَّا اسْتَرْعَاهُمْ . متفق علیه

البته زما څخه وروسته به زما خلفاء وي چي ډیر به وي، صحابه کرامو عرض وکړ (هر کله چي

خليفه ګان ډير وي او د هغوى په منځ كي اختلافات وي نو موږ ته څه كول پكار دي) تاسو څه حكم راكوئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د لومړني خليفه پيروي كوئ (په دغه زمانه كي) او بيا د لومړني خليفه (په دويمه زمانه كي) د هغوى حق هغوى ته وركړئ ، او الله تعالى به د هغوى د رعيت حال په خپله د هغوى څخه پوښتي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٩٥، رقم: ٣۴۵۵، ومسلم ۳\۱۴۷۱، رقم: ۴۴- ۱۸۴۲.

**تشريح**: فوا ببيعة الاول فالاول : ددې مطلب دادى چي دهغه خليفه او امير بيعت پوره كړئ كوم چي مخكي تاكل سوى دى بيا د هغه خليفه او امير اطاعت كوئ كوم چي د هغه څخه وروسته تاكل سوى دى او هغه دوهم خليفه او امير ته اول د هغه امير او خليفه په نسبت ويل سوي دي كوم چي د هغه څخه وروسته تاكل كيږي، خلاصه داده چي څرنګه په ترتيب سره د يوه څخه وروسته دوهم خليفه تاكل كيږي همدارنګه تاسو هم په ترتيب سره د يوه څخه وروسته د دوهم خليفه بيعت او اطاعت كوئ مګر كه چيري په يوه وخت كي دوه كسان د امارت او خلافت دعوه وكړي نو تاسو د هغه سړي بيعت او اطاعت كوئ كوم چي مخكي تاكل سوى دى او د دوهم په باره كي داسي پوه سئ چي دا سړى د حكومت او سياست په حرص كي غلطه دعوه كوي نو هغه د خپل خليفه او امير منلو څخه انكار وكړئ ، مخكي چي كوم حديث راځي د هغه څخه هم دا ثابتيږي .

اعطوهم حقهم : د هغوى حق ادا كړي، دغه جمله د اولي جملې (فوا ببيعة الاول) بدل دى او د حديث آخري الفاظ يعني (فان الله سائلهم ...) دا په اصل كي د اولي جملې علت بيانوي چي په هغه كي د خليفه او امير د حقوقو د ادا كولو حكم وركړل سوى دى ، يعني په دغه جمله كي اختصار سوى دى او پوره مفهوم دادى چي تاسو د هغه حق ادا كوئ كه څه هم هغه ستاسو د حقوقو په ادا كولو كي كوتاهي كوي .

د حديث په آخر كي دا خبره ښكاره سوې ده چي خليفه او امير ته د رعيت د حقوقو د ساتني او ادا كولو كومه ذمه داري چي سپارل سوې ده هغه به د قيامت په ورځ د احكم الحاكمين په دربار كي د هغه جواب وركونكى وي ځكه په دنيا كي چي د كومو خلكو د حقوقو په ادا كولو كي كوتاهي سوې وي د هغه څخه به د هغه خلكو دحقوقو ادا كول كيږي او كه پر هغه قادر نه سي نو په سخت عذاب كي به اخته كړل سي .

﴿۳۵۰۸﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بُويِعَ

لِخَلِيفَتَيْنِ فَاقْتُلُوا الْآخَرَ مِنْهُمَا. رواه مسلم

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي د دوو خليفه گانو بيعت كړل كيږي نو دويم خليفه مړ كړئ. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\ ١٤٨٠، رقم: ٦١ - ١٨٥٣.

**تشريح**: كه داسي صورت رامنځته سي چي مخكي د ټاكل سوي خليفه او امير په موجودتيا كي يو بل څوک د خپل امارت او خلافت اعلان وكړي او د خلكو څخه بيعت اخيستل شروع كړي نو د هغه سره دي جنګ وكړل سي تر دې چي هغه پر سيده لاره راسي او د الله تعالى د حكم سره سم د مخكي ټاكل سوي خليفه او امير اطاعت قبول كړي يا په هغه حال كي ووژل سي ځكه چي هغه د الله تعالى د حكم او د اسلامي هيواد باغي دى او د باغي سزا داده كه هغه د خپل بغاوت څخه منع نه سي نو هغه دي ووژل سي.

ځينو حضراتو د دغه جملې (هغه قتل كړئ) مراد دا بيان كړى دى چي كومو خلكو د هغه سره بيعت كړى دى او د هغه د اطاعت او فرمانبردارۍ عهد يې كړى دى او هغه خپل بيعت او عهد فسخ كړي نو هغه سړى داسي كمزوري كړئ چي هغه د خليفه پر خلاف شور ونه كړلاى سي.

**څوک چي په امت كي بېلتون راولي هغه ووژنئ**

﴿٣٥٠٩﴾: وَعَنْ عَرْفَجَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت عرفجة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

إِنَّهُ سَيَكُونُ هَنَاتٌ وَهَنَاتٌ فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يُفَرِّقَ أَمْرَ هَذِهِ الْأُمَّةِ وَهِيَ جَمِيعٌ فَاضْرِبُوهُ بِالسَّيْفِ كَائِنًا مَنْ كَانَ. رواه مسلم

ډير ژر به ډول ډول فساد ونه ښكاره سي، څوک چي ددې امت په اتحاد كي تفريق پيدا كوي او د امت اجتماع ماتوي د هغه غاړه په توره ووهئ كه څه هم هغه هر څوک وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\ ١٤٧٩، رقم: ٥٩ - ١٨٥٢.

**د لغاتو حل**: هنات وهنات: اى شرور و فسادات متتابعة خارجة عن السنة والجماعة.

**تشريح**: ډېر ژر تخريب او فساد به ظاهر سي: ددې مطلب دادى چي څرنګه زمانه تېرېږي

همدارنگه د دین پر خلاف او د دښمن د طاقتونو فتنې به زیاتیږي، هغوی به په مختلفو طریقو سره په امت کي د انتشار په پیدا کولو سره د تخریب او فساد اور تېزوي، هغوی به کوښښ کوي چي د اسلامي ملت د مینځ څخه اتحاد او اتفاق ختم کړي او د امارت او سیادت به د انسان تر ټولو لوی خواهش وي ځکه ځیني مسلمانان به د انساني کمزورۍ څخه په مجبوره کېدو سره د هغوی د فلانو ښکار سي او د امارت د غوښتني او عزت لپاره به مسلمان د مخالفو طاقتونو آله کار جوړ سي او ډول ډول فتنې به را پورته کوي چي د هغه پای به دا وي چي د عامي بد امنۍ او انتشار فضاء به پیدا سي او امت به د ډلي ډلي کېدو ښکار سي، په داسي وخت کي مسلمانان باید د هغه چا تر بیرغ لاندي را جمع سي کوم چي د مخکي څخه د هغوی د قیادت په مرتبه کامیاب وي او په شروع کي یې د خپل مرجع اطاعت کړی وي او د هغه په قیادت کي د هر هغه طبقې او فرد فتنې له منځه یوسي کوم چي د امت په اتحاد او اتفاق کي خنډ اچوي ځکه چي په اصل کي امیر او خلیفه هغه سړی دی او هغه د قیادت او اطاعت وړ دی.

که هغه هر څوک وي ؟ : د دغه جملې په ذریعه دغه حقیقت ته اشاره کیږي چي د امت اتحاد د فرد پر حیثیت او شخصیت باندي مقدم دی که د امت د اتحاد او د ملت د اجتماعي حیثیت د ساتني لپاره د یو لوی سړي د لاري څخه لیري کول وي نو په هغه کي هیڅ اندېښنه مه محسوس کوئ که څه هم هغه سړی لوی عالم وي او په ظاهره لوی شیخ او یا یو معزز کس وي، بلکه تر دې باندي خیال وساتل سي که داسي سړی د امارت او سیادت دعوه وکړي چي په حقیقت کي هم د هغه منصب زیات اهل وي نو علماء کرام وایي چي د هغه قتلول هم پکار دي ځکه چي فتنه، فساد او په امت کي د تفریق پیدا کولو د سبب کېدو په وجه هغه د قتل وړ دی په شرط د دې چي کوم څوک د مخکي څخه د امارت او امامت پر منصب باندي وي هغه د خپل منصب د ذمه دارۍ پوره کولو اهل وي او د هغه د معزول کولو یو وجه نه وي.

﴿۳۵۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ مَنْ أَتَاكُمْ وَأَمْرُكُمْ جَمِيعٌ عَلَى رَجُلٍ وَاحِدٍ يُرِيدُ أَنْ يَشُقَّ عَصَاكُمْ أَوْ يُفَرِّقَ جَمَاعَتَكُمْ فَاقْتُلُوهُ. رواه مسلم

د حضرت عرفجة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي څوک چي تاسو ته راسي او حال دا وي چي تاسو ټول د یوه امیر پر اطاعت متحد یاست او هغه ستاسو د اتحاد ماتولو اراده یا ستاسو جماعت متفرق کول غواړي نو تاسو هغه ووژنئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۳\۱۴۸۰، رقم: ٦٠- ١٨٥٢.

**تشریح**: (یشق عصاکم) په مسلمانانو کي د تفریق پیدا کولو په مفهوم کي استعمال سوی دی یعني د مسلمانانو اتفاق او اتحاد او پر یوه رایه جمع کېدل په عصا (لکړه) سره تعبیر سوی دی او په دغه اتفاق او اتحاد کي خنډ اچول په ماتولو سره مفهوم سوی دی.

او یفرق جماعتکم: او یا ستا سو په اجتماعي ډله کي تفریق پیدا کول غواړي: په ظاهره دا معلومېږي چي دلته راوي د خپل شک اظهار کړی دی چي رسول الله ﷺ یا خو اوله جمله (ان یشق عصاکم) فرمایلې ده او یا دوهمه جمله یې فرمایلې ده مګر دا هم احتمال دی چي دواړي جملې رسول الله ﷺ فرمایلي دي، په دغه صورت کي به اوله جمله په دنیاوي چارو کي یعني د مسلمانانو په سیاست طاقت کي پر انتشار پیدا کولو باندي محمول وي او دوهمه جمله به پر دیني احکامو یعني د مسلمانانو په دیني ژوند او د هغوی په مذهبي معاملاتو کي د فتنې پر خپرولو باندي محمول وي.

﴿۳۵۱۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَنْ بَايَعَ إِمَامًا فَأَعْطَاهُ صَفْقَةَ يَدِهِ وَثَمَرَةَ قَلْبِهِ فَلْيُطِعْهُ إِنِ اسْتَطَاعَ فَإِنْ جَاءَ آخَرُ يُنَازِعُهُ فَاضْرِبُوا عُنُقَ الْآخَرِ. رواه مسلم.

څوک چي د امام بیعت وکړي او خپل لاس د هغه په لاس کي ورکولو سره قسم وکړي او زړه د هغه په بیعت راضي کړي څومره چي کیدای سي نو د هغه اطاعت دي کوي بیا که دویم امام ودرېږي او د امامت دعوا وکړي نو د دویم غاړه ووهئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۳\۱۴۷۲، رقم: ٤٦- ١٨٤٤.

## د حکومت او امارت غوښتونکي مه کیږئ

﴿۳۵۱۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالرحمن بن سمرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ لَا تَسْأَلُ الإِمَارَةَ فَإِنَّكَ إِنْ أُعطيتَهَا عَنْ مَسْأَلَةٍ وُكِلْتَ إِلَيْهَا وَإِنْ أُعطيتَهَا مِنْ غَيْرِ مَسْأَلَةٍ أُعِنْتَ عَلَيْهَا. متفق عليه.

د اميرۍ او حكومت خواهش مه كوه ځكه كه تا ته په غوښتلو سره حكومت تر لاسه سي نو ته به حكومت ته حواله كړل سي او كه پرته د غوښتلو درته تر لاسه سي نو د الله تعالی د لوري به ستا مرسته كيږي. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٢٣، رقم: ٧١٤٦، ومسلم ٣\١٤٥٦، رقم: ١٣- ١٦٥٢.

﴿٣٥١٣﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّكُمْ سَتَحْرِصُونَ عَلَى الْإِمَارَةِ وَسَتَكُونُ نَدَامَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَنِعْمَ الْمُرْضِعَةُ وَبِئْسَتِ الْفَاطِمَةُ. رواه البخاري

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو خلك به د سردارۍ او امارت حرص كوئ او ژر به پښېماني كوئ په ورځ د قيامت او دا سرداري غوره مرضعه (تی وركونكې) او بد ترينه تی پرېښودونكې ده (يعني د امارت پيل ډير ښه او انجام يې خراب وي) بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٢٥، رقم: ٧١٤٨.

**تشريح** د حكومت او سيادت شروع د تي وركونكي ښځي سره او ددې انتهاء د تي پرېكونكي ښځي سره تشبيه وركړل سوې ده ، كله چي يو سړی ته حكومت او سيادت راځي نو هغه د تي وركونكي ښځي په ډول ډېر ښه معلوميږي او كله چي د مرگ پنجه هغه د حكومت او سيادت څخه جلا كړي يا د هغه پر ځای بل سړی و ټاكل سي نو هغه حكومت او سيادت هغه وخت د تي څخه پرې كونكي ښځي په ډول بد معلوميږي، نو دا خبره د پوه سړي وړ نه ده چي هغه د داسي لذت تر لاسه كولو خواهش او هڅه وكړي چي د هغه پای حسرت او غم دی.

﴿٣٥١٤﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَلاَ تَسْتَعْمِلُنِيْ قَالَ فَضَرَبَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! ايا تاسو ما د يو ځای عامل (حاکم) نه ټاکئ ؟ رسول الله ﷺ زه پر اوږه وټکولم

بِيَدِهِ عَلَى مَنْكِبِيْ ثُمَّ قَالَ يَا أَبَا ذَرٍّ إِنَّكَ ضَعِيفٌ وَإِنَّهَا أَمَانَةٌ وَإِنَّهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ

او وه يې فرمايل : اې ابوذره ! ته کمزوری يې او امارت او سرداري لوی دروند امانت دئ او بيا دا سرداري د قيامت په ورځ

خِزْيٌ وَنَدَامَةٌ إِلَّا مَنْ أَخَذَهَا بِحَقِّهَا وَأَدَّى الَّذِي عَلَيْهِ فِيهَا وفي رواية قال

د ذلت او رسوائي موجب ده ، البته څوک چي د حق سره ملګری سو او هغه حق چي د امارت په لړ کي پر هغه واجب دئ هغه ادا کړ د هغه لپاره ذلت او رسوائي نسته او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

له أَبَا ذَرٍّ إِنِّي أَرَاكَ ضَعِيفًا وَإِنِّي أُحِبُّ لَكَ مَا أُحِبُّ لِنَفْسِي لَا تَأَمَّرَنَّ عَلَى اثْنَيْنِ وَلَا تَوَلَّيَنَّ مَالَ يَتِيمٍ . رواه مسلم

اې ابوذره ! زه تا کمزوری وينم ، زه ستا لپاره هغه شی خوښوم کوم چي د ځان لپاره خوښوم ، ته د دوو کسانو هم امير او حاکم مه جوړېږه او مه د يتيم د مال سرپرستي پر خپل غاړه اخله . مسلم.

**تخريج** : صحيح مسلم ۳\۱۴۵۷، رقم: ۱۶– ۱۸۲۵.

**تشريح** : څه چي زه د خپل ځان لپاره خوښوم : ددې مطلب دادی که زه ستا په ډول ضعيف او کمزوری وای نو ما به ددغه سرداری او حاکميت بار نه پورته کولای مګر الله تعالی ما ته قوت هم راکړی دی او تحمل يې هم راکړی دی که د الله تعالی له خوا ما ته تحمل نه وای راکړل سوی نو ما به هيڅکله دغه بار نه پورته کولای .

امام نووي رحمه الله وايي چي د حکومت او مشرتوب څخه د پرهيز کولو په باره کي دغه حديث عظيم اصل او تر ټولو لوی لاربنود دی په خاصه توګه د هغه سړي لپاره چي هغه د مشرتوب د پوره کولو قوت نه لري .

## څوک چي خپله يو منصب وغواړي نو هغه ته منصب مه ورکوئ

﴿۳۵۱۵﴾ : وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ دَخَلْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَرَجُلَانِ

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روايت دئ چي زه او زما د اکا دوه زامن د نبي کريم ﷺ په خدمت

مِنْ بَنِي عَمِّي فَقَالَ أَحَدُهُمَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَمِّرْنَا عَلَى بَعْضِ مَا وَلَّاكَ اللّٰهُ عَزَّ

کي حاضر سو ، په هغو کي يوه وويل اې د الله رسوله ! تاسو الله جل جلاله حاکم او والي جوړ کړی

وَجَلَّ وَقَالَ الْآخَرُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَقَالَ إِنَّا وَاللّٰهِ لَا نُوَلِّي عَلَى هٰذَا الْعَمَلِ أَحَدًا

ياست ما هم د ځيني کارو يا ځايو والي و ټاکئ، دويم هم دا ډول غوښتنه ثرګندہ کړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : قسم په الله موږ د دين او شريعت د کارو هغه کس والي نه ټاکو چي

سَأَلَهُ وَلَا أَحَدًا حَرَصَ عَلَيْهِ . وفي رواية قَالَ لاَ نَسْتَعْمِلُ عَلٰى عَمَلِنَا مَنْ

اَرَادَهُ. متفق عليه

زموږ څخه د ولايت غوښتونکی وي او نه هغه سړی کوم چي دده حرص لري ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي موږ پر خپل کار هغه سړی عامل نه ټاکو څوک چي دده اراده لري . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۲۵، رقم: ۷۱۴۹، ومسلم ۳\۱۴۵۶، رقم: ۱۴- ۱۷۳۳.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي کوم څوک به د يو خدمت او ذمه دارۍ غوښتونکی وو او رسول الله ﷺ ته به يې خواست کوی نو هغه سړی به يې پر هغه کار نه ټاکی ځکه چي د يو منصب غوښتنه کول د منصب پر محبت باندي دلالت کوي چي د غوښتونکی په باره کي د خرابۍ باعث دی .

## د حکومت څخه انکار کونکی غوره انسان دی

﴿۳۵۱۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجِدُوْنَ مِنْ خَيْرِ النَّاسِ أَشَدَّهُمْ كَرَاهِيَةً لِهٰذَا الْأَمْرِ حَتّٰى يَقَعَ فِيْهِ . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو به هغه خلک غوره تر لاسه کړئ چي امارت او حکومت ډير زيات بد ګڼي، تر څو پوري چي هغوی په دې کي اخته نه وي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦٠٤، رقم: ٣٥٨٨، ومسلم ١٤\١٩٥٨، رقم: ١٩٩- ٢٥٢٦.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د حکومت او مشرتوب منصب قبلول ناخوښه کړي نو هغه په خلکو کي غوره سړی وګڼئ تر دې که چیري هغه په یو وجه دا منصب قبول کړي نو هغه ته هم پښیماني وي کوم چي دغه منصب آخري پای دی.

علامه طیبي رحمه الله دا مطلب بیان کړی دی چي داسي سړی چي د حکومت او مشرتوب څخه سخت متنفر وي هغه به په تاسو کي غوره سړی وي تر دې که چیري هغه پر خپل دغه نفرت باندي قائم پاته سي او د حکومت او مشرتوب په غوښتنه کي کامیاب سي نو هغه وخت به هغه په خلکو کي غوره سړی نه وي بلکه بد سړی به وي.

## د قیامت په ورځ به هر یو د خپلي ذمه داری جواب ورکوي

﴿٣٥١٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

أَلَا كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ فَالْإِمَامُ الَّذِي عَلَى النَّاسِ رَاعٍ وَهُوَ

خبردار! په تاسو کي هر سړی راعي (ساتونکی) دئ او د هر سړي څخه به د هغه د رعیت په اړه پوښتنه کیږي نو کوم څوک چي د څومره خلکو حاکم دئ

مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ وَالرَّجُلُ رَاعٍ عَلَى أَهْلِ بَيْتِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ

د هغو مره خلکو په اړه به جواب ورکونکي وي، او سړی د خپل اهل بیتو راعي دئ او د هغه څخه به د هغه د رعیت په اړه پوښتنه کیږي

وَالْمَرْأَةُ رَاعِيَةٌ عَلَى أَهْلِ بَيْتِ زَوْجِهَا وَوَلَدِهِ وَهِيَ مَسْئُولَةٌ عَنْهُمْ وَعَبْدُ

او ښځه د خپل خاوند د کور او د هغه د کوچنیانو ساتونکې ده د هغې څخه به په دې اړه پوښتنه کیږي او غلام

الرَّجُلِ رَاعٍ عَلَى مَالِ سَيِّدِهِ وَهُوَ مَسْئُولٌ عَنْهُ أَلَا فَكُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ

عَنْ رَعِيَّتِهِ. متفق علیه

د خپل بادار د مال ساتونکی دئ او د هغه څخه به په دې اړه پوښتنه کیږي ، خبردار! په تاسو کي هر څوک راعي (ساتونکی) دئ او د هر ساتونکي څخه به د هغه د رعیت په اړه پوښتنه کیږي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١١١، رقم: ٧١٣٨، ومسلم ٣\١٤٥٩، رقم: ٢٠- ١٨٢٩.

**تشريح**: رعیت هغه شي ته وايي چې د ساتونکي په ساتنه او څارنه کي وي ، د یو هیواد او سیدونکو ته د هغه هیواد رعیت او رعایا ځکه ویل کیږي چې هغوی ټول د حکمران په ساتنه او نګرانۍ کي وي او په دې اعتبار سره په حدیث کي فرمایل سوي دي چې پر خپل خپل ځای باندي هر سړی ساتونکی دی ، د سړي لپاره کوروالا د هغه رعیت دی، د ښځي لپاره د خاوند کور او د هغه کوچنیان رعیت دی او د غلام د مالک مال د هغه رعیت دی تر دې چې علماء لیکلي دي چې هر سړی د خپل بدن د اندامو ساتونکی دی او هغه اندامونه د هغه رعیت دی نو د قیامت په ورځ به د هر سړي څخه د هغه د اندامو د حواسو په باره کي پوښتنه کیږي چې تا دغه اندامونه چیري او څرنګه استعمال کړل او دا په حدیث کي ددې لپاره نقل سوي نه دي چې دا بالکل ښکاره خبره ده .

## د خائن او ظالم حاکم په اړه وعید

﴿٣٥١٨﴾: وَعَنْ مُعْقَلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مِنْ وَالٍ يَلِي رَعِيَّةً مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَيَمُوتُ وَهُوَ غَاشٌّ لَهُمْ إِلَّا حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ . متفق عليه.

د حضرت معقل بن یسار رضی الله عنه څخه روایت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي چې کوم حاکم د مسلمانانو سرداري په خپل لاس کي واخلي او خیانت کونکی او ظالم مړ سي نو الله تعالی به جنت پر حرام کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٢٧، رقم: ٧١٥١، ومسلم ١٣\١٤٦٠، رقم: ٢٢- ١٤٢.

**تشريح**: د جنت حرام کېدو مطلب دادی چې هغه به د خلاصون تر لاسه کونکو خلکو سره په شروع کي په جنت کي د داخلېدو څخه محروم کړل سي ، او یا دغه ارشاد پر هغه حاکم محمول دی چې د خیانت او ظلم په حلال ګڼلو سره ظالم او خائن سوی وي ، او یا رسول الله ﷺ د زجر او

سخت وعيد په توګه دا فرمايلي دي .

## پر خائن امير باندي د جنت بوی حرام دی

﴿٣٥١٩﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ مَا مِنْ عَبْدٍ يَسْتَرْعِيْهِ اللّٰهُ رَعِيَّةً فَلَمْ يَحُطْهَا بِنَصِيحَةٍ إِلَّا لَمْ يَجِدْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ . متفق عليه

د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي کوم بنده ته چي الله تعالی د رعيت ساتنه و سپاري او هغه په ښه توګه او خير سره د هغوی ساتنه ونه کړي نو پر هغه به د جنت بوی هم ونه لګيږي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٢٦، رقم: ٧١٥٠، ومسلم ٣\١٤٦٠، رقم: ٢١- ١٤٢.

**د لغاتو حل**: فلم يحُطها : اى فلم يراعها : (ساتنه يې ونه کړي)

**تشريح**: نو هغه به د جنت بوی هم ونه ويني : ددې مطلب دادی چي هغه به د قيامت په ورځ د جنت بوی هم تر لاسه نه کړي حال دا چي د جنت بوی د پنځه سوه کاله فاصلې څخه هم راځي ، يا دا مطلب دی چي هغه به د خلاصون تر لاسه کونکو خلکو سره د جنت بوی ونه ويني يا دا که چيري هغه کافر مړ سي يا پر رعيت باندي ظلم کول حلال وګڼي او پر دغه عقيده باندي مړ سي نو هغه ته به مطلق د جنت بوی هم حاصل نه سي.

## بدترين حاکم

﴿٣٥٢٠﴾: وَعَنْ عَائِذِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ شَرَّ الرِّعَاءِ الْحُطَمَةُ . رواه مسلم .

د حضرت عائذ بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي په حاکمانو کي بدترين حاکم هغه دئ چي ظالم وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٤٦١، رقم: ٢٣- ١٨٣٠.

## سخت او نرم حاکم

﴿٣٥٢١﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اللّٰهُمَّ مَنْ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې الله ! څوک چي

وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَشَقَّ عَلَيْهِمْ فَاشْقُقْ عَلَيْهِ وَمَنْ وَلِيَ مِنْ أَمْرِ أُمَّتِي شَيْئًا فَرَفَقَ بِهِمْ فَارْفُقْ بِهِ. رواه مسلم

زما د امت د يو کار والي او متصرف جوړ کړل سوی وي او هغه زما پر امت مصيبت او سختي راولي نو ته هم پر هغه مصيبت او سختي راولې، او څوک چي زما د امت سره رحم او نرمي وکړي نو ته هم د هغه سره رحم او نرمي وکړې . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۵۸، رقم: ۱۹- ۱۸۲۸.

## د عادل حاکم مرتبه

﴿۳۵۲۲﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمُقْسِطِينَ عِنْدَ اللهِ عَلَى مَنَابِرَ مِنْ نُورٍ عَنْ يَمِينِ الرَّحْمَنِ

عادل او منصف حاکم به د الله تعالی سره پر راسته لوري د نور پر منبر وي،

عَزَّ وَجَلَّ وَكِلْتَا يَدَيْهِ يَمِينٌ الَّذِينَ يَعْدِلُونَ فِي حُكْمِهِمْ وَأَهْلِيهِمْ وَمَا وَلُوا.

رواه مسلم

او د الله تعالی لاسونه راسته دي ، هو هغه عادلان حاکمان چي په خپلو احکامو کي، په خپله کورنۍ کي ، په خپل ولايت او حکومت کي عدل کوي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۵۸، رقم: ۱۸- ۱۸۲۷.

**تشريح**: د راسته لاس خوا ته .... : دا د الله جل جلاله په نزد د عادل حکمران د مرتبې د عظمت په کنايه سره د بيان طريقه ده څکه چي کوم سړی عظيم القدر وي هغه راسته خوا ته دريږي يا کښيني .

او د الله جل جلاله دواړه لاسونه راسته دي : دا د توهم د رفع کولو لپاره فرمايل سوي دي چي څوک دا ونه ګڼي چي راسته لاس د چپه لاس په مقابل کي ويل سوی دی لکه څرنګه چي چپه لاس په نسبت د راسته لاس کمزوری وي او څرګنده ده چي الله تعالی د هر ډول کمزورۍ څخه پاک دی نو واضحه دي وي چي الله تعالی ته د لاس نسبت د متشابهاتو څخه دی چي ددې په

مراد الله تعالى ښه پوهيږي يا هم په ظاهري توګه د لاس څخه مراد قوت او غلبه ده.

په احکامو کي د عدل او انصاف مطلب دادئ چي د حکومت او امارت تعلق سره د هغوی پر ذمه چي کومي چاري وي د هغه په سرته رسولو کي هغوی د انصاف، ايمان داری او ديانت لحاظ ساتي په اهل کي د عدل او انصاف مطلب دادئ چي د هغوی تر روزني لاندي کوم خلک وي که هغه دده کورنۍ وي يا د رعيت عام خلک وي د ټولو سره د هغوی د حقوقو په ادا کولو کي چي پر هغوی واجب دي پوره انصاف کوي.

همدارنګه په خپل معاملاتو کي د عدل او انصاف مطلب دادی چي کوم شيان د هغه په څارنه کي وي لکه يتيم، د غريبانو روزنه او د وقف مال او داسي نور نو په دې کي هغه پوره ديانت داری او انصاف سره خپل فرض سرته رسوي.

د يو بزرګ قول دی چي انسان بايد د خپل نفس په باره کي هم عدل او انصاف وکړي په دې توګه چي خپل وختونه په داسي شيانو کي ضائع نه کړي چي په هغه کي د خپل وخت په مصرف کولو کي الله تعالى حکم نه دی کړی بلکه خپل ټول وختونه د الله تعالى د رضا او خوښۍ په شيانو کي او د مخلوق د حقوقو په ادا کولو کي بوخت وساتي او د الله تعالى د احکامو پر فرمانبرداری او د منع شيانو څخه پرهيز کولو باندي همېشتوب اختيار کړي لکه څرنګه چي د اولياء کرامو طريقه ده، او ياد خپل وخت زياته برخه په هغه شيانو کي بوخت وساتي لکه څرنګه چي د مؤمنانو او صالحانو معمول دئ.

## د هر حاکم او امير سره هميشه دوه متضاد طاقتونه وي

﴿٣٥٢٣﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا بَعَثَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى چي کوم

اللهُ مِنْ نَبِيٍّ وَّ لَا اسْتَخْلَفَ خَلِيفَةً إِلَّا كَانَتْ لَه بِطَانَتَانِ بِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالْمَعْرُوْفِ

نبي راليږلي او کوم خليفه ټاکلي نو د هغه دوه ملګري وي مخفي (پټ) يو ملګری وي چي هغوی

وَتَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَبِطَانَةٌ تَأْمُرُهُ بِالشَّرِّ وَتَحُضُّهُ عَلَيْهِ وَالْمَعْصُومُ مَنْ عَصَمَ اللهُ. رواه البخاري

ته د نيکي امر کوي او د نيکو کارونو حکم ورکوي او بل ملګری د بدۍ حکم ورکوي او د بدۍ

په لوړ امر ورته کوي او معصوم هغه دئ چي الله تعالى يې د ګناهونو څخه وژغوري. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٨٩، رقم: ٧١٨٩.

**تشريح**: د دوو پټو ملګرو څخه مراد ملائکه او شيطان دی، دغه دواړه د انسان په باطن کي وي، ملائکه د نيکو کارو هدايت ورته کوي او د نيکۍ ترغيب ورکوي او شيطان يې بدو کارو ته اړباسي او بدۍ ته يې امر کوي.

او معصوم هغه دی ....: د دغه جملې په ذريعه د انبياء عليهم السلام، خلفاء راشدين او ځينو نورو خليفه ګانو او اميرانو حال بيان سوی دی چي الله تعالى هغوی د شيطان د شر او فتنې څخه خوندي ساتي.

د دوو ملګرو څخه مراد وزير او مشاور هم کيدای سي چي د خليفه او امير سره هر وخت د اوسيدو په وجه د بطانه سره مشابهت ورکړل سوی دی لکه څرنګه چي د هر نبي او خليفه سره د مشاور اوسيدل په هغوی کي د دوو مختلفو خيالاتو حامل هم وو يا د هغوی سره دوې ډلي وې چي په خپلو کي به مختلفي رايې درلودې لکه څرنګه چي په عامه توګه د اميرانو او پاچاهانو سره ليدل کيږي چي کوم خلک د هغوی مصاحب او مشاور وي د هغوی خيالات او رايه بعد المشرقين وي په هغوی کي چي کوم خلک د ښه خيالاتو د رايې خاوند وي هغوی خپل والي او امير ته ښه مشورې ورکوي او د کومو خيالات چي فاسد وي يا د هغوی په طبيعت کي د بدۍ ماده وي نو هغوی خپل والي او امير ته غلطي مشورې ورکوي او هغوی د بدۍ پر لار بيول غواړي، د الله تعالى حکمت دی چي هغه کوم څوک والي او امير جوړول غواړي نو هغوی د خرابو مصاحبينو او مشاورينو څخه ساتي.

## د حضرت قيس بن سعد رضي الله عنه منصب

﴿٣٥٢٤﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ قَيْسُ بْنَ سَعْدٍ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْزِلَةِ صَاحِبِ الشُّرَطِ مِنَ الْأَمِيرِ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي قيس بن سعد د نبي کريم ﷺ سره د کوتوال په ډول وو (شرطي هغه کس ته ويل کيږي چي د حاکم په مخ کي ولاړ وي چي تنفيذ د احکامو او د اوامرو د حاکم کوي). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\١٣٣، رقم: ٧١٥٥.

**تشريح** مطلب دادئ چي قيس ابن سعد ﷛ به د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر وو چي رسول الله ﷺ كوم احكام وركړي هغه نافذ او جاري كړي لكه څرنګه چي د اميرانو او پاچاهانو سره رئيسانو پر دغه خدمت ټاكلي وي.

**د ښځي حاكم جوړونكی قوم هيڅكله كاميابي نسي تر لاسه كولای**

﴿٣٥٢٥﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ لَمَّا بَلَغَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ أَهْلَ فَارِسَ قَدْ مَلَّكُوا عَلَيْهِمْ بِنْتَ كِسْرَى قَالَ لَنْ يُفْلِحَ قَوْمٌ وَلَّوْا أَمْرَهُمْ امْرَأَةً. رواه البخاري.

د حضرت ابوبكرة ﷛ څخه روايت دئ چي كله رسول الله ﷺ ته دا خبره ورسيدل چي فارسيانو د كسرى لور خپله حاكمه جوړه كړې ده نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه قوم هيڅكله خلاصون نسي تر لاسه كولای چي هغوی واكداره كړي ښځه پر خپل كار. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢٦/٨، رقم: ٤٤٢٥.

**تشريح** ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د ولايت او حكرانۍ اهل سړی كيدای سي ښځه د حكمرانۍ او مشرتوب ور نه ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

**د ټولني څخه بېلوالي**

﴿٣٥٢٦﴾: عَنِ الْحَارِثِ الْاَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حارث اشعري ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

آمُرُكُمْ بِخَمْسٍ بِالْجَمَاعَةِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَالْهِجْرَةِ وَالْجِهَادِ فِي سَبِيلِ

زه تاسو ته د پنځو خبرو حكم دركوم: د جماعت پيروي، د حاكم د احكامو قبلولو او اطاعت كولو، د هجرت، د الله ﷻ په لار كي د جهاد،

اللّٰهِ وَإِنَّهُ مَنْ خَرَجَ مِنَ الْجَمَاعَةِ قِيدَ شِبْرٍ فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ

ثوک چي د جماعت څخه يوه لوېښت هم بيل سو نو هغه د اسلام د رسۍ څخه غاړه وکښل خو دا

عُنُقِهِ إِلَى أَنْ يَرْجِعَ وَمَنْ دَعَا بِدَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ مِنْ جُثَا جَهَنَّمَ وَإِنْ صَامَ وَصَلَّى وَزَعَمَ أَنَّهُ مُسْلِمٌ. رواه احمد والترمذي

چي هغه بيا راستون سي او په جماعت کي شامل سئ او چا چي خلک د جاهليت د رسمونو او طريقو په لور راوبلل هغه د دوږخيانو د ډلي څخه دئ که څه هم هغه روژه نيسي او لمونځ کوي او دا خيال کوي چي هغه مسلمان دئ. احمد او ترمذي.

**تخريج:** مسند الامام احمد ١٣٠/٤، والترمذي ١٣٦/٥–١٣٧، رقم: ٢٨٦٣.

**د لغاتو حل:** جُثى: جمع جثوة وهي الحجارة المجموعة.

**تشريح:** هجرت کوئ: په دغه حکم کي دهجرت څخه مراد دادی چي په دارالکفر کي اوسيدونکي مسلمانان د خپل هيواد په پرېښودو سره دارالاسلام ته ولاړ سي يا يو داسي مسلمان هيواد کي وي چي هلته د بدعت او منهياتو په وجه د دارالبدعة په حکم کي وي نو د هغه په پرېښودو سره داسي هيواد يا ښار ته دي ولاړ سي چي هلته د سنت او ديني مرکز کېدو په وجه د دارالسنة په حکم کي وي، همدارنګه د ګناه او معصيت د ژوند د پرېښودو سره د توبې او پښېمانۍ لاره اختيارول هم د هجرت په حکم کي دی ځکه چي د رسول الله ﷺ قول دی:

(المهاجر من هجر ما نهى الله عنه). مهاجر هغه ثوک دی چي هغه شيان پرېږدي کوم چي الله تعالى منع کړي دي.

د الله جل جلاله په لار کي جهاد کوئ: په دغه حکم کي د جهاد څخه مراد دادی چي د اسلام د پرمختګ، د دين د لوړوالي او د الهي قانون د غلبې لپاره د اسلام د دښمنانو او کافرانو سره جنګ کوئ او خپل نفس د هغه د خواهشاتو څخه د منع کولو سره د هغه وژل هم جهاد دی ځکه چي د انسان سره د هغه د نفس د دښمنۍ څخه زيات سخت او تاوان رسونکی بل هيڅ شی نه سته.

کوم ثوک چي د ملي اجتماعيت څخه يوه لوېښت هم جلا سي ... الخ: يعني کوم مسلمان چي هغه شی پرېښودی پر کوم چي ټول ملت عمل کونکی دی لکه سنت اختيارول، د بدعت څخه پرهيز کول. د امام اطاعت او فرمانبرداري کول که څه هم هغه دغه شيان په ډېره معمولي درجه کي ترک کړي وي نو هغه د اسلام د فرمانبردارۍ په پټه د خپل غاړي څخه وايستل يعني هغه د اسلام سره خپل کړی عهد مات کړ او خپل هغه ذمه داري يې ختمه کړه کوم چي د مسلمان کېدو

په حيثيت سره پر هغه واجب وه يا دا چي خپله اسلام د هغه څخه بري الذمه سو مگر که چيري هغه د خپل دغه فعل څخه منع سو او هغه د خپل بد عملۍ څخه رجوع وکړه نو بيا هغه به د مخکي په ډول د اسلام يو فرمانبردار کس وي.

او کوم څوک چي د جاهليت په ډول عمل وکړي .... : ددې څخه مراد دادی چي کوم څوک د جاهليت د زمانې رواج ته بلنه وکړي او همدارنگه هغه مخلوق د اسلام مخالفو عقائدو او نظرياتو او باطلو رواجو او عاداتو کي د اخته کولو باعث سي او ځيني حضرات دا مراد اخلي چي هغه د يو پيښي او حملې پر وخت داسي خلک د خپل مرستي لپاره راوبلي لکه څرنگه چي د جاهليت په زمانه کي رواج وو چي کله به پر يو سړي باندي دښمن غالب سو نو د خپل مرستي لپاره به يې خلکو ته په لوړ آواز داسي فرياد کوي چي اې د فلاني سړي کورنۍ! اې د فلاني سړي کورنۍ! نو خلک به د هغه د مرستي لپاره ور وځغاستل قطع نظر ددې څخه چي هغه سړی ظالم دی يا مظلوم دئ.

### دامير او والي اهانت

﴿٣٥٢٧﴾: وَعَنْ زِيَادِ بْنِ كُسَيْبٍ الْعَدَوِيِّ قَالَ كُنْتُ مَعَ أَبِي بَكْرَةَ تَحْتَ مِنْبَرِ

د حضرت زياد بن کسيب عدوي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابن عامر خطبه ويل زه د منبر لاندي د

ابْنِ عَامِرٍ وَهُوَ يَخْطُبُ وَعَلَيْهِ ثِيَابٌ رِقَاقٌ فَقَالَ أَبُو بِلَالٍ انْظُرُوا إِلَى أَمِيرِنَا

ابوبکرة سره ناست وم، او د هغه پر بدن نرۍ جامې وې، ابوبلال وويل زموږ دې امير ته وگورئ

يَلْبَسُ ثِيَابَ الْفُسَّاقِ فَقَالَ أَبُو بَكْرَةَ اسْكُتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

چي د فاسقانو په ډول جامې يې اغوستي دي، ابوبکره وويل: پټه خوله سه، ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم

وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ أَهَانَ سُلْطَانَ اللَّهِ فِي الْأَرْضِ أَهَانَهُ اللَّهُ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

څخه دا اوريدلي دي څوک چي د هغه پاچا سپکاوی کوي کوم چي الله جل جلاله پر مځکه (خليفه) ټاکلی دئ نو الله تعالی به د هغه سپکاوی وکړي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج** سنن الترمذي ۴ / ۴۳۵، رقم: ۲۲۲۴.

**تشريح** دا د فاسقانو په ډول جامې اغوستې دي : په ښکاره خو دا معلومېږي چې هغه وخت ابن عامر رضي الله عنه داسې جامې اغوستې وې چې د هغه اغوستل د نارينوو لپاره حرامې وې لکه حرير يا د ريښمو جامې .

ابوبکره حضرت ابوبلال رضي الله عنه د دې څخه منع کړ چې ابن عامر رضي الله عنه ته دې پېغور نه ورکوي نو د دې بنياد دا وو چې په داسې وخت کې د ابوبلال رضي الله عنه نصيحت د رسوايي او په مسلمانانو د فتنې او فساد پيدا کېدو سبب نه سي .

دا احتمال هم دی چې د هغه جامې ريښمنې نه وې بلکه ډېر لوړې او ډېرې نازکې وې چې په عامه توګه سره د عيش کونکو او تنعم جامې وې او زاهد او عابد خلک د هغه څخه پرهيز کوي ځکه ابوبلال رضي الله عنه هغه جامو ته د فاسقانو د جامو سره تشبيه ورکړل، ځيني عارفانو ويلي دي چې من رق ثوبه رق دينه : کوم څوک چې ډېرې نازکې جامې واغوندي نو هغه خپل دين نازک کړي .

**که حاکم د ګناه حکم وکړي نو د هغه اطاعت مه کوئ**

﴿٣٥٢٨﴾: وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سِمْعَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِيْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ . رواه في شرح السنة.

د حضرت نواس بن سمعان رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : په کوم امر کې چې د خالق د حکم خلاف ورزي وي په هغه کې د مخلوق اطاعت صحيح نه دئ . شرح السنة

**تخريج** الامام البغوي في شرح السنة ١٠\٤٤، رقم: ٢٤٥٥.

**تشريح** مطلب دادئ چې يو انسان که هغه امير او حاکم وي يو داسې حکم ورکړي چې په هغه عمل کولو سره د خالق نافرماني کېږي او ګناه لازمېږي نو هغه حکم مطلق منل نه دي پکار مګر که يو سړی د هغه پر اطاعت په زوره مجبور کړل سي نو په دغه صورت کې ګناه نه سته .

**د حاکم انجام**

﴿٣٥٢٩﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې

أَمِيْرِ عَشَرَةٍ إِلَّا يُؤْتٰى بِهٖ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مَغْلُوْلًا حَتّٰى يَفُكَّ عَنْهُ الْعَدْلُ أَوْ يُوْبِقَهُ

الْجَوْرُ . رواه الدارمي

د لسو كسانو حاكم وي هغه به د قيامت په ورځ په داسي حال كي راوستل سي چي د هغه په غاړه كي به طوق وي ، ددې طوق څخه به د هغه غاړه د هغه عدل سپكه كړي او يا به د هغه ظلم هغه هلاک كړي . دارمي.

**تخريج** سنن الدارمي ٢\ ٣١٣، رقم: ٢٥١٥.

**تشريح** مطلب دادئ چي يو وار خو به هر حاكم كه هغه عادل وي يا ظالم وي د الله تعالى په دربار كي تړلى راوستل كيږي او بيا د پلټني څخه وروسته كه هغه عادل ثابت سي نو هغه ته به خلاصون وركړه برخه سي او كه ظالم ثابت سي نو هلاكت يعني په عذاب كي به اخته كړل سي.

## د قيامت په ورځ د اميرانو او حاكمانو افسوس

﴿٣٥٣٠﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلٌ لِلْأُمَرَاءِ وَيْلٌ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : افسوس دئ پر اميرانو او

لِلْعُرَفَاءِ وَيْلٌ لِلْأُمَنَاءِ لَيَتَمَنَّيَنَّ أَقْوَامٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَّ نَوَاصِيَهُمْ مُعَلَّقَةٌ

حاكمانو باندي ، افسوس دئ پر سردارانو او ملكانو باندي، افسوس دئ پر امينانو باندي، ډير خلک به د قيامت په ورځ ددې غوښتنه كوي چي د هغوى د تندي وريښتان

بِالثُّرَيَّا يَتَجَلْجَلُوْنَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَأَنَّهُمْ لَمْ يَلُوْا عَمَلاً . رواه في شرح

د ثريا سره تړلي واى او هغوى د آسمان او مځكي په منځ كي ټال وهلاى مګر هغوى د هيڅ عمل واكداره نه دي . شرح

السنة ورواه أحمد وفي روايته أَنَّ ذَوَائِبَهُمْ كَانَتْ مُعَلَّقَةً بِالثُّرَيَّا يَتَذَبْذَبُوْنَ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَلَمْ يَكُوْنُوْا عَمِلُوْا عَلَى شَيْءٍ .

السنة . او د احمد په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د هغوى كوڅۍ به لوړ له ثريا (پيرونو) سره زړيدلي وي او هغوى به د آسمان او مځكي په منځ كي زړيدلي وي او په هيڅ شي به عاملان سوي نه وي.

**تخريج** البغوي في شرح السنة ۱۰\۵۹، رقم: ۲۴۶۸. والامام احمد في مسنده ۲\۳۵۲.

**د لغاتو حل** العُرفاء: جمع عريف، وهو القيم بامر القبيلة ومحلة يلي امرهم.

**تشريح** د وَيل معنی ده هغه غم، هلاکت او تکليف چې د عذاب په وجه وي، ځيني حضرات وايي چې ويل د دوږخ د يو کندې نوم دی، نقل سوي دي چې ويل د دوږخ يو کنده ده چې په هغه کي کافران تر څلوېښت کالو پوري لوېږي مګر پای ته به يې نه رسيږي.

امين هغه کارکونکي ته ويل کيږي چې حاکم هغه د صدقاتو، خراج او محصول پر اخيستلو باندي ټاکلی وي يا هغه د مسلمانانو د مال او سامان ساتونکی وي، او يا د حاکم څخه پر ته يو بل سړی هغه د خپل مال امانتدار جوړ کړی وي.

ثريا د هغه پنځه ستورو نوم دی کوم چې نژدې نژدې دي او په هغه کي رڼا کمه وي. د تندي وېښتان په ثريا کي په تړلو سره زړول دا په اصل کي د ذلت او خوارۍ مثال دي، ددې مطلب دادئ چې کله اميران او حاکمان د قيامت په ورځ دا ويني چې په دنيا کي موږ ته پر خلکو باندي کوم غوره والی، حاکميت شان او عزت حاصل وو نن د هغه په بدله کي موږ ته دلته د ذلت او خوارۍ سزا راکول کيږي نو هغوی به خواهش کوي چې کاش موږ ته په دنيا کي پر خلکو باندي غوره والی، حاکميت او عزت حاصل نه وای بلکه د هغه په مقابله کي ذلت او خواري راته حاصله وای چې ددغه ځای د ذلت او خوارۍ څخه به ډېره کمه وای تر دې چې زموږ د سرو وېښتان په يو لوړ شي سره په تړلو سره موږ معلق کړي وای او خلکو زموږ د عزت، رياست او رفعت پر ځای هغه ذلت او کمتري ليدلې وای.

د حديث مقصد دا نصيحت کول دي که يو سړي ته يو ذمه داري وسپارل سي يا هغه د يو ځای يا د خلکو امير او والي جوړ کړل سي نو هغه دي عدل او انصاف کوي چې د عادل او انصاف کونکي امير او حاکم په حق کي ډېري زيات زيري دي چې نه د چا سره د ظلم معامله وکړي او نه د چا حلق تلف کړي چې د ظالم او حق تلف کونکي به دا حشر وي کوم چې په حديث کي ذکر سو. پر اميرانو، ملکان او امينانو باندي د افسوس د اظهار کولو وجه داده چې ذمه داري او منصب يې په عامه توګه په لغزش کي اخته کوي او باطل ته يې مائل کوي او د هغوی د چارو په سرته رسولو کي پر عدل او انصاف باندي د محکم او سيدو غوښتنه کمه پوره کيږي مګر چا ته چې د الله تعالی د ساتني مرسته او نيک توفيق حاصل وي نو هغوی خپل منصب او ذمه داري د شرطونو سره سم پوره کوي.

## اکثره ملکان دوزخ ته ځي

﴿٣٥٣١﴾: وَعَنْ غَالِبِ الْقَطَّانِ عَنْ رَجُلٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعِرَافَةَ حَقٌّ وَلَا بُدَّ لِلنَّاسِ مِنَ الْعُرَفَاءِ وَلٰكِنَّ الْعُرَفَاءَ فِي النَّارِ. رواه ابوداؤد.

حضرت غالب قطان رضي الله عنه د يو سړي څخه او هغه د خپل پلار څخه او هغه د خپل نيکه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ملکي حق دئ او د خلکو لپاره د ملک کېدل ضروري دي مګر اکثر ملکان به په اور کي وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٣٤٦، رقم: ٢٩٣٤.

**تشريح**: ملکي يو حقيقت دی: ددې مطلب دادئ چي د خلکو د چارو د ساتني لپاره ملک کېدل يو واقعي امر دی او هغوی ته د خلکو احتياط دی مګر دا هم حقيقت دی چي اکثر ملکان به په دوزخ کي وي ځکه چي هغوی په خپل ملکي کي د حق او انصاف څخه کار نه اخلي او د عدل او ايمانداری د تقاضو لحاظ نه ساتي، په دې اعتبار سره ملکي قبلول د هلاکت او سخت عذاب خطره په بيع اخيستل دي نو عاقل او پوه سړی بايد په دې باره کي هوښيار وي او ددغه منصب د قبلولو څخه تر خپله وسه پوري ځان وساتي تر څو په داسي فتنه کي اخته نه سي چي هغه يې د دوزخ د اور وړ وګرځوي.

## د احمق حاکم څخه پناه غوښتل

﴿٣٥٣٢﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت کعب بن عجرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل:

أُعِيذُكَ بِاللّٰهِ مِنْ إِمَارَةِ السُّفَهَاءِ قَالَ وَمَا ذَاكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أُمَرَاءُ

زه دعا کوم چي الله تعالی تا ته د بې عقلو خلکو سرداري در نه کړي، حضرت کعب عرض وکړ اې دالله رسوله! دا سرداري به کله وي، څنګه به وي او هغه به کوم خلک وي؟

سَيَكُونُونَ مِنْ بَعْدِي مَنْ دَخَلَ عَلَيْهِمْ فَصَدَّقَهُمْ بِكِذْبِهِمْ وَأَعَانَهُمْ عَلٰى

رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : دا امیران او حاکمان به زما څخه وروسته وي ، څوک چي هغوی ته ورغلي د هغوی د درواغو تصدیق یې وکړی او د هغوی په ظلم کي یې د هغوی سره مرسته

ظُلْمِهِمْ فَلَيْسُوا مِنِّيْ وَلَسْتُ مِنْهُمْ وَلَنْ يَّرِدُوْا عَلَي الْحَوْضِ وَمَنْ لَّمْ يَدْخُلْ

وکړل ، هغوی زما څخه نه دي او نه زه د هغوی سره څه تعلق لرم، هغوی به زما حوض کوثر ته نه

عَلَيْهِمْ وَلَمْ يُصَدِّقْهُمْ بِكِذْبِهِمْ وَلَمْ يُعِنْهُمْ عَلٰى ظُلْمِهِمْ فَأُوْلٰئِكَ مِنِّيْ وَأَنَا مِنْهُمْ وَأُوْلٰئِكَ يَرِدُوْنَ عَلَي الْحَوْضِ . رواه الترمذي والنسائي

رانسي ، څوک چي هغوی ته ورنسي د هغوی د دروا‌غو تصدیق ونه کړي او د هغوی په ظلم کي د هغوی مرسته ونه کړي هغه زما څخه دي او زه د هغو څخه یم او دا خلک به پر حوض کوثر ما ته راځي . ترمذي او نسائي .

**تخریج**: سنن الترمذي ٢\٥١٢، رقم: ٦١۴، والنسائي ٧\١٦٠، ١٧، رقم: ۴٢٠٧.

**تشریح**: او نه به هغه خلک زما حوض ته راځي: دلته د حوض څخه مراد یا خو حوض کوثر دی چي هغه خلکو ته به د حوض کوثر د راتلو اجازه نه وي او یا جنت مراد دی چي هغه خلک به په جنت کي ما ته د راتلو لپاره نه پرېږدي، دغه ارشاد دا خبره د سخت وعید په توګه واضحه کوي که یو سړی د داسي حکومت او نظام کنیت اختیار کړي یا د هغه مرسته او حمایت وکړي چي د هغه اختیار کم ظرفه او بې عقلو خلکو په لاس کي وي او د هغه په وجه د الله تعالی پر بندګانو باندي د ظلم چلن کیږي نو دا ددې علامه ده چي په هغه سړي کي د ایمان نیستوالي دی او هغه سړی د مسلمان ویلو وړ نه دی .

## د حاکمانو ناسته ولاړه د تباهۍ سبب دی

(۳۵۲۳): وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ سَكَنَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي اوسي

الْبَادِيَةَ جَفَا وَمَنِ اتَّبَعَ الصَّيْدَ غَفَلَ وَمَنْ أَتَى السُّلْطَانَ افْتُتِنَ . رواه أحمد

په ځنګل کي بې عقل او جاهل وي او څوک چي په ښکار پسي ګرځي غافل وي او څوک چي پاچا ته ځي راځي په فتنه کي لویدلی وي . احمد ،

والترمذي والنسائي وفي رواية أبي داود مَنْ لَزِمَ السُّلْطَانَ افْتُتِنَ وَمَا ازْدَادَ عَبْدٌ مِنَ السُّلْطَانِ دُنُوًّا إِلاَّ ازْدَادَ مِنَ اللهِ بُعْدًا.

ترمذي، نسائي او د ابوداؤد په يوه روايت كي د االفاظ دي چي څوك د پاچا سره حاضر باش وي په فتنه كي اخته وي او څوك چي د پاچا سره قربت لټوي هغه د الله تعالى څخه ليري وي.

**تخريج** مسند الامام احمد ١١\ ٣٥٧، رقم: ٢٢٥٦، والنسائي ١٧\ ١٩٥، رقم: ٤٣٠٩، وابوداؤد ١٣\ ٢٧٨، رقم: ٢٨٥٩.

**تشريح** كوم څوک چي په ځنګل كي اوسيږي....: ددې څخه د صحراء د او سيدونكو سپكاوى مراد نه دى او نه د هغوى كموالي مقصد دى بلكه دا واضحه كوي چي د صحراوو او كليو اوسيدونكو ته د علماؤ او صالحانو صحبت نه حاصليږي ځكه د هغوى زړونه سخت سي او په هغوى كي علم او معرفت، عقل او پوهه او د فهم او ذكاوت رڼا نه پيدا كيږي.

كوم سړى چي په ښكار پسي لګيدلى وي ....: ددې مطلب دادئ چي كوم څوک په زيات لهو او لعب او خوشحالى تر لاسه كولو په فكر كي وي هغه د طاعت او عبادت او د جمعې د لمانځه څخه غافله كيږي او په هغه كي د شفقت او ميني صفات ختميږي.

واضحه دي وي چي ددغه ارشاد په ذريعه د هغه خلكو خبردار كول مقصد دي كوم چي د ښكار كولو عادي سي او د حلال رزق تر لاسه كولو په نيت سره نه بلكه محض د تفريح او وخت تېرولو لپاره د خپل وخت په زياته برخه كي په ښكار بوخت وي، او كوم چي ددغه مسئلې تعلق دى نو په مطلق ښكار او مباح ښكار په حلال كېدو كي څه شبه نه سته او ځيني صحابه كرامو ښكار كړى دى البته د رسول الله ﷺ په باره كي صحابه كرامو ليكلي دي چي رسول الله ﷺ هيڅكله ښكار نه دى كړى مګر څوک يې د ښكار څخه منع كړى هم نه دى.

د حديث په پاى كي د پاچا او حاكم سره د ناستي او د حكومت په دربار كي د حاضرى خرابى واضحه سوې ده چي كوم څوک بېله يو ضرورته او اړتيا د پاچا او حاكم دربار ته ځي نو هغه په فتنه كي اخته سو ځكه كه چيري هغه د پاچا او حاكم د هغه افعالو او اعمالو موافقت او حمايت كوي كوم چي د شريعت خلاف وي نو د هغه په دين كي خطره راځي او كه د هغه مخالفت كوي نو خپل دنيا خرابوي.

مظهر رحمه الله وايي كوم څوک چي د پاچا او حاكم په دربار كي حاضر سي او هلته يې مداهنت اختيار كړ يعني د هغوى پر خلاف د شريعت امور يې ونه ترټل نو هغه په فتنه كي خپل

ځان اخته کړ يعني خپل دين يې په خطره کي واچوی او که هغه مداهنت اختيار نه کړ بلکه هغوی ته يې نصيحت وکړ او امر باالمعروف او نهي عن المنکر فريضه يې سرته ورسول نو په دغه صورت کي د هغه حاضري به د جهاد څخه هم غوره وي .

دهلوي رحمة الله عليه په مسند فردوس کي د حضرت علي رضي الله عنه څخه دغه روايت مرفوع نقل کړی دی چي : (من ازداد علما ولم يزدد في الدنيا زهدا لم يزدد من الله الابعدا) کوم څوک چي خپل علم زيات کړي مګر د دنيا څخه يې بې رغبتي زياته نه کړه نو هغه د الله جل جلاله څخه ليري والی زيات کړ .

## ګمنامي د راحت باعث ده او شهرت د آفت باعث

﴿۳۵۳۴﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَرَبَ عَلَى مَنْكِبِهِ ثُمَّ قَالَ لَهُ أَفْلَحْتَ يَا قُدَيْمُ إِنْ مُتَّ وَلَمْ تَكُنْ أَمِيرًا وَلَا كَاتِبًا وَلَا عَرِيفًا . رواه ابوداؤد .

د حضرت مقدام بن معدي کرب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم زه پر اوږو وټکولم او وه يې فرمايل : اې مقدام ! که په دې حال کي مړ سوې چي ته نه حاکم سوې ، نه منشي او نه يو ملک نو تا خلاصون تر لاسه کړ . ابوداؤد .

**تخريج** سنن ابي داود ۳\۳۴٦، رقم: ۲۹۳۳.

**تشريح** په دغه ارشاد کي دې ته اشاره سوې ده چي بې منصبي راحت دی او شهرت او منصب آفت دئ .

## غير شرعي محصول

﴿۳۵۳۵﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلی الله عليه وسلم لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ صَاحِبُ مَكْسٍ يَعْنِي الَّذِي يَعْشُرُ النَّاسَ . رواه احمد وابوداؤد والدارمي .

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : عشر اخستونکی به جنت ته داخل نه سی . احمد ، ابوداؤد او دارمي .

## د عادل امام فضيلت

﴿۳۵۳٦﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَبَّ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به د الله

النَّاسِ إِلَى اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَقْرَبَهُمْ مِنْهُ مَجْلِسًا إِمَامٌ عَادِلٌ وَإِنَّ أَبْغَضَ

تعالى په نزد په ټولو خلکو کي محبوب او په مرتبه کي تر ټولو نژدې عادل پاچا وي، او د الله

النَّاسِ إِلَى اللّٰهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَشَدَّهُمْ عَذَابًا وفي رواية وَأَبْعَدَهُمْ مِنْهُ

مَجْلِسًا إِمَامٌ جَائِرٌ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب .

تعالى په نزد به د قيامت په ورځ په ټولو خلکو کي بدترين او په مرتبه کي ذليل ظالم حاکم وي، او په يوه روايت کي دي چي د مجلس په لحاظ به تر ټولو ليري ظالم حکمران وي . ترمذي دا حديث حسن غريب دئ .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۱۴، رقم: ۴۳۴۴، والترمذي ۴\۴۰۹، رقم: ۲۱۷۴، وابن ماجه ۲\۱۳۲۹، رقم: ۴۰۱۱.

**تشريح**: د جابر او ظالم په مخکي د حق ويلو ته غوره جهاد ځکه ويل سوي دي چي کوم څوک د يو دښمن سره جهاد کوي نو هغه د خوف او اميد په مينځ کي وي که هغه ته دا خوف وي چي کيداى سي دښمن پر ما غالب سي نو زه به زخمي ياشهيد سم نو په دې سره هغه ته دا اميد هم وي چي زه د دښمن په لاندي کولو سره خپل ځان په پوره توګه وساتم ددې پر خلاف کوم څوک چي د ظالم او جابر حکمران په مخکي د حق خبري اراده لري نو د هغه لپاره معمولي اميد هم نه وي بلکه خوف او خوف وي، هغه د حکمران د پوره قبضې او اختيار په وجه په دې يقين سره د امر بالمعروف او نهي عن المنکر فرض ادا کوي چي ددې پاى به په دنيا کي زما د تباهۍ او تاوان څخه پرته بل هيڅ نه وي او دا ظاهره ده چي په دې کي انسان ته د خپل ژوند او خپل مال او سامان د پاته کېدو هيڅ اميد هم نه وي د هغه پوره کول د هغه د مهم پوره کولو څخه ډېر زيات صبر ازمويونکى، همت غوښتونکى او د مېړاني کار او د بدر د جهاد څخه غوره وي چي د هغه په سرته رسولو کي د خپل ژوند او خپل مال او سامان د پاته کېدو تر ډېره حده پوري اميد وي يا دې ته غوره جهاد ځکه ويل سوي دي چي د حکمران ظلم او زور هغه ټول خلک متاثر کوي کوم چي د هغه په رعيت کي وي هغه يو دوه او څلور کسان نه وي بلکه په زرګونو ، په لکونو او په

ميلينونو د خداى ﷻ بندګان وي نو کوم څوک چي هغه حکمران د هغه د ظلم او زياتي څخه منع کړي هغه به په خپل دغه عمل سره د الله تعالى ډېر مخلوق ته ګټه ورسوي حال دا چي د دښمن سره په جهاد کولو کي دا خبره نه ستـه .

## د ظالم حاکم په مخکي د حق ويني انداز

شيخ ابو حامد رحمة الله عليه په احياء کي ليکلي دي چي پاچا او حاکم ته امر بالمعروف دادئ چي هغه پر غلطه لاره باندي د تلو څخه منع کړي او د هغه کوم اعمال او افعال چي غلط وي هغه ورته ښکاره کړل سي يعني هغه ته دا وښوول سي چي ستا دغه کار د عدل او انصاف خلاف دی، ستا دغه فيصله يا فرمان د قانون او نظام مطابق نه دئ او ستا دغه فعل د دين او اخلاقو او د الله تعالى د حکم خلاف دئ .

مګر د رعيت څخه يو کس ته دا حق حاصل نه دی چي هغه يو حکمران د هغه د غلط کار او فعل څخه په سختۍ سره منع کړي ځکه چي دا به په ملک کي د فتنې او فساد او په قوم کي د انتشار باعث وي اوس پاته سوه دا خبره که يو سړی يو حکمران د هغه د غلط چلن څخه د منع کولو لپاره سخت او تېز الفاظ په سخته او غضبناکه لهجه وکړي د مثال په توګه هغه ته ظالم ووايي يا داسي ورته ووايي (من لا يخاف الله) يعني اې د خداى ﷻ څخه نه بېرېدونکې!، يا داسي نور الفاظ وي نو په دې باره کي مسئله داده که د هغه سړي سخته لهجه او د هغه تېز الفاظ د هغه څخه پرته نور خلک هم د هغه حکمران د ملامتيا باعث وي نو دغه سخت کلامي جائز نه ده او که هغه سړي ته دا بيره نه وي چي زما د سخت کلامۍ په وجه به نور خلک هم د حکمران د عذاب ښښه سي بلکه پر ما به هم سي نو دا جائز دي بلکه مستحب دي ځکه چي د سلفو دا معـمول راغلی دی چي هغوی به د خپل ځان د هلاکت څخه د بيري کولو پرته حکمرانان د هغوی د غلطي لاري څخه په سختۍ منع کول ځکه چي هغوی پوهېدل چي ددې په نتيجه کي به د حکمران ملامتيا د ځان د هلاکت سبب سي نو تر دې لوی سعادت نور څه کيدای سي چي په جهاد کي د شهادت درجه په برخه سي.

### د حاکم صالح مشير

﴿٣٥٣٨﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي

اللّٰهُ بِالْأَمِيرِ خَيْرًا جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ صِدْقٍ إِنْ نَسِيَ ذَكَّرَهُ وَإِنْ ذَكَرَ أَعَانَهُ وَإِذَا

الله تعالی د يو امير يا حاکم سره د ښيګڼي اراده لري نو د هغه لپاره داسي وزير و ټاکي که چيري د امير څخه يو خبره هيره سي نو وزير يې ور په ياد کړي او که خبره يې ياد وي نو وزير د هغه مرسته کوي

أَرَادَ اللّٰهُ بِهِ غَيْرَ ذٰلِكَ جَعَلَ لَهُ وَزِيرَ سُوءٍ إِنْ نَسِيَ لَمْ يُذَكِّرْهُ وَإِنْ ذَكَرَ لَمْ يُعِنْهُ . رواه ابوداؤد والنسائي .

او هر کله چي الله تعالی د يو امير سره د بدۍ اراده کوي نو هغه ته خراب وزير ورکړي که د امير څخه يو خبره هيره سي نو وزير يې نه ور په يادوي او که خبره يې په ياد وي نو د هغه مرسته نه کوي ، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\ ٣٤٥، رقم: ٢٩٣٢، والنسائي ٧\ ١٥٩، رقم: ٤٢٠٤.

## د حاکم شک او شبه کول

﴿٣٥٣٩﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْأَمِيرَ إِذَا ابْتَغَى الرِّيبَةَ فِي النَّاسِ أَفْسَدَهُمْ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي يو حاکم په خلکو کي د شک او شبهې خبره لټوي نو خلک خرابوي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٥\ ٢٠٠، رقم: ٤٨٨٩.

**د لغاتو حل**: الريبة: اى التهمة.

**تشريح**: ددغه ارشاد په ذريعه د نړيوال آئين يو لوی نکتې ته اشاره کيږي چي د هيواد او قوم سالميت، د عوامو د فلاح او عامو انسانانو د اطمينان او امن لپاره دا ضروري ده چي د حکمران او رعيت په مينځ کي پوره باور وي په خاصه توګه حکمران ته دا خيال کول پکار دي چي هغه ته د خپل رعيت په باره کي د خپل باور اظهار کول پکار دي کوم تنګ نظره او کم ظرفه حکمران چي د خپل هيواد د عامو خلکو يا د يو خاص ډلي په باره کي په ځانګړې توګه په شک

او شبه کي اخته وي او د هغوی پر وفاداری باندي یا د هغوی پر کړنو باندي بدګماني کوي او پر هغوی ډول ډول الزامونه عائد کوي او دهغوی څخه مؤاخذه کوي او هغوی په ډول ډول سزاوو کي اخته وي نو هغه د خپل لاسه د خپل حکمرانۍ ربښې پرې کوي ځکه چي په دغه صورت سره نه یوازي دا چي پر کوموډلو باندي د شک او شبهې اظهار کیږي د هغوی حالات بدلیږي بلکه په هیواد او قوم کي د بې اطمینانۍ ، اضطراب او انتشار عامه فضا رامنځته کیږي.
ددغه حدیث مقصد د خلکو د احوالو د څارني او د هغوي د عیبونو د لټولو څخه منع کول دي او ددې حکم ورکول هم دي که په خلکو کي يو عيب وي نو د هغه پرده دي وسي او د هغوی څخه چي کومه ګناه او خطا وسي هغه دي ورته معاف کړل سي.

﴿۳۵۴۰﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّكَ إِذَا اتَّبَعْتَ عَوْرَاتِ النَّاسِ أَفْسَدْتَهُمْ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي هر کله ته د خلکو د عيبونو په لټه کي سوې نو ته به هغوی خراب کړې . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٠٧/٧، رقم: ٩٦٥٩.

## د نا انصافه حاکم پر خلاف صبر کول غوره دي

﴿۳۵۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ أَنْتُمْ

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما څخه وروسته به تاسو

وَأَئِمَّةٌ مِنْ بَعْدِي يَسْتَأْثِرُونَ بِهَذَا الْفَيْءِ قُلْتُ اما وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ

د خپلو امامانو سره څنګه وخت تيروئ ؟ هر کله چي هغوی د بيت المال څخه خپل کار اخلي او ور خلکو ته به يې نه ورکوي يعني په دې حالت کي به تاسو صبر کوئ يا د هغوی سره جنګ کوئ ؟ما وويل : قسم دی په هغه ذات چي تاسو يې په حق سره راليږلي ياست

أَضَعُ سَيْفِي عَلَى عَاتِقِي ثُمَّ أَضْرِبُ بِهِ حَتَّى أَلْقَاكَ قَالَ أَوَلَا أَدُلُّكَ عَلَى خَيْرٍ مِنْ ذَلِكَ تَصْبِرُ حَتَّى تَلْقَانِي . رواه بوداؤد

زه به خپله توره پر خپله اوږه کښېږدم بيا به يې په توره سره قتل کړم ، تر دې چې ستاسو سره يو ځای سم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا زه تا ته تر دې ښه خبره ونه ښيم؟ ته صبره کوه تر څو چې زما سره يو ځای سې . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۱۹، رقم: ۴۷۵۹.

**تشريح**: فئ هغه مال ته وايي چې د کفارو څخه بېله جنګ او جګړې تر لاسه سي لکه خراج، جذيه، يا دا ډول نور محصول چې په اسلامي هيواد کي د غير مسلمانانو څخه تر لاسه کيږي او د کفارو څخه چې کوم مال د جنګ او جګړې په ذريعه تر لاسه سي هغه ته غنيمت وايي ، د فئ حکم دادی چې د تر لاسه سوي مال څلور برخي د ټولو مسلمانانو حق دی چې دهغوی په مينځ کي وويشل سي او پنځمه برخه په بيت المال کي جمع کړل سي ، د فئ په باره کي دا تلقين سوی دی که يو حکمران دا په خپل تصرف کي راولي او په مستحقينو کي يې ونه ويشي نو که څه هم دا حق تلفي ده او مسلمانانو ته دا حق دی چې د هغه حکمران څخه خپله برخه وغواړي مګر محض ددغه مال لپاره د هغه حکمران پر خلاف توره پورته کول او د سختۍ لاره اختيارولو څخه غوره دادي چې د صبر لار اختيار کړل سي .

علماء کرامو ليکلي دي چې ددغه ارشاد په مفهوم کي فئ او غنيمت دواړه شامل دي او ددې مقصد دا واضح کول دي چې کوم حکمران د فئ او غنيمت ټول مال په خپل تصرف کي راولي او بيت المال ته تاوان ورسوي او د مسلمانانو حق تلف کړي نو هغه ظالم دئ .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د عادل امام فضيلت

﴿۳۵۴۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَدْرُونَ مَنْ

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو ته څرګند ده چې

السَّابِقُونَ إِلَى ظِلِّ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالُوا اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ

د قيامت په ورځ به د الله تعالی سايې ته تر ټولو وړاندي کوم خلک ځي ؟ صحابه کرامو ويل : الله تعالی او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل: د

الَّذِينَ إِذَا أُعْطُوا الْحَقَّ قَبِلُوهُ وَإِذَا سُئِلُوهُ بَذَلُوهُ وَحَكَمُوا لِلنَّاسِ كَحُكْمِهِمْ

لِأَنْفُسِهِمْ .

عرش الهي سايې ته به تر ټولو وړاندي هغه خلک ځي چي هغوی ته حق خبره وکړل سي نو هغه يې قبوله کړي او هر کله چي د هغوی څخه د حق غوښتنه وکړل سي نو حق ورکوي او خلکو ته داسي حکم ورکوي څرنګه چي پر خپل ځان حکم کوي . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٦\٦٩.

**تشريح**: په دغه حديث کي د عادلو حکمرانانو درې صفتونه ذکر سوي دي چي هغوی به ددې په وجه د قيامت په ورځ د الله تعالی د عنايت او کرم او دهغه د سايې تر ټولو مخکي وړ وي ، د عادل حکمران اول صفت دا بيان سوی دی چي کله د هغه په مخکي د رعيت د ښيګڼي او عدل او مساوات په باره کي يو صحيح او حقه خبره وړاندي کيږي نو هغه قبلوي او په هغه عمل کوي، دوهم صفت يې دادئ چي کله رعيت د هغه څخه خپل حق غواړي نو د هغه حق ورکوي او د خلکو د خير او ښېګڼي د غوره والي او د هغوی د ژوند د اړتياوو پوره کولو لپاره د مصرف کولو څخه منع نه کوي او دريم صفت يې دادئ چي کوم شی د ځان لپاره خوښوي نو د رعيت لپاره هم هغه خوښوي او که هغوی خپل راحت او ارام غواړي نو د رعيت په باره کي هم هغه غواړي چي عام خلک هم په راحت او سکون کي وي د خودغرضه او عياشه حکمرانانو په ډول د هغوی طريقه دا نه وي چي خپله په عيش او عشرت کي وي او رعيت په سختۍ ، تنګۍ او بدحالۍ کي پريږدي.

## د حاکمانو د ظلم څخه د رسول الله ﷺ خوف

﴿۳۵۴۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ ثَلَاثٌ أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الِاسْتِسْقَاءُ بِالْأَنْوَاءِ وَحَيْفُ السُّلْطَانِ وَتَكْذِيبٌ بِالْقَدَرِ . رواه احمد

د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي زه د خپل امت په اړه د درو خبرو څخه بيريږم، يو خو د سپوږمۍ د منازلو په حساب د باران طلب کول، دويم د پاچا ظلم کول، دريم تقدير دروغ ګڼل . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٥\١٩٠.

**د لغاتو حل**: بالانواء: ای بظهور الکواکب او بمنازل القمر في السماء. حيف: ای جوره وظلمه.

**تشریح**: انواء د نوء جمع ده او لغوي معنی یې د پاڅېدو او غورځېدلو ده ، مګر په عامه توګه سره ددې استعمال د سپوږمي د منازلو په مفهوم کي کیږي ، د پخوانیو علماء فلکیات مطابق د سپوږمۍ اته ویشت منزلونه دي چي هغه هره شپه په یوه منزل کي وي ، غالبا په دې وجه د پاڅېدو او غورځېدو څخه طلوع او غروب د مراد په اخیستلو سره انواء د سپوږمي د منازلو په مفهوم کي استعمالیږي ، په هر حال د عربو مشرکینو به باران دغه منازلو ته منسوب کوی او کله چي به باران کیدی نو هغوی به دا ویل چي د سپوږمۍ د فلاني منزل په وجه باران وسو دا یوه باطله عقیده ده ځکه په نورو حدیثو کي ددغه عقیدې صریح منع راغلې ده او د توحید د اهمیت واضح کولو او د شرک د وهم لیري کولو لپاره د کفر د لفظ اطلاق پر سوی دی.

**بېله اړتیا مه امین جوړیږئ او مه حاکم**

﴿۳۵۴۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةَ أَيَّامٍ

د حضرت ابوذر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اې ابوذره! شپږ ورځي

اعْقِلْ يَا أَبَا ذَرٍّ مَا يُقَالُ لَكَ بَعْدُ فَلَمَّا كَانَ الْيَوْمُ السَّابِعُ قَالَ أُوصِيكَ بِتَقْوَى

وروسته به زه تا ته یوه خبره کوم ، پر هغه ښه فکر وکړه او بیا عمل په وکړه ، او وه ورځ چي پیل سوه نو رسول الله ﷺ وفرمایل زه تا ته امر کوم په تقوی

اللَّهِ فِي سِرِّ أَمْرِكَ وَعَلَانِيَتِهِ وَإِذَا أَسَأْتَ فَأَحْسِنْ وَلَا تَسْأَلَنَّ أَحَدًا شَيْئًا وَإِنْ سَقَطَ سَوْطُكَ وَلَا تَقْبِضْ أَمَانَةً وَلَا تَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ . رواه احمد

د خدای جل جلاله سره په پټ کار ستا کي او په ښکاره کي او هر کله چي ته د چا سره بدي وکړې نو د هغه سره نیکي هم وکړه او د چا څخه یو شی مه غواړه که څه هم ستا غمچینه ولویږي (یعني که ستا غمچینه ایله سي نو چا ته مه وایه چي دا را پورته کړه) او د چا امانت د ځان سره مه ساته او د دوو کسانو په منځ کي پریکړه مه کوه . احمد

**تخریج**: مسند االامام احمد ۵\۱۸۱.

**تشریح**: د چا امانت د ځان سره مه ساته : ددې مطلب دادئ چي بېله ضرورته د یو چا امانت د ځان سره ایښودل د احتیاط خلاف کار دی ځکه چي پر ځان باندي هیڅ باور نه وي چي هغه کله د شیطان په چم کي راسي او په امانت کي خیانت وسي یا که خیانت ونه سي نو دا شی د تهمت

محل دی چي په يو وجه خپله د امانت مالک يا يو بل څوک پر تا باندي د خيانت تهمت ولګوي .

## د حکومت دري تدريجي مرحلې

﴿٣٥٤٥﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ مَا مِنْ

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د لسو کسانو يا

رَجُلٍ يَلِي أَمْرَ عَشَرَةٍ فَمَا فَوْقَ ذٰلِكَ إِلَّا أَتَى اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ مَغْلُولًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ

زيات و حاکم وي الله تعالى به د قيامت په ورځ هغه په داسي حال کي را پورته کړي چي د هغه په

يَدُهُ إِلَى عُنُقِهِ فَكَّهُ بِرُّهُ أَوْ أَوْبَقَهُ إِثْمُهُ أَوَّلُهَا مَلَامَةٌ وَأَوْسَطُهَا نَدَامَةٌ وَآخِرُهَا

خِزْيٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه احمد

غاړه کي به دده لاس وي ددې مصيبت څخه به هغه د هغه نيکي خلاصوي او يا د هغه ګناه به هغه هلاک کړي ، د امارت پيل ملامتيا ده او مينځ يې پښيماني ده او د هغه پای په قيامت کي ذلت او رسوايي ده . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٥\٢٦٧.

**تشريح**: حکومت او مشرتوب که څه هم د انسان طبعي خواهش دی او کم انسانان به داسي وي چي هغوی د حکومت او مشرتوب ارزو نه لري مګر ددغه حکومت او مشرتوب حقيقت او ددې نتيجه څه ده؟ دغه حديث وضاحت کوي چي کله يو سړی د حکومت او مشرتوب پر چوکۍ کښيني نو د هغه اوله مرحله دا وي چي هغه د هري خوا څخه د ملامتيا نښه جوړيږي خلک طعن ورکوي چي هغه داسي وکړل او داسي يې وکړل څوک د اختياراتو د ناجائز استعمال الزام پر لګوي څوک د جانب دارۍ تهمت پر لګوي او څوک د حکومت د فرائضو په پوره کولو کي د غفلت الزام پر لګوي ، غرض دا چي د هري خوا د اعتراضاتو په کېدو سره په سخته پښيماني او ندامت کي اخته سي او وايي چي ما دغه منصب ولي قبول کړ او په دغه مصيبت کي مي ځان ولي اخته کړ او بيا ددې آخري برخه د ذلت او رسوايي په صورت کي مخته راځي د دنيا ذلت او رسوائي هم او د آخرت ذلت او رسوائي هم، د دنيا ذلت او رسوائي داده که په يو وجه د هغه منصب څخه معزول کړل سي نو د هغه سپکاوی کيږي يا که رعيت يې د انتظام څخه مطمئن نه وي نو د هغوی په زړو کي د هغه په اړه سخت نفرت او حقارت پيدا کيږي او ښکاره ده چي د يو

حكمران لپاره تر دې زيات په دنيا كي ذلت او رسوائي څه كيداى سي او د آخرت ذلت او رسوائي داده چي هغه د خپل حكومت په زمانه كي چي څه كوي د هغه جواب وركول به د احكم الحاكمين په درباره كي وركول وي تر دې چي د هغه څخه كومه كوتاهي، ظلم او غلط كار سوى وي د هغه په وجه به په عذاب كي اخته وي، فاعتبروا يا اولي الابصار.

دلته په حديث شريف كي يوازي د قيامت د ورځي ذلت او رسوائي ذكر سوې ده او د دنيا رسوائي ذكر سوې نه ده ددې وجه داده چي د قيامت په ورځ به ذلت او رسوائي د دنيا تر ذلت او رسوائي ډېره سخته وي ځكه ددې په ذكر كولو باندي اكتفاء وكړل سول.

## د حضرت معاويه رضي الله عنه په اړه د رسول الله ﷺ پيشكويي

﴿۳۵۴۶﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مُعَاوِيَةُ إِنْ وُلِّيتَ أَمْرًا فَاتَّقِ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ وَاعْدِلْ قَالَ فَمَا زِلْتُ أَظُنُّ أَنِّي مُبْتَلًى بِعَمَلٍ لِقَوْلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى ابْتُلِيتُ. رواه احمد

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې معاويه! كه ته د يو كار والي او حاكم و ټاكل سې نو د الله څخه بيرېږه او انصاف كوه، د معاويه بيان دئ چي ما به هميشه دا خيال كوئ چي د رسول الله ﷺ د قول په وجه زه خامخا په يو كار كي اخته كيږم تر څو چي زه په حكومت كي اخته سوم. احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۰۱\۴.

## د راتلونكي زمانې په اړه يو پيشكويي

﴿۳۵۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَوَّذُوا بِاللّٰهِ مِنْ رَأْسِ السَّبْعِينَ وَمِنْ إِمَارَةِ الصِّبْيَانِ. روى الاحاديث الستتة احمد و روى البيهقي حديث معاوية في دلائل النبوة.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د الله جل جلاله په ذريعه د اويا كالو د سر څخه (د هجرت په ۶۰ كال كي يزيد والي سو) او د كوچنيانو د سردارۍ او

امارت څخه پناه غواړئ ، شپږ سره حديثونه امام احمد روايت کړي دي ، د معاويه حديث بيهقي په دلائل النبوة کي روايت کړی دی .

**تخريج**: مسند الامام احمد ٢\٣٢٦.

**تشريح**: د اويا کالو د شروع څخه مراد د هجري کال اوومه لسيزه ده چي د هغه شروع د يو شپېته هجري کال څخه کيږي، د شپېتم هجري کال په آخر کي د حضرت معاويه ﷺ د حکومت زمانه د هغه په وفات سره ختم سوه او د يزيد ابن معاويه امارت قائم سو ، په دې سره د حکومت څخه د صحابه کرامو د بابرکته امامت سايه په پوره توګه پورته سوه او ددې څخه وروسته د حکومت هغه زمانه شروع سول چي انتشار، فتنه، فساد، ظلم او زور د مشرتوب په تر لاسه کولو کي کشمکش او د ملوکيت فتنه راغله ، يزيد درې کاله او اته مياشتي د حکومت پر تخت ناست وو په دغه وخت کي د هغه د حکومت تر ټولو زياته شرمناکه واقعه د کربلاء واقعه ده ، د يزيد څخه وروسته د هغه زوی معاويه ابن يزيد ابن معاويه يوازي په نامه پر تخت کښېنول سو او په آخر کي د حکومت واګي د بنواميه د سفياني کورنۍ څخه په وتلو د بني مروان په لاس راغلې .

په حديث شريف کي د بني مروان حکومت د کوچنيانو د حکومت سره تعبير سوی دی ، د بني مروان په زمانه کي د اقتدار رسۍ کشي، استبداد او جبر، مذهبي انتشار، کورنۍ او قبائلي عصبيت، د اسلامي شعائرو څخه بې پرواهي، او د بزرګانو سره د سختۍ او تشدد چي کومه څرګندونه وسوه هغه ټول د حکومت ټول نظام او هيواد بازيچه اطفال (د کوچنيانو لوبي) جوړه کړې وه ، حجاج ابن يوسف د بني مروان د حکومت تر ټولو لوی معتمد والي وو چي په خپل ظلم کي د چنګيز او هلاکو څخه کم نه دی بلکه زيات دی .

د اووه مي هجري لسيزي د شروع څخه د يزيد ابن معاويه د امارت په صورت کي ظاهرېدونکی دور او د هغه څخه وروسته د بني مروان د حکومت ظلمونه شروع سول چي کلونه مخکي د نبوت په وړاندي د يو خلاص سوي کتاب په ډول وو او د رسول اللهﷺ فراست محکم د راتلونکي زمانې ادراک کوی چي په هغه کي د امت اجتماعي هيئت او د هغه ملي خصوصيات به څو خود غرضه ، مفاد پرسته او دنيا دارو حکمرانانو باندي قربان کړي نو رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل چي د هغه وخت پېښېدونکو سختو حالاتو او حکمرانانو د حکومت څخه د الله تعالى پناه غواړئ چي الله تعالى دي په تاسو کي پر چا باندي هغه زمانه نه راولي .

## څرنګه چې تاسو عمل کوئ هم هغسې حاکم به در باندې مقرروي

﴿۳۵۴۸﴾: وَعَنْ يَحْيَى بْنِ هَاشِمٍ عَنْ يُّونُسَ بْنِ إِسْحَاقٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ كَمَا تَكُوْنُوْنَ كَذٰلِكَ يُؤَمَّرُ عَلَيْكُمْ. رواه البيهقي.

حضرت يحيى بن هاشم د حضرت يونس بن اسحاق او هغه د خپل پلار څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څرنګه چې تاسو ياست هم هغه ډول به ستاسو اميران ټاکل کيږي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٦\٢٢-٢٣، رقم: ٧٣٩١.

**تشريح**: مطلب دادی چې ستاسو کړني او چلن څرنګه وي هم هغسې به پر تاسو حاکم او عامل ټاکل کيږي که ستاسو اعمال ښه وي نو ستاسو حاکمان به هم ښه وي او که ستاسو اعمال خراب وي نو ستاسو حاکمان به هم خراب وي.

## پاچا د الله ﷻ سايه ده

﴿۳۵۴۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ السُّلْطَانَ

د حضرت ابن عمر ﵄ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: پاچا پر مځکه د الله تعالى

ظِلُّ اللهِ فِي الْأَرْضِ يَأْوِيْ إِلَيْهِ كُلُّ مَظْلُوْمٍ مِنْ عِبَادِهِ فَإِذَا عَدَلَ كَانَ لَهُ الْأَجْرُ

سايه ده او د الله تعالى په بندګانو کې هر مظلوم بنده په هغه سره پناه تر لاسه کولای سي بيا چې هغه عدل او انصاف کوي نو هغه ته ثواب تر لاسه کيږي

وَعَلَى الرَّعِيَّةِ الشُّكْرُ وَإِذَا جَارَ كَانَ عَلَيْهِ الْإِصْرُ وَعَلَى الرَّعِيَّةِ الصَّبْرُ. رواه البيهقي

او پر رعيت د هغه شکر واجب کيږي او هر کله چې ظلم کوي پر هغه ګناه وي او پر رعيت باندې صبر لازم دئ. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٦\١٦، رقم: ٧٣٦٩.

**د لغاتو حل**: الاصر: اى الوزر (زور)

**تشريح**: د پاچا وجود ته د الله تعالى سايه په دې اعتبار ويل سوي دي لکه څرنګه چې د يو شي سايه د لمر د ګرمۍ د تکليف څخه ساتنه کوي همدارنګه پاچا د خپل رعيت خلک د مختلفو تکليفو څخه ساتي او ډېر واره لفظ د سايې کنايهٔ د ساتني او حمايت په مفهوم کې هم

استعمالیږي په دې اعتبار سره که وکتل سي نو د پاچا وجود د خپل رعیت لپاره د ساتني او حمایت تر ټولو لویه ذریعه کېدل ظاهر دي.

علامه طیبي رحمة الله علیه دا وضاحت کړی دی چي لفظ د (ظل الله) یو تشبیه ده او دا عبارت (یاوي الیه کل مظلوم...) د دغه تشبیه وضاحت او مراد بیانوي یعني خلک چي څرنګه چي د سایې په یخوالي کي د لمر د ګرمۍ څخه راحت تر لاسه کوي همدارنګه د پاچا د عدل په یخوالي کي د ظلم او زور د ګرمۍ څخه راحت تر لاسه کوي.

په ظل الله کي الله تعالی ته د سایې نسبت د هغه د عظمت او غوره والي د اظهار لپاره دی لکه څرنګه چي په بیت الله شریفه کي الله تعالی ته د بیت نسبت د هغه د عظمت او غوره والي لپاره دي او په دې سره دې ته اشاره مقصد ده چي هغه سایه (یعني پاچا) د نورو سایو په ډول نه ده بلکه هغه د الله پاک د تعلق سره خپل ځانته خصوصیت او غوره والي لري ځکه چي هغه د مځکي پر مخ د الله تعالی خلیفه ګرځول سوی دی چي د هغه فریضه د الله تعالی عدل او احسان د هغه پر بندګانو باندي خپرول دي.

## د قیامت په ورځ تر ټولو لویه مرتبه والا عادل حاکم

﴿۲۵۵۰﴾: وَعَنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

إِنَّ أَفْضَلَ عِبَادِ اللّٰهِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِمَامٌ عَادِلٌ رَفِيقٌ وَإِنَّ شَرَّ

د الله تعالی په نزد د قیامت په ورځ د مرتبې په اعتبار د الله تعالی په بندګانو کي تر ټولو غوره عادل او نرمي کونکی حاکم دئ او بد ترین

النَّاسِ عِنْدَ اللّٰهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِمَامٌ جَائِرٌ خَرِقٌ. رواه البیهقي.

سړی د الله جل جلاله په نزد د قیامت په ورځ سختي کونکی ظالم حاکم دئ. بیهقي

**تخریج** البیهقي في شعب الایمان ١٦/٦، رقم: ٧٣٧١.

**د لغاتو حل** خَرِق: ضد الرفق (سخت).

## د مسلمان بېرول

﴿۳۵۵۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ نَظَرَ إِلَى أَخِيهِ نَظْرَةً يُخِيفُهُ أَخَافَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . روى الأحاديث الأربعة البيهقي في "شعب الإيمان" وقال في حديث يحيى هذا : منقطع وروايته ضعيف

څوک چي د يو مسلمان ورور لوري ته په داسي نظر سره وګوري چي هغه د هغه څخه و بيرېږي نو د قيامت په ورځ به الله تعالى هغه و بيروي . پورتني څلور سره حديثونه بيهقي په شعب الايمان كي روايت كړي دي د وروستني حديث په باره كي ليكلي دي چي دا منقطع دئ او ددې روايت ضعيف دئ

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٥٠. رقم: ٧٤٦٨.

**تشريح**: د دغه حديث په نقل كولو سره دې ته اشاره كول مقصد دي چي كله د يو مسلمان محض بېرول په قيامت كي د هغه د عذاب سبب ګرځي نو پر مسلمانانو باندي د ظلم كونكي به څه حال وي؟ .

## د حاكم ظلم ته د بدويلو پر ځاى خپل عمل سم كړئ

﴿۳۵۵۲﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

د حضرت ابو درداء ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى

تَعَالَى يَقُولُ أَنَا اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا مَالِكُ الْمُلُوكِ وَمَلِكُ الْمُلُوكِ قُلُوبُ الْمُلُوكِ فِي

فرمايي : زه الله يم هيڅ معبود زما څخه پرته د عبادت وړ نسته زه د پاچاهانو پاچا يم د پاچاهانو زړونه زما په

يَدِي وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا أَطَاعُونِي حَوَّلْتُ قُلُوبَ مُلُوكِهِمْ عَلَيْهِمْ بِالرَّحْمَةِ وَالرَّأْفَةِ

لاس كي دي او هر كله چي بندګان زما اطاعت كوي زه د پاچاهانو زړونه د هغوى په لور د رحمت او شفقت وګرځوم

وَإِنَّ الْعِبَادَ إِذَا عَصَوْنِي حَوَّلْتُ قُلُوبَهُمْ بِالسَّخْطَةِ وَالنِّقْمَةِ فَسَامُوهُمْ سُوءَ

او هر كله چي بندګان زما نافرماني كوي نو زه د پاچاهانو زړونه د هغوى لپاره سخت او

غضبناک کوم، بیا چي خراب پاچا هغوی ته

الْعَذَابِ فَلاَ تَشْغَلُوْا أَنْفُسَكُمْ بِالدُّعَاءِ عَلَى الْمُلُوْكِ وَلٰكِنْ اَشْغَلُوْا أَنْفُسَكُمْ بِالذِّكْرِ وَالتَّضَرُّعِ كَيْ أَكْفِيْكُمْ مُلُوْكَكُمْ . رواه أبو نعيم في الحلية.

لويه سزا ورکړي نو د پاچاهانو لپاره بدِه دعاء مه کوئ بلکه زما په ذکر کي مشغول سئ او عاجزي او زاري کوئ لپاره ددې چي زه تاسو د پاچا د شر څخه وساتم. دا حديث ابو نعيم په حليه کي روايت کړی دی

**تخريج**: رواه ابونعيم في الحلية: ۲/۳۸۹.

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي دې ته اشاره ده چي د رعيت د حکمرانانو د رويې تعلق په باطني توګه سره د خلکو د اعمالو سره وي چي د رعيت خلک د الله تعالى اطاعت او فرمانبرداري کوي او د هغوی اعمال او معاملات په عامه توګه صحيح او نيک وي نو د هغوی ظالمه حکمراني هم د هغوی په حق کي عادل، نرمه او شفيقه جوړيږي او که د رعيت خلک د الله تعالى په سرکښی کي اخته وي او د هغوی اعمال او معاملات په عامه توګه د بدی په غاله کي وي نو بيا د هغوی عادل او نرم حکمران به هم د هغوی په حق کي غضبناک او سخت وي، د حکمران پر ظلم او د هغه پر سختی او ناانصافی باندي هغه ته د بد رد ويلو او د هغه ته د ښېراوو کولو پر ځای دغه لار اختيارول پکار دي چي الله تعالى ته رجوع وکړل سي او پر خپلو اعمالو باندي په پښېمانی سره توبه او استغفار وکړل سي، د الله تعالى په دربار کي په عاجزی او زاری سره التجاء او فرياد وکړل سي او خپل اعمال او معاملات په پوره توګه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د حکم تابع کړل سي تر څو د الله ﷻ رحمت متوجه سي او د ظالم حکمران زړه عدل، انصاف او نرمی ته راوګرځي.

==========

# بَابُ مَا عَلَى الْوُلاَةِ مِنَ التَّيْسِيْرِ

## (د واليانو د لوري پر رعيت د نرمی کولو بيان)

په مخکني باب کي دا يادونه وه چي رعيت ته د خپلو حاکمانو اطاعت او فرمانبرداري کول پکار دي، اوس په دغه باب کي دا بيان کيږي چي حاکمانو ته هم د خپل رعيت د خلکو سره نرمي او شفقت کول پکار دي.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## حاکمانو ته نرمي کول پکار دي

﴿٣٥٥٣﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَعَثَ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به په خپلو اصحابو کي یو څوک د

أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِهِ فِي بَعْضِ أَمْرِهِ قَالَ بَشِّرُوا وَلَا تُنَفِّرُوا وَيَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا . متفق عليه.

یو کار پوره کولو لپاره لیږئ نو فرمایل به یې : خلکو ته زیری ورکوئ ، نفرت مه پیداکوئ ، آساني کوئ او سختي مه کوئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٥٢٤، رقم: ٦١٣٤، ومسلم ٣\ ١٣٥٨، رقم: ٦- ١٧٣٢.

﴿٣٥٥٤﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِّرُوا وَلَا تُعَسِّرُوا وَسَكِّنُوا وَلَا تُنَفِّرُوا . متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو اساني کوئ سختي مه کوئ تسکین ورکوئ نفرت مه پیداکوئ . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٥٢٤، رقم: ٦١٢٥، ومسلم ٣\ ١٣٥٩، رقم: ٨- ١٧٣٤.

**د لغاتو حل**: سكنوا : اى سكنوهم بالطاعة او بالبشارة. (په پیروي او زیری یې چوپ کړی).

﴿٣٥٥٥﴾: وَعَنْ أَبِي بُرْدَةَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جده وَأَبَا مُوسَى ومعاذا إِلَى الْيَمَنِ فقَالَ يَسِّرَا وَلَا تُعَسِّرَا وَبَشِّرَا وَلَا تُنَفِّرَا وَتَطَاوَعَا وَلَا تَخْتَلِفَا . متفق عليه.

د حضرت ابو بردة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د هغه نیکه ابو موسی او معاذ یمن ته ولیږل او وه یې فرمایل : آساني کوئ ، په ستونزه کي خلک مه غورځوئ ، زیری ورکوئ نفرت مه پیداکوئ او

اتفاق کوئ اختلاف مه کوئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٥٢٤، رقم: ٦١٢٤، ومسلم ١٣\١٣٥٨، رقم: ٧- ١٧٣٣.

**تشريح**: صحيح دادی چي د مشکوة مؤلف دلته داسي نقل کړي وای (عن ابن ابي بردة ...) يعني د ابي برده سره يې د ابن لفظ هم راوړ ځکه چي ابوبرده رضي الله عنه د ابوموسی اشعري رضي الله عنه زوی دی او ملسی يې نه دی، او د ابوبرده رضي الله عنه څخه د هغه زامن عبدالله، يوسف، سعيد او بلال حديثونه روايت کوي ، دلته چي کوم روايت نقل سوی دی هغه د سعيد ابن ابي برده څخه روايت دی لکه څرنګه چي صحيح بخاري نقل کړی دی چي سعيد ابن ابوبرده رضي الله عنه وايي چي ما د خپل پلار (ابوبرده رضي الله عنه) څخه واوريدل چي هغه ويل : رسول الله صلی الله عليه وسلم زما پلار (ابوموسی اشعري رضي الله عنه) او معاذ رضي الله عنه يمن ته واستول .

## د قيامت په ورځ د عهد ماتونکي رسوايي

﴿٣٥٥٦﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْغَادِرَ يُنْصَبُ لَهُ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُقَالُ هٰذِهٖ غَدْرَةُ فُلَانِ بْنِ فُلَانٍ . متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : د عهد ماتونکي لپاره به د قيامت په ورځ يو بيرغ يا نښه ودرول سي او ورته وه به ويل سي دا د فلاني بن فلاني د عهد ماتولو نښه ده . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٥٦٣، رقم: ٦١٧٨، ومسلم ١٣\١٣٦٠، رقم: ١٠- ١٧٣٥.

**د لغاتو حل**: الغادر: ای ناقض العهد والوفاء (قول او وفا ماتوونکی).

﴿٣٥٥٧﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُعْرَفُ بِهٖ . متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل : د قيامت په ورځ به د عهد ماتولو يو نښه وي چي په هغه سره به د هغه شناخت کيږي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٨٣، رقم: ٣١٨٦، ومسلم ١٣\١٣٦١، رقم: ١٥- ١٧٣٨.

﴿۳۵۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِكُلِّ غَادِرٍ لَوَاءٌ

د حضرت ابو سعيد رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به د هر

عِنْدَ اِسْتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وفي رواية لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُرْفَعُ لَهُ

بِقَدْرِ غَدْرِهِ أَلاَ وَلاَ غَادِرَ أَعْظَمُ غَدْرًا مِنْ أَمِيْرِ عَامَّةٍ. رواه مسلم

عهد ماتونكي نښه د هغه كوناټو ته نژدې ولاړه وي او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي د هر عهد ماتونكي نښه به د قيامت په ورځ د هغه د عهد ماتولو سره سم لوړه كړل سي . خبردار ! هيڅ عهد ماتونكى د عهد ماتوني په اعتبار د عام امام څخه لوى نه دئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۳۶۱/۳، رقم: ۱۵– ۱۷۳۸.

**د لغاتو حل**: عند استه: اى خلف ظهره والاست: الدبر. (تر شا).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د عوامو ضروريات نه پوره كونكي حاكم په باره كي وعيد

﴿۳۵۵۹﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ اَنَّهُ قَالَ لِمُعَاوِيَةَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عمرو بن مرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي هغه حضرت معاويه ته وويل ما د رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ وَلاَّهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ شَيْئًا مِنْ أَمْرِ الْمُسْلِمِيْنَ فَاحْتَجَبَ

څخه دا اوريدلي دي څوك چي الله تعالى د مسلمانانو د يو كار والي او حاكم جوړ كړي او هغه

دُوْنَ حَاجَتِهِمْ وَخَلَّتِهِمْ وَفَقْرِهِمْ احْتَجَبَ اللّٰهُ دُوْنَ حَاجَتِهِ وَخَلَّتِهِ وَفَقْرِهِ

د هغوى د حاجت، مطلب او فقر څخه ستر كي پټوي نو الله تعالى به د هغه د حاجت، مطلب او فقر څخه په پرده كي سي، د دې په اوريدو سره

فَجَعَلَ مُعَاوِيَةَ رَجُلاً عَلَى حَوَائِجِ النَّاسِ . رواه ابوداؤد والترمذي و في رواية له ولاحمد اغلق الله ابواب السماء دون خلته و حاجته و مسكنته .

معاويه يو سړی و ټاکی چې هغه د خلکو په ضروریاتو نظر وساتي او هغه پوره کوي . ابوداؤد، ترمذي، او د ترمذي او احمد په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې الله تعالی به د هغه په حاجت ،ضرورت او افلاس د آسمان دروازې بندي کړي .

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٣٥٧، رقم: ٢٩٤٨، والترمذي ٣\٦١٩، رقم: ١٣٣٢.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حاکمانو دروازه بايد خلاصه وي

﴿٣٥٦٠﴾: عَنْ أَبِي الشَّمَّاخِ الْأَزْدِيِّ عَنِ ابْنِ عَمٍّ لَهُ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ أَتَى مُعَاوِيَةَ فَدَخَلَ عَلَيْهِ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ وُلِيَ مِنْ أَمْرِ النَّاسِ شَيْئًا ثُمَّ أَغْلَقَ بَابَهُ دُوْنَ الْمُسْلِمِيْنَ أَوِ الْمَظْلُوْمِ أَوْ ذِي الْحَاجَةِ أَغْلَقَ اللهُ دُوْنَهُ أَبْوَابَ رَحْمَتِهِ عِنْدَ حَاجَتِهِ وَفَقْرِهِ أَفْقَرَ مَا يَكُوْنُ عَلَيْهِ . رواه البيهقي .

حضرت ابو شماخ ازدي خپل د اکا د زوی څخه روايت کوي چې صحابي دئ د هغه بيان دئ چې هغه حضرت معاويه ته ورغلی او ورته وه يې ويل ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي څوک چې د خلکو پر يو کار ماموره کړل سو او بيا هغه خپله دروازه د مسلمانانو لپاره يا د مظلوم يا اړو کسانو لپاره بنده کړه نو الله تعالی به د خپل رحمت دروازې د هغه د ضرورت، حاجت او مفلسۍ پر وخت بندي کړي په خاصه توګه چې هغه اړ وي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٢١، رقم: ٧٣٨٤.

### خپل حاکمانو ته د حضرت عمر رضي الله عنه هدايت

﴿٣٥٦١﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّهُ كَانَ إِذَا بَعَثَ عُمَّالَهُ شَرَطَ عَلَيْهِمْ أَنْ لاَّ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دئ کوم وخت چې هغه خپل عاملان ليږل نو د هغوی سره به يې دا شرط کوئ چې

تَرْكَبُوْا بِرْذَوْنًا وَلاَ تَأْكُلُوْا نَقِيًّا وَلاَ تَلْبَسُوْا رَقِيْقًا وَلاَ تُغْلِقُوْا أَبْوَابَكُمْ دُوْنَ

پر ترکي آس به نه سپریږئ میده به نه خورئ، نرۍ جامه به نه اغوندئ او خپل دروازه به د اړو

حَوَائِجِ النَّاسِ فَإِنْ فَعَلْتُمْ شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ فَقَدْ حَلَّتْ بِكُمُ الْعُقُوْبَةُ ثُمَّ

يُشَيِّعُهُمْ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

کسانو څخه نه بندوی که تاسي په دغو کي یو کار وکړی نو د سزا مستحق به سئ، ددې څخه وروسته به حضرت عمر رضی الله عنه د هغو سره تر یو ځایه روان سو دوی به یې رخصت کړل. بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان١٦\ ٢٤، رقم: ٧٣٩٤.

**د لغاتو حل**: بِرذونا: ای خیلا ترکیا. (ترکي آس)

**تشريح**: پر ترکي آس باندي د نه سپرېدو علت تکبر دئ ځکه نو پر عربي آس باندي نه سپرېدل به په طریقه اولی وي، علامه طیبي رحمة الله علیه وايي پر ترکي آس باندي د سپرېدو منع په اصل کي د تکبر منع کول دي، د مېده خوړلو او نرمو جامو اغوستلو څخه منع کول د اسراف او عیش و عشرت د ژوند څخه منع کول دي او اړو کسانو ته د خپل دروازې بندولو څخه منع کول د مسلمانانو د اړتیاوو نه پوره کولو څخه منع کول دي.

=========

# بَابُ الْعَمَلِ فِي الْقَضَاءِ وَالْخَوْفِ مِنْهُ

## (د قضاء عمل او د هغه څخه د بیرېدو بیان)

لکه څرنگه چي د کتاب الامارة والقضاء په شروع کي ښوول سوي دي چي د اسلامي نظام اصل محور امام او امیر وي، په تېرو دواړو بابو کي د امام او امیر په باره کي بیان وکړل سو اوس په دغه باب کي د قضاء بیان دی او په دې باره کي په خاصه توگه د دوو خبرو ذکر کیږي یو خو دا چي قاضي د خپل فرض په ادا کولو کي یوازي د اسلامي قانون ماخذ یعني کتاب، سنت او اجتهاد لارښود جوړ کړي او د هغه هیڅ فیصله او حکم ددغه شیانو خلاف باید نه وي، دوهمه خبره داده چي قضاء د خپل ارزښت او عظمت په اعتبار دومره لوړ منصب دی چي نه یوازي دا چي هر سړی باید دې ته د رسیدو هڅه ونه کړي بلکه تر څو چي کیدای سي ددغه

منصب د قبلولو څخه بېره او پرهيز كول پكار دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د غصې په حالت كي د چا فيصله مه كوئ

﴿۳۵۶۲﴾: عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَقْضِيَنَّ حَكَمٌ بَيْنَ اثْنَيْنِ وَهُوَ غَضْبَانُ. متفق عليه

د حضرت ابوبكرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي حاكم په غصه كي وي نو د دوو كسانو په منځ كي دي حكم (پريكړه) نه كوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۳٦، رقم: ۷۱۵۸، ومسلم ۳\۱۳۴۲، رقم: ۱٦- ۱۷۱۷.

**تشريح**: د غصې په حالت كي د فكر قوت مغلوب كيږئ او په داسي صورت كي د انصاف فيصله كول مشكل وي ځكه حكم سوى دى چي هيڅ حاكم او قاضي دي د غضب او غيض په حالت كي فيصله نه كوي چي د هغه غيض او غضب د هغه په فكر او اجتهاد كي خنډ واقع نه سي او هغه د انصاف فيصله ونه كړلای سي همدارنگه د سختي گرمۍ او سخت يخ، لوږي، تندي او ناروغۍ په حالت كي دي هم حكم او فيصله نه كوي ځكه چي په دغه وختو كي پر حواسو باندي پوره واک نه وي او د ماغ حاضر نه وي كه يو حاكم په دغه حالاتو كي حكم او فيصله وكړي نو هغه به په كراهت سره جاري وي.

### قاضي ته د اجتهاد اختيار

﴿۳۵۶۳﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو وَّاَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عبد الله بن عمرو او ابو هريرة (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ وَ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ وَاحِدٌ. متفق عليه

هر كله چي حاكم پر حكم كولو اماده سي كه اجتهاد وكړي (يعني پر معاملو باندي ډېر غور او فكر وكړي) او د هغه پريكړه صحيح وي نو هغه ته به دوه برابر ثواب تر لاسه كيږي او كه هغه

پوره پوره کوښښ وکړي مگر غلطي ځيني وسوه نو يو برابر ثواب به تر لاسه کړي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\ ٣١٨، رقم: ٧٣٥٢، رقم: ١٥- ١٧١٦.

**تشريح**: مطلب دادئ که قاضي او حاکم د يو داسي قضيې او معاملې حکم ورکول غواړي چي د هغه په باره کي په کتاب ، سنت او اسلامي فقه کي يو صريح او واضح لارښوونه نه وي او بيا هغه اجتهاد وکړي مگر د کتاب او سنت احکام او تعليمات او اسلامي فقه مسائل او د اسلامي عدالتونو په نظر کي د پوره فکر کولو ځخه وروسته هغه داسي نتيجې ته ورسيږي چي د هغه په باره کي د هغه د ضمير لارښوونه دا وي چي دا به پر حق مبني وي او بيا هغه نتيجه د هغه حکم او فيصله سي نو هغه حکم او فيصله د ظاهري قانون په اعتبار بالکل صحيح منل کيږي البته د عقبى په لحاظ به د هغه دوه صورتونه وي يو خو دا که چيري په حقيقت کي هغه فيصله د کتاب او سنت د منشاء مطابق وي نو د هغه به دوه ثوابونه ورکول کيږي او که د هغه فيصله د کتاب او سنت موافق نه وي نو د هغه به يو ثواب ورکول کيږي ، او همدا حکم د مجتهد هم دی که هغه د مسائلو د استنباط په وخت کي د خپل اجتهاد په نتيجه کي د کتاب او سنت منشاء ته ورسيږي نو هغه ته به دوه اجره ورکول کيږي او که چيري د کتاب او سنت و منشاء ته په رسېدو کي خطا وکړي نو يو ثواب ورکول کيږي، دا حديث دد ې خبري دليل دی چي د اسلام قاضي ته په داسي جزياتو کي د اجتهاد اختيار حاصل دی کوم چي د اسلامي قانون په ماخذ کي په صراحت سره ذکر سوی نه وي او د هغه يو حکم واضح نه وي او دا هم ثابتيږي چي مجتهد په خپل اجتهاد کي کله صحيح حکم ته ورسيږي او کله خطاء کوي يعني صحيح حکم ته ونه رسيږي مگر په هر صورت کي هغه ته اجر او ثواب ورکول کيږي .

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليکلي دي چي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دادئ که د يو شي حکم او مسئله په نصوص (کتاب الله، حديث رسول الله او اجماع امت) کي د نه ذکر کېدو په وجه پر قياس باندي د عمل کولو ځخه پرته بله چاره نه وي نو په دغه صورت کي پر قياس باندي عمل کول به د تحری قبله په ډول وي (لکه ځرنگه چي يو سړی ته په يو وجه د قبلې معلومات نه کيږي او هغه د لمانځه پر وخت په فکر او تحری (اجتهاد) کولو سره د خپل غالب گمان سره سم د قبلې يو خوا وټاکي او هغه خوا ته په مخ کولو سره لمونځ وکړي نو د هغه لمونځ به صحيح وي که څه هم په حقيقت کي قبله هغه خوا ته نه وي، همدا رنگه پر قياس باندي عمل کونکی به صحيح عمل کونکی وي که څه هم په قياس کي د هغه څخه خطاء سوې وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قضاء منصب يو ابتلاء ده

﴿٣٥٦٤﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ جُعِلَ قَاضِيًا بَيْنَ النَّاسِ فَقَدْ ذُبِحَ بِغَيْرِ سِكِّينٍ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړی چي د خلکو قاضي جوړ کړل سي نو هغه بې چړې حلال سو. احمد، ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجة

**تخريج**: مسند الامام احمد ٢\ ٢٣٠، والترمذي ٣\ ٦١٤، رقم: ١٣٢٥، وابوداؤد ٤\ ٥، رقم: ٣٥٧٢، وابن ماجه ٢\ ٧٧٤، رقم: ٢٣٠٨.

**تشريح**: د ذبح څخه متعارف معنی (يعني د بدن هلاکت) مراد نه دی بلکه غير متعارف معنی (يعني ذهني او روحاني هلاکت) مراد دی، کوم څوک چي قاضي ټاکل کيږي هغه نه يوازي دا چي هر وخت په پريشاني او روحاني اذيت کي اخته وي بلکه هغه ته د خپل عاقبت د خرابۍ بېره هم وي او ظاهره ده چي په چاړه سره ذبح کېدل يوازي د يو ګړي تکليف زغمل وي حال دا چي دغه اذيت ټول عمر بلکه د هغه حسرت او پښېماني تر قيامته پوري وي.

### د قاضي جوړېدو غوښتنه مه کوئ

﴿٣٥٦٥﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

ابْتَغَى الْقَضَاءَ وَسَأَلَ وُكِلَ إِلَى نَفْسِهِ وَمَنْ أُكْرِهَ عَلَيْهِ أَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْهِ مَلَكًا يُسَدِّدُهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د قضاء د عهدې غوښتونکی وي او پاچا يا خليفه څخه د هغه غوښتنه کوي هغه خپل ځان ته سپارل کيږي او چا ته چي دا منصب په زوره حواله کړل سي الله تعالی د هغه د مرستي لپاره يوه ملائکه راليږي چي دده کارونه ور برابروي. ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجة.

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\ ٦١٤، رقم: ١٣٢٤، وابوداؤد ٤\ ٨، رقم: ٣٥٧٨، وابن ماجه ٢\ ٧٧٤، رقم: ٢٣٠٩.

## جنتي او دوږخي قاضيان

﴿٣٥٦٦﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْقُضَاةُ ثَلَاثَةٌ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قاضيان پر دري ډوله دي چي

وَاحِدٌ فِي الْجَنَّةِ وَاثْنَانِ فِي النَّارِ فَأَمَّا الَّذِي فِي الْجَنَّةِ فَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ

په هغو كي به يو جنت ته او دويم به دوږخ ته ځي جنت ته به هغه حاكم ځي چي هغه حق و پيژندئ

فَقَضَى بِهِ وَرَجُلٌ عَرَفَ الْحَقَّ فَجَارَ فِي الْحُكْمِ فَهُوَ فِي النَّارِ وَرَجُلٌ قَضَى لِلنَّاسِ عَلَى جَهْلٍ فَهُوَ فِي النَّارِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

او په حق سره يې پريكړه وكړه او چا چي حق و پيژندئ او په ظلم يې پريكړه وكړه هغه به دوږخ ته ځي او بل (دريم) هغه دى چي د خلكو په منځ كي په جهالت (ناپوهي) سره پريكړه وكړه او حق يې ونه پيژندئ هغه به هم دوږخ ته ځي. ابوداؤد او ابن ماجة

**تخريج**: سنن ابي داود ١٤\٥، رقم: ٣٥٧٣، وابن ماجه ١٢\٧٧٦، رقم: ٢٣١٥.

﴿٣٥٦٧﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي د مسلمانانو

قَضَاءَ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى يَنَالَهُ ثُمَّ غَلَبَ عَدْلُهُ جَوْرَهُ فَلَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ غَلَبَ جَوْرُهُ عَدْلَهُ فَلَهُ النَّارُ. رواه ابوداؤد.

حكومت او امارت وغوښتئ او هغه ورته تر لاسه سو او بيا د هغه انصاف د هغه پر ظلم غالب سو نو هغه ته به جنت تر لاسه كيږي او د چا ظلم چي پر انصاف غالب سو د هغه لپاره دوږخ دئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ١٤\٧، رقم: ٣٥٧٥.

**تشريح**: د ظاهري مفهوم سره سم پر ظلم باندي د عدل او پر عدل باندي د ظلم د غلبې څخه مراد دادى چي تر يو بل زيات وي او هغه دوهم هم وجود لري او حكم د غالب مطابق وي ځكه كه چيري عدل او انصاف غالب سي نو جنت به تر لاسه كيږي او كه ظلم غالب سي نو دوږخ به تر

لاسه كيږي مګر علماء ويلي دي چي په دواړو صورتو کي د غالب مراد دادئ چي هغه دذې درجې وي چي د بل چا لپاره خنډ جوړ سي د مثال په توګه هغه د عدل او انصاف پر وصف دومره حاوي چي د هغه د ظلم څخه سر پورته نه کړل سي يا د هغه د ظلم خصلت دومره حاوي وي چي د هغه په مقابله کي د هغه عدل ظاهر نه سي.

## قياس او اجتهاد حق دی

﴿٣٥٦٨﴾: وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَهُ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله هغه رسول الله ﷺ يمن ته وليږئ

إِلَى الْيَمَنِ قَالَ كَيْفَ تَقْضِي إِذَا عَرَضَ لَكَ قَضَاءٌ قَالَ أَقْضِي بِكِتَابِ اللَّهِ قَالَ

نو پوښتنه يې ځيني وکړه هر کله چي يوه معامله ستا په وړاندي راسي نو ته به څرنګه پريکړه کوې، هغه عرض وکړ د الله جل جلاله د کتاب سره سم به پريکړه کوم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي كِتَابِ اللَّهِ قَالَ فَبِسُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

که په کتاب الله کي هغه خبره نه وه. ده وويل د رسول الله ﷺ د سنت سره سم به پريکړه کوم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل

فَإِنْ لَمْ تَجِدْ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَجْتَهِدُ رَأْيِي وَلَا

که د رسول الله ﷺ په سنت کي هم هغه خبره نه وه؟ هغه عرض وکړ په خپل رايه سره به هڅه کوم

آلُو فَضَرَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدْرَهُ وَقَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي

او په اجتهاد کي به کوتاهي نه کوم، ويلي دي راوي د دې په اوريدو سره رسول الله ﷺ هغه پر سينه په خپل مبارک لاس وواهه او وه يې فرمايل: ټول تعريفونه هغه الله تعالى لره دي چي هغه

وَفَّقَ رَسُولَ رَسُولِ اللَّهِ لِمَا يَرْضَى بِهِ رَسُولَ اللَّهِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي

د رسول الله ﷺ استاذي ته ددې امر توفيق ورکړ چي د الله رسول پر هغه راضي دئ. ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٦١٦، رقم: ١٣٢٧، وابوداود ٤\١٨، رقم: ٣٥٩٢، والدارمي ١\٧٢، رقم: ١٦٨.

**د لغاتو حل**: آلو : ای ما اقصر . (كوتاهي نه كوم)

**تشريح**: زه به د خپل عقل څخه اجتهاد كوم : ددې مطلب دادئ چي زه به د هغه قضيې حكم پر هغه مسائلو باندي د قياس په ذريعه معلوموم كوم چي په نصوص يعني كتاب او سنت كي ذكر سوي دي په دې توګه چي په كتاب او سنت كي ددغه قضيې مشابه چي كوم مسائل ذكر سوي وي د هغه مطابق به د هغه قضيې حكم او فيصله كوم .

مظهر رحمة الله عليه هم ددې مطلب دا بيان كړى دى چي مخكي به زه غور او فكر كوم چي ما ته كومه قضيه وړاندي سوې ده د هغه يو حكم په كتاب او سنت كي ذكر سوى نه دى چي هغه د يو داسي مسئلې سره مشابه ده كوم چي په كتاب او سنت كي ذكر سوې ده كله چي زه د هغه دواړو په مينځ كي مشابهت پيدا كړم نو د هغه به هم هغه حكم او فيصله كوم كوم چي په كتاب الله يا سنت رسول الله كي د ذكر سوې مسئلې ده ، د مجتهدينو امامانو په نزد پر دغه قياس باندي د ډېرو مسائلو استنباط سوى دى ، دا خبره بېله ده چي هغه مجتهدين امامان د قياس په علت او بنياد كي اختلاف كړى دى د مثال په توګه د غنمو د سود حرام كېدو په باره كي نص (يعني صريح حكم دى) حال دا چي د هندوانې په باره كي داسي نص نه سته، امام شافعي رحمة الله عليه د هندوانې پر غنمو باندي قياس كولو سره ددې سود هم حرام كړى دى ځكه چي د هغه په نزد د غنمو د سود حرام كېدو علت د هغه خوړل كېدونكى شى كېدل دي او هندوانه هم خوړونكى شى دى ځكه د غنمو پر حكم باندي په قياس كولو سره د هندوانې سود هم حرام دى حال دا چي د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د غنمو د سود حرام كېدو علت د هغه مكيل (يا موزون) كېدل دي ځكه هغه پر غنمو باندي چونه قياس كړه او دا مسئله يې اخذ كړه چي د چونې سود هم حرام دى .

په هر حال دغه حديث د قياس او اجتهاد پر مشروع كېدو باندي يو ټينګ دليل دئ او د صحاب ظواهر (غير مقلدين) د مذهب خلاف دى كوم چي د قياس او اجتهاد څخه منكر دي .

## د مدعى عليه د بيان اورېدو پرته فيصله مه كوئ

﴿۳۵۶۹﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زه د قضا كولو لپاره يمن ته وليږلم ،

قَاضِيًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ تُرْسِلُنِي وَأَنَا حَدِيثُ السِّنِّ وَلَا عِلْمَ لِي بِالْقَضَاءِ

ما عرض وكړ اې دالله رسوله ! تا سو ما قاضي جوړوئ زه زلمی يم او د قضا كولو علم نه لرم ،

فَقَالَ إِنَّ اللّٰهَ سَيَهْدِي قَلْبَكَ وَيُثَبِّتُ لِسَانَكَ اِذَا تَقَاضٰى اِلَيْكَ رَجُلاَنِ فَلاَ

رسول الله ﷺ راته وفرمايل الله تعالى به ستا زړه رهنمائي كړي او ستا ژبه به ثابته ساتي ، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چې دوه كسان په يوه معامله كې تا ته راسي

تَقْضِ لِلْاَوَّلِ حَتّٰى تَسْمَعَ كَلَامَ الْآخَرِ فَإِنَّهُ أَحْرٰى أَنْ يَتَبَيَّنَ لَكَ الْقَضَاءُ قَالَ

نو ته د لومړني كس يعني مدعى په حق كې تر هغه وخته پورې حكم (پريكړه) مه كوه تر څو پورې چې د دويم كس بيان وا نه ورې ، ځكه چې د مدعا عليه بيان به تا ته په حكم كولو كې مرسته دركړي ، حضرت علي ﷺ وايي

فَمَا شَكَكْتُ فِي قَضَاءٍ بَعْدُ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة. و سنذكر حديث ام سلمة انما قضي بينكم برايي في باب الاقضية والشهادات ان شاء الله.

ددې څخه وروسته ما په هيڅ حكم (پريكړه) كولو كې شك ونه كړ . ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجة.او ژر دی چې د ام سلمی حديث چې سر يې دادی (انما اقضی بينكم....) به په كتاب الاقضية والشهادات كې راوړو انشاء الله.

**تخريج** سنن الترمذي ٣\ ٦١٨، رقم: ١٣٣١. وابوداؤد ٤\١١، رقم: ٣٥٨٢. وابن ماجه ٢\ ٧٧٤، رقم: ٢٣١٠.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### د ظالم حاكم انجام

﴿٣٥٧٠﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَا مِنْ حَاكِمٍ يَحْكُمُ بَيْنَ النَّاسِ اِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَلَكٌ آخِذٌ بِقَفَاهُ ثُمَّ

هر هغه حاكم چې د خلكو په مينځ كې حكم كوي د قيامت په ورځ به په داسي حال كې راوستل سي چې يوې ملائكې به تر څټ نيولی وي

يَرْفَعُ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ فَإِنْ قَالَ أَلْقِهِ أَلْقَاهُ فِي مَهْوَاةٍ أَرْبَعِينَ خَرِيفًا . رواه احمد وابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان

بيا به ملائكه د آسمان په لور وګوري كه الله تعالى حكم وركړي چي دى وغورځوه نو هغه به د دوږخ په كنده كي وغورځول سي چي د هغه ژور والى د څلوېښتو كالو لار ده . احمد، ابن ماجة او بيهقي په شعب الايمان كي

**تخريج**: مسند الامام احمد ١\ ٤٣٠، وابن ماجه ٢\ ٧٧٥، رقم: ٢٣١، والبيهقي في شعب الايمان ٦\ ٧٤، رقم: ٧٥٣٣.

**د لغاتو حل**: مَهواة: اى مهلكة ومسقطة . (هلاكونكى)

**تشريح** بيا به هغه ملائكه خپل سر آسمان ته پورته كړي : دديٖ څخه مراد د ملائكي هغه حالت دى چي په هغه كي به هغه د الله جَلَّ جَلَالُهُ د حكم په انتظار كي وي يعني څرنګه چي د پاچا په خوا كي د حاضرينو ادبونه وي چي كله هلته يو ملزم وړاندي كيږي نو پاچا پر لوړ ځاى باندي ناست وي او د هغه خادم او هغه ملزم د هغه په مخكي وړاندي كوي او بيا هغه پاچا ته په نظر كولو سره ولاړ وي او دا انتظار كوي چي د پاچا او حاكم له خوا يو فيصله او حكم وسي همدارنګه هغه ملائكه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په دربار كي په وړاندي كولو سره په انتظار ولاړه وي چي د هغه په دربار كي څه فيصله كيږي ، د څلوېښتو كالو څخه مراد د دوږخ د كندي د ژوروالي زياتوالى بيانول دي نه دا چي د هغه وخت ټاكل او تحديد .

په دغه حديث كي چي د كوم حاكم انجام بيان سوى دى هغه ظالم حاكم دئ د عادل او انصاف كونكي حاكم په باره كي به دا حكم كيږي چي هغه دي جنت ته ورسول سي لكه څرنګه چي په كتاب الامارة والقضاء كي د ابو امامه رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ د روايت څخه واضحه سوې ده .

## د قيامت په ورځ د قاضي افسوس ناک حشر

﴿٣٥٧١﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى الْقَاضِي الْعَدْلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَتَمَنَّى أَنَّهُ لَمْ يَقْضِ بَيْنَ اثْنَيْنِ فِي تَمْرَةٍ قَطُّ . رواه احمد

د حضرت عائشې رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا څخه روايت دئ چي رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل : انصاف خوښونكى حاكم به د قيامت په ورځ ددې آرزو كوي چي كاش هغه د دوو كسانو په منځ كي د يوې خرما د جګړې

پريکړه هم نه وای کړې . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٦\٧٥.

## عادل ته د الله ﷻ توفيق حاصل وي

﴿٣٥٧٢﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ اللَّهَ مَعَ الْقَاضِي مَا لَمْ يَجُرْ فَإِذَا جَارَ تَخَلَّى عَنْهُ وَلَزِمَهُ الشَّيْطَانُ . رواه الترمذي و ابن ماجة وفي رواية فاذا جار وكله الى نفسه

تر څو پوري چي قاضي ظلم نه کوي د هغه سره د الله تعالى توفيق او مرسته وي خو کله چي هغه ظلم را واخلي نو د الله تعالى توفيق او مرسته ځيني بيل سي او شيطان د هغه سره سي . ترمذي، ابن ماجة، او په يوه روايت کي دا الفاظ هم دي کوم وخت چي هغه ظلم را واخلي نو هغه د هغه نفس ته حواله کړل سي .

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٦١٨، رقم: ١٣٣٠. سنن ابن ماجه ٢\٧٧٥، رقم: ٢٣١٣.

**د لغاتو حل**: تخلى: اى خذله وترک عونه . (مرسته يې پرېږدي)

﴿٣٥٧٣﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ أَنَّ مُسْلِمًا وَ يَهُودِيًّا اِخْتَصَمَا اِلَى عُمَرَ

د حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو يهودي او يو مسلمان د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کي خپله جګړه راوړه ،

فَرَأَى الْحَقَّ لِلْيَهُودِيِّ فَقَضَى لَهُ عُمَرُ بِهِ فَقَالَ لَهُ الْيَهُودِيُّ وَاللَّهِ لَقَدْ قَضَيْتَ

حضرت عمر رضي الله عنه د يهودي دعوا درسته وګڼل او د هغه په حق کي يې پريکړه وکړه ، يهودي وويل : په الله دي مي قسم وي تا سو د حق سره سم پريکړه وکړه ،

بِالْحَقِّ فَضَرَبَهُ عُمَرُ بِالدِّرَّةِ و قَالَ وَمَا يُدْرِيكَ فَقَالَ الْيَهُودِيُّ وَاللَّهِ إِنَّا نَجِدُ

حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه یهودي یوه دوره ووهئ او ورته وه یې ویل تا ته څنګه معلومه سوه ؟ چي پریکړه د حق سره سم وسول ، هغه عرض وکړ په الله تعالی دي مي قسم وي په تورات کي موږ

فِي التَّوْرَاةِ اِنَّهُ لَيْسَ قَاضٍ يَقْضِي بِالْحَقِّ إِلَّا كَانَ عَنْ يَمِينِهِ مَلَكٌ وَعَنْ شِمَالِهِ

لیدلي دي چي کوم حاکم په حق سره پریکړه کوي د هغه راسته او چپه لوري ته دوې ملائکي وي

مَلَكٌ يُسَدِّدَانِهِ وَيُوَفِّقَانِهِ لِلْحَقِّ مَا دَامَ مَعَ الْحَقِّ فَإِذَا تَرَكَ الْحَقَّ عَرَجَا وَتَرَكَاهُ . رواه مالك

چي د هغه کارونه سموي تر څو پوري چي هغه حق پرست وي او هغه ته د حق توفیق ورکوي او هر کله چي هغه حق پریږدي نو هغه ملائکي آسمان ته ولاړي سي او هغه پریږدي . مالک

**تخریج**: موطا الامام مالک ۲\۷۱۹، رقم: ۲.

**تشریح**: دلته یو سوال پیدا کیږي چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه یهودي په خپل دُرې سره ولي ووهئ؟ حال دا چي هغه خو دده د فیصلې پر حق کېدو اقرار کړی وو ، او یو اشکال دا پیدا کیږي چي د حضرت عمر رضی اللہ عنہ سوال (تا ته څرنګه معلومه سوه ...) او د یهودي جواب (موږ په تورات کي لیدلي دي...) په دې کي مطابقت څه دئ؟ د اول سوال جواب دادی چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ هغه یهودي د سزا یا غصې په توګه نه وو وهلی بلکه د نرمۍ او خوش طبعۍ په توګه یې وهلی وو ، او د دوهم سوال جواب دادئ چي په دې خبره د یهودي څخه زیات څوک پوهیدای سي چي په دغه تنازع کي پر حق څوک دئ ؟ که حضرت عمر رضی اللہ عنہ د حق څخه مخ اړولی وای نو د مسلمان په حق کي به یې فیصله کړې وای او په دغه صورت کي د هغه فیصله به پر انصاف مبني نه وای او نه به د هغه پر حق باندي قائم پاته کېدل ظاهرېدلای ، کله چي هغه د مسلمان پر خلاف د یهودي په حق کي فیصله وکړه نو معلومه سوه چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ پر حق قائم دئ او هغه د انصاف څخه مخ اړولی نه دئ .

## د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ د قاضي کېدو څخه انکار

﴿۳۵۷۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مُوْهِبٍ أَنَّ عُثْمَانَ بن عفان قَالَ لِابْنِ عُمَرَ اقْضِ بَيْنَ

د حضرت ابن موهب رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي حضرت عثمان رضی اللہ عنہ ابن عمر رضی اللہ عنہ ته وفرمایل :

النَّاسِ قَالَ أَوَ تُعَافِينِي يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ قَالَ وَمَا تَكْرَهُ مِنْ ذٰلِكَ وَقَدْ كَانَ

د خلكو په منځ كي حكم كوه ، ابن عمر ورته وويل : اې امير المؤمين ! ما ددې كار څخه معاف كړه ، حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وويل : ته دا مكروه ګڼې حال دا چي

أَبُوكَ يَقْضِي قَالَ لَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ كَانَ

ستا پلار قضا كول، ابن عمر رضي الله عنه ورته وويل ځكه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

قَاضِيًا فَقَضَى بِالْعَدْلِ فَبِالْحَرِيِّ أَنْ يَنْقَلِبَ مِنْهُ كَفَافًا فَمَا رَاجَعَهُ بَعْدَ ذٰلِكَ

څوك چي حاكم يا قاضي وي او حكم په انصاف سره وكړي نو هغه ته مناسب دي چي ددې منصب څخه وګرځي برابر ، ددې څخه وروسته عثمان رضي الله عنه په دې اړه د هغه سره څه خبره ونه كړه،

، رواه الترمذي وَفِي رِوَايَةِ رَزِينٌ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ قَالَ لِعُثْمَانَ يَا أَمِيرَ

ترمذي، او د رزين په روايت كي چي د نافع څخه نقل دي دا الفاظ دي چي ابن عمر رضي الله عنه حضرت عثمان رضي الله عنه ته وويل : اې

الْمُؤْمِنِينَ لَا أَقْضِي بَيْنَ رَجُلَيْنِ قَالَ فَإِنَّ أَبَاكَ كَانَ يَقْضِي فَقَالَ إِنَّ أَبِي لَوْ

امير المؤمنين ! زه د دوو كسانو په منځ كي پريكړه نه سم كولاى ، حضرت عثمان رضي الله عنه ورته وويل ستا پلار خو به كول، عرض يې وكړ زما پلار ته چي به

أَشْكَلَ عَلَيْهِ شَيْءٌ سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ لَوْ أَشْكَلَ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ شَيْءٌ

په دې اړه څه مشكل پيش سو نو د رسول الله ﷺ څخه به يې پوښتنه كول او كه مشكل به وو پر

سَأَلَ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامَ وَإِنِّي لَا أَجِدُ مَنْ أَسْأَلُهُ وَسَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ

نبي كريم ﷺ يو شى نو د جبرائيل عليه السلام څخه به يې پوښتنه كول، مګر زه نه وينم داسي څوك چي پوښتنه ځيني وكړم ، او ما د رسول الله ﷺ څخه دا هم اوريدلي دي

يَقُولُ مَنْ عَاذَ بِاللّٰهِ فَقَدْ عَاذَ بِعَظِيمٍ وَسَمِعْتُهُ يَقُولُ مَنْ عَاذَ بِاللّٰهِ فَأَعِيذُوهُ

چا چي په الله تعالى سره پناه وغوښتل هغه په لوى ذات سره پناه وغوښتل او دا مي هم د رسول

الله ﷺ څخه اوريدلي دي څوک چي د الله تعالی په ذريعه پناه و غواړي هغه ته پناه ورکړئ

وَإِنِّي أَعُوذُ بِاللهِ أَنْ تَجْعَلَنِيْ قَاضِيًا فَأَعْفَاهُ وَقَالَ لاَ تُخْبِرْ أَحَدًا .

او زه د الله تعالی په ذريعه هم ددې خبري څخه پناه غواړم چي تاسو ما قاضي و ټاکئ، حضرت عثمان ﷺ (پر دې خبره) ابن عمر ﷺ معذور وګڼئ او وه يې فرمايل څوک ددې خبري څخه مه خبروه .

**تخريج**: سنن الترمذي ٣\٦١٢، رقم: ١٣٢٣.

**د لغاتو حل**: كفافا: اى خلاصا. (خلاصون)

==========

# بَابُ رِزْقِ الْوُلاَةِ وَهَدَايَاهُمْ

## (د واليانو د تنخواه او تحفو بيان)

په دغه باب کي دا بيان کيږي چي د حاکمانو او عُمالو لپاره د بيت المال څخه د تنخواه او مزدورۍ په توګه څه ټاکل کيداى سي که يا ؟ او دا بيان کيږي که يو سړی د حاکم لپاره د تحفې په توګه يو شی راوړی نو ددې څه حکم دئ ؟ .

## اَلْفَصْلُ الأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ د مال وېشل

﴿٣٥٧٥﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أُعْطِيكُمْ وَلاَ أَمْنَعُكُمْ أَنَا قَاسِمٌ أَضَعُ حَيْثُ أُمِرْتُ . رواه البخاري

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه نه څه درکوم او نه يې در څخه منع کولای سي زه خو يوازي قاسم (وېشونکی) يم ما ته چي کوم ځای د يو شي ابښودلو حکم راکړل سي زه هلته هغه شی رسوم . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٢١٧، رقم: ٣١١٧.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په مينځ کي د مال په ويشلو سره ذکر سوی ارشاد وفرمايه چي هغوی په وېش کي د کمۍ او زياتوب په وجه په خپل زړه کي دا خيال را نه ولي .

ما اعطيكم ....: ددې مطلب دادئ چي نه خو تاسو ته درکول زما په وس كي دي او نه ستاسو محروم کول زما په اختيار كي دي كه زه چا ته څه ورکوم نو د هغه مطلب دا نه دئ چي ما په خپل خواهش او خپل خوښه سره هغه ته څه ورکړي دي او يا كه چا ته يې نه ورکوم نو د هغه دا مطلب نه دئ چي زما زړه هغه ته متوجه نه دی بلکه زه يوازي ويشونكى يم ، زه چي څه ورکوم يا يې نه ورکوم دا ټول د الله تعالى د حكم په وجه دي چيري او چا ته چي ما ته د ورکولو حكم سوى دى هلته او هغه ته يې ورکوم او چيري او چا ته چي د نه ورکولو حكم سوى دى هلته او هغه ته يې نه ورکوم.

## په قومي خزانې كي پر خيانت كونكي وعيد

﴿٣٥٧٦﴾: وَعَنْ خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللّٰهِ بِغَيْرِ حَقٍّ فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري.

د حضرت خوله انصاريه (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډير خلک د الله تعالى په مال كي ناحق تصرف كوي (يعني په زكوة، غنيمت او بيت المال كي) د هغوى لپاره د قيامت په ورځ د دوزخ اور دئ. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢١٧، رقم: ٣١١٨.

**د لغاتو حل**: يتخوضون: اى يشرعون و يدخلون ويتصرفون. (تصرف پكښې كوي)

## امام د بيت المال څخه تنخواه اخيستلای سي

﴿٣٥٧٧﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا اسْتُخْلِفَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ قَالَ لَقَدْ عَلِمَ

د حضرت عائشي رضي الله عنها څخه روايت دئ كله چي حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه خليفه سو ، نو هغه

قَوْمِي أَنَّ حِرْفَتِي لَمْ تَكُنْ تَعْجِزُ عَنْ مَئُونَةِ أَهْلِي وَشُغِلْتُ بِأَمْرِ الْمُسْلِمِينَ

وويل زما قوم ته څرګنده ده چي زما كاروبار زما د اهل او عيال د مصارفو لپاره كافي وو، او س زه د مسلمانانو په خدمت كي بوخت سوى يم،

فَسَيَأْكُلُ آلُ أَبِي بَكْرٍ مِنْ هَذَا الْمَالِ وَيَحْتَرِفُ لِلْمُسْلِمِينَ فِيهِ. رواه البخاري.

له دې كبله د ابوبكر رضي الله عنه اهل او عيال به د بيت المال څخه خوري او ابوبكر به د مسلمانانو لپاره په هغه مال كي كار كوي . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳۰۳\۴، رقم: ۲۰۷۰.

**تشريح**: حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په بازار كي د ټوكرانو تجارت كوى او د هغه په ذريعه به يې د خپل كورنۍ مصرف پوره كوى مگر كله چي مسلمانانو هغه د خلافت پر منصب باندي وټاكى نو هغه صحابه كرامو ته خبر وركړ چي زه اوس خپل كاروبار نه سم كولاى نو د خپل ځان او كورنۍ د مصرف په اندازه د بيت المال څخه به تنخواه اخلم .

## د صحابه كرامو (رضي الله عنهم) تجارتونه

د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په باره كي خو معلومه سوه چي هغه به د ټوكرانو تجارت كوئ ، همدارنگه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به د غلې تجارت كوى، حضرت عثمان رضي الله عنه به خرماوو او ټوكرانو كاروبار كوى او حضرت عباس رضي الله عنه عطاري كول .

علماء كرامو ليكلي دي چي د تجارت په اقسامو كي تر ټولو غوره تجارت د ټوكرانو دى او بيا د عطرو دئ، په حديث شريف كي راغلي دي كه جنتيانو تجارت كولاى نو د ټوكرانو تجارت به يې كولاى او كه دوږخيانو تجارت كولاى نو يوازي د سرو او سپينو زرو تجارت به يې كولاى .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### تر تنخواه زيات اخيستل خيانت دى

﴿۳۵۷۸﴾: عَنْ بُرَيْدَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَرَزَقْنَاهُ رِزْقًا فَمَا أَخَذَ بَعْدَ ذٰلِكَ فَهُوَ غُلُولٌ . رواه ابوداؤد

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : څوك چي موږ پر يو كار و ټاكو او هغه ته د دغه كار تنخواه و ټاكل سي ، ددې څخه وروسته كه هغه د بيت المال څخه څه واخلي نو دا خيانت دئ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۵۳، رقم: ۲۹۴۳.

**د لغاتو حل**: الغلول: الخيانة في الغنيمة وفي حال الفئ: (د غنيمت په مال كي خيانت كول).

## د حاکم اجرت

﴿۳۵۷۹﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَمَّلَنِي . رواه ابوداؤد .

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم زه عامل جوړ کړم او د هغه اجرت ما ته راکړل سو . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۳۵۳، رقم: ۲۹۴۴.

## حضرت معاذ رضی الله عنه ته هدايت

﴿۳۵۸۰﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ بَعَثَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ

د حضرت معاذ رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم زه يمن ته وليږلم ،

فَلَمَّا سِرْتُ أَرْسَلَ فِي أَثَرِي فَرُدِدْتُ فَقَالَ أَتَدْرِي لِمَ بَعَثْتُ إِلَيْكَ لَا تُصِيبَنَّ

کله چي زه روان سوم نو په ما پسي يې يو سړی راوليږئ ، کله چي زه بيرته راغلم نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل : تا ته څرګند ده چي ما ته ولي دويم وار رابللی يې، ته زما د اجازې څخه پرته

شَيْئًا بِغَيْرِ إِذْنِي فَإِنَّهُ غُلُولٌ { وَمَنْ يَغْلُلْ يَأْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ } لِهَذَا دَعَوْتُكَ فَامْضِ لِعَمَلِكَ . رواه الترمذي .

يو شی وانه خلې (ځکه چي) داسي اخيستل خيانت دئ او څوک چي خيانت وکړي د قيامت په ورځ به د هغه شي سره راسي په کوم کي چي يې خيانت کړی دئ نو ما ته ددې لپاره رابللی يې اوس ته په خپل کار پسيځه . ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۳\۶۲۱، رقم: ۱۳۳۵.

## د بيله تنخواه حاکم د مصارفو بيت المال کفيل وي

﴿۳۵۸۱﴾: وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مستورد بن شداد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوريدلي دي

يَقُولُ مَنْ كَانَ لَنَا عَامِلًا فَلْيَكْتَسِبْ زَوْجَةً فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ خَادِمٌ فَلْيَكْتَسِبْ

چي فرمايل يې: څوک چي زموږ حاکم سو هغه ته پکار دي که د هغه سره ښځه نه وي نو يوه ښځه دي تر لاسه کړي او که خادم يې نه وي نو

خَادِمًا فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَسْكَنٌ فَلْيَكْتَسِبْ مَسْكَنًا وفي رواية مَنِ اتَّخَذَ غَيْرَ ذَلِكَ فَهُوَ غَالٌّ . رواه ابوداؤد

يو خادم دي رانيسي او که کور يې نه وي نو يو کور دي رانيسي (دا په هغه صورت کي چي د حاکم تنخواه تاکل سوې نه وي) او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د دې څخه پرته څه اخلي نو هغه په خيانت کي داخل دي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۵۴، رقم: ۲۹۴۵.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي عامل (حکومتي کارکونکي) ته دا حق حاصل دی چي هغه د بيت المال څخه د خپل ښځي مهر، د هغې نفقه او جامه د اړتيا په اندازه واخلي همدارنګه هغه د خپل هستوګني د ضروریاتو مطابق يو سرای او د خدمت لپاره د خادم د قيمت او مزدورۍ په اندازه دبيت المال څخه اخيستلای سي مګر که چيري هغه د ضرورت او حاجت څخه زيات واخلي نو د هغه لپاره به حرام وي.

په ښکاره خو دا معلوميږي چي دا حکم په هغه صورت کي دئ کله چي د هغه عامل لپاره تنخواه او مزدوري ټاکل سوې نه وي او بيت المال د هغه د ذکر سوو اړتياوو کفيل وي.

## په بيت المال کي خيانت مه کوئ

﴿۳۵۸۲﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَمِيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا

د حضرت عدي بن عمير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عُمِّلَ مِنْكُمْ لَنَا عَلَى عَمَلٍ فَكَتَمَنَا مِنْهُ مِخْيَطًا فَمَا فَوْقَهُ فَهُوَ

اې خلکو! څوک چي په تاسو کي د يو کار حاکم وټاکل سي او هغه زموږ څخه د دې کار د آمدني څخه د ستني په اندازه يا د دې څخه زيات پټ کړي نو هغه

غُلٌّ يَأْتِي بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ اقْبَلْ

خيانت كونكى دئ او د قيامت په ورځ به هغه د خيانت كړل سوي شي سره راوستل سي، يو انصاري ولاړ سو او وه يې ويل اې دالله رسوله ! خپل كار زما څخه بيرته واخلئ،

عَنِّي عَمَلَكَ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالَ سَمِعْتُكَ تَقُولُ كَذَا وَكَذَا قَالَ وَأَنَا أَقُولُ ذَلِكَ

رسول الله ﷺ وفرمايل :ولي، ده وويل چي ما ستاسو څخه داسي او داسي اوريدلي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه اوس هم دا وايم

مَنِ اسْتَعْمَلْنَاهُ عَلَى عَمَلٍ فَلْيَأْتِ بِقَلِيلِهِ وَكَثِيرِهِ فَمَا أُوتِيَ مِنْهُ أَخَذَهُ وَمَا نُهِيَ عَنْهُ انْتَهَى . رواه مسلم وابوداؤد واللفظ له .

چي څوک موږ پر يو كار حاكم وټاكو هغه دي د هغه د آمدني جزاو كل (لږ او ډير) هر څه راوړي او د هغه څخه چي څومره وركړل سي هغه دي واخلي او څه چي ورنه كړل سي د هغه څخه دي منع سي. مسلم او ابوداؤد

**تخريج**: صحيح مسلم ١٤٦٥\٣، رقم: ٣٠- ١٨٣٣، وابوداود ١٠\٤ ١٤- ١١، رقم: ٣٥٨١.

## پر رشوت وركونكي او اخيستونكي لعنت

﴿٣٥٨٣﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ لعنت ويلى دئ

الرَّاشِي وَالْمُرْتَشِي .رواه ابوداؤد وابن ماجة وروى الترمذي عنه وعن ابي

پر رشوت اخيستونكي او رشوت وركونكي دواړو باندي. ابوداؤد او ابن ماجة، او ترمذي د

هريرة و رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان عن ثوبان و زاد والرائش يعني الذي يمشي بينهما .

عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه او ابوهريرة څخه او احمد هم روايت كړى دئ او بيهقي په شعب الايمان كي د حضرت ثوبان څخه روايت كړى دئ ، دبيهقي په روايت كي دا الفاظ هم دي چي

رائش باندي هم لعنت فرمايلى دئ يعني پر هغه سړي چي د رشوت اخيستونكى او رشوت وركونكى په منځ كي واسطه وي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۹–۱۰، رقم: ۳۵۸۰، وابن ماجه ۲\۷۷۵، رقم: ۲۳۱۳.

**تشريح**: رشوت هغه مال ته وايي چي حاكم، عامل يا بل چا ته ددې لپاره وركړل سي چي هغه حق باطل او باطل حق كړي مگر كه چيري هغه د خپل مال ثابتولو يا پر خپل ځان باندي د كيدونكي دفعي لپاره څه وركړي نو په دې كي پروا نه سته.

## حلاله گټه يو ډېر ښه شی دی

﴿۳۵۸۴﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ أَرْسَلَ إِلَيَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته خبر راوليږئ چي

وَسَلَّمَ أَنِ اجْمَعْ عَلَيْكَ سِلاَحَكَ وَثِيَابَكَ ثُمَّ ائْتِنِيْ قَالَ فَأَتَيْتُهُ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ

د خپلي وسلې او جامو سره ما ته راسه، نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم، رسول الله ﷺ اودس كوئ چي زه يې وليدم

فَقَالَ يَا عَمْرُو إِنِّيْ أَرْسَلْتُ إِلَيْكَ لِأَبْعَثَكَ فِيْ وَجْهٍ يُسَلِّمُكَ اللهُ وَيُغَنِّمُكَ

نو وه يې فرمايل: اې عمرو! ما ته ددې لپاره رابللى يې چي زه تا يو خوا ته وليږم، الله تعالى به تا سلامت لري او مال غنيمت به دركړي،

وَأَزْعَبُ لَكَ زَعْبَةً مِّنَ الْمَالِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا كَانَتْ هِجْرَتِيْ لِلْمَالِ وَمَا

او په مال كي به يوه برخه تا ته دركړم، ما عرض وكړ اې د الله رسوله! زما هجرت د مال د خواهش لپاره نه وو

كَانَتْ إِلاَّ لِلّٰهِ وَلِرَسُوْلِهِ قَالَ نِعِمَّا بِالْمَالِ الصَّالِحِ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ. رواه في شرح

بلكه زما هجرت يوازي د الله تعالى او د هغه د رسول لپاره وو، رسول الله ﷺ وفرمايل: نيک بخت سړي لپاره ښه مال ښه شی دئ. په شرح السنة كي

السنة وروى أحمد نحوه وفي روايته قَالَ نِعْمَ الْمَالُ الصَّالِحُ لِلرَّجُلِ الصَّالِحِ

داسي روايت دئ او احمد هم داسي روايت کړی دئ خو د هغه په روايت کي دا الفاظ دي : پاک مال د صالح سړي لپاره ډير ښه دئ

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۱۹۷، والبغوي في شرح السنة ۱۰\۹۱، رقم: ۲۴۹۵.

**د لغاتو حل**: ازعب: ای اقطع وادفع. (درکوم).

**تشريح**: حضرت عمرو ابن العاص ﷛ په پنځم هجري کال کي اسلام قبول کړ او د حضرت خالد ابن وليد ﷛ په ملګرتيا کي يې د حبشې څخه مدينې منورې ته هجرت وکړ ، ځيني حضرات وايي چي هغه په اتم هجري کال کي اسلام قبول کړی دی ، رسول الله ﷺ هغه د عمان حاکم ټاکلی وو ، اغلب داده چي ددغه روايت تعلق د هغه وخت سره دی کله چي هغه د حاکم او عامل په توګه عمان ته استول سوی وو .

ښه مال هغه دی چي په حلاله ذريعه سره ګټل سوی وي او په نيکو ځايو او نيکو مصرفو کي خرڅ کړل سي او نيک بخته سړی هغه دی چي د الله تعالی حقوق هم ادا کړي او د بندګانو حقوق هم ادا کړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### سفارش کونکي دي تحفه نه قبلوي

﴿۳۵۸۵﴾ : عَنْ أَبِي أُمَامَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ شَفَعَ لِأَحَدٍ شَفَاعَةً فَأَهْدَى لَهُ هَدِيَّةً عَلَيْهَا فَقَبِلَهَا فَقَدْ أَتَى بَابًا عَظِيمًا مِنْ أَبْوَابِ الرِّبَا . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابو مامة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي يو حاکم يا امير ته د يو چا سفارش وکړي او هغه هغه حاکم ته تحفه وليږي او هغه تحفه قبوله کړي نو د هغه دا کار داسي دئ لکه چي هغه د سود پر يوه لويه دروازه داخل سو . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۸۱۰، رقم: ۳۵۴۱.

=======

# بَابُ الْاَقْضِيَةِ وَالشَّهَادَاتِ

## (د دعوو او شهادتونو بيان)

قضيه هغه جنجالي معاملې ته وايي چې حاكم او قاضي ته ددې لپاره وړاندې سي چې هغه د د دواړو په مينځ كي يو حكم او فيصله وكړي ، او شهادت شاهدي وركولو ته وايي او د شاهدي مطلب دادی چي په دوو ډلو كي د يوې ډلي په مقابل كي د دوهمي ډلي د حق اقرار او اثبات وكړي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مدعی دعوه بېله شاهدانو معتبره نه ده

﴿۳۵۸۶﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ يُعْطَى النَّاسُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : كه خلكو ته صرف په

بِدَعْوَاهُمْ لَادَّعَى نَاسٌ دِمَاءَ رِجَالٍ وَأَمْوَالَهُمْ وَلٰكِنَّ الْيَمِينَ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ

دعوا د هغوی مدعا وركړل سي نو ډير خلک به د خپلو خلكو دويني او مال دعوا وكړي مگر قسم پر مدعا عليه دئ .

رواه مسلم و في شرحه للنوي انه قال و جاء في رواية البيهقي باسناد حسن او صحيح زيادة عن ابن عباس مرفوعا لكن البينة على المدعى واليمين على من انكر .

مسلم او د بيهقي په حواله د نووي په روايت كي دا الفاظ دي چي د مدعٰی پر ذمه شاهدان دي او څوک چي انكار وكړي پر هغه قسم دئ .

**تخريج** صحيح مسلم ۱۳\۱۳۳٦، رقم: ۱- ۱۷۱۱.

**تشريح** مگر قسم كول د مدعا عليه حق دئ: ددې مطلب دادئ چي فريق دوم يعني مد عا عليه د فريق اول يعني مدعی د دعوا څخه انكار وكړي او د مدعی څخه د قسم غوښتنه وكړي نو پر

مدعا عليه باندي قسم كول ضروري دي ، د مسلم په روايت كي د مدعى څخه د قسم غوښتني ذكر ځكه ونه كړل سو چي د مدعى د شاهد وړاندي كولو ذمه دار كېدل د شريعت ثابت سوې او بالكل ظاهري ثبوت دئ په دې اعتبار دا فرمايل سوي دي چي د شاهد وړاندي كولو ذمه داري پر مدعى ده كه مدعى شاهد وړاندي نه كړي نو بيا مدعا عليه د قسم او انكار په ذريعه د خپل صفائي كولو حق لري، همدا مفهوم د حضرت ابن عباس ﷺ د دوهم روايت څخه ظاهرېږي .

## په عدالت كي د دروا غو قسم اخيستل

﴿۳۵۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي

حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنِ صَبْرٍ وَهُوَ فِيْهَا فَاجِرٌ تَقْتَطِعُ بِهَا مَالَ امْرِئٍ مُسْلِمٍ لَقِيَ اللّٰهَ

د يو شي پر مقيد كېدو باندي د دروا غو قسم واخلي او هغه خپل په قسم كي دروا غجن وي چي په هغه سره د يو مسلمان مال تر لاسه كړي

يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالٰى تَصْدِيْقَ ذَالِكَ {إِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا} إِلٰى اٰخِرِ الْاٰيَةِ . متفق عليه

نو هغه به د قيامت په ورځ د الله تعالى سره په داسي حال كي ملاقات وكړي چي الله تعالى به ډېر غضبناك وي ، الله تعالى د دې تصديق دا آيت نازل كړى دئ : (ان الذين يشترون..) . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۲۱۳، رقم: ۴۵۴۹، ومسلم ۱\۱۲۲، رقم: ۲۲۰- ۱۳۸.

**تشريح** پوره آيت او د هغه ترجمه داسي ده :

إِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلاً أُوْلَئِكَ لاَ خَلاَقَ لَهُمْ فِي الآخِرَةِ وَلاَ يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلاَ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلاَ يُزَكِّيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ. سورة آل عمران ۷۷

ژباړه : بېشكه كوم كسان چي د هغه عهد په مقابله كي چي د الله تعالى سره هغوى كړى دى او د خپلو قسمونو په مقابله كي حقيره معاوضه اخلي داسي خلكو ته به هيڅ برخه (د هغه ځاى د نعمتونو ) نه تر لاسه كيږي او د قيامت په ورځ به الله تعالى د هغوى سره (د مهربانۍ) خبري ونه كړي او نه به هغوى ته د رحمت په نظر وګوري او نه به د هغوى د ګناهو په معافولو سره هغوى

پاک کړي او د هغوی لپاره به دردناک عذاب وي.
د حدیث په عبارت (من حلف علی یمین صبر) کي د صبر لغوي معنی د حبس، منع کول دي او د یمین صبر څخه مراد دادئ چي پاچا یا حاکم دي یو سړی تر هغه وخته پوري محبوس کوي تر څو چي هغه قسم ونه کړي په دغه صورت کي د مسلمان حاکم په اطاعت کي پر هغه سړي قسم کول لازم دي، په علی یمین صبر کي علی د حرف باء په معنی کي دئ او ددې څخه مراد محلوف علیه دئ.
ځیني حضرات وایي چي یمین صبر دادئ چي پر یو شي باندي قسم کونکی د دغه مقصد په قصد سره غلط بیانوي چي د یو مسلمان مال تلف کړي یا هغه هضم کړي، وهو فیها فاجر: او هغه په خپل قسمه کي دروغجن وي، د دغه الفاظو څخه د دغه مفهوم ته ترجیح حاصلیږي.

﴿۳۵۸۸﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اقْتَطَعَ

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي په قسم

حَقَّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ بِيَمِينِهِ فَقَدْ أَوْجَبَ اللّٰهُ لَهُ النَّارَ وَحَرَّمَ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ فَقَالَ

اخیستلو سره د یو مسلمان حق خوري د هغه لپاره الله تعالی دوږخ واجب کړ او پر هغه یې جنت حرام کړ، یو سړي عرض وکړ

لَهُ رَجُلٌ وَإِنْ كَانَ شَيْئًا يَسِيرًا يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ وَإِنْ كَانَ قَضِيبًا مِنْ أَرَاكٍ.

رواه مسلم

اې د الله ﷻ رسوله! که څه هم هغه یو معمولي شی وي، رسول الله ﷺ وفرمایل: که څه هم د اراک (یو ډول درخته) د درختي یو لرګي وي. مسلم

**تخریج** صحیح مسلم ۱\۱۲۲، رقم: ۲۱۸- ۱۳۷.

**تشریح** الله ﷻ د هغه لپاره اور واجب کړ: د دغه جملې دوه تاویلونه دي: ۱: یو خو دا چي دغه حکم پر هغه چا باندي محمول دئ چي د دروغو د قسم په ذریعه د یو مسلمان حق غصب کول حلال وګڼي او پر دغه عقیده هغه ته مرګ راسي، ۲: دوهم تاویل دادئ چي داسي سړی که څه هم د دوږخ د اور یقینا حقدار دئ مګر دا هم لیري نه ده چي الله تعالی یې په خپل فضل او کرم سره معاف کړي.
جنت یې پر هغه حرام کړ: ددې تاویل هم دادئ چي داسي سړی به په اول وار په خلاصون

ترلاسه کونکو خلکو کي جنت ته د داخلېدو څخه محروم سي.

څرګنده دي وي چي څرنګه د درواغو د قسم په ذريعه د يو مسلمان حق خوړونکي په باره کي ذکر سوی وعيد دئ همدارنګه هغه سړی هم په دغه وعيد کي شامل دئ چي د درواغو د قسم په ذريعه د يو ذمي حق خوري.

## مدعی ته يوه لارښوونه

﴿۳۵۸۹﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّمَا اَنَا

د حضرت ام سلمة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بېله شکه زه يو

بَشَرٌ وَّ إِنَّكُمْ تَخْتَصِمُونَ إِلَيَّ وَلَعَلَّ بَعْضَكُمْ اَنْ يَّكُونَ اَلْحَنُ بِحُجَّتِهِ مِنْ بَعْضٍ

انسان يم او تاسو خپلي جګړې ما ته راوړئ، کيدای سي چي په تاسو کي څوک داسي وي چي په دليل سره ژبه وروي پر ځينو ستاسو

فَأَقْضِيَ لَهُ عَلَى نَحْوِ مَا أَسْمَعُ مِنْهُ فَمَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْءٍ مِنْ حَقِّ أَخِيهِ فَلَا يَأْخُذَنَّهُ فَإِنَّمَا أَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِنَ النَّارِ. متفق عليه

او زه پر هغه بيان چي اورم حکم ورکوم چي د هغه په حق کي زه پريکړه وکړم او په حقيقت کي هغه شی چي د هغه پريکړه سوی وي د هغه د ورور وي نو هغه دي نه اخلي په داسي صورت کي لکه زه د هغه لپاره چي د دوږخ د اور يو ټوټه فيصله کوم. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٣٣٩، رقم: ٦٩٦٧، ومسلم ١٣٣٧\٣، رقم: ٤-١٧١٣.

**تشريح**: زه يو انسان يم: ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي سهوه او نسيان د يو انسان څخه ليري خبره نه ده او د انسان فطرت او د وضع بشري تقاضا داده چي هغه د يو معاملې يوازي يو اړخ ويني چي په ظاهري توګه څرګند وي او د هغه متعلق هغه خبره قبوله کړي چي د يو ښکاره دليل په صورت کي د هغه مخته راسي او زه هم يو انسان يم او په دې حيثيت سره هغه ټول احکام او عوارض ما ته هم پيښيږي کوم چي د بشريت خاصه ده او د هغو تعلق د انساني جبلت سره دی نو په کومو معاملاتو کي چي ما ته د وحي په ذريعه د حقيقت قوت راکول کيږي او د الله تعالی له خوا ما ته تعليم او هدايت کيږي ددې څخه ماسوا په نورو چارو کي زه د هغه ضابطو او قواعدو مطابق عمل کوم کوم چي د هغه بنياد پر انساني عمل او

بشري تقاضا باندي وي ، کله چي ما ته يو قضيه راسي نو زه د هغه د ظاهري اړخونو سره سم فيصله کوم ، که چيري مدعی په خپل دلائلو ، شاهدانو او بيان سره زما مخته دا ثابته کړي چي د هغه دعوه صحيح ده او هغه چي د کوم شي غوښتنه کړې ده هغه د هغه حق دی نو زه د هغه په حق کي فيصله کوم کوم چي د ظاهري حکم تقاضا ده اوس دديځ شخه وروسته مدعی پوه سي که په حقيقت کي د هغه دعوه صحيح وي او د کوم شي چي هغه غوښتنه کړې ده هغه د هغه حق دی نو هغه دي خپل مراد تر لاسه کړي مگر که چيري په حقيقت کي د هغه دعوه صحيح نه وي او د کوم شي چي هغه غوښتنه کړې ده هغه د هغه حق نه وي بلکه دبل چا حق وي او ما د هغه د ظاهري دلائلو او ثبوت په وجه دا وګڼل چي د هغه دعوه صحيح ده او د هغه مدعا مي هغه ته ورکړل نو هغه بايد چي هغه شی په خپل حق کي حلال ونه ګڼي بلکه په دې دي پوه سي چي هغه د اور يوه ټوټه ده چي ورته تر لاسه سوې ده ددې څخه دي ځان وساتل سي .

## په ناحقه دعوه کونکی

﴿٣٥٩٠﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَبْغَضَ الرِّجَالِ إِلَى اللّٰهِ الْأَلَدُّ الْخَصِمُ . متفق عليه.

د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى په نزد بدترين او مبغوض ترين کس هغه دئ چي پر ناحقه زيات جګړه کونکی وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠٦\٥، رقم: ٢٤٥٧، ومسلم ٢٠٥٤\١٤، رقم: ٥- ٢٦٦٨.

**د لغاتو حل**: الالد : اى الشديد الخصومة (سخت دښمني کوونکی)

## ايا مدعی په يوه شاهد او قسم سره دعوه ثابتولای سي

﴿٣٥٩١﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِيَمِينٍ وَشَاهِدٍ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په يوه معامله کي حکم کړی وو په قسم او شاهد سره . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣٣٧\٣، رقم: ٣- ١٧١٢.

**تشریح** د حدیث د ظاهري مفهوم څخه دا معلومیږي که مدعی د خپل دعوې په ثبوت کي یوازي یو شاهد وړاندي کړي نو د هغه مدعی څخه دي د دوهم شاهد په بدله کي یو قسم واخیستل سي او هغه قسم د یوه شاهد قائم مقام دی او د هغه دعوه دي ومنل سي ، د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهم دا مذهب دی، مګر امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه فرمایي چي پر یوه شاهد اویوه قسم باندي فیصله کول جائز نه دي بلکه د دوو شاهدانو کېدل ضروري دي لکه څرنګه چي د قرآن کریم څخه ثابته ده او د قرآن کریم حکم د خبر واحد په ذریعه منسوخ کول جائز نه دي ځکه د دغه روایت په وجه یو داسي مذهب صحیح کېدای نه سي کوم چي د قرآن کریم د حکم خلاف وي حال دا چي د دغه روایت په باره کي دا احتمال هم دی چي کله مدعی د خپل دعوې په اخیستو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوی وي او هغه د خپل دعوې په ثبوت کي یوازي یو شاهد وړاندي کړی وي نو هغه د خپل شهادت تکمیل ونه کړای سو او رسول الله ﷺ یوازي د یوه شاهد د وجود اعتبار ونه کړ ځکه مدعا علیه ته یې د قسم کولو حکم وکړ او د مدعا علیه د قسم کولو څخه وروسته رسول الله ﷺ د هغه فیصله وکړه او راوي پر یوه شاهد او یوه قسم باندي د فیصلې کولو تعبیر وکړ.

علامه طیبي رحمة الله علیه وایي چي د امامانو اختلاف هم په هغه صورت کي دی کله چي د قضیې تعلق د یو مالي دعوې سره وي که چیري د دعوې تعلق د مال څخه ماسوا د بلي معاملې سره وي نو په هغه صورت کي په اتفاق سره د ټولو امامانو مذهب دادی چي شاهد او قسم (یعني د مدعا) له خوا د مثال په توګه د یوه شاهد په وړاندي کولو او د یوه قسم په کولو سره اعتبار ونه کړل سي.

## د مدعی علیه د قسم اعتبار

﴿٣٥٩٢﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مِنْ حَضْرَمَوْتَ

علقمه بن وائل د خپل پلار څخه روایت کوي چي یو سړی د حضر موت (په یمن کي یو ښار)

وَرَجُلٌ مِنْ كِنْدَةَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ يَا رَسُولَ

او سیدونکی وو او یو سړی د کنده قبیلې وو، دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول، حضرمي عرض وکړ ای د الله رسوله!

اللَّهِ إِنَّ هَذَا قَدْ غَلَبَنِي عَلَى أَرْضٍ لِي فَقَالَ الْكِنْدِيُّ هِيَ أَرْضِي فِي يَدِي لَيْسَ

دغه سړي زما مځکه غصب کړې، کندي عرض وکړ هغه زما مځکه ده او زما په قبضه کې ده پر

لَهُ فِيهَا حَقٌّ فَقَالَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْحَضْرَمِيِّ أَلَكَ بَيِّنَةٌ قَالَ لَا

هغې دده هيڅ حق نسته، نبي کريم ﷺ حضرمي ته وفرمايل: ستا شاهدان سته، هغه عرض وکړ

قَالَ فَلَكَ يَمِينُهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الرَّجُلَ فَاجِرٌ لَا يُبَالِي عَلَى مَا حَلَفَ

چي يا، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل نو اوس د مدعا عليه قسم ستا لپاره بس دئ، حضرمي
عرض وکړ اې دالله رسوله! دی خو يو فاجر سړی دئ د قسم پروا نه لري،

عَلَيْهِ وَلَيْسَ يَتَوَرَّعُ مِنْ شَيْءٍ قَالَ لَيْسَ لَكَ مِنْهُ إِلَّا ذَلِكَ فَانْطَلَقَ لِيَحْلِفَ

او د هيڅ شي څخه پرهيز نه کوي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ستا لپاره دده څخه يوازي قسم
اخيستل کيدلای سي، نو کندي د قسم اخيستلو لپاره را مخته سو،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَدْبَرَ لَئِنْ حَلَفَ عَلَى مَالِهِ لِيَأْكُلَهُ
ظُلْمًا لَيَلْقَيَنَّ اللَّهَ وَهُوَ عَنْهُ مُعْرِضٌ. رواه مسلم.

رسول الله ﷺ وفرمايل: که دا سړی د بل پر مال قسم واخلي يوازي له دې کبله چي په زوره د
هغه مال هضم کړي نو دی به د الله تعالى سره په داسي حال کي يو ځای کيږي چي الله تعالى به
څيني بيزاره وي. مسلم

**تخريج** صحيح مسلم: ۱۲۳/۱، رقم: ۲۲۳-۱۳۹.

**تشريح** هغه سړی د قسم لپاره روان سو: دلته دا امکان دی چي د هغه تلل په دې اعتبار وي
لکه څرنګه چي د شافعيه په نزد دا مسئله ده چي قسم کونکی به اول اودس کوي او بيا په يو
خاص وخت کي د جمعې په ورځ د مازديګر د لمانځه وروسته به قسم اخلي او دا احتمال هم دی
چي هغه د مدعی له خوا په شا ګرځولو سره رسول الله ﷺ ته روان سوی وي چي رسول الله ﷺ ته
په رسيدو سره قسم وکړي، امام نووي رحمه الله وايي چي ددغه حديث څخه څو مسئلې راوځي يو
خو دا چي په داسي قضيه کي د هغه پردي څخه قبضې والا غوره دی کوم چي د هغه څخه پر يو
شی باندي دعوه وکړي.
دوهم دا چي پر مدعا عليه باندي قسم کول لازم دي کله چي هغه د مدعی دعوه ونه مني.

او دريم دا چي د فاجر مدعاعليه قسم هم داسي ومنل سي لکه څرنگه چي د عادل مدعاعليه قسم منل کيږي او د هغه قسم کولو په وجه د هغه څخه دمدعی غوښتنه ساقط کيږي مگر دادي واضحه وي که په عدالت کي د ريښتوني شاهدي څخه د مدعا عليه قسم دروا غ معلوم سي نو بيا د هغه قسم به کالعدم گرځول کيږي.

## د درواغو دعوه کونکي ځای دوږخ دی

﴿۳۵۹۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ ادَّعَى مَا لَيْسَ لَهُ فَلَيْسَ مِنَّا وَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ . رواه مسلم .

د حضرت ابوذر ﷛ څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې : څوک چي د يو داسي شی دعوه وکړي چي د هغه نه وي نو هغه زموږ څخه نه دئ هغه ته پکار ده چي خپل ځای په جهنم کي ولټوي . مسلم .

**تخريج** صحيح مسلم ١\٧٩ – ٨٠، رقم: ١١٢ – ٦١.

## غوره شاهد څوک دی

﴿۳۵۹۴﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ الشُّهَدَاءِ الَّذِي يَأْتِي بِشَهَادَتِهِ قَبْلَ أَنْ يُسْأَلَهَا . رواه مسلم

د حضرت زيد بن خالد ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :ايا زه تاسو نه خبرومه په غوره د شاهدانو باندي ، غوره شاهد هغه دی چي د غوښتلو څخه وړاندي شاهدي ورکړي او حقه خبره وکړي . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ٣\١٣۴۴، رقم: ١٩ – ١٧١٩.

**تشريح** مطلب دادی چي شاهد په اصل کي د بيان حقيقت دوهم نوم دی او حقيقت بيانول او پر درخواست باندي موقوف کول غير موزون خبره ده نو غوره شاهد هغه دی چي د شاهدي غوښتلو څخه مخکي د هغه څخه پوښتنه وکړل سي چي ايا ته شاهد يې او ايا ته شاهدي ورکول غواړې نو هغه دي خپله شاهدي ورکړي او همدارنگه د حق ظاهرولو ذمه داري دي پوره کړي.

## ښېله غوښتني شاهدي ورکول پکار دي که یا ؟

مګر ددې برعکس په یو بل حدیث کي د هغه خلکو بدي بیان سوې ده چي ښېله غوښتني شاهدي ورکړي ، د حنفي مذهب لارښوونه داده چي تر څو پوري شاهدي ونه غوښتل سي تر هغه وخته دي شاهدي نه ورکول کیږي ، د شاهدي غوښتلو څخه وروسته شاهدي ورکول واجب دي او په حدودو کي شاهدي پټول غوره دي .

او کوم چي د ذکر سوي روایت تعلق دی چي د هغه څخه ښېله غوښتني د شاهدي ورکونکي غوره شاهد کېدل ثابتیږي نو د هغه په باره کي د حنفیه له خوا دوه تاویلونه کیږي یو خو دا چي دغه ارشاد پر هغه سړي باندي محمول دی چي د چا په حق کي شاهد وي مګر مدعی ته د هغه د شاهد کېدو خبر نه وي نو هغه باید چي هغه مدعی ته ووښيي چي زه په دغه قضیه کي ستا شاهد یم.

دوهم تاویل دادی چي ددغه حدیث تعلق د الله تعالی په حقوقو کي د شاهدي ورکولو سره دی لکه زکوة، کفاره، د میاشتي لېدل، وصیت او داسي نورو شیان، نو کوم څوک چي په دغه شیانو کي د یو شي شاهدي ورکړي د مثال په توګه هغه میاشت لیدلې وي نو هغه باید حاکم او قاضي ته حاضر سي او شاهدي ورکړي .

ددغه دواړو تاویلو څخه ماسوا یوه خبره دا هم ویل کیږي چي ددغه ارشاد حکم د مبالغې په توګه دی چي کوم څوک په یو قضیه کي د شاهد حیثیت ولري او د هغه څخه شاهدي طلب سوې وي نو د هغه د شاهدي څخه وروسته هغه باید د شاهدي ورکولو خپله ذمه داري ژر تر ژره پوره کړي او ښېله غوښتني د شاهدي ورکولو چي کومه بدي نقل سوې ده هغه ددې پر عکس باندي محمول ده .

## د درواغو شاهدي ورکونکي په اړه یو پیشګوئي

﴿۳۵۹۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د غوره

النَّاسِ قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُوْنَهُمْ ثُمَّ يَجِيءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِينَهُ وَيَمِينُهُ شَهَادَتَهُ . متفق علیه

خلکو زما زمانه ده بیا هغه خلک چي د هغوی سره پیوست دي او ددې څخه وروسته هغه خلک

چې د هغوی سره پیوست دي ، بیابه داسي خلک پیدا سي چي د قسم څخه وړاندي به شاهدي وركوي او د شاهدي څخه وړاندي به قسم خوري . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۷ ، رقم: ۳۶۵۱ ، ومسلم ۱۴\۱۹۶۳ ، رقم: ۲۱۲- ۲۵۳۳.

**تشريح** شاهدي به د قسم څخه مخكي او قسم به د شاهدي څخه مخكي وي : ددې څخه په شاهدي او قسم كي تلوار او زياتوب كول د كنايې په توګه بيانول مقصد دي چي هغه به د تلوار او زياتوب په وجه په شاهدي وركولو او قسم كولو كي دومره بې پرواه وي چي كله به د شاهدي څخه مخكي قسم اخلي او كله به مخكي شاهدي وركوي او بيا به قسم كوي .

مظهر رحمة الله عليه ويلي دي په شاهدي او قسم كي د تيزۍ او تلوار جمله د مثال په توګه ده يعني هغه به په شاهدي وركولو او قسم كولو كي دومره تيزي او تلوار كوي چي نه خو به هغه ته د دين څه پرواه وي او نه به په هغه شيانو كي څه پروا كوي تر دې چي هغه ته به دا هم معلومه نه وي چي اول قسم وكړي او كه شاهدي وركړي .

ځيني حضرات وايي چي دغه ارشاد په اصل كي د درواغو شاهدي او د درواغو قسم د عام كېدو په توګه دی چي يوه داسي زمانه به راسي چي په هغه كي به خلک شاهدي وركول خپل كسب جوړ كړي او د درواغو قسم كول به د هغوی تكيه كلام سي لكه څرنګه چي نن سبا په عامه توګه رواج دی چي كسب ګر شاهدان په عدالتو كي د درواغو شاهدي وركوي او هغوی ته ددې هيڅ احساس هم نه وي چي هغوی د يو څو روپو په وجه د درواغو په قسم كولو او د دروغو په شاهدي وركولو سره خپل آخرت برباد وي .

ځيني حضرات وايي چي ددغه جملې معنی داده چي هغه سړی كله خو د قسم په ذريعه خپل شاهدي ته رواج وركوي يعني په دې ويلو سره ګرځي چي قسم په خدای زه رينښتونی يم او كله د شاهدي په ذريعه خپله قسم ته رواج وركوي يعني په دې اعلان كولو سره ګرځي راګرځي چي خلک زما د قسم پر رينښتيا كېدو باندي شاهد دي .

## د قسم لپاره د قرعه اندازۍ ذكر

﴿۳۵۹۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَضَ عَلَى قَوْمٍ الْيَمِينَ فَأَسْرَعُوا فَأَمَرَ أَنْ يُسْهَمَ بَيْنَهُمْ فِي الْيَمِينِ أَيُّهُمْ يَحْلِفُ . رواه البخاري

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يوې ډلي په وړاندي د قسم

اخيستلو تجويز وكړ نو هغوی په قسم خوړلو كي تلوار وكړ ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوی په مينځ كي دي سهم (هسكه، پچه) واچول سي چي په هغوی كي كوم يو اول قسم واخلي. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۸۵، رقم: ۲۶۷۴.

**تشريح** د عبارت د ظاهري مفهوم څخه دا معلوميږي چي يو سړي د رسول الله ﷺ په خدمت كي د ځينو خلكو پر خلاف دعوه وكړل او هغه خلكو د دعوې صحيح كېدو څخه انكار وكړ، رسول الله ﷺ هغه خلكو ته د قسم كولو حكم وركړ او هغوی په قسم كولو كي تلوار وكړ يعني هر سړی د قسم كولو لپاره تيار وو ، رسول الله ﷺ هغوی ته قسم ور نه كړ بلكه دا حكم يې وكړ چي تاسو په خپل مينځ كي قرعه اندازي وكړي ، په قرعه (پچه) كي چي د چا نوم راووځي هغه دي

قسم وكړي.

شارحينو د دغه مسئلې صورت دا ليكلی دی چي د مثال په توګه دوو كسانو د يو داسي دعوه وكړه چي هغه د دريم كس سره دی او په هغه دواړو كي هر سړی وايي چي هغه شی زما مګر په هغه دواړو كي د يوه شاهد هم نه وي يا دا چي د دواړو شاهدان وي مګر هغه دريم سړی وايي چي ما ته معلومه نه ده چي دا شی د چا دی نو په دغه صورت كي د دواړو په باره كي حكم دادی چي د هغوی په مينځ كي دي قرعه (پچه) وكړل سي او د چا د نامه قرعه چي راووځي نو هغه شی دي هغه سړي ته حواله كړل سي، پاته سوه دا خبره چي په دغه صورت كي د قسم كولو ذمه داري پر مدعی عائد كيږي حال دا چي قسم مدعاعليه ته كول پكار دي ، په ظاهره مدعی ته قسم وركول په دې اعتبار دي چي په هغه دواړو كي هر يو د بل د حق منكر دی او قاعده داده چي (واليمين علی من انكر) يعني قسم هغه چا ته وركول پكار دي كوم چي منكر وي.

په هر حال ذكر سوي دواړه صورتونه د حديث د ظاهري مفهوم په رڼا كي بيان سوي دي مګر كوم چي د فقهي مسئلې تعلق دی نو حضرت علي رضي الله عنه د هغه قائل وو كوم چي په ذكر سوي صورت كي بيان سو مګر د امام شافعي رحمه الله مذهب دادی چي په داسي قضيه كي حاكم ته پكار دي چي هغه شی دريم سړي ته پرېږدي او په دواړو مدعيانو كي يې يوه ته هم ور نه كړي ، امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله وايي چي هغه شی دی د هغه دواړو مدعيانو په مينځ كي نيم نيم وويشل سي او ځيني حضرات وايي چي په دغه مسئله كي د امام احمد او امام شافعي رحمة الله عليهما دوه قولونه دي يو قول خو د حضرت علي رضي الله عنه د قول مطابق دی او دوهم قول د امام

اعظم ابو حنيفة رحمه الله د مذهب مطابق دی، راتلونکی د بي بي ام سلمه رضي الله عنها روايت د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله او د هغه د پيروانو تائيد كونكی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### شاهد او قسم

﴿۳۵۹۷﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعَى عَلَيْهِ. رواه الترمذي

حضرت عمرو بن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: شاهد د مدعا پر ذمه دئ او قسم پر مدعا عليه دئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۶۲۶\۳، رقم: ۱۳۴۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي د خپل دعوې په ثبوت كي شاهد وړاندي كول د مدعی حق دی، كه مدعا عليه د دعوې د صحيح كېدو څخه انكار وكړي او مدعی د هغه قسم كولو غوښتنه وكړي نو پر مدعا عليه باندي قسم كول لازم دي.

### كه د يوه شي دوه مدعاوي نو...

﴿۳۵۹۸﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَجُلَيْنِ اِخْتَصَمَا

حضرت ام سلمة رضي الله عنها د هغه دوو كسانو ښېښه بيانوي چي د خپلي معاملې لپاره د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سول،

اِلَيْهِ فِي مَوَارِيثَ لَمْ تَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ إِلَّا دَعْوَاهُمَا فَقَالَ مَنْ قَضَيْتُ لَهُ بِشَيْئٍ

د ميراث معامله وه او په دواړو كي د يوه شاهد هم نه وو، يوازي دعوه وه، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل: په تاسو كي د چا لپاره چي زه د هغه

مِنْ حَقِّ اَخِيْهِ فَاِنَّمَا اَقْطَعُ لَهُ قِطْعَةً مِّنَ النَّارِ فَقَالَ الرَّجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا

د ورور په حق كي پريكړه وكړم نو زما دا پريكړه د هغه لپاره د اور يوه ټوټه ده، په هغو كي دواړو هر يوه عرض وكړ

يَا رَسُوْلَ اللهِ حَقِّيْ هٰذَا لِصَاحِبِيْ فَقَالَ لاَ وَلٰكِنْ اِذْهَبَا فَاقْتَسِمَا وَتَوَخَّيَا الْحَقَّ

اې دالله رسوله ! زما حق زما د ملګري لپاره دئ، رسول الله ﷺ وفرمايل: يا، داسي نه ده بلکه تاسو دواړه ددې شي په خپل منځ کي په ويشلو کي د انصاف څخه کار واخلئ

ثُمَّ اسْتَهِمَا ثُمَّ لِيُحَلِّلْ كُلُّ وَاحِدٍ مِّنْكُمَا صَاحِبَهُ وفي رواية قَالَ اِنَّمَا اَقْضِيْ بَيْنَكُمَا بِرَاْيِيْ فِيْمَا لَمْ يُنْزَلْ عَلَيَّ فِيْهِ. رواه ابوداؤد

او هر کله چي دا شي دوې برخي کړئ نو پر دواړو برخه قرعه اندازي (پچه) واچوئ او بيا په تاسو کي هر يو بل ته خپل حق معاف کړئ چي د هغه لوري ته تللی وي، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي دا حکم زه په خپل رايه سره کوم او په دې اړه پر ما وحي نه ده راغلې. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۱۴، رقم: ۳۵۸۴،

**د لغاتو حل**: استهما: اى اقترعا (هسکه يې وکړه)

## د قابض په حق کي فيصله

﴿۳۵۹۹﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ أَنَّ رَجُلَيْنِ تَدَاعَيَا دَابَّةً فَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي دوو کسانو د يو حيوان په اړه دعوا وکړه نو

مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ أَنَّهَا دَابَّتُهُ نَتَجَهَا فَقَضٰى بِهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلَّذِيْ فِيْ يَدِهِ. رواه في شرح السنة.

ودرول هر يوه له دواړو څخه شاهدان چي دا حيوان د هغه دئ دچا سره چي زېږېدلی دئ، رسول الله ﷺ حيوان هغه سړي ته ورکړي چي د چا په لاس کي وو. شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۰\۱۰٦، رقم: ۲۵۰۴.

**تشريح**: ځيني علماء کرام وايي چي دا حديث پر دې دلالت کوي که چيري يو داسي قضيه وي چي په هغه کي د يو شي د ملکيت ثابتولو لپاره دوه کسان خپل خپل شاهد وړاندي کړي نو په دواړو کي د هغه کس شاهدانو ته به ترجيح ورکړل سي د چا په قبضه کي چي هغه شی دی مګر

صحيح خبره داده چي دا حكم په هغه صورت كي دى كله چي هغه قضيه د حيوان په باره كي وي او هر كس دا دعوه كوي چي دغه حيوان د هغه په كور كي پيدا سوى دى.

په شرح السنه كي ليكلي دي چي علماء وايي كه چيري يو داسي قضيه رامنځته سي چي په هغه كي دوه كسان د يو حيوان يا د يو شي د ملكيت دعوه وكړي او هغه حيوان يا شى په دواړو كي د يوه په قبضه كي وي نو هغه حيوان يا شى به د قبضه كونكي منل كيږي او هغه ته به قسم وركول كيږي مگر كه مخالف كس خپل شاهد وړاندي كړي او هغه دا شاهدي وركړي چي دغه حيوان يا دغه شى د قبضه كونكي نه دي بلكه د دوهم كس دى نو هغه حيوان يا شى به د قبضه كونكي څخه په اخيستلو سره دوهم كس ته حواله كيږي او كه چيري دا صورت وي چي دواړه كسه خپل خپل شاهدان وړاندي كړي نو بيا د قبضه كونكي شاهدانو ته ترجيح وركول كيږي.

په حنفي مذهب كي مسئله داسي ده چي په ذكر سوي صورت كي د قبضه كونكي د شاهدانو اعتبار نه كيږي بلكه د دوهم كس د شاهدانو اعتبار دي وكړل سي او هغه شى دى د قبضه كونكي څخه واخلي او دوهم كس ته دي يې حواله كړي مگر كه چيري د دعوې تعلق د حيوان د پيدا كېدو سره وي يعني هر كس دا دعوه كوي چي دغه حيوان زما ملكيت دى او زما په كور كي پيدا سوى دى او بيا هر يو د خپل دعوې په ثبوت كي شاهد وړاندي كړي نو په دغه صورت كي به د هغه حيوان فيصله د قبضه كونكي په حق كي وي او كه چيري د قضيې تعلق د يو داسي شي سره وي كوم چي د دواړو كسانو په قبضه كي وي او دواړه كسان د هغه پر پوره برخه باندي د خپل ملكيت دعوه كوي نو دواړو ته به قسم وركول كيږي او هغه شى به د دواړو په مينځ كي د هر يوه د قبضې مطابق ويشل كيږي، همدارنگه كه چيري هغه شى په دواړو كي د يوه په قبضه كي هم نه وي مگر دواړه د خپل دعوې په ثبوت كي شاهدان وړاندي كړي نو هغه شى دى د دواړو په مينځ كي وويشل سي.

## د دوو مدعيانو په مينځ كي د مال تقسيم

﴿٣٦٠٠﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسَى الْاَشْعَرِيِّ اَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيْرًا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي دوو كسانو د

اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَعَثَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا شَاهِدَيْنِ فَقَسَمَهُ النَّبِيُّ

يوه اوښ دعوه وكړه، او دواړو دوه دوه شاهدان وړاندي كړل، رسول الله ﷺ اوښ د دواړو په

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا نِصْفَيْنِ. رواه ابوداؤد و في رواية له وللنسائي

منځ كي نيم وويشئ، ابوداؤد، او د ابوداؤد په يو بل روايت كي او د نسائي او ابن ماجه په

وابن ماجة اَنَّ رَجُلَيْنِ ادَّعَيَا بَعِيْرًا لَيْسَتْ لِوَاحِدٍ مِّنْهُمَا بَيِّنَةٌ فَجَعَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَهُمَا.

روايت كي دا الفاظ دي چي دوو كسانو د يوه اوښ دعوه وكړه او په دواړو كي يوه هم شاهد نه درلودئ، رسول الله ﷺ اوښ دواړو ته حواله كړ.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۳۷، رقم: ۳٦۱۵،

**تشريح**: هغه اوښ يې په دواړو كي نيم نيم وويشئ: په دې باره كي علامه خطابي رحمه الله وايي چي كيداى سي هغه اوښ د دواړو په قبضه كي وو، او ملا علي قاري رحمه الله وايي چي كيداى سي هغه اوښ د يو بل دريم سړي په قبضه كي وو كوم چي د دواړو په مينځ كي تنازع پكښې وه. په اول روايت كي دا ښوول سوي دي چي دواړو مدعيانو خپل شاهدان درلودل حال دا چي د دوهم روايت څخه دا ثابتيږي چي په دواړو كي د يوه سره هم شاهد نه وو، نو دا ممكن ده چي په دواړو روايتو كي ذكر سوې قضيه جلا جلا وي او دا هم ليري نه ده چي د دواړو روايتو تعلق د يوې قضيې سره وي په دغه صورت كي به ويل كيږي چي په اول كي خو د نفس واقعې بيان دى چي په هغه دواړو كي هر يو د خپل خپل دعوې په ثبوت كي شاهدان درلودل او په دوهم روايت كي د حقيقت حكم بيان دى كله چي دواړو شاهدان وړاندي كړل او د هغه دواړو شاهدي په خپلو كي د متعارض كېدو په وجه ساقط وګرځول سول نو هغوى دواړه د داسي مدعيانو په ډول سول كوم چي شاهدان نه لري، په دې اعتبار سره په هغه دواړو كي د چا سره شاهد نه وو، ددې معنى به دا وي چي په هغه دواړو كي د يوه سره هم داسي شاهد نه وو چي هغوى ته د دوهم پر شاهدانو ترجيح وركړل سي. هغه اوښ يې د دواړو ګډ حق وګرځوى: په دې باره كي ابن مالك رحمه الله وايي چي دغه ارشاد پر دې دلالت كوي كه چيري دوه كسان د يو شي د ملكيت دعوه وكړي او په هغوى كي د يوه سره شاهد نه وي يا په هغوى كي د هر يوه سره شاهد وي او هغه شى د دواړو په قبضه كي وي يا په دواړو كي د يوه په قبضه كي هم نه وي نو هغه شى دى د دواړو په مينځ كي نيم په نيم وويشل سي.

﴿۳۶۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلَيْنِ اخْتَصَمَا فِيْ دَابَّةٍ وَّلَيْسَ لَهُمَا بَيِّنَةٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَهِمَا عَلَى الْيَمِيْنِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د دوو كسانو پر يو حيوان باندي جګړه سوه، او د دواړو سره شاهد نه وو، نبي كريم ﷺ و فرمايل: پر قسم اخيستلو قرعه اندازي وكړئ.
ابو داؤد او ابن ماجة

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۰۱، رقم: ۳۶۱۸، وابن ماجه ۲\۷۸۶، رقم: ۲۳۴۶.

**تشريح**: په دغه روايت كي چي كوم حكم بيان سوی دی دا د هغه روايت د حكم په ډول دی كوم چي د اول فصل په پای كي ذكر سوی دی او حضرت ابو هريره رضي الله عنه نقل كړی دی.

### د مدعی عليه قسم

﴿۳۶۰۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلٍ حَلَّفَهُ احْلِفْ بِاللّٰهِ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ مَا لَهُ عِنْدَكَ شَيْءٌ يَعْنِي لِلْمُدَّعِي. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته چي هغه ته د قسم وركولو اراده وه وفرمايل: (ته داسي قسم واخله) چي زه قسم اخلم په هغه ذات چي د هغه څخه پرته بل معبود نسته چي د دغه سړي (مدعی) پر تا هيڅ حق نسته. ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۱، رقم: ۳۶۲۰.

**تشريح**: لكه څرنګه چي مخكي وښوول سول كه چيري مدعی د خپل دعوې په ثبوت كي شاهد وړاندي نه كړي او مدعا عليه د هغه د دعوې څخه انكار وكړي نو د هغه پر غوښتنه به مدعا عليه ته قسم وركول ضروري وي او هغه به داسي قسم كوي چي زه په الله جل جلاله قسم كوم چي د هغه څخه پرته بل معبود نه سته چي د دغه سړی د كوم حق دعوه كړې ده هغه پر صداقت مبني نه ده او د ده پر ما هيڅ حق نه سته.

د قسم او حلف په باره كي دا قاعده بايد په ذهن كي وي چي حلف د قاضي يعني عدالت حكم وركوي او د مسلمان څخه د يو الله جل جلاله حلف اخيستل كيږي، عيسائي ته د خدايي انجيل، يهودي ته د خدايي تورات او مجوسي وغيره ته يوازي د الله جل جلاله حلف وركول كيږي.

دا خبره هم مخكي بنوول سوې ده چي د مدعاعليه د قسم په هر صورت كي اعتبار وي كه هغه عادل او ريښتوني وي يا فاجر او درواغجن وي مګر كه چيري قاضي يعني د عدالت حاكم ته د ريښتوني شاهدي په ذريعه د حلف درواغ معلوم سي نو په دغه صورت كي به د هغه حلف كالعدم وي.

## مدعا عليه ته د قسم حق وركول كيږي

﴿٣٦٠٣﴾: وَ عَنِ الْأَشْعَثِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ رَجُلٍ مِنَ الْيَهُودِ

د حضرت اشعث بن قيس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زما او د يو يهودي يوه ګډه مځكه وه،

أَرْضٌ فَجَحَدَنِي فَقَدَّمْتُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَلَكَ بَيِّنَةٌ قُلْتُ

يهودي زما د برخي راكولو څخه انكار وكړ، ما هغه نبي كريم ﷺ ته راوستى، رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا ستا شاهد سته؟ ما وويل

لَا قَالَ لِلْيَهُودِيِّ احْلِفْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِذًا يَحْلِفُ وَيَذْهَبُ بِمَالِي فَأَنْزَلَ

نه، بيا رسول الله ﷺ يهودي ته وفرمايل: ته قسم واخله، ما عرض وكړ اې د الله رسوله! دى به اوس قسم واخلي او زما مال به يوسي، پر دې خبره باندي دا آيت نازل سو:

اللّٰهُ {إِنَّ الَّذِينَ يَشْتَرُونَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَأَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيلًا} الْآيَة. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

(ان الذين يشرون.......). ابوداؤد او ابن ماجة.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۱، رقم: ٣٦٢١، وابن ماجه ۲\۷۷۸، رقم: ۲۳۲۲.

**تشريح** په حديث كي چي كوم آيت كريمه نقل سوى دى هغه په اصل كي د هغه قضيې په باره كي نازل سوى دى كوم چي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روايت كي بيان سوې ده، په دغه روايت كي چي كوم قضيه ذكر سوې ده هغه هم د دغه قضيې په ډول ده ځكه دلته هم د دغه آيت حواله وركړل سول، پوره آيت د ابن مسعود رضي الله عنه د روايت په تشريح كي نقل سوى دى.

د حضرت اشعث رضي الله عنه اعتراض دا وو چي هغه يهودي ته د قسم كولو حكم وركول كيږي او د هغه پر قسم د فيصلې انحصار دى او په دې ټول پوهيږي چي په خاصه توګه په مالي معاملاتو

کي د يهوديانو فطرت څه شی دی ، د يهودي لپاره په دي کي هيڅ پروا نه سته چي هغه زما د مال خوړلو لپاره په دروا غو قسم وکړي ، نو غوره داده چي پر دغه قسم باندي فيصله موقوف نه کړل سي ، د اشعث رضي الله عنه ددغه اعتراض په جواب کي يوازي ددغه آيت پر ذکر اکتفاء سوې ده کوم چي په دغه باره کي نازل سوی وو ، نو د آيت کريمه ذکر کول گويا د رسول الله ﷺ دا فرمايل دي چي شريعت ددغه صورت لپاره کومه قاعده ټاکلې ده هغه داده چي د مدعا عليه څخه قسم واخيستل سي او په داسي قضيه کي قسم کول د مدعا عليه حق دی ځکه نو د يو اعتراض په وجه د مدعا عليه د حق څخه محروم کول ددغه ټاکل سوي قاعدې خلاف ورزي کول دي کوم چي زموږ لپاره نا سمه خبره ده مگر په دې کي هم شک نه سته که مدعا عليه د خپل دغه حق څخه ناجائزه گټه پورته کړي او هغه په دغه مقصد سره د دروا غو قسم وکړي تر څو د مدعی مال وخوري نو هغه ته دي خبرداری وي چي د هغه ددغه دروا غو قسم به د هغه په غاړه وي او څرنگه چي قرآن کريم اعلان کړی دی چي د داسي سړي لپاره به په اخرت کي هيڅ برخه نه وي.

## د درواغو قسم اخيستونکي په اړه وعيد

﴿۳۶۰۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِنْدَةَ وَرَجُلًا مِنْ حَضْرَمَوْتَ اخْتَصَمَا إِلَى

د حضرت اشعث بن قيس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د يو کندي قبيلې او سيدونکی او يو حضرمي قبيلې او سيدونکی په منځ کي د يمن پر يوه مځکه باندي جگړه سوه ،

رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي أَرْضٍ مِنَ الْيَمَنِ فَقَالَ الْحَضْرَمِيُّ يَا

دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول ، حضرمي وويل اې دالله رسوله !

رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُو هٰذَا وَهِيَ فِي يَدِهِ قَالَ هَلْ لَكَ بَيِّنَةٌ قَالَ

دده پلار زما څخه زما مځکه په زور اخيستې وه اوس هغه دده په لاس کي ده ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ستا څوک شاهد سته ؟ هغه عرض وکړ :

لَا وَلٰكِنْ أُحَلِّفُهُ وَاللهُ يَعْلَمُ أَنَّهَا أَرْضِي اغْتَصَبَنِيهَا أَبُوهُ فَتَهَيَّأَ الْكِنْدِيُّ

يا ، مگر زه به قسم پر واخلم ، چي قسم دئ په الله تعالی هغه ته معلومه ده چي دا مځکه زما (حضرمي) ده او دده پلار دا مځکه زما څخه په زور اخيستي وه ، کندي د قسم اخيستلو لپاره

لِلْيَمِينِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْتَطِعُ أَحَدٌ مَالًا بِيَمِينٍ إِلَّا لَقِيَ اللّٰهَ وَهُوَ أَجْذَمُ فَقَالَ الْكِنْدِيُّ هِيَ أَرْضُهُ . رواه ابوداؤد .

تيار سو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په قسم خوړلو سره د چا مال په خپله قبضه کي کړي هغه به د الله تعالى سره په داسي حال کي يو ځاى کيږي چي د هغه لاس به پريکړى وي ، (د دې په اوريدو سره) کندي وويل دا مځکه دده ده . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴۲\۴، رقم: ۳۶۲۲.

**د لغاتو حل**: اجذم: اى مقطوع اليد او البركة او الحركة او الحجة.

**تشريح**: الا لقي الله وهو اجذم : جذام يو مشهوره ناروغي ده چي په هغه کي د بدن اندامونه خرابيږي ، د جذام لغوي معنى د پرېکولو او په تلوار سره پرېکول دي، دغه لفظ د لاس پرې کولو يا پرې کړي لاس په معنى کي هم استعماليږي، دلته په حديث شريف کي دغه لفظ د (قطع يد) په معنى کي استعمال سوى دى چي د هغه څخه مراد بې برکته کېدل او د خير څخه خالي کېدل دي لکه څرنګه چي په يو حديث کي فرمايل سوي دي :

من تعلم القرآن ثم نسيه لقي الله وهو اجذم : يعني چا چي قرآن کريم زده (ياد) کړى او بيا يې هغه هير کړنو د الله تعالى سره به په داسي حال کي ملاقات کوي چي د هغه لاس به پرې کړى وي يعني بې برکته او د خير څخه به خالي وي .

ځيني حضرات وايي چي دلته د اجذم څخه مراد مقطوع الحجة (بې دليله) دى يعني هغه سړى به په داسي حال کي د الله تعالى په دربار کي حاضر سي چي د هغه سره به نه د خپل دين او ديانت يو دليل وي چي په هغه سره د خپل خلاصون لاره ولټوي او نه به د هغه سره داسي ژبه وي چي د هغه په ذريعه د عرض او معروض جرئت وکړلاى سي .

## د درواغو قسم اخيستل لويه ګناه ده

﴿۳۶۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أُنَيْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن انيس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّ مِنْ أَكْبَرِ الْكَبَائِرِ الشِّرْكُ بِاللّٰهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَالْيَمِينُ الْغَمُوسُ وَمَا

په ګناهونو کي تر ټولو لوى ګناهونه دادي : د الله تعالى سره يو څوک شريک نيول، د مور او پلار

نافرماني کول، په درواغو قسم اخيستل او کوم سړی چي

حَلَفَ حَالِفٌ بِاللّٰهِ يَمِينَ صَبْرٍ فَأَدْخَلَ فِيهَا مِثْلَ جَنَاحِ بَعُوضَةٍ إِلَّا جُعِلَتْ نُكْتَةً فِي قَلْبِهِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

په مقيد کولو (مجبوری) سره پر الله قسم واخلي او په هغه کي د غوماشي د وزر په اندازه هم درواغ ووايي نو د هغه پر زړه به تر قيامت پوري يو داغ لګول کيږي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۲۲۰. رقم: ۳۰۲۰.

**تشريح**: غموس په اصل کي د غمس څخه دی چي د هغه معنی د غوټې وهلو ده، او يمين غموس پر يو تيري خبري باندي په قصد سره د درواغو قسم کولو ته وايي، د حنفي مذهب سره سم پر داسي قسم کونکي باندي کفاره واجب نه ده مګر پر هغه لازم ده چي توبه او استغفار وکړي او د بيا لپاره د داسي قسم نه کولو پخه اراده وکړي ځکه چي د يمين غموس په باره کي د دوږخ د اور څخه بېرول سوي دي، داسي قسم ته غموس په دې اعتبار وايي چي هغه به داسي قسم کونکي ته د دوږخ په اور کي غوټه ورکوي او د غير حق د بل مال خوړلو لپاره چي د درواغو قسم کول کيږي هغه دد غه قبيل يعني يمين غموس څخه دی.

° يمين صبر (يعني د مجبوری او بند په حالت کي قسم کول) ددې تفصيل د اول فصل په تشريح کي تېر سوی دی، د نتيجې په اعتبار يمين صبر هم د يمين غموس په مفهوم کي داخل دی لکه څرنګه چي په يمين غموس کي کفاره نه واجبيږي بلکه د آخرت سزا ورکول کيږي همدا رنګه په يمين صبر کي هم کفاره نه واجبيږي بلکه ددې سزا به هم په آخرت کي ورکول کيږي.

جعلت نکتة في قلبه الی يوم القيامة: (د هغه په زړه کي تر قيامته پوري يوه نکته پيدا کيږئ): ددې مطلب دادی چي د هغه داغ اثر د زنګ په ډول وي چي هغه په قسم کي د لږ درواغ ويونکي سړي پر زړه باندي تر قيامته پوري پاته وي او بيا په آخرت کي د هغه عذاب د هغه سړي په حق کي داسي ظاهريږي چي هغه به د الله تعالی په عذاب کي اخته کړل سي. ددې څخه بايد عبرت واخيستل سي چي کله د لږ درواغ ويلو دغه پای دی نو په هغه صورت کي به څه حال وي کله چي پر هغه خبري قسم وکړل سي کوم چي بالکل درواغ وي.

رسول الله ﷺ په خپل ارشاد کي د درو شيانو ذکر وکړ کوم چي په لويو گناهو کي تر ټولو لوی گناهونه دي او بيا په هغه درو کي يوازي د آخري په باره کي يې وعيد بيان کړ چي دا واضحه سي چي دا هم په لويو گناهو کي داخل ده او خلک په دې گمان کولو سره په عدالت کي د درواغو قسم کول د گناه په اعتبار د شرک او د مور او پلار د نافرمانۍ په ډول دي او دا دي تر دې کم نه گڼي ، همدارنگه مخته د حضرت خزيمه ابن فاتک کوم روايت چي نقل کړ د هغه د الفاظو (عدلت شهادة الزور بالاشراک بالله) څخه هم دا واضحه کيږي چي دا هم په لويو گناهو کي داخل دي .

﴿٣٦٠٦﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحْلِفُ أَحَدٌ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي زما د دغه منبر سره د

عِنْدَ مِنْبَرِي هٰذَا عَلَى يَمِينٍ آثِمَةٍ وَلَوْ عَلَى سِوَاكٍ أَخْضَرَ إِلَّا تَبَوَّأَ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ أَوْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ . رواه مالك و ابوداؤد وابن ماجة .

درواغو قسم واخلي که څه هم هغه د يوه شين مسواک لپاره وي هغه د دوږخ په اور کي خپل ځان ته ځای تياروي يا رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمايل : د هغه لپاره به د دوږخ اور واجب سي . ملک . ابوداؤد او ابن ماجة

**تخريج** موطا الامام مالک ٢\ ٧٢٧، رقم: ١٠. وابوداود ٣\ ٥٦٧، رقم: ٣٢٤٦، وابن ماجه ٢\ ٧٧٩، رقم: ٢٣٢٥.

**تشريح** د منبر سره د قسم کولو قيد يې ځکه ولگوی چي هغه يو مقدس او باعظمته ځای دی هلته د درواغو قسم کول لويه گناه ده ، کنه نو مطلق قسم کول هر ځای چي وکړل سي د الله تعالی د غضب او د هغه د عذاب سبب گرځي .

د شنه مسواک ذکر ځکه وکړل سو چي هغه يو معمولي شی وي ، کله چي د وچېدو څخه وروسته په هغه کي قدر او قيمت پيدا سي ، خلاصه دا چي مسواک په خپله يو معمولي او ډېر کم شی دی چي د وچېدو څخه مخکي د هغه هيڅ حقيقت نه وي کله چي د هغه لپاره هم د درواغو قسم کول پر دومره لوی سزا باندي محمول دی نو کوم خلک چي په عدالتو کي په ډېره بې باکۍ سره د لويو شيانو لپاره د درواغو قسمونه اخلي نو د هغوی به څه حشر وي . (نعوذ بالله منه) .

## د درواغو شاهدي د شرک سره سمه ده

﴿۳۶۰۷﴾: وَعَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خریم بن فاتک رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د سهار لمونځ وکړ

صَلَاةَ الصُّبْحِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَامَ قَائِمًا فَقَالَ عُدِلَتْ شَهَادَةُ الزُّورِ بِالْإِشْرَاكِ

کله چي دلمانځه څخه فارغ سو نو ولاړ سو او دري واره ئې دا الفاظ وفرمایل: په درواغو شاهدي د شرک سره برابر کړل سوه،

بِاللّٰهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ ثُمَّ قَرَأَ { فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ وَاجْتَنِبُوا قَوْلَ

بیا رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ (فاجتنبوا .....) (د پلیتو بتانو د بندګۍ څخه ځان وساتئ او

الزُّورِ حُنَفَاءَ لِلّٰهِ غَيْرَ مُشْرِكِينَ بِهِ }. رواه ابوداؤد وابن ماجة و رواه احمد والترمذي عن ايمن ابن خريم الا ان ابن ماجة لم يذكر القراءة.

د درواغ ویلو څخه ځان وساتئ او د باطل څخه د حق په لور رجوع وکړئ او د الله تعالی سره هیڅوک مه شریکوئ). ابو داؤد، ابن ماجة، احمد او ترمذي دا د حضرت ایمن بن خریم څخه روایت کړی دئ خو ابن ماجه د قرائت ذکر نه دی کړی.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۲۳، رقم: ۳۵۹۹، وابن ماجه ۲\۷۹۴، رقم: ۲۳۷۲.

**تشریح**: د درواغو شاهدي د شرک برابر ګرځول سوي ده: ددې مطلب دادی چي شرک کول او د درواغو شاهدي ورکول دواړه په ګناه کي برابر دي ځکه چي د شرک مطلب دادی چي الله تعالی ته د هغه شي د درواغو نسبت کول کوم چي جائز نه دی په دې اعتبار سره د دواړو په حقیقت کي څه وجود نه سته نو په حکم کي هم دواړه برابر سول.

## د کومو خلکو د شاهدۍ اعتبار دی؟

﴿۳۶۰۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَجُوزُ

د حضرت عائشي رضی الله عنها څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د باوروړ او جائز نه ده

شَهَادَةُ خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ وَلَا مَجْلُودٍ حَدًّا وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ وَلَا ظَنِينٍ فِي

د دغه خلکو شاهدي: د خيانت کونکي سړي او خيانت کونکي ښځي، پر چا چي د تهمت حد جاري سوی وي، د دښمن که څه هم ورور وي، د هغه غلام چي يو چا ازاد کړی

وَلَاءٍ وَلَا قَرَابَةٍ وَلَا الْقَانِعِ أَهْلَ الْبَيْتِ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب و يزيد بن زياد الدمشقي الراوي منكر الحديث .

او هغه ووايي چي هغه بل سړي ازاد کړی دئ، د هغه سړي چي خپل نسبت د بل سره يو ځای کوي، د هغه سړي چي د خپل کورنۍ سره په خوراک او څښاک کي ګډ وي لکه خادم وغيره، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ ځکه چي ددې يو راوي يزيد بن زياد د مشقي د حديث څخه منکر دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۷۳، رقم: ۲۲۹۸.

**تخريج**: ذي غمر: اى حقد وعداوة. ظنين: اى ولا على متهم.

**تشريح**: د اسلام له نظره د شاهدانو عادل کېدل دومره ضروري دي لکه څومره چي د حاکم عادل کېدل ضروري دي ځکه چي شاهدي يو داسي ارزښتناکه وسيله ده چي عدالت ته د عدل په رسيدو کي فيصله کونکې مرسته کوي په دې اعتبار سره که وکتل سي نو معلومه به سي چي په حديث کي د کومو خلکو ذکر سوی دی هغوی د عدل په معيار پوره نه دي ځکه د هغوی شاهدي د باور وړ و نه ګرځول سوه.

خيانت کونکی سړی ...: دلته د خيانت څخه مراد د خلکو په امانت کي خيانت کول مراد دي، د هغه خلکو او ښځو د شاهدي اعتبار به نه کيږي کوم چي د خلکو په امانتو کي خيانت کونکي وي او د هغوی د خيانت جرم په وار وار کېدو په وجه په خلکو کي ښکاره وي، ظاهره خبره ده چي خيانت يو داسي مخفي جرم دی چي د الله تعالی په علم کي خو وي مګر په عامه توګه سره پر بندګانو نه ظاهريږي.

ځيني حضرات وايي چي دلته د خيانت څخه مراد فسق دی که هغه د لوی ګناه کولو يا پر کوچنيو ګناهو باندي د همېشتوب په صورت کي وي يا د دين د احکامو او فرضو پر ځای نه راوړلو په شکل کي وي، الله ﷻ د دين احکامو ته هم امانت ويلي دي لکه څرنګه چي په دغه آيت کريمه کي دي:

إِنَّا عَرَضْنَا الأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ

ژباړه : بېشکه موږ امانت (یعني د خپل دین بار) اسمانو او مځکي ته وړاندي کړ . . . الخ.

او همدارنګه د دین د احکامو پر ځای نه راوړلو ته یې هم خیانت فرمایلي دي لکه څرنګه چي دد غه آیت کریمه څخه ثابت دي :

لاَ تَخُونُواْ اللهَ وَالرَّسُولَ وَتَخُونُواْ أَمَانَاتِكُمْ

ژباړه : تاسو خیانت مه کوئ د الله (ﷻ) او د هغه د رسول (ﷺ) په امانت (یعني د دین په کارو کي) او مه په خپلو امانتو کي خیانت کوئ.

په دغه صورت کي به د حدیث مطلب دا وي چي کوم خلک او ښځي د شریعت احکام او فرائض نه پر ځای کوي یا لوی ګناهونه کوي او پر کوچنیو ګناهو باندي همېشتوب کوي نو د هغوی شاهدي به معتبره نه وي ، دوهم دا چي په راتلونکي حدیث کي د خیانت څخه وروسته د زنا ذکر سوی دی چي د هغه په باره کي دا ویل کیږي چي دا د تخصیص بعد تعمیم په توګه دی ، علماؤ لیکلي دي چي دغه تاویل یعني د خیانت څخه فسق مراد اخیستل غوره دي ، او په دوهم صورت کي دد غه ټولو بدیو او ګناهو ذکر به پاته سي کوم چي د هغو کول د شاهدي قبلولو څخه مانع وي او دد غه ټولو په پرېښودو سره یوازي د خیانت ذکر کول په پوهه کي نه راځي .

پر چا چي د تهمت حد جاري سوی دی.: ددې مطلب دادئ که یو چا پر پاک لمني باندي د زنا تهمت لګولی وي او د هغه په سزا کي پر هغه حد جاري سوی وي نو د هغه سړي شاهدي به د قبول وړ نه وي که څه هم د هغه څخه توبه وکړي .

په دې باره کي د فقهي مسئلې تحقیق دادی چي امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله وایي چي د حد قذف څخه ماسوا په نورو ټولو حدو کي دا رعایت حاصل دی چي پر کوم سړي حد جاري سوی وي که هغه توبه وکړي نو د هغه شاهدي به قبلیږي د توبې څخه مخکي د هغه شاهدي د قبول وړ نه وي او په حد قذف کي دا سزا ده چي پر کوم سړي حد جاري سي که هغه توبه هم وکړي نو د هغه شاهدي به نه قبلیږي مګر نور امامان وایي چي دا مسئله د ټولو حدودو سره متعلق ده که پر یو سړي باندي حد جاري سي نو د هغه توبه کولو څخه وروسته د هغه شاهدي قبلیږي که څه هم هغه حد د تهمت په جرم کي جاري سوی وي یا د بلي ګناه په وجه جاري سوی وي .

دښمن چي د خپل مسلمان ورور خلاف وي: ددې مطلب دادی چي کوم کسان په خپلو کي د یو بل سره دښمني او عداوت لري د هغوی به د یو بل په باره کي شاهدي معتبره نه وي که څه

هم هغوی د واړه په خپلو کي نسبي ورونه وي يا ديني ورونه وي.
هغه څوک چي د ولاء په باره کي متهم وي: د دې مطلب دادی چي د مثال په توګه زيد د بکر غلام وو او بکر هغه ازاد کړی وو او اوس زيد خپل ازادي يو دريم چا ته منسوب کوي يعني داسي وايي چي زه عمرو ازاد کړی يم حال دا چي هغه په دغه خبره کي درواغجن دی او هغه په خپل دغه درواغو کي مشهور دی چي خلک په عامه توګه د هغه د درواغو پر انتساب باندي هم متهم کوي او د هغه تکذيب هم کوي نو دداسي سړي شاهدي هم د قبليدو وړ نه ځکه چي هغه د خپل دغه ويلو په وجه فاسق دی، د ازاد کونکي ولاء قطع کول او د هغه د ولاء نسبت يو داسي سړي ته کول چي په حقيقت کي هغه نه وي ازاد کړی دا لويه ګناه ده او په دې باره کي سخت وعيد او خبرداری راغلی دی دا حکم د قرابت په باره کي هم دی که يو سړی په خپل قرابت کي غلط بيان وکړي يعني داسي ووايي چي زه د فلاني سړي د مثال په توګه د زيد زوی يم مګر د هغه پر غلطه وينا باندي خلک هغه متهم کوي او د هغه په تکذيب کولو سره وايي چي هغه د زيد زوی نه دی بلکه په حقيقت کي د بکر زوی دی نو د هغه شاهدي به هم د قبليدو وړ نه ده ځکه چي د هغه درواغ ويل فسق دي او د خپل پلار څخه ماسوا بل چا ته د خپل نسبت کونکي په باره کي لعنت ويل سوی دی.
هغه څوک چي پر يوه کور باندي قانع وي: دا هغه سائل دی چي پر کم از کم نس مړولو باندي قناعت کوي يا د هغه روزي د يوه کور سره متعلق وي مګر دلته هغه سړی مراد دی چي د يو چا تر نفقه لاندي وي چي د هغه ګزاره د هغه په ورکړه وي لکه خادم او تابع، د داسي سړي شاهدي به د هغه د مخدوم او متبوع په حق کي د قبول وړ نه وي ځکه چي اول خو دا احتمال دی چي هغه د خپل اړتيا په وجه د خپل مخدوم او متبوع ناروا طرفداري وکړي او حقه خبره نه کوي دوهم دا چي د خپل مخدوم او متبوع په حق کي د شاهدي ورکولو مطلب دادی چي هغه د خپل شاهدۍ په ذريعه د هغه شي منافع د خپل ذات سره متعلق کوي چي د هغه د شاهدي په نتيجه کي به د هغه مخدوم او متبوع ته حاصليږي يا په دې توګه چي کله د هغه خوراک او څښاک د هغه د مخدوم او متبوع پر ذمه وي چي د هغه په حق کي هغه شاهدي ورکوي نو هغه مخدوم او متبوع ته چي د هغه په ذريعه کوم مال تر لاسه کيږي د هغه منافع به د هغه ذات ته هم حاصليږي نو د خپل مخدوم او متبوع په حق کي د تابع او خادم د شاهدۍ هغه حکم دی کوم چي د پلار او زوی يا د ښځي او خاوند د شاهدۍ حکم دی لکه څرنګه چي يو پلار د خپل زوی په حق کي يا زوی د خپل پلار په حق کي شاهدي ورکړي يا خاوند د خپل ښځي په حق کي يا ښځه د خپل

خاوند په حق کي شاهدي ورکړي نو هغه شاهدي به صحیح نه وي او د هغه به اعتبار نه کیږي ځکه چي هغوی په خپلو کي د یو بل په حق کي شاهدي ورکول د خپل ذات د ګټي لپاره شاهدي ورکول دي همدارنګه د مخدوم او متبوع په حق کي د تابع او خادم شاهدي هم صحیح نه ده او د هغه اعتبار به هم نه کیږي البته دادي واضحه وي چي د ورور په حق کي د ورور شاهدي صحیح ده او د هغه اعتبار کیږي.

او ددغه حدیث یو راوي یزید ابن زیاد دمشقي منکر الحدیث دی: دلته د منکر الحدیث مطلب دادی چي د هغه حدیث منکر دی، په شرح نخبه کي لیکلي دي چي د کوم راوي څخه یو فحش غلطي صادره سي یا پر هغه د غفلت او نسیان غلبه وي یا د هغه فسق ظاهر وي نو په دغه صورت کي د هغه روایت سوي حدیث ته منکر ویل کیږي.

﴿۳۶۰۹﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَجُوْزُ شَهَادَةُ خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ وَ لَا زَانٍ وَلَا زَانِيَةٍ وَلَا ذِي غِمْرٍ عَلَى أَخِيهِ وَرَدَّ شَهَادَةَ الْقَانِعِ لِأَهْلِ الْبَيْتِ. رواه ابوداؤد

وفرمایل: د خیانت کونکي سړي او خیانت کونکي ښځي شاهدي جائز نه ده، نه د زنا کار سړي او نه د زنا کاري ښځي او نه خاوند د کینې او نه د هغه سړي چي د چا سره په خوراک او څښاک کي ګډ سي. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ۴ / ۲۴، رقم: ۳۶۰۰.

**تشريح** ددغه حدیث وضاحت تر دې مخکي حدیث په تشریح کي سوی دی.

## د ښاري په حق کي د صحرائي شاهدي قبلیږي که یا؟

﴿۳۶۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَجُوْزُ شَهَادَةُ بَدَوِيٍّ عَلَى صَاحِبِ قَرْيَةٍ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: رواه نه ده شاهدي د صحرائي پر خلاف د ښاري باندي. ابوداؤد او ابن ماجة

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۲۶، رقم: ۳۶۰۲ وابن ماجه ۲\۷۹۳، رقم: ۲۳۶۶.

**تشريح**: په صحرا کي د اوسيدونکو شاهدي ځکه صحيح نه ده چي په عامه توګه هغه د شريعت په احکامو خبر نه وي او نه د شاهدۍ ورکولو په شرطونو خبر وي همدارنګه پر هغه د غفلت او نسيان غلبه زياته وي که په صحراء کي اوسيدونکي د شاهدي د ذمه دارۍ احساس ولري او د شاهدي ورکولو چي کوم شرطونه او کيفيات دي د هغو ټخه خبر وي او د عادل اهل شهادت په ډله کي وي نو د هغه شاهدي به صحيح او معتبره وي.

امام مالک رحمة الله عليه د دغه حديث په ظاهري مفهوم باندي عمل کړی دی د هغه په نزد د ښاري په حق کي يا د هغه پر خلاف په صحراء کي د اوسيدونکي شاهدي جائز نه ده حال دا چي د اکثرو امامانو مذهب دا دی چي په صحراء کي اوسيدونکی که عادل وي او د شاهدي په معيار پوه وي نو د ښاري په حق کي يا د هغه پر خلاف د هغه شاهدي به صحيح او معتبره وي، د دغه امامانو په نزد د حديث الفاظ (لايجوز) د لايحسن په معنی کي دي او د صحرايي شاهدي نه جائز کېدل د ذکر سوو صفاتو سره مقيد دی.

## په خپل مقدمه کي هوښياري په فهم کي ولرئ

﴿۳۶۱۱﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ

د حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه ټخه روايت دئ چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم د دو کسانو په منځ کي حکم

فَقَالَ الْمَقْضِيُّ عَلَيْهِ لَمَّا أَدْبَرَ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

وکړی د چا خلاف چي حکم ورکړل سوی وو هغه په تګ کي چي شا يې سوه وويل ما ته زما الله جل جلاله بس دئ او هغه غوره کار جوړونکی دئ، نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يَلُومُ عَلَى الْعَجْزِ وَلَكِنْ عَلَيْكَ بِالْكَيْسِ فَإِذَا غَلَبَكَ أَمْرٌ فَقُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيلُ. رواه ابوداؤد

الله تعالی پر عجز باندي سزا درکوي ليکن پر تا هوښياري ده که ته عاجزه سې نو دا ووايه ما ته زما الله بس دئ او هغه غوره کار جوړونکی دئ. ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۴، رقم: ۳۶۲۷.

**تشريح**: په ظاهره دا معلوميږي چي يو چا د بل چا ټخه پور اخيستی وي او هغه پور ادا کړی

هم وي مگر د هغه څخه ناپوهي او حماقت وسو چي هغه د پور ورکولو پر وخت د پور وړي څخه يو رسيد نه واخيستی او نه يې څوک شاهد کړی او مدعی د رسول الله ﷺ په دربار کي پر هغه سړي دعوه وکړل او هغه مدعی د پور ورکولو ثبوت وړاندي کړی مگر دغه سړی د پور د بيرته ورکولو يو ثبوت وړاندي نه کړای سو ځکه نو فيصله د هغه پر خلاف وسوه او مدعی فيصله وګټل ، کله چي هغه د مقدمې په بايللو سره د رسول الله ﷺ د دربار څخه ووتی نو د غم او حسرت په وجه هغه حسبي الله ونعم الوکيل وويل او همدارنګه هغه دا اشاره وکړه چي مدعی زما څخه په ناحق مال واخيستی او زه خامخا تاواني سوم.

په دې باندي رسول الله ﷺ د غصې اظهار کولو سره وفرمايل چي د خپل ژوند په کاروبار او معاملاتو کي بې پرواهي، ناپوهي، غفلت او کوتاهي ښه خبره نه ده بلکه پر داسي کونکي باندي الله تعالی ملامتيا کوي بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چي تا ته پکار وه چي په خپل کاروبار او معاملاتو کي هوښيار او بيداره اوسې او احتياط او پوهه اختيار کړه.

خلاصه دا چي په غفلت او کوتاهۍ سره الله ﷻ نه راضي کيږي ځکه چي الله تعالی انسان د عقل سليم په دولت سره نازولی دی نو د هغه صحيح غوښتنه داده چي بنده خپل ټول ديني او دنياوي معاملاتو کي د پوهي او هوښيارۍ خيال وساتي نو په دې معامله کي چي ستا څخه کومه کوتاهي او غفلت سوی دی هغه پر خپل عجز باندي په محمول کولو سره حسبي الله ونعم الوکيل مه وايه بلکه د راتلونکي لپاره ددې عهد وکړه چي بيا به هيڅکله هم داسي غفلت او کوتاهي نه کوم او احتياط او هوښياري به په هر صورت کي کوم.

علامه طيبي رحمه الله وايي چي رسول الله ﷺ دخپل دغه ارشاد په ذريعه پر هغه سړي واضحه کړل چي دا لازمه وه چي ته په خپل معاملې کي هوښيار وای او يو څوک دي شاهد جوړ کړی وای يا داسي يو بل ثبوت دي درلودای او په کوتاهي او غفلت کي نه اخته کيدای چي کله ستا مقدمه وړاندي کېده او ته د فيصلې لپاره دلته حاضرېدلې نو د شاهدانو د ثبوت په ذريعه د مدعی د دعوې په ناحق ثابتولو باندي به قادر کيدای مگر اوس چي ته د خپل غفلت او کوتاهۍ په وجه د مدعی د دعوې ناحق ثابتولو څخه عاجزيې نو حسبي الله ونعم الوکيل وايي حال دا چي حسبي الله ونعم الوکيل هغه وخت ويل کيږي کله چي د مقصد د ترلاسه کېدو ټولي لاري بندي سي او د خپل ټول تدبير او احتياط سربېره هيڅ لاره پاته نه سي نو دا دي په ذهن کي وي چي کله يو معامله کيږي په هغه کي دي د پوره احتياط او هوښيارۍ خيال وساتل سي او کله چي د پوره احتياط او هوښيارۍ سربېره د مقصد ترلاسه کېدل په کار را نه سي او د عجز او

معذوري، درجې ته ورسيږي نو هغه وخت دي حسبي الله ونعم الوكيل ويل كيږي .

## د ملزم بندي كول شرعي سزا ده

﴿۳۶۱۲﴾: وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَبَسَ رَجُلًا فِي تُهْمَةٍ . رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي ثم خلى عنه.

حضرت بهز بن حكيم د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ د تهمت په ويلو يو سړى بندي كړ . ابوداؤد ، ترمذي او نسائي ددې په آخر كي دا الفاظ هم زيات كړي دي چي بيا يې هغه پرېښودى .

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۶، رقم: ۳۶۳۰. والترمذي ۴\۲۰، رقم: ۱۴۱۷، والنسائي ۸\۶۷، رقم: ۴۸۷۶

**تشريح**: د تهمت په وجه : ددې مطلب دادى چي يو سړي پر هغه باندي د خپل وركړي پور دعوه كړې وه يا پر هغه د يو ګناه الزام يې لګولى وو نو نبي كريم ﷺ هغه په بند كي وساتى چي په دغه دوران كي د شاهدانو په ذريعه د مدعى د دعوې صحيح كېدل معلوم سي مګر مدعى د خپل دعوې په ثبوت كي د شاهدانو وړاندي كولو څخه عاجز سو نو رسول الله ﷺ هغه سړى د الزام څخه په خلاصولو سره پرېښودى .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## مدعى او مدعا عليه بايد دواړه د حاكم په مخ كي حاضر وي

﴿۳۶۱۳﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ الْخَصْمَيْنِ يَقْعُدَانِ بَيْنَ يَدَيِ الْحَكَمِ . رواه احمد وابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ حكم وكړ چي دواړي ډلي (مدعا او مدعاعليه) دي د حاكم په مخ كي كښيني . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۴. رقم: ۳۵۸۸.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله وايي چي د قاضي لپاره تر دې زيات مشكل او سخت پړاو بل نه سته چي كله د هغه په مخكي مقدمه وړاندي سي نو هغه د دواړو كسانو يعني مدعى او مدعا عليه په مينځ كي پوره برابر وكړي .

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَـابُ الْجِهَادِ

## (د جهاد بيان)

**د جهاد معنی** : د جهد او جهاد لغوي معنی ده تکليف ورل او د طاقت څخه زيات بار پورته کول، امام راغب رحمه الله دا مطلب بيان کړی دی چي : (الجهاد استفراغ الوسع في مدافعة العدو) يعني د جهاد مطلب دادی چي په زيات قوت سره د حمله کونکي دښمن دفاع کول .

د شريعت په اصطلاح کي د جهاد مفهوم دادی چي د کفارو سره په جنګ کي خپل طاقت مصرفول ، په دې توګه چي خپل ځان وړاندي کړي يا د خپل مال په ذريعه مرسته وکړي او يا د خپل عقل او تدبير په ذريعه مرسته وکړل سي يا محض په اسلامي لښکر کي په ګډون سره د هغوی په شمېر کي زياتوب وکړل سي يا ددې څخه پرته په يو بله طريقه سره د اسلام د دښمنانو په مقابله کي د لښکر معاونت او مرسته وکړل سي .

## د جهاد نصب العين

د جهاد نصب العين دادئ چي په دنيا کي همېشه د الله تعالی خبره لوړه وي د الله جل جلاله پر دغه مځکه باندي د هغه بيرغ لوړ او د هغه د باغيانو او منکرينو دعوې نسکوره وي .

## د جهاد حکم

جهاد فرض کفايه دئ که چيري د جنګ عام اعلان نه وي او که نفير (د جنګ اعلان) عام وي په دې توګه چي کفار د مسلمانانو پر يو ښار حمله وکړي يا د اسلامي هيواد پر خلاف جنګ شروع کړي او د مسلمانانو له خوا د عام جنګ اعلان وکړل سي نو په دغه صورت کي پر هر مسلمان باندي جهاد فرض عين دی که څه هم د جنګ اعلان کونکی عادل وي يا فاسق وي نو په دغه صورت کي د دښمنانو مقابله کول او په جهاد کي ګډون کول د هغه ښار او د هغه هيواد پر ټولو اوسيدونکو باندي واجب دی او همدارنګه پر هغه خلکو باندي هم واجبيږي کوم چي د هغه ښار يا هيواد نژدې اوسيږي په شرط ددې چي د هغه ښار يا هيواد اوسيدونکي د خپل ښار او هيواد د ساتني او د دښمنانو د مقابلې لپاره کافي نه وي يا هغوی د خپل جنګي او دفاعي ذمه داريو په سرته رسولو کي سستي کړې او ګناه کار وي لکه څرنګه چي د مړي مسئله ده چي

د هغه کفن او دفن او د جنازې لمونځ د هغه د سيمې پر خلکو واجب دی او که هغوی دد ې څخه عاجزه وي نو بيا دغه شيان به د هغه پر ښار والاوو واجبيږي همدارنګه د جهاد مسئله هم داسې ده چې د کوم ښار او هيواد مسلمانانو ته د کفارو او د دين د دښمنانو د جارحيت او جنګي حملو مخ وي که هغوی د خپل دفاع څخه عاجزه وي او د دښمنانو په مقابله کې ناتوانه يا ناکامه وي نو هغه وخت د هغوی د همسايه ښار او هيواد پر مسلمانانو بلکه د نړۍ پر ټولو مسلمانانو دا واجب ده چې هغوی په جهاد کې په ګډون کولو سره د اسلام او مسلمانانو د وقار د ساتنې او د دين د دښمنانو د نسکوره کولو لپاره ولاړ سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### غوره جهاد

﴿۳۶۱۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ آمَنَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چې

بِاللّٰهِ وَبِرَسُولِهِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَصَامَ رَمَضَانَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ يُدْخِلَهُ

پر الله تعالى او د هغه پر رسول ايمان راوړ، لمونځ يې وکړ او د رمضان روژې يې ونيولې نو د الله تعالى لپاره ضروري ده چې هغه داخل کړي

الْجَنَّةَ جَاهَدَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَوْ جَلَسَ فِي أَرْضِهِ الَّتِي وُلِدَ فِيهَا قَالُوا أَفَلَا نُبَشِّرُ

جنت ته که څه هم هغه د الله تعالى په لار کې جهاد وکړي او که په خپل وطن کې چې دی پکښې پيدا سوی دی پاته سي (يعني جهاد ونه کړي) ، صحابه کرامو عرض وکړ ايا موږ زيری ورکړو

النَّاسَ قَالَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ مِائَةَ دَرَجَةٍ أَعَدَّهَا اللّٰهُ لِلْمُجَاهِدِينَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ مَا

خلکو ته ، رسول الله ﷺ وفرمايل: بېشکه په جنت کې سل درجې دي چې الله تعالى د جهاد کوونکو في سبيل الله لپاره تياري کړي دي د هغو

بَيْنَ الدَّرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ فَإِذَا سَأَلْتُمُ اللّٰهَ فَاسْأَلُوهُ الْفِرْدَوْسَ

دوو درجو په منځ کې دومره فاصله ده څومره چې د آسمان او ځمکې په منځ کې فاصله ده هر کله

چي تاسو د الله تعالی څخه جنت غواړئ نو جنت الفردوس غواړئ

فَإِنَّهُ أَوْسَطُ الْجَنَّةِ وَأَعْلَى الْجَنَّةِ أُرَاهُ فَوْقَهُ عَرْشُ الرَّحْمَنِ وَمِنْهُ تَفَجَّرُ أَنْهَارُ الْجَنَّةِ. رواه البخاري.

ځكه چي دا د جنت اوسط او اعلى درجه ده او پر دې سربيره د الله تعالی عرش دئ او د هغه څخه د جنت ولې بهيږي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٦، رقم: ٢٧٩٠.

**تشريح**: په دغه حديث كي د لمانځه او روژې ذكر سوى دى مگر د حج او زكوة ذكر نه سته دد دې وجه په دې اګاه كول دي چي دغه دوه عبادتونه يعني لمونځ او روژه د نورو عباداتو په نسبت امتيازي شان لري دوهم دا چي ددغه دواړو عباداتو تعلق د هر مسلمان سره دى چي پر ټولو مسلمانانو واجب دى حال دا چي حج او زكوة داسي عبادتونه دي چي پر هر مسلمان باندي واجب نه دي بلكه پر هغه مسلمان واجب دي كوم چي شتمن او د توان خاوند وي.

كه څه هم هغه په خپل كور او هيواد كي ناست وي: ددغه عبارت څخه دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ دا حديث د مكې د فتح په ورځ ارشاد فرمايلى دى ځكه چي د مكې د فتحي د ورځي څخه مخكي هجرت پر هر مؤمن باندي فرض وو.

﴿٣٦١٥﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْمُجَاهِدِ فِي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مثال د جهاد كوونكى په

سَبِيلِ اللَّهِ كَمَثَلِ الصَّائِمِ الْقَائِمِ الْقَانِتِ بِآيَاتِ اللَّهِ لَا يَفْتُرُ مِنْ صِيَامٍ وَلَا صَلَاةٍ حَتَّى يَرْجِعَ الْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. متفق عليه.

لاره كي د الله تعالى تر څو پوري چي هغه د جهاد څخه را نسي داسي دئ لكه څرنگه چي روژه نيونكى عبادت كونكي او قرآن ويونكي چي هيڅكله د روژو نيولو او لمونځ كولو څخه نه ستړى كيږي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦، رقم: ٢٧٨٧، ومسلم ١٣\١٤٩٨، رقم: ١١٠– ١٨٧٨.

**د لغاتو حل**: لايفتر: اى لايسام ولايمل من العبادة: (نه ستومانه كيږي).

**تشريح**: كله چي مجاهد د الله ﷻ په لاره كي د جهاد كولو لپاره د كور څخه وځي او بيا په جهاد كولو سره بېرته كور ته راسي نو ظاهره ده چي په دغه دوران كي هغه ټول وخت په جهاد كي بوخت نه وي بلكه د هغه د وختو يو برخه د جهاد څخه خالي هم تېرېږي چي په هغه كي خوراک، څښاک، خوب او داسي نورو كارو كي هم وخت تېروي مگر ددې سربېره هغه ته دا درجه وركړل سوې ده چي گويا هغه هيڅ وخت هم د عبادت څخه خالي نه دى نو پر هر حركت او پر هر عيش او آرام باندي د هغه په عمل نامه كي ثواب ليكل كيږي.

﴿۳۶۱۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْتَدَبَ اللّٰهُ لِمَنْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله ﷻ ضامن سو د هغه چا

خَرَجَ فِي سَبِيلِهِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا إِيمَانٌ بِي وَتَصْدِيقٌ بِرُسُلِي أَنْ أُرْجِعَهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ أَوْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ. متفق عليه

چي د الله تعالى په لار كي (د جهاد لپاره) ووتئ نو، هغه (د جنگ ډگر ته) د هغه ايمان بوتلئ او زما او زما د رسولانو په تصديق كي هغه خو به يا د اجر غنيمت سره راستون كړم يا (پر شهيد كېدو باندي) به هغه په جنت كي داخل كړم. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۹۲، رقم: ۳۶. ومسلم ۱۳\۱۴۹۵. رقم: ۱۰۳–۱۸۷۶.

## د رسول الله ﷺ د جهاد جذبه او د شهادت شوق

﴿۳۶۱۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم دئ په هغه ذات چي

بِيَدِهِ لَوْلَا أَنَّ رِجَالًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَا تَطِيبُ أَنْفُسُهُمْ أَنْ يَتَخَلَّفُوا عَنِّي وَلَا

د هغه په لاس كي زما روح دى كه زما سره ددې خيال نه واى چي ډېر مسلمانان به زما څخه په

أَجِدُ مَا أَحْمِلُهُمْ عَلَيْهِ مَا تَخَلَّفْتُ عَنْ سَرِيَّةٍ تَغْزُو فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَالَّذِي

بېلېدو ناخوښه وي نو زه به هيڅكله د يوه جهاد څخه نه پاته كېدلاى، او د الله تعالى په لار كي

به مي جهاد كولاى ، او زما سره ډيري سپرلۍ نسته (له دې كبله زه تاسو مسلمانان د ځان سره نه سم بيولاى) او قسم دئ په هغه ذات چي د هغه په واک كي

نَفْسِي بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنِّي أُقْتَلُ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ ثُمَّ أُحْيَا ثُمَّ أُقْتَلُ . متفق عليه.

زما روح دى زه هم دا ډيره خوښوم چي د الله تعالى په لار كي ووژل سم بيا ژوندى كړل سم بيا ووژل سم بيا ژوندى كړل سم او بيا ووژل سم بيا ژوندى كړل سم او بيا ووژل سم . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦\٦، رقم: ٢٧٩٧، ومسلم ١٣\١٤٩٧، رقم: ١٠٦- ١٨٧٦.

**تشريح**: ددغه ارشاد څخه يوې خوا ته د رسول الله ﷺ د جهاد سره د بې پايه جذبې او شوق اظهار كيږي او بلي خوا ته دا خبره هم معلوميږي چي د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک كي د كفارو سره چي څومره جنگونه وسول نو رسول الله ﷺ د يو څو څخه پرته په نورو ټولو كي په خپله ګډون درلودى ، رسول الله ﷺ ددې علت بيان كړ چي زه د كفارو سره د جنگ كولو لپاره په هر لښكر او هر فوج كي ځكه ګډون نه كوم كه چيري زه په جنگ كي د ګډون لپاره د هر لښكر سره ولاړ سم نو يقينا هغه ډېر مسلمانان كوم چي د ناداري او بې سامان كېدو په وجه خپل سپرلۍ نه لري په جنگ كي به د ګډون څخه هم محروم سي او زما د جلا والى غم به وي او زه خپله د دومره سپرليو پر انتظام كولو باندي قادر نه يم چي ټول مسلمانان د ځان سره بوځم ځكه نو كه زما سره دا فكر نه واى چي ډېر مسلمانان به په جنگ كي د ګډون څخه محروم سي او يا زما څخه د جلا كېدو په وجه د زړه ماتېدل وي او هغوى به ډېر زيات غم محسوس كوي نو په ما كي د جهاد جذبه او د الله تعالى په لار كي د قربانېدو شوق دومره زيات دى چي ما به د هيڅ يو لښكر سره د تللو څخه پاته كېدل نه غوښتلاى او زه دا ډېره خوښوم چي زه په وار وار ژوندى كړل سم او په وار وار د الله تعالى په لار كي ووژل سم.

## په جهاد كي معمولي ګډون هم د دنيا تر ټولو شيانو غوره دى

﴿٣٦١٨﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا عَلَيْهَا . متفق عليه.

د حضرت سهل بن سعد ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى په لار كي

يو ورځ چوکېداري د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو څخه غوره ده . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٨٥، رقم: ٢٨٩٣، ومسلم ٣\١٥٠٠. رقم: ١١٣- ١٨٨١.

**تشريح**: ددې مطلب دادی چي په جهاد کي د يوې ورځي لپاره د چوکيدارۍ پر معمولي خدمت باندي ثواب د هغه مال څخه غوره دی کوم چي د الله تعالی په نامه مصرف کړل سي او يا دا مطلب دی چي په جهاد کي محض د يوې ورځي د چوکيدارۍ په عوض کي چي کوم ثواب ورکول کيږي هغه د دنيا او د دنيا د ټولو شيانو څخه زيات غوره او افضل دی .

﴿٣٦١٩﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَغَدْوَةٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَوْ رَوْحَةٌ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا . متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په سهار يا ماښام کي د الله تعالی په لاره کي تګ کول د دنيا د ټولو شيانو څخه غوره دي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٢٣٣، رقم: ٦٤١٥، ومسلم ٣\١٥٠٠. رقم: ١١٣- ١٩١٣.

**تشريح**: مطلب دادی که يو سړی د يوه سهار لپاره يا د يوه ماښام لپاره هم په جهاد کي ګډون وکړي نو پر دې باندي چي هغه ته کوم ثواب ورکول کيږي او ددې چي کوم فضيلت تر لاسه کيږي هغه د دنيا د ټولو نعمتونو څخه غوره دی ځکه چي د دنيا ټول نعمتونه فنا کېدونکي دي او د آخرت نعمت پاته کيدونکی دی .

## په جهاد کي د چوکيدارۍ ثواب

﴿٣٦٢٠﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي

يَقُولُ رِبَاطُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ خَيْرٌ مِنْ صِيَامِ شَهْرٍ وَقِيَامِهِ وَإِنْ مَاتَ جَرَى عَلَيْهِ

فرمايل يې : يوه ورځ او يوه شپه چوکېداري د الله تعالی په لار کي تر يوې مياشتي روژو او د شب بيدارۍ څخه غوره ده ، او که هغه د چوکيدارۍ په خدمت کولو کي ووژل سي نو د هغه د

عَمَلُهُ الَّذِي كَانَ يَعْمَلُهُ وَأُجْرِيَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ وَأَمِنَ الْفَتَّانَ . رواه مسلم .

هغه عمل لړۍ به جاري وي په کوم کي چي هغه بوخت وو ، او هغه ته د جنت څخه رزق تر لاسه

کيږي او د فتنه اچونکي (يعني د قبر عذاب د ملائکو يا د جال يا شيطان) څخه به په امان کي اوسي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\١٥٢٠، رقم: ١٦٣- ١٩١٣.

**د لغاتو حل**: الفتان: اى عذاب القبر وفتنته.

## په جهاد کي ګډون د دوږخ څخه د خوندي کېدو ضامن دی

﴿٣٦٢١﴾: وَعَنْ اَبِي عَبْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا اغْبَرَّتْ قَدَمَا عَبْدٍ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَتَمَسَّهُ النَّارُ . رواه البخاري.

د حضرت ابو عبس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د کوم بنده پښې چي د الله تعالى په لار کي په ګرد سي بيا هغه د دوږخ اور نسي مسه کولای . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٩، رقم: ٢٨١١.

**تشريح**: دغه ارشاد په اصل کي د جهاد په لاره کي د قدمونو په ګرد کېدل ، د دوږخ د اور څخه د ساتني ضامن دی نو د نفس جهاد ثواب او د هغه سړی د فضيلت څه اندازه کيدای سي کوم چي د جهاد په لاره کي تکليفونه زغمي او په جهاد کي ګډون کوي .

## د غازي لپاره زيری

﴿٣٦٢٢﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَجْتَمِعُ كَافِرٌ وَقَاتِلُهُ فِي النَّارِ أَبَدًا . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کافر او د کافر وژونکی هيڅکله په دوږخ کي يو ځای کيدلای نسي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\١٥٠٥، رقم: ١٣٠- ١٨٩١.

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي په خاصه توګه د هغه مسلمان لپاره زيری دی کوم چي په جهاد کي يو کافر مړ کړي چي هغه مسلمان به هيڅکله دوږخ ته نه ځي او په حقيقت کي دغه ارشاد د جهاد فضيلت څرګندوي چي کوم مسلمان په جهاد کي ګډون وکړي هغه به اغلبا يو کافر وژني او کله چي هغه کافر ووژني نو هغه به د دوږخ څخه خوندي وي که څه هم د هغه سړي

جزاء هم جنت دی کوم چي په جهاد کي ګډون کړی وي او په هغه کي يې پوره کوښښ کړی وي مګر يو کافر قتل نه کړای سي .

**غوره ژوند کوم دی؟**

﴿٣٦٢٣﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خَيْرِ مَعَاشِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په انسانانو کي غوره

النَّاسِ لَهُمْ رَجُلٌ مُمْسِكٌ عِنَانَ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَطِيرُ عَلَى مَتْنِهِ كُلَّمَا

ژوند د هغه کس دئ چي د الله تعالى په لار کي د خپل آس واګي ونيسي پر شا يې سپور سي او

سَمِعَ هَيْعَةً أَوْ فَزْعَةً طَارَ عَلَيْهِ يَبْتَغِي الْقَتْلَ وَالْمَوْتَ مَظَانَّهُ أَوْ رَجُلٌ فِي

هر کله چي د بيري او فرياد آواز واوري نو سمدستي هغه لوري ته ورځغلي او موقع لټوي قتل او مرګ ته ور وړاندي سي او د شهادت درجه تر لاسه کولو لپاره د خپل مرګ موقع لټوي او يا د

غُنَيْمَةٍ فِي رَأْسِ شَعَفَةٍ مِنْ هَذِهِ الشَّعَفِ أَوْ بَطْنِ وَادٍ مِنْ هَذِهِ الْأَوْدِيَةِ يُقِيمُ

هغه سړي د خپلو څو پسونو سره يا چي د غره پر څوکه په يوې شپله کي او سيږي او لمونځ کوي

الصَّلَاةَ وَيُؤْتِي الزَّكَاةَ وَيَعْبُدُ رَبَّهُ حَتَّى يَأْتِيَهُ الْيَقِينُ لَيْسَ مِنَ النَّاسِ إِلَّا فِي خَيْرٍ . رواه مسلم .

او زکوة ادا کوي او د خپل پروردګار عبادت کوي تر څو چي د مرګ سره غاړه سي دا سړي په خلکو کي يوازي په نيکۍ سره ژوند تيروئ . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\١٥٠٣، رقم: ١٢٥- ١٨٨٩.

**تخريج**: على متنه: اى على ظهره. (پر شا خپله). فزعة: اى مرة من الاستغاثة. هيعة: اي صيحة يفزع منها ويجبن. مظانة: اى لايبالي ولايحترز منه، بل يطلبه حيث يظن انه يكون. شعفة: اى راس جبل.

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي د اسي سړی د دنيا د خلکو څخه په جلا اوسيدو سره د هغوی د خرابو او شر څخه ځان خوندي ساتي او د خپل فتنې او شر څخه د دنيا خلک خوندي کوي .

د دغه حديث خلاصه په اصل کي د دين د دښمنانو په مقابله کي جهاد کول خپله د نفس او شيطان سره مجاهده او د دنيا د فاني لذتونو او نفس د باطل خواهشاتو څخه پرهيز ته رغبت کوي او ددې خبرتيا ورکوي که ددين تائيد او د شريعت د تقرب لپاره د خلکو په مينځ کي هستوګنه اختيار کړي نو غوره ده کنه نو د دنيا د خلکو په مينځ کي په دين او شريعت کي د تاوان رسيدو او د ايمان د کمزوري کېدو د بيري په وخت کي دي جلاوالی اختيار کړي.

## د خلکو څخه جلاوالی غوره دی که يو ځای والی؟

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي دا حديث د هغه خلکو د مذهب دليل دی کوم چي مخالطت (يعني د خلکو په مينځ کي هستوګني) ته پر جلا هستوګني باندي فضيلت ورکوي، په دې باره کي مشهور اختلاف دی، د امام شافعي رحمة الله عليه او نورو اکثرو علماؤ په نزد اختلاط غوره دی په شرط ددې چي د فتنې او فساد څخه د خوندي کېدو اميد وي، د زاهدانو د يو ډلي مذهب دادی چي د دنيا د خلکو څخه جلاوالی اختيارول غوره دی، هغوی ددغه حديث څخه استدلال کړی دی مګر جمهور علماء وايي چي دا حديث يا خو د فتنې پر زمانې محمول دی يا ددې څخه ماسوا ددې تعلق د هغه سړي سره دی کوم چي د خلکو پر تکليفو باندي صبر نه سي کولای يا خلک د هغه په وجه سلامت نه وي نو بيا د هغوی تر ټولو لوی دليل دادی چي د انبياء عليهم السلام، صحابه کرامو، تابعينو، علماء، مشائخ او زاهدانو د معمول دا راغلی دی چي هغوی د جلاوالي څخه په پرهيز کولو سره په دغه دنيا کي او ددنيا د اوسيدونکي په مينځ کي اوسيدل اختيار کړل او ددې په ذريعه يې ډيري ديني ګټي ترلاسه کولې کوم چي د جلاوالي په صورت کي ناممکن وې لکه د جمعې لمونځ، د جماعت لمونځ، د جنازې لمونځ، د ناروغ پوښتنه او داسي نور...

## د مجاهد مرسته کونکي او د مجاهد د کورنۍ خيال ساتونکي

﴿٣٦٢٤﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ قَالَ مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَقَدْ غَزَا وَمَنْ خَلَفَ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ فَقَدْ غَزَا. متفق عليه

د حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي د يو غازي سامان برابر کړ هغه لکه خپله چي جهاد وکړي او څوک چي د جهاد کونکي د کورنۍ خدمت کونکی جوړ سي هغه هم جهاد وکړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٩. رقم: ٢٨٤٣، ومسلم ١٥٠٧\٣، رقم: ١٣٥- ١٨٩٥.

## د مجاهدينو د ښځو د احترام حكم

﴿٣٦٢٥﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُرْمَةُ نِسَاءِ

د حضرت بريدة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مجاهدينو د ښځو حرمت او

الْمُجَاهِدِينَ عَلَى الْقَاعِدِينَ كَحُرْمَةِ أُمَّهَاتِهِمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ مِنَ الْقَاعِدِينَ

عزت په كورونو كي ناستو باندي داسي لازم دی لكه څرنګه چي د هغوی د ميندو حرمت او عزت پر دوی باندي لازم دی، څوک چي جهاد ته ولاړ نسي بلكه

يَخْلُفُ رَجُلًا مِنَ الْمُجَاهِدِينَ فِي أَهْلِهِ فَيَخُونُهُ فِيهِمْ إِلَّا وُقِفَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَأْخُذُ مِنْ عَمَلِهِ مَا شَاءَ فَمَا ظَنُّكُمْ. رواه مسلم

د مجاهدينو د كورنۍ خبرګيري وكړي او په خبر ګيري كي خيانت وكړي نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه مجاهد په وړاندي ودرول سي چي د هغه په كور كي يې خيانت كړی دئ او هغه مجاهد به د هغه د نيک اعمالو څخه څومره چي غواړي واخلي نو څه دی ګمان ستاسي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١٥٠٨\٣، رقم: ١٣٩- ١٨٩٧.

**تشريح**: په داسي حال كي ستاسو څه خيال دئ ؟: ددې مطلب دادی چي ايا تاسو دا خيال كولای سئ چي په داسي حالت كي هغه مجاهد به د قيامت په ورځ د هغه سړي د نيكيو په اخيستلو كي كم راغب وي، داسي نه ده بلكه هغه به د هغه سره هيڅ نه پريږدي او د هغه ټولي نيكۍ به واخلي يا به د هغه سړي څخه د هغه مجاهد په حق كي چي خيانت يې كړی دی د هغه په لېدو سره د الله تعالى په دربار كي ستاسو څه خيال دئ چي ايا هغه به د خيانت كونكي د نيكيو په صورت كي مجاهد ته چي كوم عوض او بدله وركوي په هغه كي ستاسو څه شک دئ كه تاسو ته هيڅ شک نه سته او تاسو دا يقين لرئ چي تا څه ويلي دي هغه ريښتيا دي نو بيا پر تاسو لازمه ده چي تاسو د مجاهدينو د بيبيانو په عزت كي د خيانت كولو څخه ځان وساتئ داسي نه چي ددې په وجه تاسو په آخرت كي د خپلو نيكيو څخه لاس پريولئ يا دا چي الله تعالى مجاهد ته كومه لوړه مرتبه وركړې ده او هغه يې په دغه فضيلت سره خاص كړی دی نو ستاسو څه خيال

دی چي هغه مجاهد ته به همدغه مرتبه ورکول کيږي داسي نه ده بلکه ددغه مرتبې او خاص فضيلت څخه پرته هغه ته نور عظيمتونه او بزرګي ورکول کيږي او ددې څخه به هم لوی لوی درجې د هغه په برخه کيږي.

## په جهاد کي د مالي مرستي کولو فضيلت

﴿٣٦٢٦﴾: وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ بِنَاقَةٍ مَخْطُومَةٍ فَقَالَ

د حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی د مهار نيولي اوښ سره حاضر سو او عرض يې وکړ چي

هَذِهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَكَ بِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ سَبْعُ مِائَةِ نَاقَةٍ كُلُّهَا مَخْطُومَةٌ. رواه مسلم

دا اوښه زه د الله په لار کي ورکوم، رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به ددې په بدله کي اووه سوه اوښې در ته تر لاسه کيږي هغه ټولې به مهارداري وي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٥٠٥، رقم: ١٣٢- ١٨٩٢.

**د لغاتو حل**: مخطومة: ای فيها خطام وهو قريب من الزمام.

## د مجاهد د کور ساتني فضيلت

﴿٣٦٢٧﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ ﷺ بَعَثَ بَعْثًا إِلَى بَنِي لَحْيَانَ مِنْ هُذَيْلٍ فَقَالَ لِيَنْبَعِثْ مِنْ كُلِّ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا وَالْأَجْرُ بَيْنَهُمَا. رواه مسلم

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د هذيل قبيلې د بني لحيان ښاخ په لور د يوه لښکر لېږلو اراده وکړه او وه يې فرمايل په هر دوو کسانو کي يو کس د لښکر سره ولاړ سئ (يعني د هري قبيلې نيم خلک ولاړ سئ) او ثواب به دواړو ته يو ډول تر لاسه کيږي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٥٠٧، رقم: ١٣٧- ١٨٩٦.

**تشريح**: ددغه ارشاد مطلب دادی چي کوم خلک جهاد ته ولاړ سي نو هغوی ته به د جهاد ثواب ورکول کيږي مګر کوم خلک چي په خپلو کورو کي په پاته کېدو سره د مجاهدينو د کور

ځارنه او د هغوی د کورنۍ روزنه او ساتنه کوي نو هغوی ته به هم د مجاهدينو په ډول ثواب ورکول کيږي.

## په امت محمدي کې به همېشه يوه ډله جهاد کوي

﴿۳۶۲۸﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَنْ يَبْرَحَ هٰذَا الدِّينُ قَائِمًا تقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ حَتّٰى تَقُومَ السَّاعَةُ. رواه مسلم

د حضرت جابر سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دا دين به هميشه قائم وي او د مسلمانانو يو ډله به هميشه جهاد کوي تر څو چي قيامت قائم سي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۵۲۴، رقم: ۱۷۲- ۱۹۲۲.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله وايي چي دغه عبارت (يقاتل عليه ...) مستانفه جمله ده او ددې مقصد د مخکني عبارت وضاحت کول دي، خلاصه دا ده چي دغه دين به په دې سبب قائم وي چي په مسلمانانو کي به يو ډله او يو قوم همېشه د دين د دښمنانو سره جنګيږي او د الله تعالی د باغيانو دعوې به نسکوروي.

## د الله جل جلاله په لاره کي ژوبل سوی کس

﴿۳۶۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُكْلَمُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله تعالی په

أَحَدٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَنْ يُكْلَمُ فِي سَبِيلِهِ إِلَّا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

لار کي زخمي کړل سي او الله تعالی ښه پوهيږي چي څوک د هغه په لاره کي زخمي کيږي نو هغه به د قيامت په ورځ په داسي حال کي راسي چي

وجرحه يثعب دما وَاللَّوْنُ لَوْنُ الدَّمِ وَالرِّيحُ رِيحُ الْمِسْكِ. متفق عليه

د هغه د زخم څخه به وينه روانه وي د هغهويني رنګ خو به د ويني په ډول وي مګر بوی به يې د مشکو په ډول وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٢٠، رقم: ٢٨٠٣، ومسلم ۳\ ۱۴۹۶، رقم: ۱۰۵- ۱۸۷۶.

**د لغاتو حل**: لايُكلم: ای لايجرح (نه ژوبل کيږي).

## د شهادت فضیلت

﴿۳۶۳۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ أَحَدٍ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په جنت کي د داخلید و څخه

يَدْخُلُ الْجَنَّةَ يُحِبُّ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا وَلَهُ مَا فِي الْأَرْضِ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا

وروسته هیڅوک به د نیا ته په دې خیال بیرته تګ خوښ نه کړي چي په مځکه کي څه وه هغه ته بیا تر لاسه سي مګر

الشَّهِيدُ يَتَمَنَّى أَنْ يَرْجِعَ إِلَى الدُّنْيَا فَيُقْتَلَ عَشْرَ مَرَّاتٍ لِمَا يَرَى مِنَ الْكَرَامَةِ. متفق علیه

شهید به د دې آرزو کوي چي هغه دنیا ته ولاړ سئ او لس واره ووژل سي ځکه هغه د شهادت په عظمت پوه سوی دئ. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٢، رقم: ٢٨١٧، ومسلم ٣\١٤٩٨، رقم: ١٠٩ – ١٨٧٧.

## د شهیدانو حیات بعد الموت

﴿۳۶۳۱﴾: وَعَنْ مَسْرُوقٍ قَالَ سَأَلْنَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنْ هٰذِهِ الْآيَةِ

د حضرت مسروق رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ د عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه د دې آیت معنا

{ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ

وغوښتل: (ولاتحسبن .....) (کوم کسان چي د الله جل جلاله پ[illegible]ر کي ووژل سي هغوی مړه مه ګڼئ بلکه هغوی د خپل پروردګار سره ژوندي دي

يُرْزَقُونَ } قَالَ أَمَا إِنَّا قَدْ سَأَلْنَا عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ أَرْوَاحُهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ

او هغوی ته رزق ورکول کیږي) ابن مسعود رضی الله عنه وویل موږ د رسول الله ﷺ څخه په دې اړه پوښتنه وکړه نو هغه وفرمایل: د هغوی روحونه د شنو مرغانو په بدنونو کي دي

خُضْرٍ لَهَا قَنَادِيلُ مُعَلَّقَةٌ بِالْعَرْشِ تَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شَاءَتْ ثُمَّ تَأْوِي

او د هغوی لپاره تر عرش الهي لاندي قنديلونه زړيدلي دي هغوی په جنت کي چي چيري د هغوی زړه غواړي ميوې خوري او بيا

إِلَى تِلْكَ الْقَنَادِيلِ فَاطَّلَعَ إِلَيْهِمْ رَبُّهُمُ اطِّلَاعَةً فَقَالَ هَلْ تَشْتَهُونَ شَيْئًا

دغه قنديلونو ته ځي او پروردگار هغوی ته گوري او فرمايي ستاسو د کوم شي خواهش دئ؟

قَالُوا أَيَّ شَيْءٍ نَشْتَهِي وَنَحْنُ نَسْرَحُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ شِئْنَا فَفَعَلَ ذَلِكَ

هغوی به عرض کوي موږ د څه شي خواهش وکړو د کوم ځای څخه چي زموږ زړه غواړي د جنت

بِهِمْ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَلَمَّا رَأَوْا أَنَّهُمْ لَنْ يُتْرَكُوا مِنْ أَنْ يُسْأَلُوا قَالُوا يَا رَبِّ نُرِيدُ

ميوې خورو ، الله تعالی به درې واره داسي پوښتنه کوي ، هر کله چي هغوی ويني چي په څو څو واره پوښتنه کيږي نو هغوی به عرض کوي اې پروردگاره ! موږ دا غواړو چي

أَنْ تَرُدَّ أَرْوَاحَنَا فِي أَجْسَادِنَا حَتَّى نُقْتَلَ فِي سَبِيلِكَ مَرَّةً أُخْرَى فَلَمَّا رَأَى أَنْ لَيْسَ لَهُمْ حَاجَةٌ تُرِكُوا . رواه مسلم

زموږ روحونه بيا زموږ بدنونو ته ستانه کړل سي چي موږ ستا په لار کي دويم وار شهيدان سو، هر کله چي الله تعالی ويني چي هغوی ته د هيڅ شي حاجت نسته نو هغوی به پرېښودل سي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۰۲\۳، رقم: ۱۲۱– ۱۸۸۷.

**تشريح**: د چا په ذهن کي دا اعتراض پيدا کيدای سي چي په ترجمه کي د قوسو په مينځ کي عبارت که دوهم وار هم د اول وار په ډول ثواب ورکول کيږي نو بيا د شهيدانو د دغه خواهش څه فائده ده چي زموږ روحونه زموږ بدنو ته په بېرته راتلو سره دنيا ته راوليږل سي چي موږ دوهم وار د الله تعالی په لار کي ووژل سو .

علماؤ د دې جواب داسي ورکړی دی چي د دغه خواهش په اظهار سره په حقيقت کي مراد د خپلو روحونو بدنو ته بېرته ورکولو خواست نه دی بلکه د هغوي مقصد د الله تعالی د هغه انعامو او اکرام شکر ادا کول دي کوم چي د هغوی سره سوي دي، يعني د خپل دغه خواهش په

ذریعه هغوی دا واضحه کوي چي اې الله ! تا چي موږ ته کوم نعمتونه راکړي دي او کومي عظیمي درجې چي دي راکړي دي او په هغه وجه پر موږ باندي ستا شکر ادا کول واجب دی نو دهغه تقاضا داده چي موږ یو وار بیا دنیا ته ولاړ سو او ستا په لار کي خپل ځان قربان کړو.یا د هغوی د خپل دغه خواهش اظهار د خپل ګمان مطابق کوي چي موږ به په دوهم وار په زیاتي تیارۍ ، همت او قربانۍ سره د الله تعالی په لار کي ځان قربان کړو ځکه چي هیڅ تعجب نه ده چي په دوهم وار موږ ته تر دې زیات اجر راکړل سي مګر د الله تعالی قدرت او نظام ددې خلاف دی او د الله تعالی په علم کي دا خبره ده چي هغوی ته په دوهم وار به هم هغه ثواب ورکول کیږي کوم چي په اول وار ورکړل سوی دی او ددې هغوی ته اړتیا نه سته نو د هغوی څخه پوښتنه کول پرېښودل سي .

**خبرتیا !** : علماء کرامو لیکلي دي چي د شهیدانو روحونه د مرغانو په بدن کي ساتل د روحونو د عزت ، توقیر او تکریم په وجه دي لکه څرنګه چي جواهرات د ساتني او احتیاط لپاره په صندوق کي اېښودل کیږي او همدارنګه دا مقصد دی چي دغه روحونه د دوی د دنیاوي بدن څخه پرته په جنت کي داخل کړل سي نو هغه روحونه د هغه مرغانو په بدن کي د جنت په مرغانو کي اوسیږي د هغه په فضا کي ګرځي د جنت د پاکي او خوشبوداري هواء څخه خوند اخلي د هغه ځای د انوارو برکات مشاهده کوي د ځای د نعمتونو او خوندونو څخه برخمن کیږيْ او هغوی ته یوازي ددغه شیانو په ذریعه هر وخت خوش طبعي تر لاسه کیږي بلکه د الله تعالی قرب او د ملائکو د همسایتوب سعادت هم ور په برخه کیږي چي پر خپل ځای تر ټولو لوی نعمت او د فرحت سبب دی نو په قرآن کریم کي د الله تعالی دا مراد دی چي :

يُرْزَقُونَ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللهُ مِن فَضْلِهِ

ژباړه : هغوی ته رزق ورکول کیږي او څه چي الله تعالی په خپل فضل سره ورکړي دي په هغه کي خوشحاله وي .

دلته دا خبره باید په ذهن کي وي چي د دغه حدیث څخه د تناسخ نظر نه ثابتیږي ځکه چي کوم خلک د تناسخ قائل دي د هغوی په نزد تناسخ دې ته وایي چي په دغه عالم کي د روح یو قالب او بدن ته بېرته راتلل د هغوی په نزد په یو قالب او بدن کي د روح بېرته راتلو نظر د آخرت سره متعلق نه دی او هسي هم ممکن نه ده چي د هغوی په نزد د آخرت یو تصور نه سته بلکه هغوی د آخرت منکر دي . ددغه حدیث څخه دا مسئله هم ثابتیږي چي جنت مخلوق دی او موجود دی لکه څرنګه چي د اهل سنت والجماعت مذهب دی .

## جهاد د حقوق العباد څخه پرته ټول ګناهونه رژوي

﴿٣٦٣٢﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ فِيهِمْ فَذَكَرَ

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وعظ وکړ او وه یې

لَهُمْ أَنَّ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَالإِيمَانَ بِاللّٰهِ أَفْضَلُ الأَعْمَالِ فَقَامَ رَجُلٌ

فرمایل: د الله تعالی په لار کي جهاد کول او پر الله تعالی ایمان راوړل د ښه اعمالو څخه دي، یو سړی ودریدئ

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ يُكَفِّرُ عَنِّي خَطَايَايَ فَقَالَ

او عرض یې وکړ اې د الله رسوله! که زه د الله په لاره کي ووژل سم نو ایا زما ګناهونه به معاف

لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ إِنْ قُتِلْتَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَأَنْتَ صَابِرٌ

کړل سي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو، که ته د الله په لار کي قتل کړل سې په داسي حال کي چي ته صبر کوونکی یې

مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ قُلْتَ

او د ثواب امید لرونکي یې د دښمن مقابلې ته تلونکی یې او پر شا تښتېدونکی نه یې، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل: اې سړیه! تا څه وویل

قَالَ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَيُكَفِّرُ عَنِّي خَطَايَايَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

هغه عرض وکړ که زه د الله تعالی په لار کي ووژل سم، نو ایا ستاسو په خیال زما ګناه به ورژول

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ وَأَنْتَ صَابِرٌ مُحْتَسِبٌ مُقْبِلٌ غَيْرُ مُدْبِرٍ إِلَّا الدَّيْنَ

فَإِنَّ جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَام قَالَ لِي ذٰلِكَ. رواه مسلم

سي، رسول الله ﷺ وفرمایل هو، په دې شرط چي ته صبر کونکی، د ثواب غوښتونکی او پر مخ تلونکی یې وروسته پاته کېدونکی نه یې مګر پور نسي معاف کیدلای ما ته جبرائیل علیه السلام داسي وویل. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۰۱\۳، رقم: ۱۱۷- ۱۸۸۵.

**تشريح**: د ايمان تر ټولو غوره عمل کېدل خو ثابت دي په دې باره کي د وضاحت او تشريح ضرورت نه ستـه ، پاتـه سوه د جهاد خبره نو دغه عمل ته په دې اعتبار سره تر ټولو غوره عمل ويل سوي دي چي په ټولو نيکو اعمالو کي دا يو داسي عمل دی چي ددې په ذريعه د كلمة الله د لوړتيا فريضه سرته رسيږي د الله ﷻ د باغيانو او د دين د دښمنانو بيخ ايستل کيږي د سر او مال قرباني وړاندي کيږي او د مختلفو تکليفو او پريشانيو زغمل وي گويا دغه عمل د الله ﷻ په حضور کي او د هغه په لاره کي د بنده د عبوديت جذبه ، قرباني او ايثار تر ټولو لوی مظهر دی او دا چي په نورو حديثو کي لمانځه تر ټولو غوره عمل ويل سوي دي نو هغه په دې اعتبار سره دی چي لمونځ يو داسي عمل دی چي په هغه کي همېشتوب وي او د يوه عمل کېدو سربېره پر ډېرو عباداتو شامل دی .

د دَين (پور) په باره کي علامه توريشتي رحمه الله ليکلي دي چي دلته د دين څخه مراد د مسلمانانو حقوق دي نو ددغه ارشاد خلاصه داده چي په جهاد سره د بندگانو د حقوقو څخه ماسو نور ټول گناهونه رژيږي .

﴿۳۶۳۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْقَتْلُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ يُكَفِّرُ كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا الدَّيْنَ . رواه مسلم .

د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله تعالى په لار کي قتلېدل د پور څخه پرته هره گناه رژوي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۰۲\۳، رقم: ۱۲۰- ۱۸۸۶.

**تشريح**: علامه سيوطي رحمه الله ليکلي دي چي په بحري جهاد (په اوبو کي کېدونکی جنگ) شهيدان ددغه حکم څخه مستثنى دي يعني د هغوی پر ذمه چي د بندگانو کوم حقوق دي الله تعالى هغه هم ور معافوي .

## هغه قاتل او مقتول چي جنت ته ځي

﴿۳۶۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَضْحَكُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى ته پر دوو

اللَّهُ إِلَى رَجُلَيْنِ يَقْتُلُ أَحَدُهُمَا الْآخَرَ يَدْخُلَانِ الْجَنَّةَ يُقَاتِلُ هٰذَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلُ ثُمَّ يَتُوبُ اللّٰهُ عَلَى الْقَاتِلِ فَيُسْتَشْهَدُ . متفق عليه

كسانو خندا ورځي (يو په هغه كي) چي يو سړى بل قتلوي او دواړه جنت ته داخليږي يو خو په هغوى كي د الله تعالى په لار كي جهاد كوي او شهيد كيږي بيا الله تعالى قاتل ته د توبې توفيق وركوي (يعني هغه د كفر څخه توبه كوي مسلمان سي) او بيا هغه هم په جهاد كي شهيد سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٩، رقم: ٢٨٢٦، ومسلم ٣\١٥٠٤، رقم: ١٢٨- ١٨٩٠.

## د شهادت د غوښتونكي فضيلت

﴿٣٦٣٥﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ سَأَلَ اللّٰهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللّٰهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ . رواه مسلم

د حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوك چي د الله تعالى څخه په رېښتوني زړه سره شهادت و غواړي الله تعالى هغه ته د شهيد مرتبه وركوي كه څه هم هغه پر خپل بستر مړ سي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٥١٧، رقم: ١٥٧- ١٩٠٩.

## د شهيدانو ځاى فردوس اعلى دى

﴿٣٦٣٦﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ الرُّبَيِّعَ بِنْتَ الْبَرَاءِ وَهِيَ أُمُّ حَارِثَةَ بْنِ سُرَاقَةَ أَتَتْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د براء لور او د حارثه بن سراقه مور ربيع د نبي كريم ﷺ

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ أَلَا تُحَدِّثُنِي عَنْ حَارِثَةَ وَكَانَ

په خدمت كي حاضره سوه او ويې ويل اې د الله رسوله! ايا تاسو به د حارثه حال ما ته بيان كړئ

قُتِلَ يَوْمَ بَدْرٍ أَصَابَهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَإِنْ كَانَ فِي الْجَنَّةِ صَبَرْتُ وَإِنْ كَانَ غَيْرَ

حارثه د بدر په غزا کي شهيد سو او د يو نامعلوم سرى په غشي ولگيدئ) که هغه په جنت کي
وي نو زه به صبر کوم او که په بل ځاى کي وي

ذٰلِكَ اجْتَهَدْتُ عَلَيْهِ فِي الْبُكَاءِ قَالَ يَا أُمَّ حَارِثَةَ إِنَّهَا جِنَانٌ فِي الْجَنَّةِ وَإِنَّ ابْنَكِ أَصَابَ الْفِرْدَوْسَ الْأَعْلَى . رواه البخاري

نو د ژړا هڅه به کوم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل اي د حارثه موري! په جنت کي ډير باغونه دي او ستا زوى په فردوس اعلى کي دئ . بخاري .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري):

**د لغاتو حل**: سهم غرب: اى لايدري راميه. (ويشتونکى يې معلوم نه وي)

## د شهيد منزل جنت دى

﴿٣٦٣٧﴾: وَعَنْهُ قَالَ انْطَلَقَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ حَتَّى

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ او د هغه صحابه کرام د مديني منورې

سَبَقُوا الْمُشْرِكِينَ إِلَى بَدْرٍ وَجَاءَ الْمُشْرِكُونَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

څخه روان سول او د بدر د مشرکانو څخه مخکي ورسيدل ، بيا مشرکان راغلل ، رسول الله ﷺ
مجاهدينو ته وفرمايل :

وَسَلَّمَ قُومُوا إِلَى جَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوَاتُ وَالْأَرْضُ قَالَ عُمَيْرُ بْنُ الْحُمَامِ بَخٍ

د جنت په لور تلو ته ودرېږئ او (د هغه جنت په لاره کي چي) د هغه پلنوالى د آسمانو او ځمکو
په ډول دئ (د دې په اورېدو سره) عمير بن حمام وويل ډير ښه ډير ښه ،

بَخٍ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَحْمِلُكَ عَلَى قَوْلِكَ بَخٍ بَخٍ قَالَ

رسول الله ﷺ وويل تا دا الفاظ څنگه وويل ؟ هغه وويل :

لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِلَّا رَجَاءَةَ أَنْ أَكُونَ مِنْ أَهْلِهَا قَالَ فَإِنَّكَ مِنْ أَهْلِهَا قَالَ

اي د الله رسوله ! په الله دي مي قسم وي زما د دې الفاظو څخه نور څه مقصد نه دئ بلکه زما دا

ارمان دئ چي زه جنتي سم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ته جنتي يې ، د راوي بيان دئ ددې

فَأَخْرَجَ تَمَرَاتٍ مِنْ قَرَنِهِ فَجَعَلَ يَأْكُلُ مِنْهُنَّ ثُمَّ قَالَ لَئِنْ أَنَا حَيِيتُ حَتَّى

وروسته حضرت عمير د خپل كڅوړي څخه خرماوي راوكښلې او د هغه خوړل يې پيل كړل او ويل يې كه زه ددې خرماوو دويم وار خوړلو پوري ژوندى پاته سوم نو دا به اوږد ژوند وي

آكُلَ تَمَرَاتِي إِنَّهَا لَحَيَاةٌ طَوِيلَةٌ قَالَ فَرَمَى بِمَا كَانَ مَعَهُ مِنَ التَّمْرِ ثُمَّ قَاتَلَهُمْ حَتَّى قُتِلَ . رواه مسلم .

،ويلي دي راوي چي د دې په ويلو سره هغه پاته خرماوي وغورځولې بيا د مشركانو سره وجنګېدئ تر څو چي شهيد سو . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۵۰۹/۳، رقم: ۱۴۵-۱۹۰۱.

**تشريح**: د جنت پر لاره ودرېږه : ددې مطلب دادئ چي د هغه عمل لاره اختيار كړه كوم چي جنت ته د بېولو سبب وي او هغه جهاد دئ.

د هغه عرض د ځمكي او آسمان د عرض برابر دئ: ددغه ارشاد په ذريعه په حقيقت كي د جنت پراختيا بيانول دي ددې مقصد لپاره د ځمكي او آسمان د درمياني فاصلې سره تشبيه وركړل سوې ده چي د هغه څخه زيات پراخ شى د انسان په فهم كي نه سي راتللاى او په دغه ارشاد كي يوازي عرض ذكر سوى دى طول بيان سوى نه دى چي د انسان فهم خپله اندازه وكړي چي د كوم شي عرض دومره وي نو د هغه طول (اوږدوالي) به څومره وي.

تا ډېر ښه ډېر ښه ولي وويل ؟ : لكه رسول الله ﷺ چي دا خيال وكړ چي عمير ﷺ دا الفاظ ويلي دي هغه بېله نيته او ارادې او بېله فكره د هغه د ژبي څخه ادا سوي دي لكه څرنګه چي دا ډول الفاظ يا خو د هغه سړي د ژبي څخه وځي څوك چي پر خبره باندي د خپل هزل او مسخرو اظهار كوي يا د خپل قتل په بېره كي اخته وي ، رسول الله ﷺ چي د عمير ﷺ څخه ددغه الفاظو وضاحت طلب كړى نو هغه ددغه دواړو خبرو څخه انكار وكړ او په خداى يې قسم وكړى او خپل اصل مطلب يې بيان كړ.

نو ژوند به يې اوږد وي : ددې څخه د حضرت عمير ﷺ مراد دا وو كه زه د ټولو خرماوو خوړلو انتظام كوم او تر هغه وخته ژوندى يم نو ژوند به اوږد سي حال دا چي خواهش دا دى چي

اوس د يوې ثانيې تېرېدو څخه وروسته د الله تعالی په لاره کې ځان قربان کړم او د شهادت د مرتبې په تر لاسه کولو سره د جنت پر لار روان سم ، يعني د هغه د شهادت تر لاسه کولو د شوق په وجه خپل ژوند د کفارو سره په جنګ کولو کې زنډ د خپل ځان لپاره وبال وګڼي .

## د شهيدانو اقسام

﴿٣٦٣٨﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَعُدُّونَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو په خپل منځ کې

الشَّهِيدَ فِيكُمْ قَالُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَهُوَ شَهِيدٌ قَالَ إِنَّ

څوک شهيد ګڼئ ؟ صحابه کرامو عرض وکړ څوک چې د الله جل جلاله په لار کې ووژل سي هغه شهيد دئ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

شُهَدَاءَ أُمَّتِي إِذًا لَقَلِيلٌ مَنْ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ مَاتَ فِي

په دې صورت کې خو به زما په امت کې د شهيدانو شمير ډير لږ پاته سي ، (خبردار اوسئ) څوک چې د الله جل جلاله په لار کې (په خپل مرګ) مړ سي شهيد دئ او څوک چې قتل سو

سَبِيلِ اللَّهِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ مَاتَ فِي الطَّاعُونِ فَهُوَ شَهِيدٌ وَمَنْ مَاتَ فِي الْبَطْنِ فَهُوَ شَهِيدٌ . رواه مسلم

په لاره کې د الله جل جلاله هغه شهيد دی او څوک چې په طاعون کې مړ سي شهيد دئ او څوک چې د نس د ناروغۍ څخه مړ سي شهيد دئ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٥٢١، رقم: ١٦٥- ١٩١٥.

## د مجاهد د اجر تقسيم

﴿٣٦٣٩﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَا مِنْ غَازِيَةٍ أَوْ سَرِيَّةٍ تَغْزُو فَتَغْنَمُ وَتَسْلَمُ إِلَّا كَانُوا قَدْ تَعَجَّلُوا ثُلُثَيْ أُجُورِهِمْ

جهاد کونکې ډله یا جهاد کونکي کوم لښکر چي جهاد وکړي مال غنیمت تر لاسه کړي بیا صحیح سلامت را سي هغه دویمه برخه د درو برخو څخه اجر ژر یعني په دې دنیا کي تر لاسه کړ

وَمَا مِنْ غَازِيَةٍ أَوْ سَرِيَّةٍ تُخْفِقُ وَتُصَابُ إِلَّا تَمَّ أُجُورُهُمْ . رواه مسلم .

او جهاد کونکې ډله یا جهاد کونکی لښکر چي د غنیمت مال را نه وړي،او زخمي سي یا ووژل سي د هغه خپل اجر پوره باقي دی . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۱۵، رقم: ۱۵۴- ۱۹۰۶.

**د لغاتو حل**: تُخفِق: ای تغزو ولاتغنم (غزا وکړي خو غنیمت ترلاسه نه کړي)

**تشريح**: مطلب دادی چي د اسلام یو مجاهد د کفارو سره د جنګ کولو لپاره وځي نو د هغه به درې صورتونه وي یو خو دا چي هغوی د کفارو سره د جنګ کولو وروسته صحیح او سلامت بېرته راسي او کوم د غنیمت مال چي هغوی ته په لاس ورغلی وي د هغه حقدار هم وي د داسي مجاهدینو په باره کي ویل سوي دي چي هغوی د خپل محنت او مشقت دوه پر درې برخه ثواب چي په سلامتیا سره ستنېدل او د غنیمت مال تر لاسه کول دي په دغه دنیا کي تر لاسه کړ او دریمه برخه ثواب چي پاته سوی دی یعني د جهاد ثواب هغه به د قیامت په ورځ ورکول کیږي ، دوهم دا چي کوم مجاهد صحیح او سلامت بېرته راسي مګر د غنیمت مال په لاس ور نه سي نو هغه په دغه دنیا کي دریمه برخه اجر تر لاسه کړی او کومي دوې برخي چي پاته سوي دي هغه به د قیامت په ورځ تر لاسه کوي ، دریم هغه مجاهد دی چي هغه جهاد وکړي او د جنګ په میدان کي زخمي سي یا شهید کړل سي او هغوی ته د غنیمت مال هم په لاس ور نه سي نو د هغوی ټول اجر پاته دی چي هغوی ته به په پوره توګه د قیامت په ورځ ورکول کیږي .

## د چا په زړه کي چي د جهاد جذبه نه وي هغه منافق دی

﴿۳۶۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ . رواه مسلم .

د ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي مړ سو او جهاد یې ونه کړ او د جهاد خیال یې هم په زړه کي نه راوستئ نو د هغه مرګ به یو قسم د نفاق وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۱۷، رقم: ۱۵۸- ۱۹۱۰.

**تشریح**: او نه د هغه په زړه کي د جهاد خیال پیدا سوی وي : ددې مطلب دادی چي هغه نه یوازي دا چي په خپل ژوند کي جهاد ونه کړ بلکه هیڅکله یې د جهاد کولو قصد او اراده هم نه وي کړې او نه یې یو وخت دا ویلي وي چي کاش ما هم جهاد کړی وای او دا منافقانو عادت دی چي هغوی د جهاد په وخت کي د مخ په پټولو سره په کورو کي کښیني او د هغوی په زړو کي د جهاد کولو خیال هم نه پیدا کیږي نو د (من تشبه بقوم فهو منهم) سره سم داسي مؤمن د منافق مشابه سو.

امام نووي رحمه الله په شرح مسلم کي لیکلي دي چي ددغه حدیث څخه دا معلومه سوه چي کوم سړی د یو واجب عبادت کولو نیت او اراده وکړي او بیا د هغه عبادت کولو څخه مخکي مړ سي نو د هغه د عبادت نه کولو عذاب دومره زیات د هغه په حق کي نه ظاهریږي لکه څومره چي په هغه صورت کي ظاهریږي چي د هغه د عبادت کولو نیت یې هم نه وي کړی او مړ سوی وي.

امام نووي رحمه الله دا هم لیکلي دي چي زموږ د علماء (شوافع) د هغه سړي په باره کي مختلف قولونه دي کوم چي په اول وخت کي د لمانځه پر ادا کولو قادر وي او د هغه د کولو نیت هم وي مګر د هغه په ادا کولو کي زنډ وکړي او د هغه لمانځه د وخت ختمېدو څخه مخکي مړ سي ، همدارنګه د حج معامله ده نو ځیني علماء وایي چي هغه په دغه دواړو صورتو کي ګناه کار دی ، ځیني علماء وایي چي هغه به په دواړو صورتو کي ګناه کار نه وي او ځیني علماء وایي چي د حج په صورت کي ګناه کار دی مګر د لمانځه په صورت کي ګناه کار نه دی د حنفیانو مذهب د همدغه اخري قول مطابق دی.

## حقیقي مجاهد څوک دی؟

﴿۳۶۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي عرض وکړ

الرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ

چي یو سړی خو ددې لپاره جنګیږي چي مال غنیمت تر لاسه کړي او یو سړی د شهرت او نامه تر لاسه کولو لپاره جنګیږي او یو سړی ددې لپاره جنګیږي چي خلک د هغه عزت او مرتبه وویني

فَمَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَالَ مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ

اللّٰهِ . متفق عليه

نو په دوی کي څوک د الله تعالی په لار جنګېدونکی دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هغه سړی د الله ﷻ په لار کي جنګېدونکی دئ چي د الله ﷻ د دین (کلمة الله) د لوړولو لپاره وجنګیږي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٧، رقم: ٢٨١٠، ومسلم ٣\١٥١٢، رقم: ١٤٩ - ١٩٠٤.

## د عذر له کبله جهاد ته نه تلل

﴿٣٦٤٢﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجَعَ مِنْ غَزْوَةِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ د تبوک د غزا څخه راغلی

تَبُوكَ فَدَنَا مِنَ الْمَدِينَةِ فَقَالَ إِنَّ بِالْمَدِينَةِ أَقْوَامًا مَا سِرْتُمْ مَسِيرًا وَلَا

او مدیني ته نژدې سو نو وه یې فرمایل : په مدینه کي ډیر داسي قومونه دي چي کوم سفر تاسو

قَطَعْتُمْ وَادِيًا إِلَّا كَانُوا مَعَكُمْ وفي رواية الا شركوكم في الاجر قَالُوا يَا رَسُولَ

کړی دئ په کومه شېله کي ګرځېدلای یاست هغوی ستاسو سره دي ، په یوه روایت کي دا الفاظ دي لاکن هغوی په ثواب کي ستاسو سره ګډ دي ، صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! او

اللّٰهِ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ قَالَ وَهُمْ بِالْمَدِينَةِ حَبَسَهُمُ الْعُذْرُ . رواه البخاري و رواه مسلم عن جابر .

هغه خلک چي په مدینه کي دي (یعني زموږ سره جهاد ته نه دي تللي بیا هم هغوی په ثواب کي زموږ سره ګډ دي) رسول الله ﷺ وفرمایل دوی په مدینه کي دي یو عذر ستاسو سره د تللو څخه تم کړي دي . بخاري او مسلم د حضرت جابر څخه روایت کړی دئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٨\١٢٦، رقم: ٤٤٢٣. ومسلم ٣\١٥١٨، رقم: ١٥٩ - ١٩١١.

**تشريح**: کوم کسان چي د عذر په وجه جهاد ته نه ولاړل او په مدینه منوره کي پاته سول هغوی د جهاد کونکو په ثواب کي شامل وه نه دا چي د مرتبې او درجې په اعتبار هغوی د مجاهدینو

برابر وه ځکه چې کوم خلک په جهاد کې شریک وه او د الله ﷻ په لار کې د خپل سر او مال قرباني یې ورانديې کړه هغوی افضل دي لکه چې د الله ﷻ ارشاد دئ :

فَضَّلَ اللهُ الْمُجَاهِدِينَ بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنفُسِهِمْ عَلَى الْقَاعِدِينَ دَرَجَةً

ژباړه : فضیلت ورکړی دی الله (ﷻ) مجاهدینو ته چې په مال او ځان سره جهاد کوي په درجه کې پر ناستو خلکو باندې .

## د مور او پلار د خدمت درجه

﴿۳۶۴۳﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دئ چې یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو او

فَاسْتَأْذَنَهُ فِي الْجِهَادِ فَقَالَ أَحَيٌّ وَالِدَاكَ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَفِيهِمَا فَجَاهِدْ .

متفق علیه و في روایة فَارْجِعْ إِلَى وَالِدَيْكَ فَأَحْسِنْ صُحْبَتَهُمَا .

جهاد ته د تللو اجازه یې و غوښتل، رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه ایا ستا مور او پلار ژوندي دي ؟ هغه وویل چې هو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : د هغوی سره او سیږه او جهاد کوه . (یعني د هغوی خدمت د جهاد برابر دئ) . بخاري او مسلم ، او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ هغه سړي ته دا وفرمایل : خپل مور او پلار ته بیرته ولاړ سه او په ښه ډول د هغوی خدمت کوه .

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ١٦\١٤٠، رقم: ٣٠٠٤، ومسلم ١٤\١٩٧٥، رقم: ٥- ٢٥٤٩.

**تشریح**: په شرح السنه کې لیکلي دي چې ددغه حدیث څخه کوم حکم ثابتیږي د هغه تعلق د نفل جهاد سره دی چې کله د یو سړي مور او پلار ژوندي وي او مسلمانان وي نو د هغوی د اجازې څخه پرته په نفل جهاد کې د ګډون لپاره د کور څخه دباندې دې نه وځي مګر که چیرې جهاد فرض وي نو بیا په دغه صورت کې د مور او پلار د اجازې ضرورت نه سته بلکه که چیرې هغوی یې منع کوي نو د هغوی حکم منل نه دي پکار او په جهاد کې په ګډون کولو سره دې خپل فرض ادا کړي . او که چیرې مور او پلار مسلمانان نه وي نو په جهاد کې د ګډون لپاره د هغوی د اجازې په هیڅ حالت کې ضرورت نه سته که جهاد فرض وي یا نفل وي، همدارنګه علماؤ دا هم لیکلي دي که مسلمان مور او پلار ته ناخوښه وي نو د هغوی د اجازې څخه پرته هیڅ نفل

عبادت لکه نفل حج او عمرې لپاره دي نه ځي او نه دي نفل روژه نیسي.

## د مکې د فتح وروسته د هجرت فرضیت ختم سو

﴿۳۶۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَوْمَ الْفَتْحِ لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ وَلٰكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ وفرمایل: د مکې د فتح څخه وروسته هجرت نسته البته جهاد او نیت دي هرکله چي تاسو د جهاد لپاره و بلل سئ نو تاسو ټول د کورونو څخه د جهاد لپاره راووځئ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣١٦، رقم: ٢٧٨٣، ومسلم ١٢\٩٨٦، رقم: ۴۴۵- ١٣٥٣.

**تشريح**: هجرت نه سته: ددې مطلب دادی چي د مکې د فتح څخه مخکي د مکې څخه بلکه د هر دارالکفر څخه مدینې ته هجرت کول فرض عین وو ځکه چي په مدینه کي د دین د نامه اخیستونکي ډېر وه او هغوی په هر اعتبار ډېر کمزوري او ضعیف وه نو هجرت فرض ګرځول سوی وو چي د هري خوا څخه مسلمانان مدینې ته په رسیدو سره د هغه ځای د مسلمانانو مرسته او اعانت وکړي او همدارنګه د مشرکانو، د الله جل جلاله د باغیانو طاقت زائل او مفلوج سي، بیا کله چي الله تعالی د مکې د فتح په ذریعه مسلمانانو ته عامه غلبه ورکړل او د هغوی شوکت یې زیات کړ نو هغه علت زائل سو او د هغه وخت څخه د هجرت فرضیت ختم سو مګر په څو صورتو کي د هجرت استحباب پاته دی لکه د جهاد لپاره د خپل وطن څخه تلل، د علم د تر لاسه کولو لپاره بل ځای ته تلل او د دارالکفر یا دارالفتنه څخه یا داسي بنا راو هیواد څخه تېښته کول چیري چي نیکي متروک سوې وي او بدۍ رواج سوي وي.

مګر جهاد او نیت پاته دی: ددې مطلب دادی چي د دین د دښمنانو او د الله جل جلاله د باغیانو د دعوې نسکورولو لپاره د جهاد نیت او د اخلاص عمل پیدا کولو حکم باقي دی خلاصه دا چي هجرت یعني د خپل وطن په پرېښودو سره مدینې ته تلل مخکي پر هر مسلمان فرض وو بیا دا حکم ختم سو مګر د جهاد په سبب یا د نیت صالحه په وجه د کفارو د ملک او جهل او بدعت د ځایو څخه تېښته کول یا د علم د تر لاسه کولو لپاره د خپل وطن پرېښودل پاته سول او ددې حکم منسوخ نه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امت محمدي يوه ډله به همېشه جهاد كوي

﴿۳۶۴۵﴾: عَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي يُقَاتِلُونَ عَلَى الْحَقِّ ظَاهِرِينَ عَلَى مَنْ نَاوَأَهُمْ حَتَّى يُقَاتِلَ آخِرُهُمُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ . رواه ابوداؤد

زما په امت كي به يوه ډله هميشه د حق په ساتنه كي جنگيږي او كوم قوم چي د دوی سره دښمني كوي دوی به پر هغه غالب وي تر څو چي ددې امت آخري خلك به د مسيح دجال سره جنگيږي .
ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۱، رقم: ۲۴۸۴.

**تشريح**: ددغه ارشاد څخه يوې خوا ته دا معلوميږي چي دغه امت به په هيڅ زمانه كي د داسي سرتېرو او فدايانو څخه خالي نه وي چي د دين د لوړی، د حق د ساتني او د ملت د تحفظ لپاره به د خپل سر او مال قرباني وركوي او د اسلام د دښمنانو دعوه به نسكوروي ، بلې خوا ته دا هم ثابته سوه چي د مجاهدينو سره مقابلې ته راتلونكي كسان به آخر د ماتي او رسوائي سره مخامخ كيږي كه هغه يو فرد وي يا يو ډله وي چي د وخت نزاكت او د حالاتو د رفتار پر يو پړاو باندي د مسلمانانو لپاره په ظاهره د يو نزول موقع پيدا كړي مگر آخر فتحه او كاميابي به د مسلمانانو په برخه كيږي .

ددغه امت آخري خلك : ددې څخه مراد حضرت مهدي ﷺ او حضرت عيسى ﷺ او د هغوی پيروانو ته اشاره سوې ده چي قيامت ته نژدې به د دجال سره جنگ كوي او آخر به حضرت عيسى ﷺ هغه د مرگ په كنده كي واچوي ، د دجال د قتل څخه وروسته به بيا جهاد نه وي ځكه چي د ياجوج ماجوج پر خلاف به جهاد په دې وجه نه وي چي د هغوی سره د جنگ كولو توان به د هيچا سره نه وي او كله چي الله ﷻ هغوی هلاک كړي ياتر څو چي حضرت عيسى ﷺ په دنيا كي موجود وي د مځكي پر مخ به هيڅ كافر پاته نه سي ، په پای كي به د حضرت عيسى ﷺ د وفات څخه وروسته ځيني خلك كافران سي او هغه وخت به ټول مسلمانان د يو پاكي او نرمي

هوا په ذريعه وفات سي او په دنيا كي به يوازي كافران پاته سي همدارنگه كله چي قيامت راسي نو هغه وخت به د مځكي پر مخ هيڅوک هم د الله ﷻ نوم اخيستونكى موجود نه وي په دي اعتبار سره په ځينو حديثو كي دا فرمايل سوي دي چي (لاتزال طائفة من امتي ظاهري على الحق حتى تقوم الساعة) يعني زما د امت يو ډله به هميشه د حق حمايت او ساتنه كوي تر څو چي قيامت راسي ، نو دا د قيامت پر نژدې والي باندي محمول دي چي د قيامت تر نژدې كېدو پوري به د مځكي پر مخ د حق ساتونكې يو ډله موجود وي نو د حق په حمايت كي د حق والا آخري جنگ په د دجال سره وي او د دجال راوتل د قيامت د علامو څخه دي .

## په جهاد كي د نه گډون كونكي وعيد

﴿۳۶۴۶﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ لَمْ يَغْزُ أَوْ يُجَهِّزْ غَازِيًا أَوْ يَخْلُفْ غَازِيًا فِي أَهْلِهِ بِخَيْرٍ أَصَابَهُ اللهُ بِقَارِعَةٍ قَبْلَ يَوْمِ الْقِيَامَةِ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابو امامه ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم سړي چي جهاد ونه كړ او نه يې د غازيانو لپاره سامان برابر كړ او نه يې د مجاهدينو د كورني خبر واخيستئ هغه به د قيامت څخه مخكي الله تعالى په يو سخت مصيبت كي اخته كړي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۲۲، رقم: ۲۵۰۳.

**د لغاتو حل**: بقارعة: اى بشدة من الشدائد، اى بلية تقرعه وتهلكه وتصرعه.

﴿۳۶۴۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ جَاهِدُوا الْمُشْرِكِيْنَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ . رواه أبو داود والنسائي والدارمي

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مشركينو سره د خپل سر ، مال او ژبو په ذريعه جهاد كوئ. ابوداؤد ، نسائي او دارمي

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۲۲، رقم: ۲۵۰۴، والنسائي ۶\۷، رقم: ۳۰۹۶، والدارمي ۲\۲۸۰، رقم: ۲۴۳۱.

**تشريح**: د ځان او مال په ذريعه جهاد كول دادي چي د حق او باطل په مينځ كي د كيدونكي جگړې په وخت كي د جنگ ميدان ته خپل ځان وړاندي كړي او زخمي سي او خپل مال د جهاد

په ارتیاوو کي مصرف کړي ، د ژبي په ذریعه جهاد کول دادي چي د اسلام د دښمنانو د عقائدو او نظریاتو او د هغوی د بتانو بدي بیان کړي د هغوی په حق کي ښېرا کوي چي د حق په مقابله کي د هغوی ذلت او رسوائي وسي او دهغوی د قتل او بندي کولو یا داسي نورو شیانو اخطار ورکوي ، د مسلمانانو د فتحي او کامیابۍ او هغوی ته دغنیمت د مال تر لاسه کېدو دعاوي کوي او خلکو ته په جهاد کي د ګډون کولو ترغیب ورکوي .

## د جنت وارث

﴿۳۶۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْشُوا السَّلَامَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَاضْرِبُوا الْهَامَ تُورَثُوا الْجِنَانَ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اسلام خپور کړئ ، خلکو ته خوراک ورکوئ او د کافرانو سرونه ووهئ نو د جنت وارثان به سئ . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۵۲، رقم: ۱۸۵۴.

## په جهاد کي د چوکیدارۍ فضیلت

﴿۳۶۴۹﴾: وَعَنْ فُضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت فضالة بن عبید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

كُلُّ مَيِّتٍ يُخْتَمُ عَلَى عَمَلِهِ إِلَّا الَّذِي مَاتَ مُرَابِطًا فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَإِنَّهُ يُنْمَى لَهُ

د هر سړي عمل د مرګ څخه وروسته ختمیږي خو د هغه سړي عمل چي د الله ﷻ په لار کي د سرحدو چوکیداروي او مړ سي ، د هغه سړي

عَمَلُهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَيَأْمَنُ مِنْ فِتْنَةِ الْقَبْرِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي عن عقبة بن عامر .

د عمل ثواب به تر قیامته پوري زیاتیږي او هغه به د قبر د فتنې څخه هم په امان وي. ترمذي،
ابوداؤد او دارمي د عقبة بن عامر.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۴۲، رقم: ۱۶۲۱، وابوداود ۳\۲۰، رقم: ۲۵۰۰.

**تشريح**: د هغه عمل به تر قیامته پوري زیاتیږي: د دې مطلب دادی چې د مرګ څخه وروسته به هم هغه ته په هر وخت کي د هغه د عمل نوی ثواب ورکول کیږي ځکه چې هغه پریو داسي عمل باندي خپل ځان نذر کړی دی چې د هغه ګټه همېشه مسلمانانو ته رسیږي او هغه عمل د دين ژوندی او لوړ ساتل دي چې دغه سړي په جهاد کي د چوکیدارۍ په ذریعه مسلمانان د دښمنانو څخه خوندي او محفوظ وساتل.

## په جهاد کي د ګډون کولو فضیلت

﴿۳۶۵۰﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روایت دئ چې هغه د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل:

مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللهِ فُوَاقَ نَاقَةٍ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ وَمَنْ جُرِحَ جُرْحًا فِي

څوک چي د الله جل جلاله په لار کي په اندازه د لوشلو د اوښي وجنګیږي د هغه لپاره جنت واجب سو،
او څوک چي د الله جل جلاله په لار کي زخمي سو

سَبِيلِ اللهِ أَوْ نُكِبَ نَكْبَةً فَإِنَّهَا تَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَغْزَرِ مَا كَانَتْ لَوْنُهَا لَوْنُ

یا د زخم په تکلیف کي اخته کړل سو هغه به د قیامت په ورځ په داسي حال کي راسي چي د هغه
زخم به تازه وي د ويني رنګ به يې

الزَّعْفَرَانِ وَرِيحُهَا رِيحُ الْمِسْكِ وَمَنْ خَرَجَ بِهِ خُرَاجٌ فِي سَبِيلِ اللهِ فَإِنَّ
عَلَيْهِ طَابَعَ الشُّهَدَاءِ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي

زعفراني وي او بوی به يې د مشکو وي او د چا په بدن کي چي د الله په لار کي خراج (دانې) وختلې نو پر هغه باندي به د شهیدانو مهر وي چي په هغه سره به يې شناخت کیږي. ترمذي،
ابوداؤد او نسائي

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۱۵۸، رقم: ۱۶۵۷، وابوداود ۳\۴۶، رقم: ۲۵۴۱، والنسائي ۶\۲۵، رقم: ۳۱۴۱

**د لغاتو حل**: خُراج: مايخرج من البدن من القروح والدماميل.

**تشريح**: فواق هغه وقفې ته وايي چې د اوښې د لويشلو په مينځ کې وي يعني يو وار د اوښې لويشلو څخه لږ څه وروسته دوهم وار بيا لويشل، ددغه دواړو وارو لويشلو په مينځ کې چې کومه وقفه او وخت دی هغه ته په عربي کې فواق وايي دلته په حديث کې د فواق څخه مراد لږ وخت دی.

## په جهاد کې د خپل مال مصرف کولو فضيلت

﴿٣٦٥١﴾: وَعَنْ خُرَيْمِ بْنِ فَاتِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ مَنْ أَنْفَقَ نَفَقَةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ كُتِبَتْ لَهُ بِسَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ. رواه الترمذي والنسائي.

د حضرت خريم بن فاتک رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې د الله جل جلاله په لار کې څه خرڅ کړي د هغه په حساب کې اووه سوه برابر ثوب ليکل کيږي. ترمذي او نسائي.

**تشريح**: د الله جل جلاله په لاره کې د خپل مال او سامان د مصرف کولو چې کوم ثواب دی د هغه اولنۍ درجه ذکر سوې ده چې په جهاد کې مصرف سوی مال به خپل مالک د اووه سوه برابر ثواب وړ وګرځوي، هسې خو دا د الله جل جلاله پر رضا موقوف دی چې هغه چا ته غواړي ددې څخه هم زيات ثواب ورکوي.

﴿٣٦٥٢﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: غوره

الصَّدَقَاتِ ظِلُّ فُسْطَاطٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَنِيحَةُ خَادِمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ طَرُوقَةُ فَحْلٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ. رواه الترمذي

صدقه د الله جل جلاله په لار کې د خيمې سايه ده. (يعني مجاهد يا حاجي ته خيمه ورکول) او غوره صدقه د الله جل جلاله په لار کې د خادم ورکول دي او غوره صدقه د الله جل جلاله په لار کې داسي اوښه ورکول دي چې ځوانه وي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\١۴٣، رقم: ١٦٢٥، والنسائي ٦\۴٩، رقم: ٣١٨٦.

## د مجاهد فضيلت

﴿٣٦٥٣﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَلِجُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه سړی به

النَّارَ بَكَى مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ حَتَّى يَعُودَ اللَّبَنُ فِي الضَّرْعِ وَلَا يَجْتَمِعُ عَلَى عَبْدٍ

دوږخ ته نه ځي کوم چي د الله جل جلاله د بيري څخه يې ژړلي وي تر هغو چي بيرته راوګرځي شيدې و غلانزي ته . او د الله جل جلاله په لار کي د بنده د

غُبَارٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَدُخَانُ جَهَنَّمَ . رواه الترمذي وزاد النسائي في اخرى

بدن ګرد او د دوږخ دود يو ځای کيدلای نسي . ترمذي، او د نسائي په يوه روايت کي دا الفاظ

في منخري مسلم ابدا وفي اخرى له فِيْ جَوْفِ عَبْدٍ اَبَدًا وَلاَ يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْاِيْمَانُ فِيْ قَلْبِ عَبْدًا اَبَدًا .

کلي دي چي د مسلمان په سپږمو کي د الله جل جلاله د لاري ګرد او د دوږخ دود يو ځای کيدلای نسي ، او په يوه روايت کي داسي راغلي دي چي د الله جل جلاله د بنده په نس کي د الله جل جلاله د لاري ګرد او د دوږخ دود يو ځای کيدلای نسي ، او بخل او ايمان يو ځای کيدلای نه سي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۱۴۷، رقم: ۱۶۳۳.

**تشريح**: تر څو چي شيدې بېرته غولانزو ته ولاړي نه سي : دا جمله تعليق بالمحال دی يعني ځرنګه چي لويشل سوې شيدې غولانزو ته تلل محال (ناممکن) دي همدارنګه د يو مجاهد دوږخ ته تلل محال او ناممکن دي .

﴿٣٦٥٤﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَيْنَانِ لَا تَمَسُّهُمَا النَّارُ عَيْنٌ بَكَتْ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ وَعَيْنٌ بَاتَتْ تَحْرُسُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه قسمه ستر ګي دي

چي اور به يې نه مسه كوي يو هغه سترگي چي د الله ﷻ د بيري ځخه و ژاړي او دويم هغه سترگي چي هغه د الله ﷻ په لار كي يې پر چوكېداري شپه تيره كړې وي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\١٥٠، رقم: ١٦٣٩.

## د جهاد غوره والی او فضيلت

﴿٣٦٥٥﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په صحابو كي يو سړی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشِعْبٍ فِيهِ عُيَيْنَةٌ مِنْ مَاءٍ عَذْبَةٌ فَأَعْجَبَتْهُ فَقَالَ لَوْ اعْتَزَلْتُ

په يوه غرنيزه دره كي تير سو چي په هغې كي د خوږو اوبو چينه وه د هغه چينه ډيره خوښه وه ، هغه په زړه كي وويل كاش زه

النَّاسَ فَأَقَمْتُ فِي هَذَا الشِّعْبِ فَذَكَرَ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خلك پريږدم او په دغه درې كي استوګن سم ، بيا ددې خبري ذكر د رسول الله ﷺ په وړاندي

فَقَالَ لَا تَفْعَلْ فَإِنَّ مُقَامَ أَحَدِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَفْضَلُ مِنْ صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ

وسو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : داسي مه كوه ځكه چي د الله ﷻ په لار كي ستا قيام كول په

سَبْعِينَ عَامًا أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللَّهُ لَكُمْ وَيُدْخِلَكُمْ الْجَنَّةَ اغْزُوا فِي سَبِيلِ

كور كي د اويا كالو تر لمونځ كولو غوره دئ ايا ته دا نه خوښوې چي الله تعالی په پوره توګه سره تا وبخښي او جنت ته دي داخل كړي ته د الله ﷻ په لار كي جنګيږه

اللَّهِ مَنْ قَاتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَوَاقَ نَاقَةٍ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ . رواه الترمذي.

ځكه چي څوک د اوښي د لويشلو په اندازه هم د الله ﷻ په لار كي جنګ وكړي د هغه لپاره جنت واجب سي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\١٥۴، رقم: ١٦٥٠.

**تشريح**: د اويا ٧٠ كالو ځخه تحديد مراد نه دی بلكه كثرت مراد دی ، دغه ارشاد د هغه روايت خلاف نه دی چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي (مقام الرجل في الصف في سبيل الله

افضل عند الله من عبادة الرجل ستين سنة) يعني د يو سړي د الله ﷻ په لاره كي په صف كي درېدل د الله ﷻ په نزد د يو سړي د شپيته كالو د عبادت څخه غوره دی.

ددغه حديث د ظاهري مفهوم څخه دا معلومېږي چي خلكو ته په جلاوالي اختيارولو او په ځنګل او غرو كي د الله تعالی په عبادت كي په بوخت كېدو سره بخښنه او مغفرت نه تر لاسه كيږي ځكه علماؤ ددغه ارشاد تاويل داسي كوي چي په هغه زمانه كي جهاد واجب وو او د يو نفل لپاره واجب ترک كول ګناه ده ځكه رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه هغه صحابي ته واضحه كړل كه ته د دنيا د خلكو سره د تعلق په پرېښودو سره د غره په څونډه كي خلاوالي اختيار كړي كه څه هم ددې مقصد په يوازيوالي كي د الله ﷻ په عبادت كي بوخت كېدل وي نو ددې په وجه نه يوازي دا چي ته د هغه ډېرو سعادتونو او فضيلتونو څخه محروم سوې كوم چي د دنيا د خلكو په مينځ كي په پاته كېدو سره د ديني فرائضو او ذمه دارۍ سرته رسولو په صورت كي تر لاسه كيږي بلكه ستا دغه نفل عمل يو واجب عمل او يو اهمه ديني فريضه يعني د جهاد د پرېښودو سبب كيږي چي په هغه سره به ته د ګناه كارو په ډله كي شامل سې ، ددې څخه ماسوا څرنګه چي په ترجمه كي واضحه سوې ده چي دغه ارشاد پر پوره مغفرت او په شروع كي په جنت كي د تلونكو سره په جنت كي پر داخلېدو محمول كيدای سي.

د غه حديث شريف ددې خبري دليل دی چي د خلكو په مينځ كي اوسيدل د جلاوالي څخه غوره دی په خاصه توګه د رسول الله ﷺ په زمانه كي د دغه افضيلت ډېر زيات وو البته د رسول الله ﷺ د زمانې څخه وروسته كله كله جلاوالي ته افضيلت حاصليږي كله چي د خلكو په مينځ كي په اوسېدو كي د فتنې او شر د غلبې بېره وي.

## په جهاد كي د چوكيدارۍ فضيلت

﴿۳۶۵۶﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَ رِبَاطُ يَوْمٍ فِي سَبِيلِ اللهِ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ يَوْمٍ فِيمَا سِوَاهُ مِنَ الْمَنَازِلِ. رواه الترمذي والنسائي.

د حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله په لار كي د يوې ورځي چوكېداري كول د سرحد په لاره كي تر نورو زرو ورځو (په كور كي) تر عبادت غوره ده. ترمذي او نسائي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۶۲، رقم: ۱۶۶۷، والنسائي ۱\ ۳۹-۴۰، رقم: ۳۱۶۹.

**تشريح**: ددغه منصب او خدمت څخه ماسوا : ددغه جملې په ذريعه د دين د اقامت لپاره د الله ﷻ په لاره کي د کوښښ خدمت مستثنی ګرځول سوی دی .

په ظاهره ددغه حديث تعلق د هغه سړي سره دی کوم چي په جهاد کي د اسلامي سرحدونو د ساتني او څارني پر خدمت مامور سوی وي او د چوکېداری ذمه داري سرته رسول پر هغه واجب وي ځکه چي د هغه سړي ددغه خدمت څخه ماسوا په يو بل عبادت کي بوخت کېدل معصيت دي که څه هم هغه د يوه لمانځه څخه وروسته د دوهم لمانځه په انتظار کي په مسجد کي کښيني چي ددغه عمل هم فضيلت دی او دې ته هم رباط ويل سوي دي .

## شهيدانو به تر مخه جنت ته داخل کړل سي

﴿٣٦٥٧﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُرِضَ عَلَيَّ أَوَّلُ ثَلَاثَةٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ شَهِيدٌ وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ وَعَبْدٌ أَحْسَنَ عِبَادَةَ اللَّهِ وَنَصَحَ لِمَوَالِيهِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما ته درې ډوله خلک پيش کړل سول چي تر ټولو به مخکي جنت ته داخليږي يو شهيد دئ دويم فقير ځان ساتونکی او دريم هغه مريی چي هغه په ښه ډول د الله عبادت وکړ او د خپل مالک هم خير خواه وو . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۵۱، رقم: ۱۶۴۲.

**تشريح**: د اولو درو کسانو څخه مراد دادی چي بالکل په شروع کي جنت ته چي کوم درې کسان داخليږي په هغوی کي به دغه درې کسان مخکي داخليږي ، مګر د انبياء عليهم السلام څخه وروسته ځکه چي انبياء عليهم السلام به تر ټولو مخکي وي او هغوی به تر ټولو مخکي په جنت کي داخليږي او د درو کسانو څخه درې ډلي مراد دي .

## غوره مجاهد او غوره شهيد

﴿٣٦٥٨﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ حُبْشِيٍّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ

د حضرت عبد الله بن حُبشي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي

الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ قَالَ طُولُ الْقِيَامِ قِيلَ فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ قَالَ جَهْدُ

كوم عمل تر ټولو غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اوږده ولاړه كول (په لمانځه كي) ، بيا پوښتنه وسول كومه صدقه غوره ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

الْمُقِلِّ قِيلَ فَأَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ قَالَ مَنْ هَجَرَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ عَلَيْهِ قِيلَ فَأَيُّ

د اړاو فقير كوښښ كول (يعني صدقه وركولو كي) بيا پوښتنه وسول چي كوم هجرت غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل هغه كارونه پرېښودل چي الله ﷻ حرام كړي دي ، بيا پوښتنه وسول

الْجِهَادِ أَفْضَلُ قَالَ مَنْ جَاهَدَ الْمُشْرِكِينَ بِمَالِهِ وَنَفْسِهِ قِيلَ فَأَيُّ الْقَتْلِ

كوم جهاد غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كوم جهاد چي په سر او مال د مشركانو سره وسي ، بيا پوښتنه وسول كوم مړ كېدل

أَشْرَفُ قَالَ مَنْ أُهَرِيقَ دَمُهُ وَعُقِرَ جَوَادُهُ. رواه ابوداؤد و في رواية النسائي

غوره دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه سړي چي د هغه وينه و بيول سي او د هغه د آس پښې ووهل . ابوداؤد ، د نسائي په روايت كي دا الفاظ دي چي

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ قَالَ إِيمَانٌ لَا شَكَّ

د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وسول چي په اعمالو كي كوم عمل غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايمان چي په هغه كي شک نه وي

فِيهِ وَجِهَادٌ لَا غُلُولَ فِيهِ وَحَجَّةٌ مَبْرُورَةٌ قِيلَ فَأَيُّ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ قَالَ طُولُ الْقُنُوتِ . ثُمَّ اتَّفَقَا فِي الْبَاقِيّ .

او جهاد چي په هغه كي هيڅ ډول خيانت نه وي او حج مقبول، بيا پوښتنه وسول چي كوم لمونځ غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : تر ډېره وخته پوري ولاړه كول ، او په پاته حديث كي دواړه ابوداؤد او نسائي متفق دي .

**تخريج**: سنن ابي داود ١٤٦١٢، رقم: ١۴۴٩، سنن النسائي ٥٨١٥، رقم: ٢٥٢٦.

**تشريح**: كوم چي د خپل ځان او مال په ذريعه ... : ددې مطلب دادی چي غوره جهاد هغه دی چي مجاهد خپل مال او سامان هم او خپل د نورو مجاهدينو د جهاد اړتيا هم پوره كړي او د

جنګ په ميدان کي خپل ځان هم وړاندي کړي تر دې چي زخمي يا شهيد سي .

د اعمالو د فضيلت په باره کي دا خبره بايد په ذهن کي وي چي په حديثو کي د غوره اعمالو تعين او بيا په دې باره کي مختلف ارشاد نقل سوي دي چيري يوه عمل ته افضل ويل سوي دي او چيري بل عمل ته ددې وجه داده چي رسول الله ﷺ د غوره اعمالو په باره کي د پوښتنو جوابونه د پوښتنه کونکي د حيثيت او د هغه د حال سره سم ارشاد فرمايلي دي ، په کوم کس کي چي به يې د تکبر او سختئ آثار وليدل نو هغه ته به يې جواب ورکړ چي تر ټولو غوره عمل تواضع او نرم مزاجي ده لکه سلام کول او نرمه وينا اختيارول ، او په کوم کس کي چي به د بخل آثار وه هغه ته به يې ويل چي تر ټولو غوره عمل سخاوت دی لکه مسکينانو او اړو کسانو ته خوراک ورکول او داسي نور ، همدارنګه په کوم پوښتنه کونکي کي چي به د عبادت په باره کي سستي وه نو هغه ته به يې جواب ورکوی چي تر ټولو غوره عمل د تهجد لمونځ دی ، مقصد دا چي په کوم کس کي به کوم حالت وو د هغه جواب به يې د هغه د حال سره مناسب ورکوی په دې اعتبار سره د اعمالو د افضيلت مراد ګويا په حقيقت کي د پوښتنه کونکي په باره کي دی د مثال په توګه په پوښتنه کونکي کي دبخل عادت وو نو دهغه په باره کي تر ټولو غوره عمل سخاوت وو يا داسي به وويل سي چي پر کومه موقع کوم عمل ته تر ټولو غوره ويل سوي دي د هغه مراد دادی چي دغه عمل د غوره عملو څخه يو افضل عمل دی .

## پر شهيدانو د الله تعالی انعامونه

﴿٣٦٥٩﴾ : وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ لِلشَّهِيدِ عِنْدَ اللّٰهِ سِتُّ خِصَالٍ يُغْفَرُ لَهُ فِي أَوَّلِ دَفْعَةٍ وَيَرَى مَقْعَدَهُ

د الله جل جلاله په نزد د شهيد لپاره شپږ صفته دي : هغه به په اول وار و بخښل سي ، هغه ته به په جنت

مِنَ الْجَنَّةِ وَيُجَارُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَيَأْمَنُ مِنَ الْفَزَعِ الْأَكْبَرِ وَيُوضَعُ عَلَى

کي خپل ځای و ښودل سي (يعني د ساه ختلو پر وخت) ، هغه به د قبر د عذاب څخه خوندي وي ، هغه به د لوی بيري څخه په امن کي وي (يعني د دوزخ د عذاب څخه)

رَأْسِهِ تَاجُ الْوَقَارِ الْيَاقُوتَةُ مِنْهَا خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَيُزَوَّجُ اثْنَتَيْنِ

د هغه پر سر به د عزت تاج كښېښودل سي چي د هغه يو ياقوت به د دنيا او دد نيا تر ټولو شيانو غوره وي، د هغه په نكاح كي به

وَسَبْعِينَ زَوْجَةً مِنَ الْحُورِ الْعِينِ وَيُشَفَّعُ فِي سَبْعِينَ مِنْ أَقْرِبَائِهِ . رواه الترمذي وابن ماجة .

دو اويا غوره حوري غټو سترګو والا وركړل سي او د هغه په قريبانو كي به د اويا كسانو لپاره د هغه شفاعت قبلېږي . ترمذي او ابن ماجه .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\١٦١، رقم: ١٦٦٣، وابن ماجه ٢\٩٣٦، رقم: ٢٧٩٩.

## په جهاد كي د ګډون نه كونكي وعيد

﴿٣٦٦٠﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَقِيَ اللهَ بِغَيْرِ أَثَرٍ مِنْ جِهَادٍ لَقِيَ اللهَ وَفِيهِ ثُلْمَةٌ . رواه الترمذي و ابن ماجة .

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د الله جل جلاله سره په داسي حال كي ملاقات وكړي چي پر هغه د جهاد هيڅ اثر نه وي نو هغه به په داسي حال كي د الله جل جلاله سره ملاقات وكړي چي په هغه كي به يو ديني نقص وي . ترمذي او ابن ماجه .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\١٦٢، رقم: ١٦٦٦، وابن ماجه ٢\٩٢٣، رقم: ٢٧٦٣.

**تشريح** د اثر څخه مراد علامه او نښه ده ، د حديث خلاصه داده چي كوم سړى په داسي حال كي د دنيا څخه رخصت سي چي نه خو د هغه پر بدن د جهاد يو علامه وي لكه زخم يا دلاري ګرد يا د يو بدني تكليف يو علامه او نه د هغه په عمل نامه كي د جهاد د ګډون يو ثبوت وي لكه په جهاد او مجاهدينو په اړتياوو كي خپل مال مصرف كول يا مجاهدينو ته د جهاد سامان برابرول نو هغه په داسي حال كي مړ كيږي چي د هغه په دين كي به نقص وي كيداى سي چي د دغه حديث تعلق د هغه سړي سره وي چي پر هغه جهاد فرض وي او هغه نه يوازي دا چي د دغه فرض د ادا كولو څخه په عملي توګه محروم وي بلكه هغه په جهاد كي د ګډون كېدو اراده هم نه وي كړې .

## شهيد د قتل د تكليف څخه خوندي وي

﴿٣٦٦١﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الشَّهِيدُ لَايَجِدُ اَلَمَ الْقَتْلِ إِلَّا كَمَا يَجِدُ أَحَدُكُمْ اَلَمَ الْقَرْصَةِ. رواه الترمذي و النسائي و الدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: شهيد د وژني يوازي دومره تكليف محسوسوي څومره چي تاسو د كيكي د چيچلو تكليف محسوسوئ، ترمذي، نسائي، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\ ۱۶۳، رقم: ۱۶۶۸، والنسائي ٦\ ٣٦، رقم: ٣١٦١، والدارمي ۱۲\ ۲۷۱، رقم: ۲۴۰۸.

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله وايي چي دا دهغه شهيد حال دی چي د الله جل جلاله په لاره كي د خپل سر په وركولو سره لذت او كيف محسوس كړي او پر دغه قرباني باندي د هغه نفس خوشحاله او مطمئن وي مگر دا احتمال هم دی چي مراد دا وي چي د شهيد د مرگ څخه وروسته د الله تعالى د نعمتونو او راحتونو په وجه كوم لذتونه تر لاسه كيږي نو مؤمن بايد چي د الله جل جلاله په لاركي د سر وركولو څخه ونه بيريږي بلكه په خندا او خوشحالي سره د شهادت جام نوش كړي.

## په جهاد كي دويني بهېدونكی څاڅكی

﴿٣٦٦٢﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ شَيْءٌ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالى ته دوه څاڅكي

أَحَبَّ إِلَى اللّٰهِ مِنْ قَطْرَتَيْنِ وَأَثَرَيْنِ قَطْرَةٌ مِنْ دُمُوعٍ فِي خَشْيَةِ اللّٰهِ وَقَطْرَةُ دَمٍ

او دوې نښي ډيري خوږي دي يو خو د الله تعالى د بيري څخه د اوښكو تللی څاڅكي او دويم د

يُهْرَاقُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَأَمَّا الْأَثَرَانِ فَأَثَرٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَأَثَرٌ فِي فَرِيضَةٍ مِنْ فَرَائِضِ اللّٰهِ تَعَالَى. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

هغه وينو څاڅكي چي د الله تعالى په لاركي و بيول سي او په دوو نښنو كي يوه نښنه خو هغه ده

چي د الله تعالى په لار کي په زخم وغيره سره راسي او دويم د الله تعالى د فرائضو څخه د يو فرض نښه (مثلا د سجدې وغيره نښه)، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۶۲، رقم: ۱۶۶۹.

**تشريح**: د الله ﷻ په لاره کي د قائمېدونکي نښي مطلب دادی چي څرنګه مجاهد جهاد ته ولاړ سي او په لاره کي د هغه د قدم نښه جوړه سي يا د هغه پر بدن باندي د لاري ګرد او غبار ولوېږي يا د هغه پر بدن يو زخم وسي يا د علم دين د طالب پر جامو يا بدن باندي داغ ولګيږي چي د دين د علم تر لاسه کول هم د الله ﷻ لاره ده او هغه پر لاره باندي د تلونکي مجاهد په ډول دی. د يو فرض شي په باره کي د پيدا کېدونکي نښي مطلب دادی چي څرنګه په يخ کي د اوداسه په وجه د لمونځ کونکي لاسونه او پښې چوي يا په لمانځه کي د سجدې په وجه پر تندي باندي داغ لګيږي يا په ګرمۍ کي د سجدې پر وخت د لمونځ کونکي تندي سوځي او د هغه داغ ولګيږي يا په روژه کي د روژه نيونکي د خولې څخه بوی راځي يا د حج په سفر کي د حاجي پر بدن باندي د لاري ګرد او غبار وي.

## بېله ضرورته د بحري سفر څخه منع

﴿۳۶۶۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْكَبُ الْبَحْرَ إِلَّا حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا أَوْ غَازِيًا فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ فَإِنَّ تَحْتَ الْبَحْرِ نَارًا وَتَحْتَ النَّارِ بَحْرًا. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅوک دي د درياب سفر نه کوي خو د حج يا د عمرې په اراده سره يا د الله په لار کي د جهاد کولو لپاره ځکه چي تر درياب لاندي اور دئ او تر اور لاندي درياب. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۳، رقم: ۲۴۸۹.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي په اوبو کي سفر کول يو خطرناک کار دی نو عقلمند سړی بايد د دغه خطرناک کار په ذريعه ځان په هلاکت او ببره کي نه واچوي ځکه چي د يو شرعي ضرورت په وجه د الله ﷻ د تقرب د تر لاسه کولو ذريعه ده يو خطرناک او هلاکت کونکي کار کي هم خپل ځان په هلاکت کي اچول يو ښه کار دی مګر بېله شرعي ضرورته داسي کار د عقل

او پوهي خلاف دی.

د دغه حديث څخه د هغه خلكو د قول ترديد كيږي كوم چي وايي چي د حج پرېښودو لپاره سمندر او درياب يو شرعي عذر وي په دې باره كي د ټولو څخه غوره او د عمل وړ خبره د حضرت ابو الليث سمرقندي رحمه الله ده چي هغه وايي كله چي د درياب په سفر كي د سلامتيا خوا غالبه وي نو حج ته تلل فرض دي او كه د سلامتيا امكان غالب نه وي نو بياد حج اراده كونكي ته اختيار دی كه همت نه سي كولای نو نه دي ځي او كه د هغه د سلامتيا گمان نه غالب كېدو په وجه تلل غواړي نو ولاړ دي سي په دې كي څه پروا نه سته، دلته د دغه آيت كريمه په باره كي دا ښوول هم ضروري دي: وَلاَ تُلْقُواْ بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ

ژباړه: خپل ځان په خپله په هلاكت او تباهی كي مه اچوئ.

دغه آيت كريمه پر هغه صورت باندي محمول دی كله چي په هغه ځای كي يو شرعي مقصد او ديني كار نه وي ځكه بيضاوي د دغه آيت كريمه په تفسير كي د تباهی او هلاكت څو صورتونه بيان كړي دي لكه په خپل مال كي اسراف كول يا د خپل گزارې ذريعه د مثال په توگه تجارت، كاروبار يا داسي نور د خپل لاسه ضائع كول او ختمول او په جهاد كي د شركت كولو يا د خپل مال د مصرف كولو څخه منع كول په اصل كي د ښمن ته قوت رسول او هغوی د خپل هلاكت لپاره پر ځان مسلط كول دي.

تر درياب لاندي اور دئ ...: د دغه جملې مطلب د خلكو د سيند او درياب څخه بېرول او د دې خبري ارزښت بيانول دي چي د سيند او درياب په سفر كي لويه خطره ده ځكه په سيند او درياب كي سفر كونكي د مختلفو آفاتو سره مخامخ كيږي او په خاصه توگه په پخوا زمانه كي د اوبو په سفر كي لويه خطره وه او مسافر به د يو بل سره په داسي مختلف خطرناكو صورتو سره مخامخ كېدل چي د هغه په وجه به هر گړی د مرگ او هلاكت مخته ولاړ وه.

ځيني حضرات وايي چي دا جمله د دې پر اصل معنى باندي محمول كيدای سي ځكه چي الله جل جلاله پر هر شي باندي قادر دی.

## د اوبو په سفر كي د مړ كېدونكي درجه د شهيد ده

﴿٣٦٦٤﴾: وَعَنْ أُمِّ حَرَامٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَائِدُ فِي الْبَحْرِ الَّذِي يُصِيبُهُ الْقَيْءُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدٍ وَالْغَرِيقُ لَهُ أَجْرُ شَهِيدَيْنِ. رواه ابوداؤد

د حضرت ام حرام رضی الله عنها څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که د دریاب په سفر کي قی راسي نو هغه ته د یوه شهید ثواب تر لاسه کیږي او څوک چي په دریاب کي غرق سي هغه ته د دوو شهیدانو ثواب تر لاسه کیږي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۱۳، رقم: ۲۴۸۹.

**د لغاتو حل**: المائد: هو الذي يدور راسه من ريح البحر واضطراب السفينة بالامواج (هغه څوک چي په بېړی کي يې سر گرځي).

**تشریح**: د دوو شهیدانو ثواب په هغه صورت کي ورکول کیږي کله چي هغه د جهاد لپاره یا د علم د تر لاسه کولو او یا د حج په ډول مقاصدو لپاره د کښتۍ وغیره په ذریعه په سیند کي سفر کوي او که د هغه د سفر مقصد تجارت وي او د هغه تجارت مقصد محض د خپل ځان ژوندی او طاقتور ساتل وي او د خپل کورنۍ د اړتیاوو پوره کول وي او هغه تجارت په سیند او دریاب کي د سفر څخه پرته ممکن نه وي نو په دغه صورت کي هم دا حکم دی.

## په جهاد کي هر ډول مړ کېدونکی شهید دی

﴿۳۶۶۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ مَالِكِ الْاَشْعَرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو مالک اشعري رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي

يَقُولُ مَنْ فَصَلَ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ فَمَاتَ اَوْ قُتِلَ اَوْ وَقَصَهُ فَرَسُهُ اَوْ بَعِيرُهُ اَوْ لَدَغَتْهُ

چي فرمایل یې: څوک چي د الله جل جلاله په لار کي ووتی او مړ سو یا ووژل سو یا د هغه اس هغه تر پښو لاندي کړ یا اوښ وغورځوی یا زهرجن شي وچیچی

هَامَّةٌ اَوْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ اَوْ بِاَيِّ حَتْفٍ شَاءَ اللّٰهُ فَاِنَّهُ شَهِيدٌ وَاِنَّ لَهُ الْجَنَّةَ.

رواه ابوداؤد.

یا پر خپله بستره مړ سو مقصد دا چي په هر ډول مرګ مړ سي نو هغه شهید دئ او د هغه لپاره جنت دئ. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۱۹، رقم: ۲۴۹۹.

**د لغاتو حل**: وقصه: اى صرعه و دق عنقه. هامة: اى ذات سم تقتل.

## مجاهد ته په خپل کور کې هم د جهاد ثواب ورکول کیږي

﴿٣٦٦٦﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَفْلَةٌ كَغَزْوَةٍ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د جهاد کولو څخه وروسته د جهاد څخه راستنېدل د جهاد په ډول دي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۱۲، رقم: ۲۴۸۷.

**د لغاتو حل**: قَفلة: هو المرة من القفول وهو الرجوع من سفره.

**تشریح**: مطلب دادی چې کله مجاهد او غازي د جهاد څخه په فارغه کېدو سره خپل کور ته راځي نو د هغه په ستنېدو کې هم دومره ثواب ورکول کیږي لکه څومره چې په جهاد کولو کې ورکول کیږي ځکه چې مجاهد او غازي هر وخت د الله جل جلاله په لاره کې د خپل ځان وړاندې کولو نیت لري او کله چې هغه په ستنېدو سره کور ته راځي نو د هغه نیت دا وي چې د یو څو ورځو آرام کولو څخه وروسته به بیا د جهاد قوت او طاقت پیدا کړم او کله چې د الله جل جلاله د لارې بلنه راسي نو سمدستي د جنګ میدان ته په رسیدو سره د دښمنانو سره به مقابله کوم.

## جاعل ته دوچنده ثواب ورکول کیږي

﴿٣٦٦٧﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْغَازِي أَجْرُهُ وَلِلْجَاعِلِ أَجْرُهُ وَأَجْرُ الْغَازِي. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د غازي لپاره د هغه د جهاد ثواب دئ او د جهاد لپاره مال ورکونکي ته به د مال او جهاد دواړو ثواب تر لاسه کیږي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۳٦، رقم: ۲۵۲٦.

**تشریح**: جاعل هغه سړي ته وایي چې یو غازي ته مال ورکړي او د هغه مرسته وکړي تر څو هغه جهاد وکړي، ددغه حدیث مطلب دادی چې جاعل ته دوه برابر ثواب ورکول کیږي یو ثواب خو د الله جل جلاله په لاره کې د مال مصرف کولو، او دوهم ثواب دډ ورکول کیږي چې دی د غازي د جهاد کولو ذریعه او سبب جوړ سوی وي نو له همدې کبله د جعل څخه مراد د غازي سره مالي

مرسته کول او د هغه لپاره د جهاد اوزار تیارول اخیستل کیږي ، چونکه د غه عمل یعني د جعل جائز کېدل او د دې د فضیلت په باره کي هیڅ شک او شبه نسته تول علماء کرام پر دې متفق دي.
مګر ابن مالک رحمة الله علیه وايي چي د جاعل څخه مراد هغه سړی دی چي غازي ته مزدوري ورکوي او په هغه جهاد کوي ، د حنفي علماؤ په نزد دا هم جائز دي او په دغه صورت کي به غازي ته په جهاد کي د هغه د کوښښ او مشقت ثواب هم ورکول کیږي او جاعل ته به دوه برابر ثواب ورکول کیږي یو ثواب د مال ورکولو او دوهم ثواب د هغه غازي د جهاد کولو سبب او ذریعه جوړېدل، د امام شافعي رحمة الله علیه په مذهب کي دغه عمل یعني یو چا ته مزدوري ورکول او په هغه جهاد کول منع دي ، هغه وايي که یو غازي د یو سړي څخه داسي مزدوري اخیستې وي نو د هغه بېرته ورکول واجب دي .

## په مزدوری د جهاد کونکي په باره کي وعید

﴿٣٦٦٨﴾ : وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ أَنَّهُ سَمِعَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ سَتُفْتَحُ

د حضرت ابو ایوب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه دا واوریدل چي ډیر ژر به

عَلَيْكُمُ الْأَمْصَارُ وَسَتَكُونُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ يُقْطَعُ عَلَيْكُمْ فِيهَا بُعُوثٌ فَيَكْرَهُ

پر تاسو د لویو لویو ښارونو دروازې خلاصي سي او تاسو به جمع سوی لښکر یاست چي د هغوی څخه به ستاسو لپاره فوجونه و ټاکل سي

الرَّجُلُ الْبَعْثَ فِيهَا فَيَتَخَلَّصُ مِنْ قَوْمِهِ ثُمَّ يَتَصَفَّحُ الْقَبَائِلَ يَعْرِضُ نَفْسَهُ

نو یو سړی به جهاد ته پرته د مزدورۍ تلل بد ګڼي او د خپل قوم څخه به خپل ځان بیل کړي چي جهاد ته د تلو څخه وژغورل سي بیا به هغه قبائل لټوي او خپل ځان به هغوی په وړاندي کولو

عَلَيْهِمْ مَنْ أَكْفِيهِ بَعْثَ كَذَا أَلَا وَذَلِكَ الْأَجِيرُ إِلَى آخِرِ قَطْرَةٍ مِنْ دَمِهِ . رواه ابوداؤد .

سره وايي څوک سته چي زما خدمتونه په مزدوري تر لاسه کړي چي زه د یوه لښکر کفایت وکړم ، خبردار! دا سړی مجاهد نه دئ مزدور دئ او د خپلي ويني تر آخري څاڅکي پوري به مزدور وي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۳\ ۳۵، رقم: ۲۵۲۵.

**تشريح**: چي په هغه کي به ستاسو لپاره فوجونه وټاکل سي : ددې مطلب دادی چي د اسلامي حکومت امير به دا خبره ضروري ګرځوي چي د خپل هيواد د هر قوم او هر ډلي د خلکو څخه د فوج په جوړولو سره هغوی جهاد ته واستوي.

مظهر رحمة الله عليه دا مطلب بيان کړی دی چي کله د اسلام آواز د دنيا هري خوا ته ورسيږي نو د وخت امام يعني د اسلامي هيواد امير به ددې خبري په ضرورت پوه سي چي هغه د اسلامي فوج او لښکر په تيارولو سره هغوی د جهاد لپاره واستوي چي هغه لښکر د هغه کفارو بېخ وباسي کوم چي د مسلمانانو نژدې وي او پر مسلمانانو باندي د غلبې تر لاسه کولو لپاره فساد کوي.

## په مزدورۍ د جهاد کولو مسئله

﴿۳۶۶۹﴾: وَعَنْ يَّعْلَيْ بْنِ أُمَيَّةَ قَالَ آذَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْغَزْوِ

د يعلي بن اميه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم خلکو ته په جهاد د تللو لپاره اعلان وکړ

وَأَنَا شَيْخٌ كَبِيرٌ لَيْسَ لِي خَادِمٌ فَالْتَمَسْتُ أَجِيرًا يَكْفِينِي فَوَجَدْتُ رَجُلًا

زه هغه وخت سپين ږيری وم او هيڅ خادم راسره نه وو ما يو مزدور و لټوئ چي زما د خدمت لپاره کافي وي نو يو سړی په لاس راغلی چي

سَمَّيْتُ لَهُ ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ فَلَمَّا حَضَرَتْ غَنِيمَتُهُ أَرَدْتُ أَنْ أُجْرِيَ لَهُ سَهْمَهُ

د هغه د خدمت مزدوري ما درې ديناره وټاکل بيا چي د غنيمت مال راغلی نو ما اراده وکړه چي د خپل خدمت کونکي برخه هم ورکړم، د دې مسئلې د پوښتني لپاره

فَجِئْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ لَهُ فَقَالَ مَا أَجِدُ لَهُ فِي غَزْوَتِهِ

هٰذِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا دَنَانِيرَهُ الَّتِي سَمَّى. رواه ابوداؤد.

زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خدمت کي حاضر سوم او پېښه مي ورته بيان کړه، رسول الله صلى الله عليه وسلم راته وفرمايل زه په دنيا او آخرت کي ددې غزا (نتيجه) د هغه لپاره يوازي هغه دينارونه وينم چي تا ټاکلي دي (يعني د غنيمت په مال کي د هغه هيڅ برخه نسته.) ابوداؤد.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي د هغه سړي لپاره نه خو د غنيمت په مال کي څه برخه سته او نه هغه ته د جهاد ثواب تر لاسه کيږي، علماؤ ليکلي دي چي دا حکم د هغه اجير په باره کي هم دی کوم چي يو مجاهد او غازي د جهاد په دوران کي د خپل خدمت لپاره ساتلی وي، مګر کوم مزدور چي يې د جهاد لپاره ساتلی وي هغه ته به د غنيمت په مال کي برخه ورکول کيږي که څه هم د ځينو علماؤ په قول هغه به د جهاد د ثواب څخه محروم وي.

په شرح السنه کي ليکلي دي چي د علماؤ د داسي سړي په باره کي اختلاف دی کوم چي د خدمت لپاره يا د حيوانانو د ساتني لپاره د مزدورۍ په توګه ساتل سوی وي او بيا هغه د جنګ په ميدان کي جنګ ته استول سوی وي نو ايا هغه ته به د غنيمت په مال کي برخه ورکول کيږي که يا؟ ځيني حضرات وايي چي د هغه لپاره برخه نه سته که څه هم هغه جنګ وکړي يا نه يې وکړي بلکه هغه به يوازي د خپلو خدمتو د ټاکل سوي مزدورۍ حقدار وي دا قول د اوزاعي او اسحاق هم دی، د امام شافعي رحمة الله عليه په دوو قولو کي يو قول دا هم دی، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهما وايي چي هغه سړي ته به برخه ورکول کيږي که څه هم هغه جنګ نه وي کړی مګر د جنګ په وخت کي د مجاهدينو سره وي.

## د دنيوي مقصد لپاره جهاد کونکی د ثواب څخه محروم وي

﴿٣٦٧٠﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ رَجُلٌ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضًا مِنْ عَرَضِ الدُّنْيَا فَقَالَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا أَجْرَ لَهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي عرض وکړ اې د الله رسوله! يو سړی د الله په لار کي د جهاد اراده لري مګر هغه د دنيا د مال او اسبابو خواهشمند دئ، رسول الله ﷺ وفرمايل هغه ته به هيڅ ډول ثواب نه تر لاسه کيږي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ١٣/٣٠-٣١، رقم: ٢٥١٦.

**تشریح**: د هغه سړي د ثواب څخه د محروم کېدو وجه دا وه چي انسان ته د خپل هغه عمل ثواب ورکول کيږي کوم چي هغه په اخلاص سره يعني محض د الله تعالی د رضا او خوښۍ لپاره کړی وي او هغه سړی په جهاد کي په دې غرض سره ګډون اراده وکړه چي د هغه په ذريعه د غنيمت مال تر لاسه کړي او په دې اعتبار سره د هغه اصلي مقصد د الله جل جلاله رضا نه وه بلکه د مال او

سامان تر لاسه کول وو ځکه هغه به د ثواب څخه محروم وي.
مګر که چیري یو سړی په جهاد کي شریک وي او محض د الله ﷻ د رضا لپاره وي مګر د غنیمت د مال تر لاسه کول یې هم مقصد وي نو هغه ته به ثواب ورکول کیږي که څه هم هغه ته به د هغه سړي څخه کم ثواب ورکول کیږي کوم چي محض د الله تعالی د رضا لپاره په جهاد کي شریک وي او د غنیمت د مال تر لاسه کول د هغه مقصد نه وي.

## حقیقي جهاد د چا دی؟

﴿۳۶۷۱﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغَزْوُ غَزْوَانِ

د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: جهاد پر دوه ډوله دئ:

فَأَمَّا مَنِ ابْتَغَى وَجْهَ اللّٰهِ وَأَطَاعَ الْإِمَامَ وَأَنْفَقَ الْكَرِيمَةَ وَيَاسَرَ الشَّرِيكَ

چا چي د الله ﷻ رضا مندي وغوښتل د امام اطاعت یې وکړ پاک (مال او ځان) یې خرڅ کړ په لاره کي د الله ﷻ، د ملګري سره یې ښه چلن وکړ،

وَاجْتَنَبَ الْفَسَادَ فَإِنَّ نَوْمَهُ وَنُبْهَهُ أَجْرٌ كُلُّهُ وَأَمَّا مَنْ غَزَا فَخْرًا وَرِيَاءً وَسُمْعَةً

د فساد څخه یې ځان و ساتئ نو د هغه خوب او ویښتیا ټول ثواب دي او چا چي جهاد وکړ د فخر لپاره، د ښودني او اورولو لپاره

وَعَصَى الْإِمَامَ وَأَفْسَدَ فِي الْأَرْضِ فَإِنَّهُ لَمْ يَرْجِعْ بِالْكَفَافِ. رواه مالك و ابوداؤد والنسائي.

د امام نافرماني یې وکړه او په مځکه کي یې فساد پیدا کړ نو هغه به د جهاد د یو بدلي اخیستلو سره نه راستنیږي (یعني هیڅ ثواب به یې نه وي ګناه به یې ډېره وي)، مالک، ابوداؤد او نسائي.

**تخریج**: موطا الامام مالک ۲\ ۴۶۶، رقم: ۴۳. وابوداود ۳\ ۳۰، رقم: ۲۵۱۵، والنسائي ۵\ ۴۹- ۵۰، رقم: ۳۱۸۸.

**د لغاتو حل**: الکریمة: ای المختارة من ماله (خپل غوره مال). یاسر: من المیاسرة بمعنی المساهلة

## د نامه لپاره جهاد کولو باندې وعید

﴿۳۶۸۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو اَنَّهٗ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَخْبِرْنِي عَنِ الْجِهَادِ

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دئ چې هغه عرض وکړ اې د الله رسوله ! ما د جهاد

فَقَالَ يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ عَمْرٍو إِنْ قَاتَلْتَ صَابِرًا مُحْتَسِبًا بَعَثَكَ اللّٰهُ صَابِرًا

څخه خبر کړئ ، رسول الله ﷺ وفرمایل : اې عبد الله بن عمرو ! که ته په داسې حال کې وجنګیږې چې صبرو کونکی

مُحْتَسِبًا وَإِنْ قَاتَلْتَ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا بَعَثَكَ اللّٰهُ مُرَائِيًا مُكَاثِرًا يَا عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ

او د الله جل جلاله څخه د ثواب غوښتونکی یې نو الله تعالی به تا صبر کوونکی او ثواب غوښتونکی پاڅوي ، په داسې حال کې به تا پاڅوي په کوم حال کې چې ته مړ کیږې او که د فخر او ښودلو لپاره جهاد کوې نو الله تعالی به تا ښودنه کونکی او ډیر زیات مال او فخر غوښتونکی پاڅوي

عَمْرٍو عَلَى أَيِّ حَالٍ قَاتَلْتَ أَوْ قُتِلْتَ بَعَثَكَ اللّٰهُ عَلَى تِلْكَ الْحَالِ . رواه ابوداؤد.

، اې عبد الله بن عمرو ! په کوم حال کې چې ته جنګیږې یا ووژل سې الله تعالی به تا په هغه حال کې را پاڅوي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۲، رقم: ۲۵۱۹.

## امیر معزولول پکار دي

﴿۳۶۸۳﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ مَالِكٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَعَجَزْتُمْ

د حضرت عقبة بن مالک رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا تاسو ددې څخه عاجزه یاست چې

إِذْ بَعَثْتُ رَجُلًا فَلَمْ يَمْضِ لِأَمْرِي أَنْ تَجْعَلُوا مَكَانَهُ مَنْ يَمْضِي لِأَمْرِي . رواه ابوداؤد و ذكر حديث فضالة والمجاهد من جاهد نفسه في كتاب الايمان.

کله زه یو سړی امیر و ټاکم او هغه زما د احکامو سره سم کار ونه کړي نو هغه تاسو مات کړئ او

دهغه پر ځای داسي سړی و ټاکئ چي زما د حکم سره سم کار کوي ، ابوداؤد ، او د فضاله حديث والمجاهد من جاهد نفسه په کتاب الايمان کي بيان سوی دئ .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۹۴، رقم: 2537.

**تشريح**: ددغه ارشاد مطلب دادی که زه يو سړی د يو کار لپاره د مثال په توګه د حاکم او والي په جوړولو سره يو ځای واستوم او هغه هلته ولاړ نه سي يا هلته په تلو سره زما د حکم تعميل ونه کړي او زما د ښوولي لاري څخه په ليري کېدو سره پر خپل لار روان سي نو تاسو هغه معزول کړئ او د هغه پر ځای يو بل څوک زما د حکم مطابق د هغه ځای حاکم جوړ کړئ ، پر دې باندي په قياس کولو سره علماؤ دا مسئله ليکلې ده که يو امير او حاکم پر رعيت باندي ظلم کوي او د عوامو د حقوقو په ادا کولو کي کوتاهي کوي نو عوامو ته دا حق حاصل دی چي هغه امير او حاکم معزول (برطرفه) کړي او د هغه پر ځای دوهم سړی امير او حاکم کړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په اسلام کي د رهبانيت ځای نه سته

﴿۳۶۷۴﴾: عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ په يوه لښکر کي د رسول الله ﷺ سره روان سوو ، په

سَرِيَّةٍ فَمَرَّ رَجُلٌ بِغَارٍ فِيهِ شَيْءٌ مِنْ مَاءٍ وَّ بَقْلٍ فَحَدَّثَ نَفْسَهُ بِأَنْ يُقِيمَ

موږ کي يو سړی د يو غار سره تير سو چي په هغه کي اوبه وې او څه شينګيا ، د هغه په زړه کي دا خيال پيدا سو چي زه دلته پاته سم

فِيهِ وَيَتَخَلَّى مِنَ الدُّنْيَا فَاسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذَالِكَ

او دنيا پرېږدم ، نو هغه د رسول الله ﷺ څخه اجازه و غوښتل ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه

فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَمْ أُبْعَثْ بِالْيَهُودِيَّةِ وَلَا بِالنَّصْرَانِيَّةِ

خو نه د يهوديت خپرولو لپاره رالېږل سوی يم او نه د نصرانيت لپاره ،

وَلَكِنِّي بُعِثْتُ بِالْحَنِيفِيَّةِ السَّمْحَةِ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَغَدْوَةٌ أَوْ رَوْحَةٌ

بلکه پاک صفا شریعت سره رالیږل سوی یم چې آسان دین دئ ، قسم دئ په هغه ذات چې د هغه په لاس کې د محمد ساه ده په سهار یا مابنام کې

فِي سَبِيلِ اللّٰهِ خَيْرٌ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا وَلَمُقَامُ أَحَدِكُمْ فِي الصَّفِّ خَيْرٌ مِنْ صَلَاتِهِ سِتِّينَ سَنَةً . رواه احمد

د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې تلل د دنیا و د دنیا د ټولو شیانو څخه غوره دي او د میدان جنګ په صف کې دریدل د شپېتو کالو تر لمانځه کولو غوره دي . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ٥\ ٢٦٦.

## په جهاد کې د نیت د اخلاص اخري درجه

﴿٣٦٧٥﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَزَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَلَمْ يَنْوِ إِلَّا عِقَالًا فَلَهُ مَا نَوَى . رواه النسائي

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چې د الله جَلَّ جَلَالُهُ په لار کې جهاد وکړ او یوازې د یوې رسۍ (چې د اوښ څنګون په تړي) نیت یې وکړه نو د هغه لپاره هغه شی دئ د کوم شي نیت چې یې کړی وي . نسائي.

**تخريج**: سنن النسائي ٦\ ٢۴، رقم: ٣١٣٨.

**د لغاتو حل**: عِقالا: وهو حبل صغير يشد به ركبة البعير لئلايفر (کوچنۍ رسۍ چې د اوښ پښې ورباندې تړل کیږي، تر څو ونه تښتي).

**تشريح**: مطلب دادی که په جهاد کې د دنیا یو معمولي شی هم په نظر کې وي نو دا د اخلاص خلاف خبره ده ، یعني ددغه ارشاد مقصد دا خبره بیانول دي او دا ترغیب ورکول دي چې په جهاد کې د غنیمت د مال د تر لاسه کولو څخه باید قطع نظر وکړل سي او په نیت کې داسي اخلاص پیدا کړل سي چې په هغه کې د دنیا هیڅ غرض هم نه وي مګر دادي واضحه وي چې په جهاد کې د نیت د اخلاص دا آخري درجه ده .

دا خبره مخکې ښوول سوې ده چې په جهاد کې د الله تعالی رضا او د دین لوړتیا په نیت سره د غنیمت د مال تر لاسه کولو مقصد هم شامل وي نو دا جائز ده او په دغه صورت کې هم د

جهاد ثواب ورکول کیږي همدارنګه که چیري د هغه په نیت کي د ځان ښوونی جذبه وي نو د هغه په وجه هم د جهاد کلیه نه باطلیږي .

## جهاد په جنت کي د درجو د ترقۍ باعث دی

﴿٣٦٧٦﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ رَضِيَ

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د الله جل جلاله پر

بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ رَّسُولاً وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ فَعَجِبَ لَهَا أَبُو

پروردګار کېدو ، او په اسلام چي دین دی او د محمد ﷺ پر رسول کېدو راضي سو د هغه لپاره جنت واجب سو ، د دې الفاظو په اوریدو سره

سَعِيدٍ فَقَالَ أَعِدْهَا عَلَيَّ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَأَعَادَهَا عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ وَأُخْرَى يُرْفَعُ

ابو سعید د تعجب اظهار وکړ او عرض یې وکړ اې د الله رسوله ! دا کلمات بیا یو وار زما په وړاندي وفرمایاست ، رسول الله ﷺ دغه کلمات بیا وفرمایل، او بیا یې ارشاد وفرمایي:

بِهَا الْعَبْدُ مِائَةَ دَرَجَةٍ فِي الْجَنَّةِ مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ

یو شی بل دئ چي د هغه په سبب الله جل جلاله د بنده لپاره په جنت کي سل درجې لوړوي او په هغوی کي د دوو درجو په منځ کي دومره فاصله ده څومره چي د آسمان او ځمکي په منځ کي فاصله ده

قَالَ وَمَا هِيَ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ . رواه مسلم .

ابو سعید وویل: اې د الله رسوله ! هغه څه شي دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغه د الله په لارکي جهاد کول دي هغه د الله جل جلاله په لارکي جهاد کول دی هغه د الله جل جلاله په لارکي جهاد کول دي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٥٠١، رقم: ١١٦- ١٨٨٤.

## د جنت دروازې د تورو تر سايو لاندې دي

﴿۳٦۷۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَبْوَابَ

د حضرت ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د جنت دروازې

الْجَنَّةِ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوْفِ فَقَامَ رَجُلٌ رَثُّ الْهَيْئَةِ فَقَالَ يَا أَبَا مُوْسَى آنْتَ

د تورو تر سايې لاندې دي (د دې په اوريدو سره) يو سړي ګډوډ او زوړ شکلې جامې يې وې پوښتنه وکړه اې ابو موسى! تا

سَمِعْتَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ هٰذَا قَالَ نَعَمْ فَرَجَعَ إِلٰى أَصْحَابِهِ

د رسول الله ﷺ څخه دا الفاظ اوريدلي دي چې دا يې ويل؟ ابو موسى وويل هو، (د دې په اوريدو سره) هغه سړي خپلو ملګرو ته ورغلی

فَقَالَ أَقْرَأُ عَلَيْكُمُ السَّلَامَ ثُمَّ كَسَرَ جَفْنَ سَيْفِهِ فَأَلْقَاهُ ثُمَّ مَشٰى بِسَيْفِهِ إِلَى الْعَدُوِّ فَضَرَبَ بِهِ حَتّٰى قُتِلَ. رواه مسلم.

او وه يې ويل زه تاسو ته د رخصتۍ سلام کوم د دې په ويلو سره يې د تورې تيکی مات کړ او وه يې غورځوی بيا يې توره واخيستل د دښمن په لور روان سو د هغو سره وجنګېدئ تر څو چې شهيد سو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۵۱۱، رقم: ۱۴٦- ۱۹۰۲.

**د لغاتو حل**: جفن: اى غلافه (پوښ).

**تشريح**: د جنت دروازې د تورو په سايه کې دي: د دې مطلب دادی چې د مجاهد او غازي د جنګ په ميدان کې داسي کېدل چې د کفارو تورې پر هغو سربېره وي نو دا په جنت کې د داخلېدو سبب دی او هغه حالت د دې خبرې نښه ده چې د جنت دروازې د هغه مجاهد او غازي سره دی چې د کفارو د تورو په ذريعه د شهادت جام نوش کړي او جنت کې داخل سي.

## د احد د شهيدانو لپاره زيری

﴿۳٦۷۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِاَصْحَابِهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ته وفرمايل:

انَّهُ لَمَّا أُصِيبَ إِخْوَانُكُمْ يوم احد جَعَلَ اللّٰهُ أَرْوَاحَهُمْ فِي جَوْفِ طَيْرٍ خُضْرٍ

كله چي ستاسو ورونه د اُحد په ورځ غم زده سول يعني شهيدان سول نو الله تعالى د هغوى روحونه د شنو مرغانو په بدن كي داخل كړل

تَرِدُ أَنْهَارَ الْجَنَّةِ تَأْكُلُ مِنْ ثِمَارِهَا وَتَأْوِي إِلَى قَنَادِيلَ مِنْ ذَهَبٍ مُعَلَّقَةٍ فِي ظِلِّ

(اوس) هغه مرغان د جنت ويالو ته راځي د جنت ميوې خوري او د سروزرو په هغه قنديلانو كي ارام كوي كوم چي د عرش الهي لاندي زړيدلي دي ،

الْعَرْشِ فَلَمَّا وَجَدُوا طِيبَ مَأْكَلِهِمْ وَمَشْرَبِهِمْ وَمَقِيلِهِمْ قَالُوا مَنْ يُبَلِّغُ

كله چي دغه شهيدانو ته خوراك، چيښاك ،آرام او خوشحالي تر لاسه سوې نو هغوى وويل :

إِخْوَانَنَا عَنَّا أَنَّا أَحْيَاءٌ فِي الْجَنَّةِ لِئَلَّا يَزْهَدُوا فِي الْجَنَّةِ وَلَا يَنْكُلُوا عِنْدَ الْحَرْبِ

ايا څوك سته چي زموږ ورونو ته زموږ د لوري دا پيغام ورسوي چي موږ ژوندي يو ددې لپاره چي هغوى په جنت تر لاسه كولو كي د بې پرواهۍ څخه كار وانه خلي او د جهاد پر موقع سستي

فَقَالَ اللّٰهُ سُبْحَانَهُ و تَعَالَىٰ انا ابلغهم عنكم فانزل الله وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ . رواه ابوداؤد

ونه كړي ، الله تعالى وويل : زه به ستاسو پيغام ستاسو ورونو ته ورسوم نو الله تعالى دا آيت نازل كړ : (ولا تحسبن الذين .....) ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٣٢، رقم: ٢٥٢٠.

**تخريج**: لاينكلوا : اى لايجبنوا.

**تشريح**: پوره آيت كريمه دادئ :

وَلاَ تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُواْ فِي سَبِيلِ اللّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاء عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ ١٦٩ فَرِحِينَ بِمَا آتَاهُمُ اللّهُ مِن فَضْلِهِ وَيَسْتَبْشِرُونَ بِالَّذِينَ لَمْ يَلْحَقُواْ بِهِم مِّنْ خَلْفِهِمْ أَلاَّ خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلاَ هُمْ يَحْزَنُونَ . سورة آل عمران ١٧٠.

ژباړه: کوم کسان چي د الله ﷻ په لاره کي ووژل سي هغوی مړه مه ګڼئ بلکه هغوی د الله ﷻ په نزد ژوندي دي او هغوی ته رزق ورکول کیږي چي الله ﷻ په خپل فضل سره ورکړی دی په هغه کي خوشحاله دي او کوم خلک چي د هغوی وروسته پاته سوي دي (او په شهادت کي) د هغوی سره شامل سوي نه دي د هغوی په نسبت خوشحالي کوي (چي د قیامت په ورځ به) هغوی ته څه بېره نه وي او نه به هغوی په غم کي وي.

## د مؤمنانو لوړه ډله

﴿٣٦٧٩﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

الْمُؤْمِنُونَ فِي الدُّنْيَا عَلَى ثَلَاثَةِ أَجْزَاءٍ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ لَمْ يَرْتَابُوا

په دنیا کي درې ډوله مؤمنان دي: یو خو هغه چي الله ﷻ او د هغه پر رسول باندي یې ایمان راوړ، او بیا په یو شک او شبه کي اخته نسول،

وَجَاهَدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالَّذِي يَأْمَنُهُ النَّاسُ عَلَى أَمْوَالِهِمْ

او دالله تعالی په لارکي یې سر او مال سره جهاد وکړ، او بل قسم هغه څوک دی چي د هغوی په لاس کي د مسلمانانو سر او مال خوندي وي،.

وَأَنْفُسِهِمْ ثُمَّ الَّذِي إِذَا أَشْرَفَ عَلَى طَمَعٍ تَرَكَهُ لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ. رواه احمد.

او دریم هغه چي د هغوی په زړه کي د طمع خواهش پیدا کیږي مګر هغوی دا خواهش یوازي د الله تعالی د رضا تر لاسه کولو لپاره پرېږدي. احمد

**تخریج**: مسند الامام احمد ٣\٨.

**تشریح**: د مؤمنانو ددغه آخري ډلي وصف دا بیان سوی دی که د هغه په زړه کي د دنیا د یو شي طمع او حرص پیدا سي نو په هغه عمل نه کوي بلکه د الله ﷻ د رضا او خوښۍ تر لاسه کولو لپاره هغه طمع او حرص پرېږدي، دا هغه ډله ده که د شتمنو خلکو سره تعلق وساتي او ددغه تعلق په وجه د هغه په زړه کي طمع او حرص پیدا سي مګر په هغه وخت کي الله ﷻ هغه پر طمع او حرص باندي د عمل کولو څخه وساتي نو دا ډله د مرتبې په اعتبار د مخکنۍ دواړو ډولو څخه ادنا دي، بیا ددغه دریمي ډلي څخه وروسته د مؤمنانو نور ډولونه دي مګر هغه ټول د

مرتبې په اعتبار ساقط دي .

## د شهيد ارزو

﴿٣٦٨٠﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِيْ عُمَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الرحمن بن ابي عميرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ مَا مِنْ نَفْسٍ مُسْلِمَةٍ يَقْبِضُهَا رَبُّهَا تُحِبُّ أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْكُمْ وَأَنَّ لَهَا

هيڅ مسلمان چي د هغه روح الله تعالى قبض کړي ددې خبري خواهش نه کوي چي د هغه روح

الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا غَيْرُ الشَّهِيدِ قَالَ ابْنُ أَبِي عَمِيرَةَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

دي بيا راسي او د دنيا لذتونه تر لاسه کړي پرته د شهيد د روح څخه (چي هغه دا خوښوي) چي دويم وار دنيا ته راسي او د جهاد کولو سره دويم وار شهادت تر لاسه کړي ، ابن ابي عميره وايي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَأَنْ أُقْتَلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ يَكُونَ لِي أَهْلُ الْوَبَرِ وَالْمَدَرِ. رواه النسائي

د الله تعالى په لار کي زما قتلېدل ما ته تر دې زيات خوښ دي چي د خيمې درولو والا (ښاريان او کليوال) زما سي . نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ٦\٣٣، رقم: ٣١٥٣.

**د لغاتو حل**: اهل الوَبَر والمَدَر: المراد باهل الوبر سكان البوادي لان خباءهم من الوبر غالبا وباهل المدر سكان القرى والامصار واراد به الدنيا وما فيها فغلب العقلاء على غيرهم. المرقات.

**تشريح**: د خيمو والا څخه د صحراء اوسيدونکي مراد دي ځکه چي هغوى په خيمو کي اوسيږي او د سراى والا څخه د ښار اوسيدونکي مراد دي او د دواړو د مجموعې څخه ټوله دنيا او د دنيا ټول خلک مراد دي ، ددغه ارشاد خلاصه داده که چيري زه د ټولي دنيا امير او حاکم سم او د دنيا ټول خلک زمامحکوم او رعيت وي نو زه به ددې په مقابله کي دا زيات خوښ کړم کوم چي ما ته په جهاد کي د تلو موقع په لاس راسي او زه د الله جل جلاله په لاره کي خپل ځان قربان کړم .

## پر هر مؤمن د شهید اطلاق

﴿۳۶۸۱﴾: وَعَنْ حُسْنَاءَ بِنْتِ مُعَاوِيَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ عَمِّيْ قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى

د حضرت حسناء بنت معاوية (رض) څخه روایت دئ چي ما ته زما اکا دا حدیث بیان کړ چي ما دنبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فِي الْجَنَّةِ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْجَنَّةِ وَالشَّهِيدُ فِي الْجَنَّةِ وَالْمَوْلُودُ فِي الْجَنَّةِ وَالْوَئِيدُ فِي الْجَنَّةِ. رواه ابوداؤد.

په جنت کي به څوک وي ؟ رسول الله ﷺ راته وفرمایل په جنت کي به نبیان وي ، په جنت کي به شهیدان وي او هلکان او کوچنیان که څه هم هغه د هر مذهب او هر قوم وي په جنت کي به وي او هغه انجوني به په جنت کي وي کومي چي ژوندی ښخ کړل سوي دي . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۳۳، رقم: ۲۵۲۱.

**د لغاتو حل**: الوئید : ای المدفون حیا في الارض (ژوندي ښخ سوي)

**تشریح**: دلته د شهید څخه مراد یوازي هغه سړی نه دی کوم چي د الله ﷻ په لاره کي وژل سوی وي بلکه مؤمن مراد دی که هغه په حقیقت کي شهید سوی وي یا حکمًا شهید سوی وي لکه څرنګه چي الله تعالی په قرآن کریم پر ایمان راوړونکو باندي د شهید اطلاق کړی دی :

وَالَّذِينَ آمَنُوا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ أُوْلَئِكَ هُمُ الصِّدِّيقُونَ وَالشُّهَدَاء عِندَ رَبِّهِمْ

ژباړه : او کومو کسانو چي پر الله (ﷻ) او د هغه پر رسول (ﷺ) ایمان راوړ دا هغه خلک دي چي د خپل پروردګار په نزد صدیقین (رښتوني) او شهیدان دي .

په جنت کي به کوچنیان وي : یعني کوچنیان که د مؤمن وي یا د کافر وي په جنت کي به داخلیږي ، همدارنګه کوچنی ماشوم به هم په جنت کي داخلیږي کوم چي د حمل د اسقاط په صورت کي ختم سوی وي .

کوم چي ژوندی ښخ سوي دي : یعني څرنګه چي د جاهلیت په زمانه کي به خلکو خپلي لوڼي ژوندۍ په مځکه کي ښخولې بلکه ځینو خلکو به د تنګۍ او نورو پریشانیو په وخت کي خپل ژوندي هلکان هم ښخول نو داسي هلکان او انجوني به هم په جنت کي داخلیږي .

په حدیث کي په خاصه توګه د څلورو خلکو ذکر سوی دی کیدای سي چي د اول الذکر

دوارو تخصیص د هغوی د فضل او شرف په اعتبار وي او د آخر الذکر دوارو تخصیص په دې سبب وي چي هغوی به د یو کسب او عمل ځخه پرته په جنت کي داخل کړل سي .

## په جهاد کي په مال او ځان دوارو سره د ګډون کوتکي فضیلت

﴿۳۶۸۲﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ وَأَبِي الدَّرْدَاءِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي أُمَامَةَ وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ

حضرت علي رضی الله عنه، ابو درداء رضی الله عنه، ابوهریره رضی الله عنه، ابو امامه رضی الله عنه، عبدالله بن عمر رضی الله عنه،

وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو وَجَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ وَعِمْرَانَ بْنِ الْحُصَيْنِ كُلُّهُمْ يُحَدِّثُ

عبدالله بن عمرو، جابر بن عبدالله رضی الله عنه او عمران بن حصین رضي الله عنهم ټول د نبي کریم صلی الله علیه وسلم

عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ مَنْ أَرْسَلَ بِنَفَقَةٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

ځخه دغه حدیث بیانوي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چي د الله جل جلاله په لار کي د خرڅ لپاره مال ولیږي

وَأَقَامَ فِي بَيْتِهِ فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُ مِائَةِ دِرْهَمٍ وَمَنْ غَزَا بِنَفْسِهِ فِي سَبِيلِ

او خپله په کور کي پاته سي هغه ته به د هر درهم په بدله کي اووه سوه درهمه ترلاسه کیږي او څوک چي خپله ولاړ سي د الله جل جلاله په لار کي جهاد وکړي

اللَّهِ وَأَنْفَقَ فِي وَجْهِ ذَلِكَ فَلَهُ بِكُلِّ دِرْهَمٍ سَبْعُ مِائَةِ أَلْفِ دِرْهَمٍ ثُمَّ تَلَا هَذِهِ الْآيَةَ: وَاللَّهُ يُضَاعِفُ لِمَنْ يَشَاءُ. رواه ابن ماجة.

او په جهاد کي خپل مال هم خرڅ کړي نو هغه ته به د هر درهم په بدله کي اووه سوه زره درهمه ترلاسه کیږي، بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم دا آیت تلاوت کړ: (والله یضاعف لمن یشاء). ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۲۲، رقم: ۲۷۶۱.

**تشریح**: د آیت په ویلو سره رسول الله صلی الله علیه وسلم دې ته اشاره وکړه چي دلته د ثواب کومه اندازه بیان سوې ده هغه آخر حد نه دی بلکه دا د الله تعالی پر خوښې موقوف دی که هغه وغواړي نو د دغه اندازې ځخه هم زیات بلکه بې شمېره ثواب ورکوي.

## د شهیدانو قسمونه

﴿۳۶۸۳﴾: وَعَنْ فُضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ يَقُولُ سَمِعْتُ

د فضاله بن عبید ﷛ څخه روایت دئ چي ما د حضرت عمر بن خطاب ﷛ څخه واوریدل چي

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الشُّهَدَاءُ أَرْبَعَةٌ رَجُلٌ مُؤْمِنٌ جَيِّدُ

هغه ویل ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي چي شهیدان پر څلور ډوله دي یو خو هغه سړی

الْإِيمَانِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللّٰهَ حَتَّى قُتِلَ فَذٰلِكَ الَّذِي يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ

چي مؤمن وي د پوره ایمان خاوند وي هغه د دښمن سره و جنګیږي او د الله ﷻ وعده ریښتوني وبولي ترڅو چي په جنګېدو کي ووژل سي دا هغه سړی دئ چي د هغه په لوربه

أَعْيُنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ هٰكَذَا وَرَفَعَ رَأْسَهُ حَتَّى سقطت قَلَنْسُوَتُهُ قَالَ فَمَا

د قیامت په ورځ خلک داسي سر پورته کوي، په دې ویلو سره یې سر پورته کړ (دومره یې پورته کړه) چي خولۍ یې ایله سوه، د راوي بیان دئ

أَدْرِي أَقَلَنْسُوَةَ عُمَرَ أَرَادَ أَمْ قَلَنْسُوَةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَرَجُلٌ

فضاله دا ونه ښودل چي خولۍ د چا د سر څخه ایله سوه، د حضرت عمر ﷛ د سر څخه یا د نبي کریم ﷺ د سر څخه، او دویم هغه سړی

مُؤْمِنٌ جَيِّدُ الْإِيمَانِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَكَأَنَّمَا ضُرِبَ جِلْدُهُ بِشَوْكِ طَلْحٍ مِنَ الْجُبْنِ

چي مسلمان وي د پوره ایمان خاوند وي او د دښمن سره مقابله وکړي په داسي حال کي چي په بیره سره هغه دا محسوسوي چي د هغه په بدن کي د ازغني درختي ازغي وهل سوي دي

أَتَاهُ سَهْمٌ غَرْبٌ فَقَتَلَهُ فَهُوَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّانِيَةِ وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلًا صَالِحًا

یعني د بزدلۍ په وجه چي ناڅاپه یو نامعلوم غشی راسي او هغه ووژني دا سړی د دویمي درجې شهید دئ، دریم هغه سړی چي مؤمن وي او هغه ښه نیک او ښه بد اعمال کړي وي (هغه

وَآخَرَ سَيِّئًا لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللّٰهَ حَتَّى قُتِلَ فَذٰلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الثَّالِثَةِ

جهاد ته ولاړ سي) د دښمن سره وجنګيږي او د الله تعالی هغه بيان سوی صفت ريښتونی وبولي چي هغه د مؤمن بيان کړی دئ او ووژل سي دا د دريمي درجې شهيد دئ،

وَرَجُلٌ مُؤْمِنٌ أَسْرَفَ عَلَى نَفْسِهِ لَقِيَ الْعَدُوَّ فَصَدَقَ اللَّهَ حَتَّى قُتِلَ فَذَلِكَ فِي الدَّرَجَةِ الرَّابِعَةِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن غريب.

او څلورم هغه سړی چي مؤمن وي مګر پر خپل ځان يې زياتي کړې وي (يعني ډير ګناهونه يې کړي وي) او هغه په جهاد کي د دښمن سره وجنګيږي او د الله وعدې او صفت ريښتونی وبولي تر څو چي قتل کړل سي دا د څلورمي درجې شهيد دئ، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۵۲، رقم: ۱۶۴۴.

**د لغاتو حل**: طلح: وهو شجر عظيم من شجر العضاه.

**تشريح**: او د الله تعالی هغه بيان سوی صفت ريښتونی وبولي: په دې باره کي وضاحت دادی که چيري د صدق په لفظ کي پر دال باندي شد نه وي نو ددې معنی به دا وي چي هغه سړی د خپل مېړاني او شجاعت په ذريعه هغه شی ريښتيا کړ کوم چي د هغه ذمه داري د الله تعالی له خوا پر هغه عائد سوې ده يعني د الله ﷻ په لاره کي ثابت قدم پاته کېدل او دښمن ته شا نه ګرځول، او که چيري پر دال باندي شد وي نو په دغه صورت کي به معنی دا وي چي هغه سړی د خپل عمل، شجاعت او ميړاني په ذريعه الله تعالی ريښتوني ثابت کړ او د هغه د قول تصديق يې وکړ په دې توګه چي هغه د الله ﷻ په لاره کي جهاد وکړ او د هغه لاري ټولي سختی، تکليفونه او مصيبتونه يې وزغمل او د الله تعالی له خوا د ورکونکي ثواب امېدوار سو ، الله ﷻ د مجاهدينو دا تعريف بيان کړی دی چي هغوی د الله ﷻ په لار کي پر پېښېدونکي هر تکليف او مصيبت باندي صبر کوي او د خپل پروردګار له خوا د اجر او ثواب غوښتونکی وي نو هغه سړي چي جنګ يې وکړ او د ثواب د غوښتني په وجه د صبر او استقامت لار يې اختيار کړه نو هغه د خپل دغه عمل په وجه د الله تعالی د خبري تصديق وکړ.

په حديث کي چي د شهيدانو کوم ډولونه بيان سوي دي دهغو خلاصه داده چي کوم مسلمان د الله ﷻ په لاره کي شهادت تر لاسه کړي نو هغه يا خو متقي او پرهيزګار هم وي او شجاع او زړه ور هم وي او دا اول ډول دی، او يا هغه متقي او پرهېزګار خو وي مګر شجاع او زړه ور نه وي نو دا دوهم ډول دی، يا هغه شجاع او زړه وي وي مګر متقي او پرهيزګار نه وي او

بیا ددې دوه ډولونه دي یو دا چي هغه داسي غیر متقي او پرهیزګار وي چي د هغه اعمال خوندي وي مګر په ژوند کي د هغه څخه نیک اعمالو هم صادر سوي وي او خراب اعمال هم ځیني سوي وي مګر د هغه خراب اعمال دومره زیات نه وي چي هغه ته فاسق او مسرف وویل سي، او په دغه حدیث کي د بیان سوي شهید دریم ډول دی چي هغه داسي غیر متقي او پرهیزګار وو چي د هغه بد عملونه د هغه په ژوند کي غالبه وي یعني هغه دومره زیات خراب اعمال کړي وي چي فاسق او مسرف منل کیدی او دا څلورم ډول دی، د دوهم ډول څخه ماسوا په نورو ټولو کي د الله تعالی په لاره کي تصدیق تر لاسه کیږي او ددغه وضاحت څخه معلومه سوه چي د الله ﷻ د تصدیق کولو څخه مراد دادی چي د صبر او طلب د ثواب په وجه د الله ﷻ په لاره کي ثابت قدم اوسیدل چي د هغه په ذریعه الله تعالی د اسلام د مجاهدینو تعریف بیان کړی دی او خبرداری یې ورکړی دی نه دا چي داجر او ثواب د وعدې تصدیق مراد وي ځکه چي هغه په دوهم ډول کي هم تر لاسه کیږي مګر ددې سربېره چي هغه دوهم ډول شهید دی دا نه دي فرمایل سوي دي چي هغه الله ﷻ په ریښتوني کولو سره وښوووی.

## که منافق په جهاد کي شهید سي نو د جنت حقدار نه دی

﴿۳۶۸۴﴾: وَعَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدِ السَّلَمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت عتبة بن عبدالسلمي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ اَلْقَتْلٰى ثَلَاثَةٌ مُؤْمِنٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهٖ وَمَالِهٖ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ فَإِذَا لَقِيَ

کوم خلک چي په جهاد کي ووژل سي د هغو درې ډوله دي یو خو هغه مؤمن چي په خپل سر او مال سره د الله ﷻ په لار کي جهاد وکړي د دښمن سره مقابله وکړي

الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتّٰى يُقْتَلَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ فَذٰلِكَ الشَّهِيْدُ

او جنګیږي تر څو چي شهید سي ددې شهید په اړه رسول الله ﷺ فرمایلي دي دا هغه شهید دئ

الْمُمْتَحَنُ فِيْ خَيْمَةِ اللهِ تَحْتَ عَرْشِهٖ لَا يَفْضُلُهُ النَّبِيُّوْنَ إِلَّا بِدَرَجَةِ النُّبُوَّةِ

چي دده پر صبر او استقامت باندي یقین کړل سوی دئ دا شهید به د الله تر عرش لاندي د الله ﷻ په خیمه کي وي او انبیاء به یوازي په یوه درجه د نبوت کي ځیني زیات وي،

وَمُؤْمِنٌ خَلَطَ عَمَلاً صَالِحًا وَآخَرَ سَيِّئًا جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ إِذَا

دويم هغه مؤمن دئ چي د هغه اعمال گډوډ وي يعني ځه ښه او ځه بد وي هغه په خپل سر او مال سره د الله ﷻ په لار کي جهاد وکړي کله چي

لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتّٰى يُقْتَلَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْهِ مُمَصْمِصَةٌ

د دښمن سره مقابله سي نو وجنګيږي تر ځو چي ووژل سي ددې شهيد په اړه رسول الله ﷺ فرمايلي دي دا شهادت پاکوونکی دئ

مَحَتْ ذُنُوْبَهُ وَخَطَايَاهُ إِنَّ السَّيْفَ مَحَّاءٌ لِلْخَطَايَا وَأُدْخِلَ مِنْ أَيِّ أَبْوَابِ

چي د هغه گناهونه يا خطاوي رژوي او توره (يعني جهاد) گناهونه ډير زيات محوه کونکي (رژونکي) شی دئ ، دا شهيد چي په کومه دروازه سره

الْجَنَّةِ شَاءَ وَمُنَافِقٌ جَاهَدَ بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ فَإِذَا لَقِيَ الْعَدُوَّ قَاتَلَ حَتّٰى يُقْتَلَ

فَذَاكَ فِي النَّارِ إِنَّ السَّيْفَ لَا يَمْحُو النِّفَاقَ . رواه الدارمي.

جنت ته تلل غواړي تللای سي ، او بل هغه منافق دئ چي هغه خپل په سر او مال سره جهاد وکړي کله چي د دښمن سره ملاقات وکړي نو جنګ کوي تر ځو چي ووژل سي دا سړی به دوږخ ته ځي ځکه چي توره نفاق (منافقت) نه ليري کوي . دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\ ۲۷۲، رقم: ۲۴۱۱.

**د لغاتو حل**: المُمتحَن: اى المشروح صدره وهو الذي امتحن الله قلبه للتقوى. مُمَصمِصة: اى المطهرة من دنس الخطايا . (د گناهونو ځخه پاک)

## په جهاد کي د چوکيدارۍ کولو ثواب

﴿۳۶۸۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَائِذٍ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ جَنَازَةِ

د ابن عائذ رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو سړي د جنازې سره تشريف يووړ،

رَجُلٍ فَلَمَّا وُضِعَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لَا تُصَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَإِنَّهُ رَجُلٌ

کله چي جنازه کښېښودل سوه نو عمر بن خطاب رضي الله عنه عرض وکړ اې د الله رسوله ! تاسو پر ده لمونځ مه کوئ ځکه چي دا سړی

فَاجِرٌ فَالْتَفَتَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى النَّاسِ فَقَالَ هَلْ رَآهُ أَحَدٌ

بد عمله وو ، (د دې په اوریدو سره) رسول الله ﷺ د خلکو په لور وکتل او وه یې فرمایل په

مِّنْكُمْ عَلٰى عَمَلِ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَجُلٌ نَعَمْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ حَرَسَ لَيْلَةً فِيْ

تاسو کي چا دی د اسلام پر یو کار کولو لیدلی دئ ، یو سړی عرض وکړ چي هو اې د الله رسوله ! ده یوه شپه د الله جل جلاله په لار کي چو کیداري کړې وه ،

سَبِيْلِ اللّٰهِ فَصَلّٰى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَثَّا عَلَيْهِ التُّرَابُ

رسول الله ﷺ پر هغه لمونځ وکړ او په خپلو لاسونو مبارکو یې پر هغه خاوره واچول او

وَقَالَ أَصْحَابُكَ يَظُنُّوْنَ أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَأَنَا أَشْهَدُ أَنَّكَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ

بیا یې وفرمایل : ستا دوستان خیال کوي چي ته دوږخي یې او زه د دې شاهدي ورکوم چي ته جنتي یې ، ددې وروسته رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمایل :

وَقَالَ يَا عُمَرُ إِنَّكَ لَا تُسْأَلُ عَنْ أَعْمَالِ النَّاسِ وَلٰكِنْ تُسْأَلُ عَنِ الْفِطْرَةِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

اې عمره ! ستا څخه به د خلکو د اعمالو پوښتنه نه کیږي بلکه د دین اسلام په اړه به در څخه پوښتنه کیږي . بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۴\۴۳، رقم: ۴۲۹۷.

**تشريح**: ستا څخه به د دین په باره کي پوښتنه کیږي : یعني د هغه شي په باره کي به پوښتنه کیږي کوم د دین د شعائرو او د یقین د نښو کېدو په وجه پر اسلام دلالت کوي .

ددغه ارشاد مقصد په اصل کي حضرت عمر رضي الله عنه ددغه جرئت څخه منع کول وو چي هغه د مړي د فسق تذکره کړې وه او دا یو ناخوښه کار دی نو ددغه الفاظو په ذریعه رسول الله ﷺ دا واضحه کړل چي د یو مسلمان ظاهري ژوند او د هغه ظاهري اعمالو ته په کتلو سره د هغه د

آخرت د حيثيت په باره كي يو فيصله كول نه دي پكار بلكه هغه شى معيار جوړول پكار دي كوم چي د هغه پر دين او اسلام باندي د پوره يقين او اعتقاد غمازي كوي او دا ثابته كړي چي د هغه په اصل ايمان كي څه كوږوالى او د هغه په بنيادي عقيدو كي څه كمي نه سته ، او كوم چي د اعمالو تعلق دى نو د الله تعالى ذات ډېر بې نيازه دى او هغه پر خپلو بندګانو باندي ډېر زيات مهربان دى .

علامه طيبي رحمة الله عليه د حديث د ذكر سوې جملې وضاحت داسي كړى دى چي رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه حضرت عمر رضي الله عنه خبردار كړ چي اې عمره ! تا ته په داسي وخت كي د مړي د بدو اعمالو او د هغه د ظاهري فسق بيانول نه دي پكار بلكه ته بايد د هغه نيک اعمال او ښه خبري مخته راوړې لكه څرنګه چي په يو ځاى كي فرمايل سوي دي :

(اذكروا موتاكم بالخير) : تاسو خپل مړي په نيكۍ (خير) سره يادوى

او دلته د حضرت عمر رضي الله عنه ددغه اقدام او كړني څخه منع كول مقصد وو چي په داسي وخت كي هغه.دا اقدام كړى وو يعني دهغه د فسق ذكر او اظهار يې كړى وو ځكه چي د يو انسان د آخرت د فلاح او ابدي خلاصون دار او مدار په اصل كي د اسلام پر فطرت او د هغه پر عقائدو باندي دى حال دا چي هغه سړي يو داسي عمل هم كړى وو كوم چي د اسلام د اعمالو څخه وو او د هغه د مسلمانۍ ثابتولو لپاره يوازي هغه عمل كافي دى .

============

# بَابُ اِعْدَادِ آلَهِ الْجِهَادِ

## (د جهاد د سامان برابرولو بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د جهاد لپاره د توان سره سم د جهادي ساز وسامان برابرولو حكم

﴿٣٦٨٦﴾ : عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه پر منبر دا اوريدلي دي

وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقُولُ { وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ } أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ

الرَّمْيُ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ أَلَا إِنَّ الْقُوَّةَ الرَّمْيُ . رواه مسلم

د كافرانو سره د جنګېدو لپاره چي تاسو څومره خپل توان تېنګولای سئ تېنګ يې کړئ ، خبردار سئ ! چي غشي وېشتل قوت دئ، خبردار سئ چي غشي ويشتل قوت دئ ، خبردار سئ چي غشي ويشتل قوت دئ، (يعني په قرآن کريم چي د (وما استطعتم من قوة ....) کوم آيت راغلی دئ د هغه څخه مراد د غشو ويشتلو قوت دئ) . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ١٥٢٢\٣، رقم: ١٦٧- ١٩١٧.

**تشريح**: غشي ويشتل قوت دئ: په دغه جمله کي دې ته اشاره سوې ده چي په قرآن کريم کي دا حکم ورکړل سوی دی چي (واعدوا لهم ما استطعتم من قوة) يعني تاسو د کفارو سره د جنګ لپاره د خپل قوت او طاقت لپاره چي کوم شی تيارولای سئ هغه تيار کړئ ، نو په دغه آيت کريمه کي د قوت څخه مراد د غشي ويشتل (ښکار) دئ .

بيضاوي او داسي نورو د دغه آيت کريمه په تفسير کي ويلي دي چي د قوت څخه مراد هر هغه شی دی چي د هغه په ذريعه انسان ته په جنګ کي قوت او طاقت تر لاسه کيږي ، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ د قوت څخه غشي ويشتل مراد اخيستل کيدای سي په دې وجه وي چي په هغه زمانه کي د نورو شيانو په نسبت غشي ويشتل تر ټولو زيات قوت او طاقت وو او آسانه کار هم وو .

## د روم فتح

﴿٣٦٨٧﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ سَتُفْتَحُ عَلَيْكُمُ الروم وَيَكْفِيكُمُ اللّٰهُ فَلَا يَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَلْهُوَ بِأَسْهُمِه . رواه مسلم

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي ډير ژر به ستاسو لپاره روم فتح کړل سي او بس والی به وکړي تاسي لره خدای جل جلاله يعني خدای جل جلاله به کومک درسره وکړي نو تاسو ته پکار ده چي تاسو د غشو تمرين کولو کي سستي (عاجزي) ونه کړئ . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ١٥٢٢\٣، رقم: ١٦٨- ١٩١٨.

**تشريح**: د دغه ارشاد مطلب دادی چي په هغه زمانه کي روميانو په عامه توګه د غشي ويشتلو په ذريعه جنګ کوی او ستاسو د هغوی سره جنګ کيږي ځکه نو ضروري ده چي تاسو هم غشي

ويشتل خپل وظيفه وګرځوئ او د هغه د تمرين په ذريعه د غشي ويشتل او نښه ويشتل زده کړئ چي تاسو د هغوی سره پر جنګ کولو قادر سئ او الله تعالی تاسو د هغوی سره د مقابلې په وخت کي په خپل مرسته او نصرت سره نازوي ، او يا د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي د غشي ويشتلو تمرين مه پرېږدئ بلکه په جنګ کي د فتح څخه وروسته هم ددې تمرين کول جاري وساتئ او په دې باندي په غرور او اطمينان کولو سره مه کښېنئ چي اوس خو روم فتح سوی دی او ددې د تمرين څه ضرورت نه سته ځکه چي د غشي ويشتلو ضرورت همېشه او د هر جنګ په وخت کي په کار راځي .

رسول الله ﷺ د غه لارښوونه د وړاند ويني په توګه فرمايلې وه ، نو په دې باندي پوره عمل وکړل سو که څه هم د روميانو سره د جګړې پر وخت ددې ضرورت رامنځته نه سو ځکه چي الله تعالی مسلمانانو ته پر روم باندي په اساني سره فتح ورکړه .

د غشي ويشتلو تمرين په لهو يعني بازۍ سره ځکه تعبير سوی دی چي د هرشي د مشق او تمرين په اعتبار د بازۍ په درجه کي وي او بلي خوا ددې په ذريعه خلکو ته د غشي ويشتلو ترغيب ورکول مقصد دي چي پر يو شي باندي د بازۍ نوم کښېښودل سي نو هغه ته د انسان ژر مېلان پيدا کيږي .

## د غشي ويشتلو ارزښت

﴿٣٦٨٨﴾ : وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ عَلِمَ الرَّمْيَ ثُمَّ تَرَكَهُ فَلَيْسَ مِنَّا أَوْ قَدْ عَصَى . رَوَاهُ مُسْلِمٌ .

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي چا غشي وېشتل زده کړه او بيا يې پرېښودل نو هغه زموږ څخه نه دئ يا رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي هغه نافرماني وکړه . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١٥٢٣\٣. رقم: ١٦٩- ١٩١٩.

**تشريح**: هغه زموږ څخه نه دئ : ددې مطلب دادی چي هغه موږ ته نژدې نه دئ او د يو داسي سړي په ډول دی چي هغه شمېر زموږ په ډله کي نه دی ، ددې څخه معلومه سوه چي يو خو د غشي ويشتل نه زده کول دي او بل دادي چي غشي ويشتل زده کړي او بيا يې هېر کړي نو هېرېدل د نه زده کولو په نسبت کي ډېر خراب کار دی ځکه چي کوم سړی غشي ويشتل زده نه

كړي نو هغه د رسول الله ﷺ په ډله كي داخل نه سو مگر دا خو هغه سړى دى چي د رسول الله ﷺ په ډله كي داخل وو او بيرته ځيني ووتى گويا هغه په دغه كار كي يو تاوان وليدى يا هغه ته يو خرابي محسوس سوه يا هغه د استهزاء په توگه داسي وكړل او ظاهره ده چي دا ټول شيان د يو لوى نعمت د ناشكرۍ برابر دي .

## نبي كريم ﷺ د غشي ويشتونكو سره

﴿۳۶۸۹﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سلمة بن الاكوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د اسلم قبيلې ته تشريف يووړ

عَلَى قَوْمٍ مِنْ أَسْلَمَ يَتَنَاضَلُونَ بِالسُّوقِ فَقَالَ ارْمُوا بَنِي إِسْمَاعِيلَ فَإِنَّ أَبَاكُمْ

كله چي هغوى په بازار كي د غشو ويشتلو تمرين كوئ، رسول الله ﷺ هغوى مخاطب كړل او ورته وه يې فرمايل : اې د اسماعيل اولاده ! غشي ويشتل كوئ ستاسو پلار

كَانَ رَامِيًا وَأَنَا مَعَ بَنِي فُلَانٍ لِأَحَدِ الْفَرِيقَيْنِ فَأَمْسَكُوا بِأَيْدِيهِمْ فَقَالَ مَا

غشي وېشتونكى وو، او زه د فلانۍ ډلي سره يم (يعني د يو ډلي نوم يې واخيست) بيا دويمي ډلي غشي ويشتل پرېښودل يعني د غشو وېشتلو څخه يې لاس واخيست، رسول الله ﷺ

لَكُمْ قَالُوا وَكَيْفَ نَرْمِي وَأَنْتَ مَعَ بَنِي فُلَانٍ قَالَ ارْمُوا وَأَنَا مَعَكُمْ كُلِّكُمْ .

رواه البخاري.

پوښتنه وكړه په تاسو څه وسول؟ هغوى عرض وكړ موږ په داسي حالت كي څنگه غشي ويشتل كولاى سو هر كله چي تاسو ددغه ډلي سره ياست ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تاسو غشي ولئ زه ستاسو ټولو سره يم . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٣٧، رقم: ٣٥٠٧.

**د لغاتو حل**: يتناضلون: اى يترامون للسبق.

## د ابو طلحه غشي ويشتل

﴿۳۶۹۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَبُو طَلْحَةَ يَتَتَرَّسُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت ابو طلحه رضي الله عنه په يو سپر سره د رسول الله ﷺ ساتنه كول (يعني غشي ويشتل يې هم كول او د نبي ﷺ خدمت يې هم كوئ)

بِتُرْسٍ وَاحِدٍ وَكَانَ أَبُو طَلْحَةَ حَسَنَ الرَّمْيِ فَكَانَ إِذَا رَمَى تَشَرَّفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَنْظُرُ إِلَى مَوْضِعِ نَبْلِهِ. رواه البخاري.

حضرت ابو طلحه مشهور غشي ويشتونكى وو هغه چي به غشي ويشتل نو نبي كريم ﷺ به كتل چي د هغه غشي چيري او پر چا لگيږي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٩٣\٦، رقم: ٢٩٠٢.

## د اسانو فضيلت

﴿٣٦٩١﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَرَكَةُ فِي نَوَاصِي الْخَيْلِ. متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د اسانو په تنديو كي بركت دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٥٤\٦، رقم: ٢٨٥١، ومسلم ١٤٩٤\٣، رقم: ١٠٠ - ١٨٧٤.

**تشريح**: د تندي څخه مراد ذات دی، مطلب دا چي الله ﷻ په آسونو كي يو خاص بركت ايښى دى ځكه چي د آسونو په ذريعه جهاد كيږي چي په هغه كي د دنيا او آخرت ښېگڼه ده.

﴿٣٦٩٢﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْوِي نَاصِيَةَ فَرَسٍ بِإِصْبَعِهِ وَهُوَ يَقُولُ الْخَيْلُ مَعْقُودٌ بِنَوَاصِيهَا الْخَيْرُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ الْأَجْرُ وَالْغَنِيمَةُ. رواه مسلم.

د حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ وليدی د يو آس د تندي ورېښتان يې په گوتو سره تاو كولو او فرمايل يې د آسانو په تنديو كي تر قيامت پوري خير تړلی دئ چي اجر او غنيمت دی. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٤٩٣، رقم: ٩٧- ١٨٧٢.

﴿٣٦٩٣﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ احْتَبَسَ فَرَسًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ إِيمَانًا بِاللّٰهِ وَتَصْدِيقًا بِوَعْدِهِ فَإِنَّ شِبَعَهُ وَرِيَّهُ وَرَوْثَهُ وَبَوْلَهُ فِي مِيزَانِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د الله ﷻ په لار كي آس وساتي، پر الله تعالى پوره ايمان لري او د هغه وعده ريښتونى ګڼي نو د آس خوراک، څښاک، مرداري او بولي ټول به د قيامت په ورځ د هغه د اعمالو په ترازو كي تلل كيږي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٧، رقم: ٢٨٥٣.

**تشريح**: پر الله ﷻ باندي د ايمان راوړلو او د هغه د وعدې ريښتيا ګڼلو په وجه: د دې مطلب دادى چي هغه جهاد ته د تللو او د دښمنانو سره د جنګ كولو لپاره كوم آس د ځان سره تړلى وي په هغه كي د هغه نيت محض د الله تعالى رضا او د هغه د حكم فرمانبرداري وي او الله ﷻ چي د مجاهدينو لپاره د كوم عظيم اجر او ثواب وعده كړې ده د هغه د غوښتني په وجه وي.

د آس د خوراک، څښاک او بولو وغيره څخه مراد هغه شيان دي كوم چي په هغه سره د حيوان نس ډكيږي او مړيږي يعني وابنه، دانه، اوبه داسي نور نو دغه ټول شيان هم د ثواب تر لاسه كولو په اعتبار د هغه سړي په عمل نامه كي ليكل كيږي چي د قيامت په ورځ به دغه ټول شيان د ثواب په شكل كي هغه ته وركول كيږي او د هغه د اعمالو په ترازو كي به تلل كيږي.

### ناخوښه اس

﴿٣٦٩٤﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُ الشِّكَالَ فِي الْخَيْلِ وَالشِّكَالُ أَنْ يَكُونَ الْفَرَسُ فِي رِجْلِهِ الْيُمْنَى بَيَاضٌ وَفِي يَدِهِ الْيُسْرَى أَوْ فِي يَدِهِ الْيُمْنَى وَرِجْلِهِ الْيُسْرَى. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به په آس كي شكال بد ګڼئ او د شكال معنا داده چي د آس په راسته پښه او راسته لاس كي يا په راسته لاس او چپه پښه كي سپين

والي وي . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ١٣\١٤٩٣، رقم: ٩٧- ١٨٧٢.

**تشريح**: راوي د شکال آس وضاحت داسي کړی دی چي هغه آس چي پر یوه لاس او بلي خوا پر پښه باندي يې سپين والی وي مګر صاحب قاموس او نورو ټولو اهل لغتو په نزد په آس کي د شکال مطلب دادی چي د هغه آس درې پښي سپيني وي او یوه پښه د نور بدن په رنګ وي یا ددې برعکس وي يعني يوه پښه يې سپينه وي او درې پښې يې د بدن په رنګ وي .

شکل په لغت کي هغه رسۍ ته وايي چي په هغه سره د حيوان پښه تړل کيږي نو دغه ډول آس ته ددې سره تشبيه ورکړل سوې ده او رسول الله ﷺ به داسي آس د فال له مخي نه خوښوي چي هغه آس ګویا د شکول په صورت دی .

دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ ته د تجربې څخه دا معلومه سوې وي چي دا ډول آس اصل نه وي ، ځيني حضرات وايي که د اشکل آس پر تندي باندي دومره سپين والي وي چي د لاس په بټي ګوتي سره نه سي پټېدلای نو د هغه عيب ليري کيږي او بيا هغه ناخوښه نه وي .

## د اسانو ځغلولو ذکر

﴿٣٦٩٥﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَابَقَ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ دوه اضمار کړل سوي اسان د

بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي اُضْمِرَتْ مِنَ الْحَفْيَاءِ وَاَمَدُهَا ثَنِيَّةَ الْوَدَاعِ وَبَيْنَهُمَا سِتَّةُ

حفياء نامي ځای څخه تر ثنية الوداع پوري و ځغلول (د دې دواړو ځایو په منځ کي شپږ ٦ ميله

اَمْيَالٍ وَسَابَقَ بَيْنَ الْخَيْلِ الَّتِي لَمْ تُضَمَّرْ مِنَ الثَّنِيَّةِ اِلَى مَسْجِدِ بَنِي زُرَيْقٍ وَبَيْنَهُمَا مِيلٌ . متفق عليه

فاصله وه) او د کومو اسانو چي اضمار نه وو سوی د هغوی ځغلول يې د ثنية الوداع څخه تر مسجد بني زريق پوري و ټاکل (چي دهغو په منځ کي يو ميل فاصله وه). اضمار: دې ته ويل کيږي چي پر چاغ آس باندي دانه کمه سي د ډنګر سي نو داسي آس بيا په ځغاسته کي چابک وي . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥١٥، رقم: ٤٢٠، ومسلم ١٣\١٤٩١، رقم: ٩٥- ١٨٧٠.

**تشريح**: د آسونو مقابله : يعني د آسونو ځغاسته چي دوه كسان خپل آسونه ددې لپاره وځغلوي چي د چا آس مخكي كيږي.

اضمار دې ته وايي چي مخكي خو آس ته ښه وابښه او دانه وركوي چي ډېر قوي او چاغ سي او ددې څخه وروسته د هغه وابښه او دانه په تدريج كميږي تر دې چي هغه پر اصل خوراک راولي او بيا هغه په يو ځای كي په بندولو سره ګردني پر واچول سي چي د هغه په وجه هغه ګرم كيږي او خوله كوي او كله چي خوله وچه سي نو هغه آس سپک سي يعني د هغه غوښه خو سپكه سي مګر په ځغاسته كي قوي سي.

حفياء د يو ځای نوم دی چي د مدينې منورې څخه پر شو مېله فاصله باندي واقع دی، ثنية الوداع د يوه غره نوم دی، د مدينې اوسيدونكو به د خپل مسافرو سره تر دغه غره پوري تلل.

## د نبي كريم ﷺ د اوښي بيان

﴿٣٦٩٦﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتْ نَاقَةٌ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُسَمَّى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ اوښه چي د هغې نوم

الْعَضْبَاءَ وَكَانَتْ لَا تُسْبَقُ فَجَاءَ أَعْرَابِيٌّ عَلَى قَعُودٍ لَهُ فَسَبَقَهَا فَاشْتَدَّ ذٰلِكَ

غضباء وه په ځغلولو كي به يې هيڅ اوښه تر ځان وړاندي نه پرېښودل، يو صحرائي پر خپل ځوان اوښ باندي راغلی او د رسول الله ﷺ د اوښي سره يې خپل اوښ وځغلوئ او ځيني مخته

عَلَى الْمُسْلِمِينَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ حَقًّا عَلَى اللّٰهِ أَنْ لَا يَرْفَعَ شَيْئًا مِنَ الدُّنْيَا إِلَّا وَضَعَهُ. رواه البخاري

سو، مسلمانان په دې خبره ډېر پرېشانه سول، رسول الله ﷺ وفرمايل: د الله تعالى حق دئ چي د دنيا كوم شی سر لوړی كوي په خپله هغه كښته كوي هم. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٧٣، رقم: ٢٨٧٢.

**تشريح**: عضباء هغه اوښي ته وايي چي د هغه غوږ پرې سوې يا څيري سوی وي، د رسول الله ﷺ ددغه اوښي غوږ پرې سوی يا څيري سوی نه وو مګر د هغه نوم عضباء وو، البته په خلقي توګه د هغه غوږونه كوچني وه، دا د رسول الله ﷺ هغه اوښه وه كوم چي قصواء هم ورته ويل كيږي مګر دا هم احتمال دی چي دغه اوښه بلي وي او عصواء بله اوښه وي.

قعود هغه ځوان اوښ ته وايي کوم چې نوی په سپرلۍ کي راغلی وي او د سپرلۍ وړ سوی وي ، د داسي اوښ د دوو کالو څخه تر شپږو کالو پوري عمر دی او کوم اوښ عمر چې د شپږو کالو څخه زيات وي هغه ته جمل وايي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جهاد لپاره دوسلې جوړولو فضيلت

﴿۳۶۹۷﴾: عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چې

يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ يُدْخِلُ بِالسَّهْمِ الْوَاحِدِ ثَلَاثَةَ نَفَرٍ فِي الْجَنَّةِ صَانِعَهُ يَحْتَسِبُ

الله تعالى د يوه غشي وېشتلو په سبب درې کسان جنت ته داخلوي : يو خو غشی جوړونکی چې د ثواب په نيت يې جوړ کړي ،

فِي صَنْعَتِهِ الْخَيْرَ وَالرَّامِيَ بِهِ وَمُنَبِّلَهُ فَارْمُوا وَارْكَبُوا وَ أَنْ تَرْمُوا أَحَبُّ إِلَيَّ

دويم غشي ويشتونکی او دريم غشي ورکونکي نو تاسو غشي ويشتل کوئ او پر اسانو سپرلي کوي او ستاسو غشي ويشتل زما په نزد تر سپرلۍ کولو زيات خوښ دي

مِنْ أَنْ تَرْكَبُوا كُلُّ شَئٍ يَلْهُو بِهِ الرَّجُلُ بَاطِلٌ إِلَّا رَمْيَهُ بِقَوْسِهِ وَتَأْدِيبَهُ فرسه

تر سپرتيا ستاسي پر هر شي چې لوبي کوي په هغه سره مسلمان باطل او ناروا دي پرته د هغه څخه چې په ليندۍ سره غشي ويشتل وکړي او اس ته ادب وښيي يا د خپل بي بي سره خوش

وملاعبته امراته فَإِنَّهُنَّ مِنَ الْحَقِّ . رواه الترمذي وابن ماجة و زَادَ ابُوداؤد

طبعي کوي دا ټول شيان حق دي ، ترمذي او ابن ماجة، او د ابواؤد او دارمي په روايت کي دا

والدارمي وَ مَنْ تَرَكَ الرَّمْيَ بَعْدَ مَا عَلِمَهُ رَغْبَةً عَنْهُ فَإِنَّهُ نِعْمَةٌ تَرَكَهَا اَوْ قَالَ كَفَرَهَا.

الفاظ زيات دي او کوم سړی چې دغشي ويشتلو څخه وروسته هغه پريږدي او د هغه څخه بې

پروا سي نو هغه يو نعمت پرېښودئ ، يا رسول الله ﷺ داسي وفرمايل چي د نعمت كفران يې وكړ . يعني د نعمت ناشكري يې وكړه .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۴۹، رقم: ۱۶۳۷، وابن ماجه ۲\۹۴۰، رقم: ۲۸۱۱.

**تشريح**: دغه شيان حق دي : دلته د شيانو په حكم كي هر هغه شى داخل دى كوم چي د حق او نيكۍ په لاره كي مرسته كونكي وي كه هغه د علم د شيانو څخه وي يا د عمل څخه وي كله چي هغه د مقابلې د ډول څخه نه وي لكه پر ښنو تلل ، ځغاسته كول ، پر آس سپرېدل او د اوښانو مقابله كول او داسي نور .

## د غشي وېشتلو ثواب

﴿۳۶۹۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ نَجِيْحِ السُّلَمِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو نجيع سلمي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي

يَقُوْلُ مَنْ بَلَغَ بِسَهْمٍ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَهُوَ لَهُ دَرَجَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَمَنْ رَمٰى بِسَهْمٍ

چي فرمايل يې: څوک چي د الله جل جلاله په لار كي (كافران په) غشو وولي او هغه ووژني نو د هغه لپاره په جنت كي يوه درجه ده او كوم سړى چي د الله جل جلاله په لار كي غشي وولي

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَهُوَ لَهُ عِدْلُ مُحَرَّرٍ وَ مَنْ شَابَ شَيْبَةً فِي سَبِيلِ اللّٰهِ كَانَتْ لَهُ

(كه څه هم هغه پر كافر وموښلي يا نه وموښلي) نو د هغه لپاره د يوه غلام ازادولو ثواب دئ ، او څوک چي د الله تعالى په لار كي سپين ږيرى سي نو د هغه سپين ږيرتوب به د قيامت په ورځ

نُوْرًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان وروى أبو داود الفصل

يو نور وي .. بيهقي په شعب الايمان كي ، ابوداؤد لومړني خبره روايت كړه ، نسائي لومړني او

الأول والنسائي الأول والثاني والترمذي الثاني والثالث وفي روايتهما من شاب شيبة في سبيل الله بدل في الإسلام .

دويمه ، ترمذي دويمه او دريمه او د دواړو په روايت كي د في الاسلام پر ځاى من شاب شيبة في سبيل الله ، الفاظ دي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٤\٦٨، رقم: ٤٣٤١. سنن ابي داود ١٤\٢٧٤، رقم: ٣٩٦٥.

**تشريح**: څوک چي د اسلام په حالت کي سپين ږيرى سي ....: ددې څخه معلومه سوه چي د يو سړي د ايمان په حالت کي سپين ږيرى کېدل يا پر هغه باندي د سپين ږيرتوب علامې ظاهرېدل د هغه د آخرت د سعادت نښه ده ځکه چي د ژوند پر آخرو مرحلو باندي د اسلام او ايمان په حالت کي قائم پاته کېدل د الله ﷻ يو ډېر لوى فضل دى.

د يو لوى بزرګ ابويزيد رحمه الله په باره کي نقل سوي دي چي هغه يوه ورځ په هنداره کي خپل مخ وکتى او د سپين ږيرتوب علامې يې وليدلې نو بې اختياره د هغه د خولې څخه دا راوتل چي (ظهر الشيب ولم يظهر العيب وما ادري ما في الغيب) يعني د الله ﷻ شکر دى چي پر ما باندي سپين ږيرتوب ظاهر سوى دى او زما يو عيب ظاهر نه سو او په غيبو کي څه شي دى ما ته هغه معلوم نه دى.

د کتاب په عبارت کي د (في روايتهما) ضمير په ظاهر نسائي او ترمذي ته ګرځول ښکار دي ځکه چي په مخکني عبارت کي دغه دواړه نژدې نژدې ذکر سوي دي مګر په حقيقت کي نسائي او ترمذي ته ضمير راجع کول په دې وجه صحيح نه دي چي نسائي دريم جز نقل کړى نه دى نو ضمير بيهقي او ترمذي ته راجع کيږي او د في روايتهما به دا معنى وي چي د بيهقي او ترمذي په روايت ...الخ، په دغه صورت کي يو اشکال دا پيدا کيداى سي چي کله په اصل روايت کي چي بيهقي نقل کړى دى د في الاسلام لفظ ذکر سوى دى نو بيا دا ويل به څنګه صحيح وي چي د بيهقي او ترمذي په روايت کي د في الاسلام پر ځاى د في سبيل الله الفاظ دي؟

ددې جواب دادى چي (في روايتهما) په اصل کي د مفهوم په اعتبار داسي دي چي (وفي رواية للبيهقي و رواية الترمذي) يعني د بيهقي په يو بل روايت کي او د ترمذي په روايت کي (د في الاسلام پر ځاى في سبيل الله دي) په داسي کولو سره خبره روښانه کيږي چي د بيهقي په يوه روايت کي کوم چي دلته په متن کي نقل سوى دى في الاسلام دى او په يو بل روايت کي د في الاسلام پر ځاى د في سبيل الله الفاظ دي.

## د جهاد په شيانو کي د شرط مال اخيستل جائز دي

﴿٣٦٩٩﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا سَبَقَ إِلَّا فِي نَصْلٍ أَوْ خُفٍّ أَوْ حَافِرٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په ځغاسته يا مسابقه كي مال اخيستل جائز نه دي مگر په غشي ويشتلو ، اوښ او آس ځغلولو كي مال اخيستل جائز دي . ترمذي، ابوداؤد او نسائي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۷۸، رقم: ۱۷۰۰، وابوداود ۳\۶۳، رقم: ۲۵۶۴، والنسائي ۶\۲۲۶، رقم: ۳۵۸۷.

**تشريح**: سبق : د شرط روپو ته وايي يعني هغه مال كوم چي گټونكي ته وركول كيږي، ددغه حديث څخه په ظاهره دا واضحه كيږي چي ددغه درو شيانو څخه ماسوا په بل شي كي مسابقت يعني د گټلو بازي كول او د هغه مال اخيستل جائز نه دي مگر فقهاؤ ددغه درو شيانو په حكم كي هغه شيان هم شامل كړي دي كوم چي د جهاد سامان او ذريعه وي لكه خر او غاتره هم د آس په حكم كي دي او فيل د اوښ په حكم كي دی ، ځيني حضرات پر پښو ځغاسته او ځيني حضراتو د ډبرو د ويشتلو مسابقه هم په دغه جواز كي داخل كړې ده ځكه چي دغه شيان هم د غشي په مفهوم كي داخل دي كوم چي د جهاد په ذرائعو كي دي ، د دغه شيانو په مسابقه كي شرط لگول او د شرط روپۍ اخيستل په اصل كي د جهاد د ترغيب وركولو لپاره دي او ددې جواز حكم ددې لپاره بيان سوى دی، كوم شيان د جهاد د اسبابو څخه نه وي نو په هغو كي د مسابقې كول او شرط لگول د يو صالح مقصد لپاره نه وي ځكه نو په هغه شيانو كي مسابقه كول جائز نه دي او د هغه د شرط مال اخيستل هم جائز نه دي .

## د مقابلې كولو مسئله

څرگنده دي وي چي د يو شي مسابقه كول او په هغه كي د روپو شرط لگول په اصل كي د خمار په مفهوم كي دی ځكه چي په دغه صورت كي ملكيت هم مشتبه وي او د تاوان او گټي په مينځ كي هم شك وي او د خمار دا معنی ده مگر كه چيري په مسابقه او مقابله كي د امير، حاكم يا بل دريم سړي له خوا د روپو شرط وتړل سي مثلا هغه امير، حاكم يا بل دريم سړی دا ووايي چي په دغه دواړو كي كوم سړی مخكي سي يا كوم سړی مقابله وگټي نو زه به هغه ته دومره روپۍ يا فلانی شی وركړم نو دا به جائز وي، همدارنگه د دواړو له خوا يوازي د يوه نفر له طرفه د روپو شرط وتړل سي مثلا په هغوی كي يو سړی داسي ووايي كه ته تر ما مخكي سوې يا زما څخه مقابله دي وگټل نو زه به تا ته دومره روپۍ يا فلانی شی دركوم او كه زه در څخه مخكي سوم يا ما در څخه وگټل نو ته به ما ته هيڅ نه راكوې نو ددې په جواز كي هم شبه نه سته ، په هغه صورت كي شرط ناجائز دی كله چي د دواړو له خوا شرط ولگول سي لكه چي داسي وويل سي

كه زه در څخه مخكې سوم نو ته به دومره روپۍ يا فلانى شى راكوې او كه ته را څخه مخكې سوې نو زه به دومره روپۍ يا فلانى شى دركوم ځكه چې په حقيقت كې دا خمار دى مگر دا يوازې په هغه صورت كې جائز كېداى سي كله چې د دواړو په مينځ كې محلل شامل سي لكه څرنگه چې په راتلونكې حديث كې بيانيږي.

## د اسانو مسابقه

﴿٣٧٠٠﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چې د اسانو په

بَيْنَ فَرَسَيْنِ فَإِنْ كَانَ يُؤْمِنُ أَنْ يُّسْبَقَ فَلاَ خَيْرَ فِيْهِ وَإِنْ كَانَ لاَ يُؤْمِنُ أَنْ

مسابقه كې خپل دريم آس گډ كړي (په دې شرط كه زما آس وړاندې سو نو زه به ددې دواړو څخه بازې يوسم او كه وړاندې نه سو نو زه به هيڅ نه وركوم) كه هغه ته ددې يقين وي چې هغه به خامخا وړاندې سي نو په دې شرط كې خير نسته او كه د هغه يقين نه وي چې

يُّسْبَقَ فَلاَ بَأْسَ بِهِ. رواه في شرح السنة وفي رواية أبي داود قَالَ مَنْ أَدْخَلَ

هغه به خامخا مخته سي نو په دې كې څه پروا نسته، شرح السنة او د ابوداؤد په روايت كې دا

فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ يَعْنِيْ وَهُوَ لاَ يَأْمَنُ أَنْ يُّسْبَقَ فَلَيْسَ بِقِمَارٍ وَمَنْ أَدْخَلَ فَرَسًا بَيْنَ فَرَسَيْنِ وَقَدْ أَمِنَ أَنْ يُّسْبَقَ فَهُوَ قِمَارٌ.

الفاظ نسته چې څوک د دوو آسانو په مينځ كې خپل دريم اس گډ كړي او هغه ته ددې خبرې پوره يقين نه وي چې هغه به خامخا وړاندې سي نو دا شرط خمارې نه دى او كه هغه ته ددې يقين وي چې هغه به خامخا وړاندې سي نو دا شرط خمار دئ.

**تخريج** شرح السنة ١٠\٣٩٥، رقم: ٢٦٥٤.

**تشريح** كوم څوک چې د دوو آسونو په مينځ كې خپل آس گډ كړي: دا د تحليل صورت دى چې په مسابقه كې شرط لگول جائز كوي، او دا سې سړي ته (چې د دوو آسونو په مينځ كې خپل آس گډ كړي) محلل وايي، ددغه صورت وضاحت داده چې د مثال په توگه دوه كسان يعنې زيد او بكر د مقابلې لپاره خپل خپل آسونه ځغلوي او دواړه د گټلو او بايللو شرط ولگوي چې د

کوم یوه آس مخکي سي هغه به د بایلونکي د آس د مالک څخه دومره روپۍ یا فلانی شی اخلي او همدارنګه هغوی د خمار معامله وکړي اوس یو بل دریم سړی یعني خالد راسي او د دواړو په مسابقه کي خپل آس هم په دې شرط سره ګډ کړي که دغه دریم آس د هغه دواړو آسو څخه مخکي سو نو زه به ستاسو دواړو څخه دومره روپۍ یا فلانی شی اخلم او که تر شا سوم نو زه به هیڅ نه درکوم.

دا صورت د تحلیل دی او هغه دریم سړی یعني خالد محلل (یعني حلال کونکی) دی، داسي سړي ته محلل ځکه وایي چي د هغه په وجه هغه معامله حلاله او جائز سوه کوم چي مخکي د دواړو له خوا د شرط لګولو په وجه حرامه معامله یعني خمار وو، په ذکر سوي صورت کي که د محلل آس مخکي سي نو هغه به د دواړو څخه ټاکل سوي روپۍ یا ټاکل سوی شی اخلي او که د هغو دواړو آسونو د هغه د آس څخه مخکي سي نو هغه ته به هغوی هیڅ هم نه ورکوي البته که چیري د هغه دواړو آسونو څخه د یوه آس څخه مخکي سي نو د دوهم څخه به ټاکل سوې روپۍ یا ټاکل سوی شی اخیستل جائز وي.

علماؤ لیکلي دي او څرنګه چي ددغه حدیث څخه هم معلومیږي چي د تحلیل په صورت کي باید محلل په دغه مقابله کي هغه آس شامل کړي کوم چي په ځغاسته کي د هغه دواړو برابر یا تقریبا برابر وي که د محلل آس د هغه دواړو آسانو څخه مخکي او تېز وي او محلل پوهیږي چي د هغه دواړو آسونه زما د آس څخه مخکي کیدای نه سي نو نه یوازي دا چي دا جائز نه دي بلکه د هغه خپل آس په مقابله کي شاملول او نه شاملول به برابر وي یعني دا صورت به د تحلیل نه وي مګر که چیري هغه په دې نه پوهیږي چي زما آس به د هغه دواړو آسونو څخه مخکي وي او په دې هم نه پوهیږي چي زما آس به د هغه دواړو آسونو څخه تر شا پاته سي نو دا جائز دی او دا صورت د تحلیل منل کیږي، خلاصه دا که چیري د محلل آس داسي وي چي د هغه د ګټلو احتمال هم وي او د بایللو احتمال هم وي نو دا به جائز وي او کنه نو جائز به نه وي.

## د اسانو په ځغلولو کي د جلب او جنب منع

﴿۳۷۰۱﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ جَلَبَ وَلاَ جَنَبَ زَادَ يَحْيٰى فِيْ حَدِيْثِهِ فِي الرِّهَانِ. رواه أبو داود والنسائي ورواه الترمذي مع زيادة في باب الغصب.

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (د اسانو په مسابقه كي) جلب او جنب جائز نه دئ ، جلب دادئ چي د اسانو په مسابقه كي يو سړى په آس پسې سي چي هغه وړاندي كړي ، او جنب دا چي يو بل آس د خپل اس سره پر څنګ كړي چي د سپرليۍ اس ستړى سي نو بيا پر هغه بل سپور سي . ابوداؤد ، نسائي او ترمذي .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۶۷، رقم: ۲۵۸۱، والنسائي ۶\۲۲۸، رقم: ۳۵۹۱.

**د لغاتو حل**: لاجنب: اى لا صياح على الخيل والجنب: ان يجنب الى جنب مركوبه فرسا اخر.

**تشريح**: جلب او جنب: جلب دادى چي زكوة اخيستونكى د زكوة وركونكي د ځاى څخه ليري يو ځاى تم سي او هغه ته دا حكم وركړي چي هغه د خپل زكوة مال دلته راوړي ، او جنب دادى چي زكوة وركونكي د خپل زكوة مال د خپل ځاى څخه ليري وركړي او زكوة اخيستونكى په تكليف كي اخته كړي چي هغه ته په رسيدو سره زكوة تر لاسه كړي نو دا دواړه صورتونه منع او مكروه دي.

په مسابقه كي جلب دادى چي په مقابله كي ګډون كونكى يو څوك دوهم سړى ددې لپاره په خپل آس پسي ولګوي چي هغه آس وهي تر څو مخكي سي ، او جنب دادى چي د خپل آس پر بغل يو بل آس وساتي چي كله د سپرلۍ آس ستړى سي نو پر هغه آس به سپور سي دغه دواړه هم منع دي .

## د ښه آس نښي

﴿۳۷۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيْرُ الْخَيْلِ الْأَدْهَمُ الْأَقْرَحُ الْأَرْثَمُ ثُمَّ الْأَقْرَحُ الْمُحَجَّلُ طَلْقُ الْيَمِينِ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ أَدْهَمَ فَكُمَيْتٌ عَلَى هَذِهِ الشِّيَةِ . رواه الترمذي والدارمي

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره آس تور آس دئ چي د هغه په تندي كي لږ سپين والى وي او د پزي خوا ته يې سپين والى وي ؟ بيا هغه آس غوره دئ چي د هغه پر تندي لږ سپين والى وي او كه لاس او پښې يې سپيني وي مګر راسته لاس يې سپين نه وي نو بيا ددې ډول كميت ښه دئ . ترمذي او دارمي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۷۶، رقم: ۱۶۹۶، والدارمي ۲\۲۷۸، رقم: ۲۴۲۸.

**د لغاتو حل** الادهم: اي الذي يشتد سواده (تک تور). الاقرح: اي الذي يوجد في وجهه بياض يسير ولو قدر درهم (چي په تندي کي يې لږ سپين والی وي). الارثم: وهو ابيض الشفة العليا، وقيل الابيض الانف. (هغه چي لوړه شونډه يې سپينه وي يا پزه يې سپينه وي). المحجل: هو بياض في قوائم الفرس (هغه چي پښې يې سپيني وي.)

**تشريح** کميت هغه آس ته وايي چي د هغه لکۍ او د څټ ويښتان تور وي او نور بدن يې سُور وي، ددې مطلب دادی چي کومي نښې په تور آس کي بيان سوي دي يعني پر تندي باندي سپين والی او داسي نور او هغه په کميت کي هم وي نو دغه آس يو غوره آس دی.

﴿٣٧٠٣﴾: وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِكُلِّ كُمَيْتٍ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَشْقَرَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ أَوْ أَدْهَمَ أَغَرَّ مُحَجَّلٍ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابو وهب جشمي رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر تاسو لازم ده (يعني که آس ساتئ نو) کُميت آس ساتئ چي د هغه تندی او لاسونه او پښي سپين وي يا تور او سپين تندي او سپين لاس او پښې والا وي. (کميت او اشقر يو ډول وي يوازي دومره فرق دئ چي د کميت لکۍ او د غاړه وړېښتان تور وي او د اشقر سره وي). ابوداؤد او نسائي

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٤٧، رقم: ٢٥٤٣، والنسائي ٦\٢١٨، رقم: ٣٥٦٥.

**تشريح** اشقر: سور رنگ آس ته وايي، په کميت او اشقر کي فرق دادی چي د کميت لکۍ او د څټ ويښتان تور وي او د اشقر سره وي.

﴿٣٧٠٤﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُمْنُ الْخَيْلِ فِي الشُّقْرِ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د اسانو برکت په سره رنگ اسونو کي دئ. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج** سنن الترمذي ٤\١٧٦، رقم: ١٦٩٥، وابوداود ٣\٤٨، رقم: ٢٥٤٥.

## د اسانو د تندي وېښتان او لکۍ مه پرېکوئ

﴿٣٧٠٥﴾: وَعَنْ عُتْبَةَ بْنِ عَبْدٍ السُّلَمِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عتبة بن عبد السلمي ﷺ څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي

وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تَقُصُّوا نَوَاصِيَ الْخَيْلِ وَلَا مَعَارِفَهَا وَلَا أَذْنَابَهَا فَإِنَّ أَذْنَابَهَا مَذَابُّهَا وَمَعَارِفَهَا دِفَاؤُهَا وَنَوَاصِيهَا مَعْقُودٌ فِيهَا الْخَيْرُ. رواه ابوداؤد.

دي چي ويل يې د آسانو د تندي وربښتان، د څټ وربښتان او د لکۍ وربښتان مه پرېکوئ ځکه چي د هغوی لکۍ د هغوی مګس پران دئ چي په هغه سره مچان په هوا کوي، او د غاړي وربښتان د هغوی د ګرم ساتلو لپاره دي او د تندي د وربښتانو سره خير تړلی دئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٤٧، رقم: ٢٥٤٢.

**د لغاتو حل**: معارفها: اى شعور عنقها.

## د اسانو په اړه يو څو لارښووني

﴿٣٧٠٦﴾: وَعَنْ أَبِي وَهْبٍ الْجُشَمِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارْتَبِطُوا الْخَيْلَ وَامْسَحُوا بِنَوَاصِيهَا وَأَعْجَازِهَا أَوْ قَالَ أَكْفَالِهَا وَقَلِّدُوهَا وَلَا تُقَلِّدُوهَا الْأَوْتَارَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابو وهب جشمي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اسونه تړلي ساتئ د هغوی په تنديو او په کناټيو لاس تيروی، يا يې وفرمايل چي پر ملاوو لاس راتيروئ او د هغوی په غاړه کي غاړکۍ اچوی او د ليندۍ جی مه وراچوئ. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٥٣، رقم: ٢٥٥٣، والنسائي ٦\٢١٨، رقم: ٣٥٦٥.

**تشريح** تړلي ساتئ: دا د جهاد لپاره د آسانو د چاغولو او چالاک ساتلو څخه کنايه ده يعني ددې په ذريعه دا حکم سوی دی چي د آسانو په ښه ډول روزنه کوئ او هغوی ته ښه خوراک او څښناک ورکوي چي هغوی غټ او تازه وي او په جهاد کي په ډول کار وکړي.

د لاسو ګرځولو مطلب دادی چي هغوی د ګرد او غبار ځخه پاک وساتل سي او د هغوی غتهدل معلوم سي او ددې په ذريعه آسونو ته راحت تر لاسه کيږي.
د جاهليت په زمانه کي د عربو دا معمول وو چي هغوی به د خپلو آسونو په غاړو کي د ليندی جی تړی د هغوی عقيده وه چي ددې په وجه اس د بد نظر ځخه خوندي وي رسول الله ﷺ ددې ځخه منع وفرمايل چي دا سي کول تقدير نه سي بدلولای يا ددې ځخه يې منع وفرمايل چي د جي په تړلو سره د هغوی غاړه خفه نه سي.

## درسول الله ﷺ اهل بيت ته درې خاص احکام

﴿٣٧٠٧﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدًا

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو مامور انسان وو (يعني د الله د

مَأْمُورًا مَا اخْتَصَّنَا دُونَ النَّاسِ بِشَيْءٍ إِلَّا بِثَلَاثٍ أَمَرَنَا أَنْ نُسْبِغَ الْوُضُوءَ وَأَنْ لَا نَأْكُلَ الصَّدَقَةَ وَأَنْ لَا نُنْزِيَ حِمَارًا عَلَى فَرَسٍ. رواه الترمذي والنسائي

لوري) موږ ته د نورو خلکو ځخه پرته د هيڅ خبري په خاصه توګه سره حکم نه دی راکړل سوی خو د درو خبرو : يو دا چي موږ اودس پوره کړو. دويم دا چي موږ صدقه او خيرات نه خورو، دريم دا چي موږ پر آسپه خر نه خيژو . ترمذي او نسائي

**تخريج** سنن الترمذي ٤\ ١٧٨، رقم: ١٧٠١، والنسائي ٦\ ٢٢٤، رقم: ٣٥٨١.

**تشريح** رسول الله ﷺ يو مامور انسان وو : ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ ته به د الله جل جلاله له خوا د کومي خبري حکم کيدی هغه به يې کوی او د خپل ځان ځخه به يې يو قانون نه جوړوی او نه به يې د خپل خواهش سره سم حکم کوی ، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ د هيڅ ډلي يا يو سړي يا کورنۍ لپاره جلا د يو شي د حکم په ورکولو سره هغه ته به يې پر نورو خلکو ترجيح نه ورکول تر دې چي اهل بيت اخص او اقرب وه د هغوی لپاره هم په احکامو کي امتياز او خصوصيت روا نه وو لکه ځرنګه چي حضرت ابن عباس رضي الله عنه وضاحت کړی دی چي رسول الله ﷺ موږ اهل بيتو ته هم د يو شي په خاصه توګه حکم نه دی راکړی مګر درې شيان داسي دي چي د هغه په باره کي اهل بيتو ته په خاصه توګه حکم ورکړل سوی دی .
پر اسونو باندي د غاترو د پيدا کولو لپاره د خرونو خيژولو ځخه يې ځکه منع وفرمايل چي اول په دې سره د نسل قطع کول لازميږي دوهم دا چي د يو بنه شي په بدله کي يو معمولي شی

غوښتل دي ځکه چي د آس په مقابله کي غاتره يو ادنا حيوان دی چي نه د آس په ډول په کار راځي او نه په جهاد وغيره کي نو داسي کول مکروه دي.

دلته يو سوال پيدا کيږي چي د صدقې د مال خوړلو مسئله بالکل واضحه ده چي ددې ځخه اهل بيت منع سوي دي او پاته امت په دغه حکم کي داخل نه دی مګر پاته دوه حکمونه (يعني اودس پوره کول او پر اسپو باندي خرونه نه خېژوي) داسي شيان دي چي په هغه کي پوره امت داخل دی چي ټولو مسلمانانو ته دا حکم ورکړل سوی دی چي اودس پوره کوي يعني په ښه ډول اودس کوي او پر خپلو اسپو باندي خرونه نه خيژي، نو بيا ددغه دواړو شيانو پر اهل بيتو باندي لازمول څه معنی لري ؟ ددې جواب دادی چي ددې ځخه مراد دغه دوه شيان پر اهل بيتو باندي واجب کول او لازم کول دي يا دا چي دغه احکام د اهل بيتو په حق کي په زيات اهميت او تاکيد سره جاري کول مقصد دي.

دغه حديث د خپل مفهوم په اعتبار د شيعه ګانو ددغه نظريې څرګند ترديد کوي چي رسول الله ﷺ خپل اهل بيت په داسي خاصو علومو سره نازولي دي چي په هغه کي د نور امت هيڅ برخه نه وه ، همدارنګه هغه حديث هم د شيعه ګانو د هغه نظريې په ترديد کي يو ټينګ دليل دی کوم چي مخکي تېر سوی دی او په هغه کي د حضرت علي ﷺ په باره کي نقل سوي دي چي : هل عندکم شئ ليس في القرآن فقال والذي فلق الحبة وبرا النسمة ما عندنا الا ما في القرآن الا فهما يعطي الرجل في کتابه وما في الصحيفة ...الحديث.

ژباړه :( کله چي د حضرت علي ﷺ څخه دا پوښتنه وسوه چي ) ستاسو سره يو داسي علم سته کوم چي په قران کريم کي موجود نه وي نو هغه وفرمايل په هغه ذات دي مي قسم وي چي دانه يې را وخيژول او ځان يې پيدا کړ په قرآن کريم کي چي کوم علوم دي د هغه ځخه ماسوا زموږ سره نور هيڅ هم نه سته مګر ما ته ښشکه د کتاب الله هغه فهم حاصل سوی دی کوم چي يو انسان ته ورکول کيږي او زما سره څه داسي شيان (مسائل) دي کوم چي په دغه صحيفه کي ليکلي دي .... الخ.

## پر اسپي د خره پر ېښودو منع

﴿٢٧٠٨﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ أُهْدِيَتْ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَغْلَةٌ

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ته يوه غاتره په تحفه کي ورکړل سوه ،

فَرَكِبَهَا فَقَالَ عَلِيٌّ لَوْ حَمَلْنَا الْحَمِيرَ عَلَى الْخَيْلِ فَكَانَتْ لَنَا مِثْلُ هَذِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنَّمَا يَفْعَلُ ذٰلِكَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ . رواه ابوداؤد والنسائي

رسول الله ﷺ پر هغې سپور سو ، حضرت علي رضی الله عنه عرض وکړ که موږ خرونه پر آسپو پرېږدو نو موږ ته به ددې غاترو په ډول بچي راوړي، (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل : داسي هغه سړی کوي چي خبر نه وي (يعني د شريعت د احکامو څخه خبر نه وي) . ابوداؤد او نسائي

**تخريج** سنن ابي داود ۳\ ۵۸، رقم: ۲۵۶۵، والنسائي ٦\ ۲۲۴، رقم: ۳۵۸۰.

**تشريح** د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي داسي د ناپوهۍ کار هغه خلک کولای سي کوم چي په دې نه پوهيږي چي پر دغه آسونو باندي د خرو خيژولو څخه پر اسپي باندي آس خيژول غوره دي ځکه چي کومي ګټي د آسپي څخه د هغه د نسل پيدا کېدو په صورت کي تر لاسه کيږي هغه د غاتري په پيدا کېدو سره نه تر لاسه کيږي، يا دا مراد دی چي دغه کار هغه ناپوهان کولای سي کوم چي د شريعت د احکامو څخه ناخبر وي او هغه ته هغه لار نه معلوميږي کوم چي د هغه په باره کي غوره وي .

### توري په سپينو زرو ښائسته کول جائز دي

﴿۳۷۰۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَتْ قَبِيعَةُ سَيْفِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ فِضَّةٍ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ د توري د قبضې خولۍ د سپين زرو وه . ترمذي، ابوداؤد ، نسائي او دارمي

**تخريج** سنن الترمذي ۴\ ۱۷۳، رقم: ۱٦۹۱، وابوداود ۳\ ٦۸، رقم: ۲۵۸۳، والنسائي ۸\ ۲۱۹، رقم: ۵۳۷۴، والدارمي ۲\ ۳۹۲، رقم: ۲۴۵۷.

**د لغاتو حل** تبيعة سيف: ای قبضته. (لاستی يې)

**تشريح** په شرح السنه کي ليکلي دي چي دغه حديث پر دې دلالت کوي چي توري په سپينو زرو سره لږ ښائسته کول جائز دي، دا حکم د بيهقي هم دی البته په هغه کي په هيڅ يو صورت کي د سرو زرو د استعمال اجازه نه سته .

﴿۳۷۱۰﴾: وَعَنْ هُودِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ جَدِّهِ مَزِيدَةَ قَالَ دَخَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ وَعَلَى سَيْفِهِ ذَهَبٌ وَفِضَّةٌ . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

حضرت هود بن عبد الله بن سعد رحمه الله د خپل نیکه مزیدة رضی الله عنه څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ د مکې د فتح په ورځ په مکه کې داخل سو او د رسول الله ﷺ پر توره (یعني د توري پر قبضه) سره او سپین (زر) وه، (یا د سرو او سپینو زرو لاري پر وې) ترمذي دا روایت کړی دئ او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۷۳، رقم: ۱۶۹۰.

**تشريح**: د دغه حدیث په وجه په وسله کې د سرو زرو استعمال جائز نه سي ګرځول کیدای ځکه چې د دغه حدیث سند محکم نه دی.

**په جنګ کې د ساتني لپاره زیات شیان استعمالول د توکل خلاف نه دي**

﴿۳۷۱۱﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَلَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ أَخَذَ دِرْعَانِ قَدْ ظَاهَرَ بَيْنَهُمَا . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت سائب بن یزید رضی الله عنه څخه روایت دئ چې د اُحد په غزا کې رسول الله ﷺ دوې زغري اغوستي وې، (یعني پر یوې زغري یې بله زغره اغوستې وه)، ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷۱، رقم: ۲۵۹۰، وابن ماجه ۲\۹۳۸، رقم: ۲۸۰۶.

**تشريح** په دغه حدیث شریف کې دې ته اشاره ده چې د جنګ لپاره ضروري زیات سامان برابرول او د جنګ په میدان کې د خپل ساتني لپاره تر خپله وسه زیات شیان اختیارول جائز دي او دا د توکل خلاف نه دي.

**د رسول الله ﷺ بیرغ**

﴿۳۷۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَتْ رَايَةُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَوْدَاءَ وَلِوَاؤُهُ أَبْيَضَ . رواه الترمذي و ابن ماجة.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ لوی بيرغ تور وو او کوچنی بيرغ يې سپين وو . ترمذي، او ابن ماجه

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۱۶۹، رقم: ۱۶۸۱، وابن ماجه ۲\۹۴۱، رقم: ۲۸۱۸.

﴿۳۷۱۳﴾: وَعَنْ مُوسَى بْنِ عُبَيْدَةَ مَوْلَى مُحَمَّدِ بْنِ الْقَاسِمِ قَالَ بَعَثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْقَاسِمِ إِلَى الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ أَسْأَلُهُ عَنْ رَايَةِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت موسى بن عبيده د محمد بن قاسم آزاد کړی وايي زه محمد بن قاسم حضرت براء بن عازب ته دي پوښتني کولو لپاره وليږلم چي د رسول الله ﷺ د بيرغ څه رنګ وو ؟ هغه وويل :

فَقَالَ كَانَتْ سَوْدَاءَ مُرَبَّعَةً مِنْ نَمِرَةٍ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد .

تور رنګ يې وو او د هغه ټوکر مربع (يعني څلور کونجه) برګه (يعني توره او سپينه) وه . احمد .. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج** مسند الامام احمد ۴\۲۹۷، رقم: ۱۶۸۰، وابوداود ۳\۷۱، رقم: ۲۵۹۱.

**د لغاتو حل** نمرة: بردة من صوف يلبسها الاعراب فيها تخطيط من سواد و بياض.

**تشريح** د بيرغ ټوکر برګ بيان سوی دی، او بيرغ تور وو ددې څخه مراد دادی چي د هغه اکثره برخه توره وه چي د هغه په وجه هغه د ليري څخه توره معلوميده نه دا چي يوازي تور رنګ وو . نمره هغه کمبل يا څادر ته ويل کيږي چي په هغه کي توري او سپيني ليکي او خطونه وي ، نمره په لغت کي شرموښ ته وايي ځکه داسي ټوکر ته د شرموښ سره تشبيه ورکړل سوې ده چي دهغه پر پوست باندي توري او سپيني ليکي وي .

﴿۳۷۱۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ مَكَّةَ وَ لِوَاءُهُ اَبَيَضُ . رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ مکې ته تشريف راوړ او د بيرغ رنګ يې سپين وو . ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۱۶۸، رقم: ۱۶۷۹، وابوداود ۳\۷۲، رقم: ۲۵۹۲، وابن ماجه ۲\۹۴۱. رقم ۲۸۱۷

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ په نظر د اسانو قدر

﴿٣٧١٥﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ شَيْءٌ أَحَبَّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ النِّسَاءِ مِنَ الْخَيْلِ. رواه النسائي

د انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د ښځو څخه وروسته رسول الله ﷺ اسونه ډير خوښول. نسائي

**تخريج**: سنن النسائي ٦\٢١٧، رقم: ٣٥٦٤.

### په جنګ کي حقيقي طاقت د الله جل جلاله په مرسته سره تر لاسه کيږي

﴿٣٧١٦﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَتْ بِيَدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْسٌ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کي عربي ليندۍ وه،

عَرَبِيَّةٌ فَرَأَى رَجُلًا بِيَدِهِ قَوْسٌ فَارِسِيَّةٌ قَالَ مَا هٰذِهِ أَلْقِهَا وَعَلَيْكُمْ بِهٰذِهِ

رسول الله ﷺ د يوه سړي په لاس کي ايراني ليندۍ وليده نو پوښتنه يې وکړه چي دا څه ده؟ دا

وَأَشْبَاهِهَا وَرِمَاحِ الْقَنَا فَإِنَّهَا يؤيد اللّٰهُ لَكُمْ بِهَا فِي الدِّينِ وَيُمَكِّنُ لَكُمْ فِي الْبِلَادِ. رواه ابن ماجة

وغورځوه تا ته دا ډول (عربي) ليندۍ ساتل پکار ده او تيري تيري چي د هغه په وجه الله جل جلاله په دين کي ستاسو مرسته وکړي او تاسو ته په ښارونو کي ځای درکړي. ابن ماجه.

**تخريج** سنن ابن ماجه ٢\٩٣٩، رقم: ٢٨١٠.

**تشريح** کيدای سي چي هغه صحابي دا ليدلي وي چي فارسي ليندۍ زياته تينګه او سخته وي نو هغه د غه ليندۍ ته پر عربي ليندۍ ترجيح ورکړل او بيا هغه دا ګمان کړی وي چي دا سي ليندۍ په جنګ کي ډېره کارکونکې وي او د ښمنانو د ښارونو د فتح کولو تينګه ذريعه ده نو رسول الله ﷺ هغه ته واضحه کړل چي ستا کوم خيال دی هغه صحيح نه دی بلکه د جنګ سامان که هر ډول وي او په لېدلو کي هر څومره ټينګ او ښه وي په حقيقت کي د جنګ په ميدان کي د

کامیابۍ انحصار پر دې نه دی بلکه د اد الله ﷻ فضل او کرم او د هغه پر مرضۍ موقوف دی چې هغه چا ته غواړي د خپل دین د لوړتیا په کوښښ کې د مرستې په کولو سره هغه کامیاب کړي ، حقیقي مرسته او نصرت د هغه له خوا او د هغه په قوت او قدرت سره دی نه دا چې ستاسو په قوت او طاقت سره او نه محض ستاسو د سامان او جنګي سامان د ټینګوالي او ښه والي په وجه د ښمنانو په مقابله کې مرسته تر لاسه کیږي .

==========

# بَابُ اٰدَابِ السَّفَرِ

## (د سفر د ادبونو بیان)

په دغه باب کې هغه حدیثونه نقل کیږي چې د هغو څخه د سفر ادبونه او طریقې معلومیږي، سفر که د جهاد لپاره وي یا د حج او یا بل څه لپاره وي .

څرګنده دې وي چې د سفر ادبونه ډېر دي ځیني خو داسي دي چې د هغو تعلق د سفر د شروع څخه د مخکې سره وي او ځیني ادبونه داسې دي چې دهغو لحاظ د سفر په دوران کې ساتل پکار دي او ځیني ادبونه داسې دي چې د سفر څخه پر ستنېدو باندې دهغو خیال ساتل پکار دي ، په دې باره کې څه تفصیل به په دغه باب په نقل سوو حدیثو کې او د هغو په تشریح کې معلوم سي مګر د دې ټر ټولو ښه تفصیل په احیاء العلوم کې ذکر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جهاد لپاره د پنجشنبې په ورځ وتل

﴿۳۷۱۷﴾: عَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ وَكَانَ يُحِبُّ أَنْ يَخْرُجَ يَوْمَ الْخَمِيسِ . رواه البخاري.

د کعب بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ د پنجشنبې په ورځ د تبوک د غزا څخه تشریف یووړ ، او رسول الله ﷺ به خوښول چې د پنجشنبې په ورځ په سفر روان سي . بخاري

**تخریج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦/١١٣، رقم: ٢٩٥٠.

**تشریح** تبوک د یو ځای نوم دی چې د مدینې منورې او د مشق پر لاره باندې د خیبر او العلاء

پر کربنه واقع دی ، دا مځکې د شام سیمه وه او اوس د حجاز په حدودو کي دی ، د تبوک فاصله د مدینې منورې څخه ۴۶۵ میله ده ، او هغه وخت دغه ځای د مدینې منورې څخه د یوې میاشتي د مسافت په اندازه وو ، رسول الله ﷺ په نهم هجري کال کي دغه ځای د فوج سره تشریف راوړی وو او دې ته د تبوک غزا ویل کیږي او دا د رسول الله ﷺ آخري غزا وه .

ابو داؤد چي د حضرت کعب رضی الله عنه کوم روایت نقل کړی دی په هغه کي داسي دي چي رسول الله ﷺ به د جهاد لپاره د سفر شروع د پنجشنبې د ورځي څخه نه کول .

رسول الله ﷺ به د جهاد په سفر کي د پنجشنبې په ورځ روانېدل خوښول : په دې کي څو احتماله دي یو خو دا چي د بندګانو نېک اعمال د پنجشنبې په ورځ الله تعالی ته پورته کیږي ځکه رسول الله ﷺ دا غوښتل چي د جهاد عمل په دغه ورځ الله جل جلاله ته پورته کړل سي چي هغه افضل د عملو څخه دی او دوهم دا چي خمیس لښکر ته هم ویل کیږي او د پنجشنبې ورځي ته یوم الخمیس ویل کیږي نو رسول الله ﷺ به د پنجشنبې په ورځ د جهاد د سفر په شروع کولو سره دا نېک فال اخیستی چي د کوم لښکر مقابلې ته ځي پر هغه به فتح تر لاسه کوي .

په هر حال په دې باره کي د سنتو مطابق چي کوم شی دی هغه دادی چي د جهاد لپاره اختیار کړل سي نو د پنجشنبې په ورځ دي روان سي مګر اصل دار او مدار پر استخاره ، تفویض او توکل باندي دی .

څرګنده دي وي چي د سلفو (صحابه کرامو) څخه دا بالکل منقول نه دي چي هغوی د سفر د شروع کولو په باره کي د علم نجوم اتباع کړې ده او د سفر د روانېدو لپاره دي هغه وخت اختیار کړي کوم چي د حوتش حساب یې ظاهروي ، د حضرت علي رضی الله عنه په باره کي نقل سوي دي چي یوه ورځ د هغه سره ناست یو سړي ته یو چا وویل چي ته سفر ته په فلانۍ ورځ ځه او په فلانۍ ورځ مه ځه ، ددې په اورېدو سره حضرت علي رضی الله عنه هغه سړي ته وفرمایل که دا وخت زما په لاس کي توره وای نو ما به ستا غاړه پرې کړې وای موږ به حضرت ابو القاسم ﷺ په خدمت کي حاضر وو او موږ هیڅکله د رسول الله ﷺ په مجلس کي دا نه دي اورېدلي چي په فلانۍ ورځ باید سفر وسي او په فلانۍ ورځ باید سفر ونه سي .

ددې څخه ثابته سوه چي د حضرت علي رضی الله عنه په باره کي د قمر ، عقرب او محاق په باره کي چي څه روایت سوي دي هغه صحیح نه دي .

## د یوازي سفر کولو څخه منع

﴿۳۷۱۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ يَعْلَمُ النَّاسُ مَا فِي الْوَحْدَةِ مَا أَعْلَمُ مَا سَارَ رَاكِبٌ بِلَيْلٍ وَحْدَهُ. رواه البخاري.

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که خلکو ته د یوازي سفر کولو تاوانونه معلوم سي څرنګه چي ما ته معلوم دي نو هیڅکله به یو سپور سړی یوازي د شپې سفر ونه کړي. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۱۳۷، رقم: ۲۹۹۸.

**تشریح**: ددغه شي څخه دیني او دنیوي تاوانونه مراد دي، دیني تاوان خو دادی چي د یوازیوالي په وجه په جماعت سره لمونځ نه تر لاسه کیږي او دنیوي تاوان دادی چي هیڅ غمخوار او مرسته کونکی به ورسره نه وي که یو ضرورت یا یو پېښه رامنځته سي نو مرسته کونکی به ورسره نه وي، د سپاره او شپې قید ځکه لګول سوی دی ي سپاره ته د پیاده په نسبت زیات خطره وي او په خاصه توګه په شپه کي.

## په کومه قافله کي چي سپی وي د هغو سره د رحمت ملائکي نه وي

﴿۳۷۱۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا كَلْبٌ وَلَا جَرَسٌ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ملائکي د هغه قافلې سره نه ځي چي د هغه سره سپي وي او جرس (یعني هغه زنګولې چي د اوښانو په غاړه زنګیږي، (د سپي څخه هغه سپی مراد دئ چي د چوکیدارۍ لپاره نه وي). مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\۱۶۷۲، رقم: ۱۰۴- ۲۱۱۴.

**تشریح**: د ملائکو څخه کتبه یعني اعمال لیکونکي ملائکي او حفظه یعني ساتونکي مراد نه دي بلکه د رحمت ملائکي مراد دي، د سپي څخه هغه سپی مراد دی چي د ساتني لپاره نه وي او د ساتني او حیوانانو د ساتني لپاره د سپي ساتل مباح دي.

جرس هغه ژنګ ته وایي چي د حیوانانو په غاړه کي اچول کیږي، د جرس د منع کېدو سبب دادی چي هغه د ناقوس مشابهت لري، او یا په دې وجه منع دی چي دا د هغه زړېدونکو شیانو

ثخه دی کوم چي د ناخوښۍ او کراهت په وجه د هغه زړول منع دي ، ددې تائيد ددغه حديث ثخه هم کيږي کوم چي مخته را روان دی او په هغه کي جرس ته د شيطان مزامير ويل سوي دي ، او په شرح السنه کي دا روايت ذکر سوی دی چي يوه ورځ بي بي عائشې ﷺ ته يوه انجلۍ راغله چي د هغې په پښو کي پايزيبونه وه ، بې بي عائشې ﷺ ورته وويل چي دا زما ثخه ليري کړه کوم چي ملائکي ليري کونکي وي ، او نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر جرس سره شيطان وي .

## ژنګ دشيطان باجه ده

﴿٣٧٢٠﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْجَرَسُ مَزَامِيرُ الشَّيْطَانِ . رواه مسلم

د حضرت ابوهرة ؓ ثخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زنګولې آله د سرود د شيطان دي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ٣\١٦٧٢، رقم: ١٠٤- ٢١١٤.

**تشريح**: مزامير په اصل کي د مزمار جمع ده او مزمار سورنا ته وايي ، زمر او تزمير د سورنا سره غزلي ته وايي ، مزامير ځکه د جمع په لفظ فرمايل سوي دی چي ددې په اواز کي يو ډول پرله پسې والی وي چي هغه نه منقطع کيږي ، يعني د هغه اواز هر پوکل او هره لړۍ يو مزمار دی او جرس ته د شيطان مزامير په دې وجه ويل سوي دي چي هغه انسان د ذکر، استغراق او عبادت د بوختيا ثخه منع کوي.

## د اوښ په غاړه د اميل زړولو ثخه منع

﴿٣٧٢١﴾ : وَعَنْ بَشِيرٍ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت بشير انصاري ؓ ثخه روايت دئ چي هغه په يو سفر کي د رسول الله ﷺ سره وو،

فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَأَرْسَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَسُولًا أَنْ لَا يَبْقَيَنَّ فِي رَقَبَةِ بَعِيرٍ قِلَادَةٌ مِنْ وَتَرٍ أَوْ قِلَادَةٌ إِلَّا قُطِعَتْ . متفق عليه.

رسول الله ﷺ يو سړی قافلې ته د اعلان کولو لپاره ولېږئ چي د هيڅ يو اوښ په غاړه کي دي د

اميل پرې نه ښو دل سي مګر پرې دي سي بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٤١، رقم: ٣٠٠٥، ومسلم ٣\١٦٧٢، رقم: ١٠٥- ٢١١٥.

**تشريح** او يا دا يې وفرمايل: دا په اصل کي د راوي شک دی چي رسول الله ﷺ قلاده من وتر يعني د ليندۍ چي ته قلاده فرمايلي دي او يا يوازي قلاده يې فرمايلي دي.

د قلادې (پټې) پرې کولو حکم يې وفرمايه چي خلکو به په هغه کي ژنګولې او پټې تړلې او دا شی د شيطان د مزامير څخه دی لکه څرنګه چي په تېر حديث کي بيان سوي دي، او يا ځکه يې منع وفرمايل چي ځيني کمزوري عقيدې والا خلک د ليندۍ په جي کي منکې وغيره تړلو سره او د هغه پټې په جوړولو سره د حيوانانو په غاړو کي به يې اچول او دا ګمان يې کوی چي ددې په ذريعه حيوانان د آفت وغيره څخه خوندي وي، نو رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمايل ځکه چي داسي هيڅ ذريعه د الله ﷻ حکم، فيصله او تقدير بدلولای نه سي.

## پر حيوانانو باندي د سفر کولو په اړه يو څو هدايات

﴿٣٧٢٢﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَافَرْتُمْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي تاسي سفر کوئ

فِي الْخِصْبِ فَأَعْطُوا الْإِبِلَ حَقَّهَا مِنَ الْأَرْضِ وَإِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَأَسْرِعُوا

په اباده مځکه کي نو اوښانو ته د هغوی حق ورکړئ کوم چي په مځکه کي دي، او کله چي په وچ کالی کي سفر کوئ نو تيز ځئ

عَلَيْهَا السَّيْرَ وَإِذَا عَرَّسْتُمْ بِاللَّيْلِ فَاجْتَنِبُوا الطَّرِيقَ فَإِنَّهَا طُرُقُ الدَّوَابِّ

چي د کمزوري کېدو څخه وړاندي مو منزل ته ورسوي، او هر کله چي د شپې يو ځای تم کيږي نو لار پرېږدئ ځکه چي پردې حيوانان راځي

وَمَأْوَى الْهَوَامِّ بِاللَّيْلِ، و في رواية إِذَا سَافَرْتُمْ فِي السَّنَةِ فَبَادِرُوا بِهَا لَقِيَهَا. رواه مسلم.

او زهرجنو حيوانانو د راتلو ځای دئ او په يوه روايت کي دا الفاظ دئ هر کله چي تاسو په خشک سالي کي سفر کوئ نو تر څو پوري چي په اوښانو کي توان وي په تيزي سره سفر کوئ. مسلم.

**تخريج** صحيح مسلم ۳\ ۱۵۲۵، رقم: ۱۷۸ - ۱۹۲۶.

## د ضرورت مند ملګري خبر اخلئ

﴿۳۷۲۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى

د حضرت سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو چي

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى رَاحِلَةٍ فَجَعَلَ يَضرب يَمِينًا وَشِمَالًا فَقَالَ

يو سړی پر اوښ سپور راغلی او د اوښ راسته او چپه لوري ته يې کتل پيل کړل، رسول الله ﷺ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ مَعَهُ فَضْلُ ظَهْرٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ

وفرمايل : د چا سره چي تر يوې سپرلۍ زيات وي هغه دي هغه چا ته ورکړي چي د هغه سره

لَا ظَهْرَ لَهُ وَمَنْ كَانَ لَهُ فَضْلٌ مِنْ زَادٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا زَادَ لَهُ قَالَ فَذَكَرَ

سپرلۍ نه وي . (يعني د ده سپرلۍ کمزوري او ستړې سوې ده) ، او د چا سره چي د خوراک او څښاک زيات سامان وي هغه دي هغه چا ته ورکړي چي د لارې توښه نه وي ورسره ، ويلي دي

مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ مَا ذَكَرَ حَتَّى رَأَيْنَا أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي فَضْلٍ . رواه مسلم .

راوي چي ددې وروسته رسول الله ﷺ د مال ډولونه بيان کړل تر دې چي موږ دا محسوسه کړه چي هيڅ سړي ته تر ضرورت زيات شي ساتلو حق نسته . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۳\ ۱۳۵۴، رقم: ۱۸ - ۱۷۲۸.

**تشريح** پر راسته خوا ګرځېدل يې شروع کړل : مطلب دادی چي د هغه اوښ دومره ستړی سوی وو يا د پوره خوراک نه تر لاسه کېدو په وجه دومره کمزوری سوی وو چي د هغه سړي اوښ پر يو ځای باندي پر درېدلو قادر نه وو بلکه کله به راسته خوا ته وګرځېدی او کله به چپه خوا ته وګرځېدی ، او يا دا مطلب دی چي سړي خپل سترګي څلور خوا ته اړولې او هغه راسته او چپه خوا ته په ګرځېدو سره دا کتل چي هغه ته هغه شيان حاصل سي کوم چي د هغه اړتياوي پوره کړي په دې صورت کي به خلاصه دا وي چي د هغه سړي سره نه د سپرلۍ لپاره يو مناسب

بندوبست وو او نه د هغه سره د خوراک، څښناک او اغوستلو سامان وو ځکه رسول الله ﷺ د هغه اړتیا ته خلک متوجه کړل او بیا یې ترغیب ورکړ چې خلک د دغه اړ کس خبر واخلي.

## د مقصد پوره کېدو سره سم خپل کور ته ستنېږئ

﴿۳۷۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّفَرُ قِطْعَةٌ مِنَ الْعَذَابِ يَمْنَعُ أَحَدَكُمْ نَوْمَهُ وَطَعَامَهُ وَشَرَابَهُ فَإِذَا قَضَى نَهْمَتَهُ مِنْ وَجْهِهِ فَلْيُعَجِّلْ إِلَى أَهْلِهِ. متفق عليه

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: سفر د عذاب یوه ټوټه ده چې تاسو د خوب، خوراک او چښناک څخه باسي، هر کله چې یو مسافر د خپل سفر مقصد پوره کړي نو سمدستي دي خپل کورنۍ ته ستون سي. بخاري او مسلم

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۵۵، رقم: ۵۴۲۹، ومسلم ۳\۱۵۲۶، رقم: ۱۷۹ - ۱۹۲۷.

**د لغاتو حل** نهمته: ای حاجته.

**تشریح** سفر د عذاب یوه ټوټه ده: مطلب دادی چې سفر د خپل صورت اعتبار په وجه د جهنم د عذاب د قسمو څخه یو قسم دی لکه څرنګه چې الله تعالی فرمایلي دي (سَأُرْهِقُهُ صَعُودًا).

د بدني تکلیف او روحاني اذیت په اعتبار هم د یو سړي په باره کي سفر د پریشانیو او تکلیفو ذریعه کېدو څخه کم نه دی په خاصه توګه په هغه زمانه کي چې د سفر وسائل او اطمینان نه وو خلکو به د سفر په دوران کي ډول ډول تکلیفونه زغمل او د ډول ډول مصیبتو سره به مخامخ کېدل چې د هغه اندازه په نن وخت کي نه سي کېدای.

په حدیث کي د سفر په خاصه توګه د دوو پریشانیو حکم ذکر سوی دی چې د سفر په دروان کي نه خو پر وخت باندې د طبیعت موافق خوراک او څښناک تر لاسه کېږي او نه په آرامه خوب وي دا خو محض د مثال په توګه دي کنه په سفر کي چې څو مره دیني او دنیاوي امور فوت کېږي لکه د جمعې او جماعت لمونځ څخه محروم کېدل د کورنۍ او نورو قریبانو حقوق نه ادا کېدل او د ګرمۍ او یخ تکلیف او داسي نوري ډېري ستونزي وي.

## د مسافر د کوچنیانو په ذریعه بنه راغلاست

﴿۳۷۲۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ جَعْفَرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ تُلُقِّيَ بِصِبْيَانِ أَهْلِ بَيْتِهِ قَالَ وَإِنَّهُ قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ فَسُبِقَ بِي إِلَيْهِ فَحَمَلَنِي بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ جِيءَ بِأَحَدِ ابْنَيْ فَاطِمَةَ فَأَرْدَفَهُ خَلْفَهُ قَالَ فَأُدْخِلْنَا الْمَدِينَةَ ثَلَاثَةً عَلَى دَابَّةٍ. رواه مسلم.

د حضرت عبد الله بن جعفر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي کله به رسول الله ﷺ د سفر څخه راغلی نو د اهل بيت هلکانو به د رسول الله ﷺ د ښه راغلاست لپاره مخ ته ور وستل سول ، يو وار چي رسول الله ﷺ د سفر څخه راغلی نو زه د رسول الله ﷺ مخ ته ور وستل سوم رسول الله ﷺ زه پر خپله سپرلۍ مخته کښېنولم ، بيا د بي بي فاطمې رضي الله عنها په زامنو کي يو راوستل سو ، رسول الله ﷺ هغه هم خپل شا ته کښېنوی بيا موږ مدينې ته داخل سوو چي پر يوه حيوان درې کسان سپاره وو . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۴\۱۸۸۵، رقم: ٦٦ - ۲۴۲۸.

﴿۳۷۲٦﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ أَقْبَلَ هُوَ وَأَبُو طَلْحَةَ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَفِيَّةُ مُرْدِفُهَا عَلَى رَاحِلَتِهِ. رواه البخاري.

د انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه او ابو طلحه د يو سفر څخه د رسول الله ﷺ سره مدينې ته راستانه سول او د رسول الله ﷺ سره شا ته د هغه بي بي صفيه هم پر اوښ سپره وه . بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵٦۹، رقم: ٦۱۸۵.

**تشريح** دا د خيبر څخه د ستنېدو د وخت واقعه ده ، بي بي صفيه رضي الله عنها د خيبر د غنيمت د مال څخه وه او مخکي د دحيه کلبي رضي الله عنه په برخه کي راغلې وه بيا رسول الله ﷺ رانيول او په ازادولو سره يې د هغې سره نکاح وکړه او پر سپرلۍ يې د ځان سره کښېنول او مدينې ته يې راوستل.

## د رسول الله ﷺ د سفر څخه د ستنېدو وخت

﴿۳۷۲۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَطْرُقُ أَهْلَهُ لَيْلاً وَّ كَانَ لَا يَدْخُلُ إِلَّا غُدْوَةً أَوْ عَشِيَّةً . متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د شپې په وخت کي خپل کور ته نه تلئ بلکه د سهار په وخت کي به کور ته داخليدئ يا د ماښام په وخت کي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۳\۶۱۹، رقم: ۱۸۰۰، ومسلم ۳\۱۵۲۷، رقم: ۱۸۰– ۱۹۲۸.

## د شپې له خوا د سفر څخه د ستنېدو منع

﴿۳۷۲۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَطَالَ أَحَدُكُمُ الْغَيْبَةَ فَلَا يَطْرُقْ أَهْلَهُ لَيْلًا . متفق عليه.

د جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي يو څوک په سفر کي زيات وخت تير کړي نو هغه دي د شپې په وخت کي کور ته نه راځي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۳۳۹، رقم: ۵۲۴۴، ومسلم ۳\۱۵۲۸، رقم: ۱۸۳– ۱۹۲۸.

**تشريح**: په شرح السنه کي يو روايت نقل سوی دی چي د ابن عباس رضی الله عنه بيان دی چي د رسول الله ﷺ له خوا د دغه منع څخه وروسته واقعه ده چي دوو کسانو د رسول الله ﷺ په دغه حکم عمل ونه کړاو د خپل سفر څخه د ستنېدو پر وخت يې د شپې داخلېدل اختيار کړل نو هغه وخت په هغوی کي هر يوه د خپل ښځي سره پردی سړی وليدی .

﴿۳۷۲۹﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دَخَلْتَ لَيْلًا فَلَا تَدْخُلْ عَلَى أَهْلِكَ حَتَّى تَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ وَتَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ . متفق عليه.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي ته د شپې د سفر څخه راسې نو خپل کور ته مه ننوزه تر څو پوري چي ستا ښځه تر نامه لاندي وريښتان صفا کړي او تار په تار سر ږمنځ کړي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۳۴۱، رقم: ۵۲۴۶، ومسلم ۳\۱۵۲۷، رقم: ۱۸۲– ۱۹۲۸.

**تشريح** د دغه حديث مطلب دا واضح کول دي چي د سفر څخه د ستنېدو لپاره د شپې وخت اختيارول مناسب نه دي ، غوره داده چي د سفر څخه د ستنېدو شروع په داسي وخت کي وکړل سي چي خپل کور ته د شپې کېدو څخه مخکي ورسيږي چي د شپې کور ته د رسيدو په وجه کورنۍ بې آرامه نه سي او د هغوی خوب خراب نه سي او که خپل ښار او سيمي ته د رسيدو په وخت کي شپه سي نو په داسي صورت کي غوره داده چي په کور کي د داخلېدو لپاره تر هغه وخته پوري صبر وکړي تر څو چي د هغه ښځه دده په راتلو خبره سي او هغه د ښکلا او سنګار په ذريعه ځان ښائسته کړي او د جنسي اختلاط لپاره تياره سي او کله چي خاوند هغې ته ورسيږي نو د سفر ستړيا او د جلا والي غم به يې په بدني خوشحالۍ بدل سي .

نووي رحمة الله عليه وايي چي دا شيان (يعني د شپې په وخت کي د سفر څخه ستنېدل او د انتظار کولو څخه پرته په کور کي داخلېدل) د هغه چا لپاره مکروه دي کرم چي د اوږده سفر څخه راغلی وي مګر کوم څوک چي د کوچني سفر څخه راغلی وي يا د هغه کورنۍ ته د شپې په وخت کي د هغه د راتلو خبر وي نو دهغه لپاره په دې کي څه پروا نه سته لکه څرنګه چي په مخکني حديث کي بيان سوې ده ، همدارنګه که يو سړی په يو لوی لښکر يا قافلې کي وي او د هغه لښکر او قافلې د راتلو خبر مشهور سوی وي او د هغه ښځي ته هم د هغه د راتلو خبر وي نو د هغه لپاره هم د شپې په وخت کي راتلل پروا نه لري لکه څرنګه چي اصل مقصد خود ښځي د هغه د راتلو څخه مخکي تياري ده نو په دغه صورت کي هغه مقصد حاصل دی مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي چي په دغه صورت کي کور ته د رسيدو څخه مخکي دروازه ټکول او د جواب انتظار کول ضروري دي .

## د سفر څخه پر ستنېدو دعوت کول مسنون دی

﴿۳۷۳۰﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ الْمَدِينَةَ نَحَرَ جَزُورًا أَوْ بَقَرَةً . رواه البخاري.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ کله چي رسول الله ﷺ مدينې ته راغلی نو اوښ يا غوا يې حلال کړل . بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٩٤، رقم: ٣٠٨٩.

**تشريح** د دغه حديث څخه ثابته سوه چي د سفر څخه د ستنېدو وروسته مېلمستيا کول او

خلکو ته د خوراک دعوت ورکول سنت دي.

﴿۳۷۳۱﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْدَمُ مِنْ سَفَرٍ إِلَّا نَهَارًا فِي الضُّحَى فَإِذَا قَدِمَ بَدَأَ بِالْمَسْجِدِ فَصَلَّى فِيهِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ فِيهِ لِلنَّاسِ. متفق عليه.

د کعب بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به اکثر د ورځي د څاښت په وخت کي د سفر څخه رسیدی او هر کله چي به راورسیدئ نو لومړی به یې مسجد ته تشریف یووړ او دوه رکعته لمونځ به یې کوئ بیا به د خلکو سره کښېنستی په مسجد کي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٩٣، رقم: ٣٠٨٨، ومسلم ١١\٤٩٦، رقم: ٧٤- ٧١٦.

**تشريح**: د څاښت وخت ... : دا د اکثر په اعتبار ویل سوي دي یعني رسول الله ﷺ به اکثر د څاښت په وخت کي تشریف راوړی ځکه دا بیان سوی دی چي رسول الله ﷺ به د څاښت د وخت څخه ماسوا په بل وخت کي نه ستنیدی کنه دا حدیث مخکي تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ به د ورځي په شروع کي یعني سهار او اخري برخه یعني مابنام د سفر څخه راتلی، ددې څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ یوازي د سهار په وخت کي نه ستنېدی بلکه د مابنام په وخت کي هم ستنېدی.

## د سفر څخه په ستنېدو سره لومړی مسجد ته تلل

﴿۳۷۳۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَلَمَّا قَدِمْنَا الْمَدِينَةَ قَالَ لِي ادْخُلِ الْمَسْجِدَ فَصَلِّ فيه رَكْعَتَيْنِ. رواه البخاري.

د جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي په یو سفر کي زه د نبي کریم ﷺ سره وم، کله چي موږ مدینې ته داخل سوو نو رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل مسجد ته ولاړ سه دوه رکعته لمونځ وکړه. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٩٣، رقم: ٣٠٨٨.

**تشريح** د ذکر سوو دواړو حدیثو سره سم د مسافر لپاره د سفر څخه د ستنېدو مخکي مسجد ته تلل د رسول الله ﷺ څخه فعلا ثابت دي او قولا هم ثابت دي، په ذکر سوي حکم کي نه یوازي د شعائر الله تعظیم ته اشاره ده بلکه دې ته هم اشاره ده چي مسجد د الله جل جلاله په کورونو کي یو

کور دی او مسجد ته تلونکی د الله جل جلاله سره ملاقات کونکی دی نو کوم سړی چي د سفر څخه راستون سي د هغه تر دې غوره څه شي کیدای سي چي هغه تر ټولو مخکي د الله جل جلاله کور ته ولاړ سي او د الله جل جلاله سره ملاقات وکړي چي هغه د سفر د آفاتو څخه په خوندي ساتلو په خیر او عافیت سره د هغه کورني ته بېرته را ورسوی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امت په حق کي د سهار د وخت لپاره د رسول الله ﷺ دعاء

﴿۳۷۳۳﴾: عَنْ صَخْرِ بْنِ وَدَاعَةَ الْغَامِدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت صخر بن وداعة الغامدي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ بَارِكْ لِأُمَّتِي فِي بُكُورِهَا وَكَانَ إِذَا بَعَثَ سَرِيَّةً أَوْ جَيْشًا بَعَثَهُمْ

اې الله! زما د امت لپاره د ورځي په سر کي برکت واچوې او هر کله چي به رسول الله ﷺ یو کوچنی یا لوی لښکر یو ځای لیږئ

من أَوَّلَ النَّهَارِ وَكَانَ صَخْرٌ تَاجِرًا فَكَانَ بَعَثَ تِجَارَةً بَعَثَهُمْ أَوَّلَ النَّهَارِ فَأَثْرَى وَكَثُرَ مَالُهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي.

نو د ورځي په اول سر کي به یې لیږی، د راوي بیان دئ چي صخر یو سوداګر وو هغه به خپل تجارتي مال د ورځي په اول کي لیږئ هغه شتمن سو او ډیر شتمن سو. ترمذي، ابوداؤد او دارمي

**تخريج** سنن الترمذي ۳\۵۱۷، رقم: ۱۲۱۲، وابوداود ۳\۷۹، رقم: ۲۶۰۶، والدارمي ۲\۲۸۳، رقم: ۲۴۳۵.

### د شپې د سفر کولو حکم

﴿۳۷۳۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْكُمْ بِالدُّلْجَةِ فَإِنَّ الْأَرْضَ تُطْوَى بِاللَّيْلِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو پر خپل ځان د شپې سفر لازم کړئ ځکه چي د شپې مځکه را ونغښتل سي (یعني لار ژر وهل کیږي). ابوداؤد

**تخریج** سنن ابي داود ۳\۶۱، رقم: ۲۵۷۱.

**د لغاتو حل** الدلجة: السیر من اول اللیل (د شپې په لومړۍ برخه کې تګ)

**تشریح** مطلب دادی چې کله تاسو د سفر لپاره د کور څخه وځئ نو محض د ورځې په وخت کې پر تللو باندي قناعت مه کوئ بلکه کله نا کله د شپې هم ځئ ځکه چې د شپې سفر په اسانۍ سره قطع کیږي او په دې سره د مسافر د سفر پر همت بوج هم نه وي چې اوس ما ډېر یا لږ سفر قطع کړی دی حال دا چې په حقیقت کې هغه ډېر سفر کړی وي او ددې وجه دا وي چې اول خو د شپې په وخت کې د تللو څخه پرته بل څه کار نه وي دوهم دا چې د فاصلې پر علامه او نښو باندي نظر نه لویږي او دا شیان سفر اوږدوي او دا مفهوم د مځکې په را نغښتلو سره تعبیر سوی دی ددې څخه معلومه سوه چې دلته دا مراد نه دی چې د ورځې په وخت کې بالکل مه ځئ په نورو حدیثو کې دا حکم بیان سوی دی چې خپل سفر د ورځې په شروع او آخري برخه کې د کولو کوښښ کوئ او یو برخه د شپې هم ځئ.

## په سفر کې کم از کم درې کسان کېدل پکار دي

﴿۳۷۳۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت عمرو بن شعیب رضی الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت دئ چې رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الرَّاكِبُ شَيْطَانٌ وَالرَّاكِبَانِ شَيْطَانَانِ وَالثَّلَاثَةُ رَكْبٌ. رواه مالك و الترمذي و ابوداؤد والنسائي

ﷺ وفرمایل: یو سپور یو شیطان دئ او دوه سپاره دوه شیطانان دي او درې سپاره سپاره دي. مالک، ترمذي، ابوداؤد او نسائي.

**تخریج** موطا الامام مالک ۲\۹۷۸، رقم: ۳۵، والترمذي ۴\۱۶۶، رقم: ۱۶۷۴، وابوداود ۳\۸۰، رقم: ۲۶۰۷، والنسائي في الکبری ۵\۲۶۶، رقم: ۸۸۴۹.

**د لغاتو حل** رکب: ای جماعة (ډله)

**تشریح** درې سپاره سپاره دي: ددې مطلب دادی چې درې سپاره ددې وړ دي چې هغوی ته سپاره وویل سي ځکه چې هغوی د شیطان د مکر څخه خوندي وي یعني د یوه او دوو سپرو د سفر کولو څخه منع سوې ده او دا واضحه سوې ده چې په سفر کې کم از کم درې کسان ملګري

کېدل ضروري دي ځکه چي په يوازي سفر کولو کي يو تاوان خو دادی چي د جماعت لمونځ پاته کيږي او دوهم دا که چيري هغه ته يو ضرورت يا يو واقعه پېښه سي نو د هغه مرسته کونکی به نه وي او هغه به په هر کار کي پاته وي همدارنګه که چيري دوه کسان سفر کوي نو په دغه صورت کي خدای مه کړه که داخبره پېښه سي چي يو ملګری ناروغ سي يا مړ سي نو دوهم ملګری به سخت پريشانه سي او دا کار د شيطان د خوښۍ سبب دی يا دا مراد دی که چيري سړی يوازي سفر کوي يا دوه کسان وي نو شيطان هغوی ته په ډېره اساني سره موقع تر لاسه کوي چي هغوی ګمراه کړي او په بدۍ کي يې اخته کړي ددې خبري د زيات اهميت بيانولو لپاره يوه سپاره يا دوو سپارو ته شيطان ويل سوي دي .

په هر حال د حديث خلاصه داده چي په سفر کي کم از کم درې کسان کېدل ضروري دي تر څو چي هغوی په جماعت سره لمونځ ادا کړئ او بل دا که هغه سړي ته د سفر په دوران کي د ضرورت په وجه تلل په کار سي نو دوه کسان به پاته وي او په خپلو کي به د يو بل د اطمينان ذريعه وي او که هغه سړی په راتلو کي زنډ وکړي نو په دواړو کي يو به د هغه د معلومات او د زنډ د سبب معلومولو لپاره تللای سي او دوهم به د سامان وغيره ساتنه کوي .

## په سفر کي يو ملګری امير جوړ کړی

﴿٣٧٣٦﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانَ ثَلَاثَةٌ فِي سَفَرٍ فَلْيُؤَمِّرُوا أَحَدَهُمْ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو سعيد خدري ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په سفر کي درې کسان وي نو هغوی دي په خپلو کي يو امير جوړ کړي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۸۱، رقم: ۲۶۰۸.

**تشريح**: د درو کسانو څخه جماعت مراد دی چي د هغه ادنا درجه درې کسان دي ، دا حکم د هغه صورت سره هم متعلق دی کله چي دوه کسان يو ځای سفر کوي دلته د درو کسانو پر ذکر باندي اکتفاء ځکه سوې ده چي مخکي په يو حديث کي بيان سوي دي چي دوه سپاره شيطانان دي ، په هر حال د حديث خلاصه داده که په يو سفر کي تر يوه زيات خلک وي نو په هغه صورت کي په هغوی کي هغه سړی دي خپل امير او مشر وټاکي کوم چي تر ټولو افضل وي ، د امير او مشر جوړولو حکم ځکه سوی دی چي د سفر په دوران کي په خپلو کي د جنجال او نزاع صورت

رامنځته سي نو هغه امير او مشر ته به رجوع کيږي او هغه چي څه فيصله وکړي د هغه په منلو سره به خپله جګړه ختمه سي ، د امير او مشر لپاره دا ضروري ده چي هغه د خپل سفر د ټولو ملګرو په باره کي خيرخواه، مهربان او غمخوار وي او خپل مشرتوب د ځان لپاره محض د فخر په ګڼلو سره لويي او تکبر ونه کړي بلکه په حقيقي معنی کي خپل ځان د هغوی غلام وګڼي لکه چي فرمايل سوي دي : (سيد القوم خادمهم) يعني د يو ډلي مشر په اصل کي د خپل ډلي خدمت کونکی وي .

## د سفر غوره ملګري

﴿٣٧٢٧﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال خَيْرُ الصَّحَابَةِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره ملګري په سفر کي

أَرْبَعَةٌ وَخَيْرُ السَّرَايَا أَرْبَعُ مِائَةٍ وَخَيْرُ الْجُيُوشِ أَرْبَعَةُ آلَافٍ وَلَا يُغْلَبُ اثْنَا

هغه دي چي د هغوی شمير (کم از کم) څلور وي او غوره کوچنی لښکر هغه دئ چي په هغو کي څلور سوه کسان وي او غوره لوی لښکر هغه دئ چي په هغو کي

عَشَرَ أَلْفًا مِنْ قِلَّةٍ . رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي وقال الترمذي هذا حديث غريب .

څلور زره کسان وي او دوولس زره کسان د کمی په سبب هيڅکله نه مغلوب کيږي . ترمذي، ابوداؤد ، دارمي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ

**تخريج** سنن الترمذي ۴\ ۱۰۵، رقم: ۱۵۵۵، وابوداود ۳\ ۸۲، رقم: ۲۶۱۱، والدارمي ۲\ ۲۸۴، رقم: ۲۴۳۸.

**تشريح** څلور ملګرو ته غوره په دې اعتبار ويل سوي دي چي د مثال په توګه په هغه څلورو کي يو ناروغ سي او هغه د خپل ژوند څخه په نا اميده کېدو سره په خپل ملګرو کي يوه ته وصيت وکړي نو پاته دوه ملګري به د هغه د وصيت شاهدان وي ، عالمانو ليکلي دي چي پنځه ملګري تر څلورو غوره دي او تر پنځو چي هر څومره زيات وي هغومره به غوره وي، دلته په حديث کي د څلورو په ذکر کولو سره ادنا درجه بيان سوې ده .

نه مغلوب کيږي : ددې مطلب دادی چي د دوولس زرو مجاهدينو لښکر ډېر لوی طاقت دی ، دومره زيات مجاهدين د دښمن په مقابله کي نه مغلوب کيږي او که مغلوب هم سي نو د

شمېر د کمۍ په وجه به نه وي ځکه چې د دوولس زره شمېر د کموالي د حد څخه وتلی دی البته د يو بل سبب په وجه به مغلوب کيږي لکه پر دومره زيات شمېر او طاقت باندې بې ځايه فخر، غرو او تکبر کول او داسې نور.

## د خپلو ملګرو سره د رسول الله ﷺ معمول

﴿٣٧٣٨﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَلَّفُ فِي الْمَسِيرِ فَيُزْجِي الضَّعِيفَ وَيُرْدِفُ وَيَدْعُو لَهُمْ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ به په سفر کې وروسته تلئ د دې لپاره چې کمزوري سپرلي وشړي او څوک چې پر پښو وي هغه پر خپله سپرلۍ د ځان سره سپور کړي او د هغوی لپاره دعاء وکړي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\١٠٠، رقم: ٢٦٣٩.

---

## منزل ته په رسېدو سره ټول ملګري يو ځای تم کېدل پکار دي

﴿٣٧٣٩﴾: وَعَنْ اَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ كَانَ النَّاسُ إِذَا نَزَلُوا مَنْزِلًا تَفَرَّقُوا فِي

د حضرت ابو ثعلبة الخشني رضي الله عنه څخه روايت دئ چې هر کله به مونږ پر يو منزل کښته کېدلو نو

الشِّعَابِ وَالْأَوْدِيَةِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنَّ تَفَرُّقَكُمْ فِي هٰذِهِ الشِّعَابِ

په غرنی شېلو کې به خپاره سوو، رسول الله ﷺ پر يوه موقع د دې په ليدو سره وفرمايل:

وَالْأَوْدِيَةِ إِنَّمَا ذٰلِكُمْ مِنَ الشَّيْطَانِ فَلَمْ يَنْزِلْ بَعْدَ ذٰلِكَ مَنْزِلًا إِلَّا انْضَمَّ

ستاسو په دې شېلو کې متفرق کېدل د شيطان د چم او وسوسې په سبب دي، د دې څخه وروسته چې به خلک پر يو ځای کښته کېدل نو داسې به تم کېدل چې د يو بل سره به نژدې وه،

بَعْضُهُمْ إِلَى بَعْضٍ حَتَّى يُقَالَ لَوْ بُسِطَ عَلَيْهِمْ ثَوْبٌ لَعَمَّهُمْ. رواه ابوداؤد.

يعني ويلای سو تر دې به يو بل ته نژدې او سېدل که چيري پر هغوی يو ټوکر واچول سي نو ټول به پکښې پټېدل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٩٤، رقم: ٢٦٢٨.

## د رسول الله ﷺ د كمال انكسار يو واقعه

﴿۳۷۴۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا يَوْمَ بَدْرٍ كُلُّ ثَلَاثَةٍ عَلَى بَعِيْرٍ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د بدر په غزا كي زموږ دا حالت وو چي د درو كسانو لپاره يو اوښ وو

فَكَانَ أَبُوْ لُبَابَةَ وَعَلِيُّ بْنُ أَبِيْ طَالِبٍ زَمِيْلَيْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او ابولبابه او علي ا بن ابي طالب به د رسول الله ﷺ په اوښ كي شريک وه

قَالَ فَكَانَتْ إِذَا جَاءَتْ عُقْبَةُ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ قَالَا نَحْنُ نَمْشِيْ عَنْكَ قَالَ مَا

هر كله چي د رسول الله ﷺ د كښېنته كېدو وار به راغلی نو ابولبابه او علي ابن ابي طالب به ويل موږ ستاسو په بدل كي پر پښو ځو، رسول الله ﷺ به د هغوی په جواب كي فرمايل

أَنْتُمَا بِأَقْوٰى مِنِّيْ وَمَا أَنَا بِأَغْنٰى عَنِ الْأَجْرِ مِنْكُمَا . رواه في شرح السنة

تاسو خو تر ما زيات قوي نه ياست او زه د آخرت د ثواب څخه بې پروا نه يم . شرح السنة

**تخريج**: شرح السنة ١١\٣٥، رقم: ٢٦٨٢.

**د لغاتو حل**: عقبة: اى نوبة نزوله.

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د انكسار او تواضع پر ځومره لوړ مقام وو او دا چي رسول الله ﷺ د خپلو ملګرو په باره كي ځومره مهربان او خير خواه وو او د هغوی پر راحت يې خپل راحت ته هيڅ ترجيح نه وركول، دا هم معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د الله جل جلاله د نبي او رسول كېدو په حيثيت سره معصوم عن الخطاء وو او د الله جل جلاله بنده وو مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ د الله جل جلاله په دربار كي خپل احتياجي او خپل پوره عاجزي ظاهرول.

## د سپرتيا د حيوانانو په اړه يو حكم

﴿۳۷۴۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ أَنْ تَتَّخِذُوا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د خپلو حيوانانو شا

ظُهُوْرَ دَوَابِّكُمْ مَنَابِرَ فَإِنَّ اللهَ إِنَّمَا سَخَّرَهَا لَكُمْ لِتُبَلِّغَكُمْ إِلٰى بَلَدٍ لَمْ تَكُوْنُوا

منبر مه جوړوئ (يعني پر سپرلۍ دريدلو سره خبري مه کوئ يا پر سپرلۍ په ناسته ناسته کار مه کوئ بلکه دا کارونه په راکښته کېدو سره کوئ) ځکه چي الله تعالی دا حيوانان ددې لپاره ستاسو تابع کړي دي چي هغوی تاسو هغه ښارته ورسوي

بَالِغِيهِ إِلَّا بِشِقِّ الْأَنْفُسِ وَجَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فَعَلَيْهَا فَاقْضُوا حَاجَتَكُمْ .

رواه ابوداؤد

چيري چي تاسو په سخت تکليف او ستونزه سره ورسيدلاست او ځکه الله ددې لپاره پيدا کړې ده چي تاسو په دې خپل کارونه سرته ورسوئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۵۹، رقم: ۲۵۶۷.

**تشريح**: د حيوانانو د شا منبر مه جوړېږئ : ددې مطلب دادی چي د خبرو کولو لپاره د حيوانانو پر شا باندي په سپرېدو سره مه درېږئ بلکه کله چي د چا سره خبره کول غواړئ نو د حيوان څخه راکښته سئ او خپل حاجت پوره کړئ او بيا پر هغه سپاره سئ مگر دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي د سپرلۍ څخه ماسوا د حيوان بل يو حاجت يا د هغه سره بل صحيح غرض نه وي.

که چيري د هغه حيوان سره يو بل صحيح غرض متعلق وي نو په دې کي څه پروا نه سته لکه څرنگه چي دا ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ په حجة الوداع کي د عرفات په ورځ پر خپل اوښي باندي په سپرېدو سره خطبه فرمايلې ده.

د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي الله ﷻ ځکه ددې لپاره پيدا کړې ده چي تاسو پر هغه کښينئ، ولاړسئ او ددې څخه ماسوا خپل ضرورتونه پوره کړئ نو خپل کارونه پر ځمکه کوئ د سپرلۍ د حيوانانو د شا څخه د سپرېدو پرته چي تاسو خپل منزل ته ورسوي بل څه کار مه اخلئ.

## د سپرتيا د حيوانانو کتنه

﴿۳۷۴۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كُنَّا إِذَا نَزَلْنَا مَنْزِلًا لَا نُسَبِّحُ حَتَّى تُحَلَّ الرِّحَالُ .

رواه ابوداؤد.

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي کله به موږ پر يو ځای تم کېدلو نو تر هغه وخته پوري به

مو نفل لمونځ نه کوی تر څو پوري چي د حیوانانو کتی به مو کښته کړي نه وي. ابوداؤد

**تخریج** سنن ابي داود ٣\٥١، رقم: ٢٥٥١.

**تشریح** سبحه او د تسبیح اطلاق پر نفل لمانځه باندي کیږي مګر ځیني حضرات وایي چي دلته د څاښت لمونځ مراد دی چي په هغه زمانه کي په عامه توګه سره پر پړاو باندي د کښته کېدو پر وخت د څاښت وخت وو ، په هر حال د حدیث مطلب دادی چي سره ددې چي صحابه کرامو به د لمانځه ډېر خیال ساتی مګر هغوی به د خپل حیوانانو د ساتني هم ډېر خیال ساتی.

## د رسول الله ﷺ حق شناسي

﴿٣٧٤٣﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي إِذْ

د حضرت بریدة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ یو ځای ته پیاده روان وو چي

جَاءَهُ رَجُلٌ وَمَعَهُ حِمَارٌ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ارْكَبْ وَتَأَخَّرَ الرَّجُلُ فَقَالَ

یو سړی پر خره سپور راغلی او عرض یې وکړ اې دالله رسوله! تاسو سپور سئ ، د دې په ویلو سره هغه سړی شا ته سو (چي رسول الله ﷺ مخته سپور سي) رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْتَ أَحَقُّ بِصَدْرِ دَابَّتِكَ إِلَّا أَنْ تَجْعَلَهُ لِي

قَالَ قَدْ جَعَلْتُهُ لَكَ فَرَكِبَ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

یا ته پر خپله سپرلۍ د مخکي ناستي زیات وړیې خو هلته چي ته د سپرلۍ مخکي حصه زما لپاره وګرځوې هغه وویل زه یې په خپله خوښه تاسو ته پرېږدم نو رسول الله ﷺ سپور سو. ترمذي او ابوداؤد.

**تخریج** سنن الترمذي ٥\٩٢، رقم: ٢٧٧٣، وابوداود ٣\٦٢، رقم: ٢٥٧٢.

**تشریح** ددغه حدیث څخه یوې خوا ته د رسول الله ﷺ د انصاف او حق شناسۍ احساس معلوم سو چي رسول الله ﷺ تر هغه وخته پوري د هغه سړي پر سپرلۍ مخکي د کښېنستلو څخه انکار وکړي تر څو چي هغه په صراحت سره پر خپل سپرلۍ د ناستي خپل حق رسول الله ﷺ ته ور نه کړي ، بلي خوا ته د رسول الله ﷺ د تواضع او انکسار پوره کمال هم ثابت سو چي رسول الله ﷺ په هغه سړي په تر شا په ناسته کي هیڅ پیغور محسوس نه کړ او په هغه راضي سو.

## شيطاني اوښ او شيطاني كور

﴿۳۷۴۴﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي هِنْدٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

سعيد بن ابي هند د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكُونُ إِبِلٌ لِلشَّيَاطِينِ وَبُيُوتٌ لِلشَّيَاطِينِ فَأَمَّا إِبِلُ الشَّيَاطِينِ

اوښان د شيطانانو لپاره وي او ځيني كورونه د شيطانانو لپاره وي ، د شيطانانو اوښان

فَقَدْ رَأَيْتُهَا يَخْرُجُ أَحَدُكُمْ بِجُنَيْبَاتٍ مَعَهُ قَدْ أَسْمَنَهَا فَلَا يَعْلُو بَعِيرًا مِنْهَا

ما ليدلي دي چي په تاسو كي څوك د ښه ډول اوښانو سره وځي چي هغه ښه غټ كړي وي او په هغوى كي پر هيڅ يو سپرلى نه كوي

وَيَمُرُّ بِأَخِيهِ قَدْ انْقَطَعَ بِهِ فَلَا يَحْمِلُهُ وَأَمَّا بُيُوتُ الشَّيَاطِينِ فَلَمْ أَرَهَا كَانَ

او په سفر كي هغه د ځان سره بوځي نو خپل مسلمان وروړ چي په تلو تلو ستړى سوى وي هغه پر سپور نه وي ، يعني كوم اوښان چي صرف د فخر د اظهار لپاره وي او د هغوى څخه كار نه اخيستل كيږي هغه د شيطانانو لپاره وي او د شيطانانو كورونه ما نه دي ليدلي ، د حديث د

سَعِيدٌ يَقُولُ لَا أُرَاهَا إِلَّا هٰذِهِ الْأَقْفَاصُ الَّتِي يَسْتُرُ النَّاسُ بِالدِّيبَاجِ . رواه ابوداؤد .

راوي بيان دئ چي د شيطانانو كورونه هغه كجاوې دي چي ښځي پكښي سپريږي چي خلك يې په ريښمينو جامو پټوي . ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ۳\۹۵، رقم: ۲۶۲۹.

**تشريح** كوم اوښان چي د شيطانانو سي .... : ددې خلاصه داده چي د اوښانو اصل مقصد خو دادى چي هغه د خپل سپرلۍ او بار وړلو په كار راوستل سي او الله ﷻ هغه ددې لپاره پيدا كړي دي چي دهغوى په ذريعه خپل د سفر ارتياوي پوره كړي او نورو اړو مسلمانانو ته هم د هغه څخه گټه ورسوي مگر كه چيري يو سړى هغه د ښه غټ او تازه كولو سره محض د فخر لپاره ساتي او هغه په خپل سفر كي يا د يو اړ مسلمان د اړتيا پوره كولو لپاره نه بلكه هسي يې ساتي

نو په داسي كولو سره هغه اوښ نه په خپل مصرف كي راوستلو سره او نه د يو ستړي مسلمان ورور د راحت په ذريعه گرځولو سره گويا د شيطان اطاعت يې وكړ او شيطان يې خوشحاله كړ ځكه نو هغه اوښ گويا د شيطان لپاره سو ، ددې څخه معلومه سوه چي كوتل آس ساتل منع دي او گويا هغه د شيطان آس دى ، كوتل د شتمنو خلكو د سپرلۍ د آس سره دوهم آس ته وايي چي د سپرلۍ سره هسي ځغلي ، ځيني شتمن خلك د خپل سپرلۍ سره يو ځين كړى آس هم بيايي چي كله يې زړه وسي نو د گاډۍ پر آس باندي سپرلۍ شروع كړي او كله چي يې زړه وغواړي پر دغه ځين كړي آس باندي سپور سي .

ځيني حضرات وايي چي د حديث الفاظ ( فاما ابل الشياطين) يعني كوم اوښان چي د شيطانانو لپاره وي ....: دا په صل كي د راوي يعني د حضرت ابوهريره رضي الله عنه خپل الفاظ دي او د رسول الله ﷺ اصل حديث يوازي مخكنى مجمل عبارت دى يعني (يكون ابل للشياطين وبيوت للشياطين) ، ځيني حضراتو ويلي دي لكه څرنگه چي د ترجمې څخه هم معلوميږي چي اصل حديث (فلم ارها) يعني ما هغه نه دي ليدى ، تر دغه الفاظو پوري دى ، دا قول ملا علي قاري رحمة الله عليه هم خوښ كړى دى .

د شيطاني كورو څخه مراد يا خو كجاوې دي چي ځيني خلك يې په ريښمو ټوكرانو سره ښائسته كوي يا هغه كورونه دي چي د هغه ديوالونه د ريښمو په ټوكرانو سره ښائسته سوي وي ، ظاهره ده چي دلته د كجاوو يا كورونو څخه منع كول مقصد نه دي بلكه د هغو په ريښمو سره ښائسته كولو په سبب د هغه خرابي بيان سوې ده چي په هغه كي نه يوازي د مال بربادي او اسراف دى بلكه تفاخر او ريا هم دى .

## چيري چي تم كيږي نو هلته مه زيات ځاى نيسئ او مه لاره بندوئ

﴿۳۷۴۵﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ عَنْ اَبِيْهِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت سهل بن معاذ رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چي موږ د نبي كريم ﷺ سره په جهاد كي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضَيَّقَ النَّاسُ الْمَنَازِلَ وَقَطَعُوا الطَّرِيقَ فَبَعَثَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

شريک سو ، خلكو په رسيدو سره ځايونه ونيول او لارې يې هم تنگه كړل ، نبي كريم ﷺ يو سړى

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُنَادِيًا يُنَادِي فِي النَّاسِ أَنَّ مَنْ ضَيَّقَ مَنْزِلًا أَوْ قَطَعَ طَرِيقًا فَلَا

جِهَادَ لَهُ . رواه ابوداؤد

ولیږئ او اعلان یې وکړ چې کوم سړي ځای تنګ کړي یا لاره یې بنده کړه د هغه لپاره د جهاد ثواب نسته . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٢١٨، رقم: ٢٧٧٧.

## د ستنېدو غوره وخت

﴿٣٧٤٦﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَحْسَنَ مَا دَخَلَ الرَّجُلُ عَلَى أَهْلِهِ إِذَا قَدِمَ مِنْ سَفَرٍ أَوَّلَ اللَّيْلِ . رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ډېر ښه وخت هغه وخت دی چې مسافر د شپې په اوله حصه کې خپل کور ته داخل سي . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٢١٨، رقم: ٢٧٧٧.

**تشریح**: دا په هغه صورت کې دی کله چې سفر نژدې وي ، مخکې دا تېر سوي دي چې د سفر څخه په ستنېدو کې د شپې په وخت کې کور ته تلل نه دي پکار نو د هغه تعلق د لیري سفر سره دی ، علامه نووي رحمۃ اللہ علیہ وایي که څه هم د لیري سفر وي او د هغه د راتلو خبر کورنۍ ته په ورځ کې ورکړل سوی وي نو د شپې په راتلو کې څه پروا نه سته ، ځیني حضرات وایي چې کورنۍ ته د رسېدو څخه کوروالي یعني جماع کول مراد دي ځکه چې د مسافر جنسي جذبه ډېره زیاتیږي نو هغه چې د سفر څخه په ستنېدو سره د شپې په اوله برخه کې د جماع څخه فارغه سي نو بیا په سکون او آرام سره بېده سي او د ښځي حق هم ادا سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د سفر په دوران کې د شپې د ارام کیفیت

﴿٣٧٤٧﴾: عَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ فَعَرَّسَ بِلَيْلٍ اضْطَجَعَ عَلَى يَمِينِهِ وَإِذَا عَرَّسَ قُبَيْلَ الصُّبْحِ نَصَبَ

ذِرَاعَهُ وَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى كَفِّهِ. رواه مسلم

د حضرت ابو قتادة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ په سفر كي وو نو په شپه كي چي به تم سو نو پر راسته اړخ به پريوتئ او هر كله چي به د سهار په وخت كي تم سو نو خپل راسته لاس به يې ودروئ او خپل سر به يې د لاس پر ورغوي كښېښود. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ١\٤٧٦، رقم: ٣١٣- ٦٨٣.

## د سهار له خوا د سفر شروع كولو فضيلت

﴿٣٧٤٨﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ اللّٰهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ وليږى عبدالله

بْنَ رَوَاحَةَ فِي سَرِيَّةٍ فَوَافَقَ ذٰلِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَغَدَا أَصْحَابُهُ قَالَ أَتَخَلَّفُ

بن رواحه د يو كوچنى لښكر سره په اتفاق سره هغه د جمعې ورځ وه، د عبد الله ملګري خو سهار ولاړل او عبد الله په زړه كي وويل

وَأُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ أَلْحَقُهُمْ فَلَمَّا صَلَّى مَعَ رَسُولِ

زه چي د رسول الله ﷺ سره د جمعې لمونځ وكړم نو ولاړ به سم او د لښكر سره به يو ځاى سم، د جمعې لمونځ چي يې د رسول الله ﷺ سره وكړ

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَآهُ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَغْدُوَ مَعَ أَصْحَابِكَ فَقَالَ

نو رسول الله ﷺ عبد الله وليدئ او ورته وه يې فرمايل: ته د سهار په وخت كي د خپلو ملګرو سره د تللو څخه څه شي منع كړې، هغه وويل

أَرَدْتُ أَنْ أُصَلِّيَ مَعَكَ ثُمَّ أَلْحَقَهُمْ قَالَ لَوْ أَنْفَقْتَ مَا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا مَا أَدْرَكْتَ فَضْلَ غَدْوَتِهِمْ. رواه الترمذي.

ما دا غوښتل چي ستا سو سره د جمعې لمونځ وكړم نو روان به سم او د لښكر سره به يو ځاى سم،

رسول الله ﷺ وفرمایل : که ته د دنیا ټول شیان نفقه (صدقه) کړې بیا هم ته د خپلو ملګرو سره د سهار په وخت کي د تللو ثواب نسي تر لاسه کولای . ترمذي .

**تخریج**: سنن الترمذي ۲\۴۰۵، رقم: ۵۲۷.

**د لغاتو حل**: فغدا: ای ذهب.

## د شرموښ پوست استعمالولو منع

﴿۳۷۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصْحَبُ الْمَلَائِكَةُ رُفْقَةً فِيهَا جِلْدُ نَمِرٍ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د کوم لښکر سره چي د پړانګ پوست وي د هغوی سره ملائکي نه ځي . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۳۵، رقم: ۲۵۵۴.

## د سفر امیر د ملګرو خادم وي

﴿۳۷۵۰﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيِّدُ

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : سردار

الْقَوْمِ فِي السَّفَرِ خَادِمُهُمْ فَمَنْ سَبَقَهُمْ بِخِدْمَةٍ لَّمْ يَسْبِقُوْهُ بِعَمَلٍ إِلاَّ الشَّهَادَةَ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د قوم په سفر کي هغه دئ چي د قوم خدمت وکړي بیا څوک چي د قوم خدمت تر مخه وکړي د هغه د عمل په مقابله کي بل څوک مخته کیدلای نسي پرته د هغه چا څخه چي هغه د شهادت درجه تر لاسه کړي . بیهقي په شعب الایمان کي

**تخریج**: البیهقي في الشعب ۶\۳۳۴، رقم: ۸۴۰۷.

**تشریح**: مطلب دادی چي حاکم او امیر باید د قوم خدمت وکړي د هغوی پر مصالحو باندي نظر ولري او د هغوی د ظاهري او باطني حالاتو خیال وساتي، ځیني حضرات وایي چي ددې څخه مراد دادی چي کوم سړی د خپل قوم او خپل ډلي په خدمت کي بوخت وي نو په حقیقت کي

هغه سړی د زیات ثواب په وجه د هغه قوم او ډلي مشر وي که څه هم په لېدو کي هغه په قوم او ډله کي د کمي درجې والا وي ځکه چي د قوم د خدمت څخه ماسوا بل هیڅ عمل غوره نه دی مګر دا چي يو سړی د الله ﷻ په لاره کي جنګیږي او د شهادت درجه تر لاسه کړي.

==========

# بَابُ الْكِتَابِ اِلَى الْكُفَّارِ وَدِعَائِهِمْ اِلَى الْاِسْلَامِ

## (کفارو ته د لیکونو او هغوی ته د اسلام د بلني بیان)

کوم خلک چي الله تعالی د دغه کائناتو حقیقي خاوندان ګرځولي دي او د هغه د نازل کړي قانون په مخکي سر کښته کوي هغوی ددې ذمه دار ګرځول سوي دي چي هغوی ټولو کائناتو ته د الله ﷻ د احکامو بلنه ورکړي او ګمراهان د ضلالت او تباهی د لارو څخه د یوه الله ﷻ اطاعت، فرمانبرداری او صراط مستقیم ته راولي او همدارنګه د مځکي پر مخ د الله ﷻ نوم او د هغه د دین بیرغ سرلوړي کړي او کوم خلک چي د دغه بلني سربېره د سرکښی څخه نه منع کیږي او د الله تعالی د دین د بیرغ نسکورولو ناپاکه جرئت کوي او د مځکي پر مخ د حقیقي مالک د احکامو په جاري کولو کي خنډ اچوي یعني هغوی د خپلو عقېدو او کړنو په ذریعه د الله ﷻ په دغه مځکه باندي د فتنې او فساد بازار ګرموي نو د هغوی پر خلاف دي توره پورته کړل سي او د هغوی سره دي تر هغه وخته پوري جنګ وکړل سي تر څو چي هغوی د خپل سرکښی څخه په منع کېدو د یو الله ﷻ د حاکمیت اعلی اقرار ونه کړي او یا د محصول په ادا کولو سره د اسلامي هیواد وفادار کېدل قبول نه کړي.

### د کفارو پر خلاف د جنګ څخه مخکي هغوی ته د اسلام بلنه ورکول واجب دي:

اسلام دا قاعده ټاکلې ده چي د اسلام د مخالفینو پر خلاف تر هغه وخته پوري د جنګ اعلان نه سي کیدای تر څو چي هغوی ته د اسلام بلنه ور نه کړل سي، د اسلامي قانون سره سم د کفارو سره د جنګ کولو مخکي هغوی ته د اسلام دعوت ورکول واجب دي او هغوی ته د اسلام د دعوت ورکولو څخه مخکي د هغوی سره جنګ کول حرام دي په شرط ددې چي هغوی ته د اسلام دعوت نه وي رسیدلی او که چیري هغوی ته د اسلام دعوت رسیدلی وي نو په دغه صورت کي د جنګ څخه مخکي هغوی ته بیا د اسلام دعوت ورکول مستحب دي.

د اسلام د دعوت ورکولو مختلفي طریقې دي چي د هغو څخه یوه طریقه د خط او لیکني هم ده، په خاصه توګه د یو هیواد پاچاهانو او امیرانو ته په عامه توګه سره د خط او لیکني په

ذريعه د اسلام دعوت ورکول کيږي، رسول الله ﷺ مختلفو غير مسلمانانو پاچاهانو لکه قيصر، کسرى او نجاشي ته ليکني واستولې چي په هغه کي هغوى ته د ضلالت او تباهى د لاري په پرېښودو سره د اسلامي پر سيده لاره باندي د تللو دعوت ورکړل سوى وو.

نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ د حديبيې د صلح څخه وروسته مدينې ته تشريف راوړ او قيصر روم ته يې د خط استولو اراده وکړه نو صحابه کرامو وويل چي د روم د پاچاهانو او اميرانو دا رواج دى چي هغوى يو ليک تر هغه وخته پوري مستند نه مني تر څو چي پر هغه مهر (ټاپه) نه وي لګيدلې. رسول الله ﷺ د مهر لپاره د سپينو زرو د ګوتمۍ جوړولو حکم وکړ او په هغه کي دري ليکي رسم سوې او په هغه درې ليکو کي يې خپل مبارک نوم داسي نقش کړ چي په لوړه ليکه کي الله، په درميانه ليکه کي رسول او په لاندي ليکه کي محمد وو،

الله
رسول
محمد

همدا رنګه رسول الله ﷺ چي کومو پاچاهانو ته خطونه استول پر هغو يې دغه مهر لګوى.

طبراني دغه ارشاد نقل کړى دى چي (کرامة الکتاب ختمه) يعني د هغه خط عظمت د هغه مهر دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### قيصر روم ته د رسول الله ﷺ ليک

﴿۳۷۵۱﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى قَيْصَرَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ قيصر (د روم پاچا) ته خط وليکئ

يَدْعُوهُ إِلَى الْإِسْلَامِ وَبَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَيْهِ دِحْيَةَ الْكَلْبِيِّ وَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى

د اسلام د بلني او هغه ليک يې د دحيه کلبي په لاس وليږئ او ورته يې حکم وکړ چي ته دا ليک

عَظِيمِ بُصْرَى لِيَدْفَعَهُ إِلَى قَيْصَرَ فَإِذَا فِيهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ مِنْ

د بصرې حاکم ته ورسوه هغه به يې قيصر ته ورسوئ، په دغه ليک کي ليکلي وه چي: بسم الله الرحمن الرحيم، دا ليک د

مُحَمَّدٍ عَبْدِ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ إِلَى هِرَقْلَ عَظِيمِ الرُّومِ سَلَامٌ عَلَى مَنِ اتَّبَعَ

الله ﷻ د بنده او د هغه د رسول محمد ﷺ د لوري د روم د پاچا هرقل په نامه دئ، پر هغه چا دي سلام وي چي د هدايت پيروي وكړي

الْهُدَى أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي أَدْعُوكَ بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ أَسْلِمْ تَسْلَمْ يُؤْتِكَ اللَّهُ أَجْرَكَ

(اما بعد)! ددې څخه وروسته زه تا ته د اسلام بلنه دركوم ته اسلام قبول كړه چي خوندي او په امان سې، ته اسلام قبول كړه تا ته به الله تعالى

مَرَّتَيْنِ وَإِنْ تَوَلَّيْتَ عَلَيْكَ إِثْمَ الْأَرِيسِيِّينَ وَ {يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَى كَلِمَةٍ

دوه برابر ثواب دركړي او كه ته مخ واړوي نو ستا د رعيت (زميندارو) ګناه به هم پر تا وي، او اې اهل كتابو! هغه خبري ته راسئ

سَوَاءٍ بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ أَنْ لَا نَعْبُدَ إِلَّا اللَّهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهِ شَيْئًا وَلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا

چي زموږ او ستاسو په منځ كي يو ډول ده، او هغه دين (حق) يا مشتركه كلمه داده چي موږ به د الله ﷻ څخه پرته د بل چا عبادت نه كوو او شرک به نه نيسو د الله ﷻ سره هيڅ شی او ځيني

بَعْضًا أَرْبَابًا مِنْ دُونِ اللَّهِ فَإِنْ تَوَلَّوْا فَقُولُوا اشْهَدُوا بِأَنَّا مُسْلِمُونَ} . متفق

زموږ به د ځينو نورو لپاره خدايان نه نيسو بيله يو الله ﷻ څخه، بيا كه هغوی (اهل كتاب) ددې دعوت څخه مخ واړوي نو تاسو هغوی ته ووايا ست تاسو شاهدان اوسئ چي موږ مسلمان يو،

عليه و في رواية لمسلم قَالَ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللَّهِ وَ قَالَ إِثْمُ الْيَرِيسِيِّينَ وَقَالَ بِدِعَايَةِ الْإِسْلَامِ.

بخاري او مسلم، او د مسلم په روايت كي دا الفاظ مختلف دي مثلا په مسلم كي: (من محمد رسول الله) او دويم لفظ (اليريسيين) او دريم لفظ (بدعاية الاسلام) دي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٣١ - ٣٢، رقم: ٧، ومسلم ٣\١٣٩٣ رقم ٧٤ - ١٧٧٣.

**د لغاتو حل**: الاريسيين: اى الاتباع. (پيروان)

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ په وخت كي د روم حكومت د خپل طاقت او عظمت په لحاظ د دنيا يو لوی طاقت او د شان او شوكت حكومت وو، د روم د حكومت پلازمينه

قسطنطنیه وه او هغه وخت د یورپ د مختلفو هیوادو څخه پرته شام ، فلسطین او مصر هم د هغه تر حکومت لاندې وه ، قیصر د روم د پاچا لقب وو لکه څرنګه چې د ایران د پاچا لقب کسری، د حبشې د پاچا لقب نجاشي ، د ترک د پاچا لقب خاقان، د قبط د پاچا لقب فرعون، د مصر د پاچا لقب عزیز او د حمیر پاچا ته به یې تبع ویل .

د رسول الله ﷺ د پیغمبرۍ په زمانه کې د روم قیصر ته رسول الله ﷺ چې دا خط لیکلی وو د هغه نوم هرقل وو، څرنګه چې هرقل په خپل شاهي شان او شوکت کې ممتاز ګڼل کیدی همدارنګه د مذهبي علومو یعني تورات او انجیل لوی عالم وو ، دحیه کلبي رضي الله عنه یو صحابي وو د هغه تر ټولو لوی خصوصیت دا وو چې حضرت جبرائیل علیه السلام به اکثر وختونه د هغه په شکل کې راتلی .

بُصری د شام د یو ښار نوم وو چې یو ډیر پر مخ تللی او تجارتي مرکز وو ، رسول الله ﷺ په خپل ابتدائي ژوند کې دوه تجارتي سفرونه کړي دي چې په هغو کې یې یو سفر بصری ته هم کړی دی.

دحیه کلبي رضي الله عنه پر سفارت باندې په مامور کېدو سره د قیصر په نامه د رسول الله ﷺ خط مبارک وړل د شپږم یا اووم هجري کال د شروع پېښه ده ، د روایاتو او تاریخ څخه ثابته ده چې قیصر روم د دغه خط مبارک تر ډې حده اثر قبول کړی وو چې د رسول الله ﷺ د نبوت تصدیق یې کړی وو او د هغه په زړه کې د اسلام نور خپور سوی وو مګر د رعیت او د دربار د خلکو د بیرې څخه او د تخت او تاج دد مینې په وجه هغه رڼا مړه پاته سوه او مسلمان نه سو ، نقل سوي دي چې د هغه خط د ویلو څخه وروسته د دربار خلک په غصه سول نو دحیه کلبي رضي الله عنه ته یې وویل که ما ته د خپلو خلکو څخه د خپل ځان بېره نه وای نو ما به خامخا ستاسو د نبي اتباع کړې وای هغه (محمد ﷺ) بېله شکه نبي دی کوم چې موږ یې په انتظار وو .

ابن مالک رحمه الله وایي چې ددغه حدیث څخه معلومه سوه چې د خط لیکلو دغه غوره طریقه ده چې د لیکني شروع دي په بسم الله سره وي او د خط لیکونکي نوم دي هم مخکې ولیکل سي ، ملا علي قاري رحمه الله وایي چې دا خبره یوازې د حدیث څخه ثابته نه ده بلکه د قرآن کریم د دغه آیت (انه من سلیمان وانه بسم الله الرحمن الرحیم) څخه هم ثابتیږي .

هرقل مسلمان نه وو ځکه رسول الله ﷺ په خپل خط مبارک کې هغه ته په خطاب کولو سره سلام علیک ونه لیکل بلکه دا بلیغ طرز یې اختیار کړ چې سلام علی من اتبع الهدی (یعني پر هغه چا دي سلام دي چا چې د هدایت پیروي وکړه) دلته دې ته اشاره سوې ده چې د غیر مسلم

سره د خبري کولو پر وخت کنایة سلام کول جائز دي.

## رسول الله ﷺ تولو مشرانو ته د اسلام د دعوت لیک واستوی

﴿۳۷۵۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ بِكِتَابِهِ إِلَى كِسْرَى

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ خپل لیک مبارک کسری (د ایران پاچا) ته ولیږئ

مَعَ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ حُذَافَةَ السَّهْمِيِّ فَأَمَرَهُ أَنْ يَدْفَعَهُ إِلَى عَظِيمِ الْبَحْرَيْنِ

د عبد الله بن حذافه سهمي په لاس او عبد الله ته يې حکم ورکړ چي لیک د بحرين حاکم ته

فَدَفَعَهُ عَظِيمُ الْبَحْرَيْنِ إِلَى كِسْرَى فَلَمَّا قَرَأَهُ مَزَّقَهُ قَالَ ابْنُ الْمُسَيَّبِ فَدَعَا

ورسوئ (نو هغه د بحرين حاکم ته ورسوئ) او د بحرين حاکم کسری ته ولیږي، کسری چي لیک ووايه نو ټيري يې کړ، او وه يې غورځوی، ابن مسیب وايي رسول الله ﷺ کسری او د

عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُمَزَّقُوا كُلَّ مُمَزَّقٍ. رواه البخاري

هغه پیروانو ته دا ښيرا وکړه چي ټوټې ټوټې سئ نو هغوی ټول ټوټې ټوټې سول. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲٦/۸، رقم: ۴۴۲۴.

**تشريح**: د روم په ډول فارس (ایران) هم د پخوانیو شهنشاهیت ځای وو او د آسیا یو عظیمه پاچاهي وه هغه وخت د سلطنت حدودو یوې خوا ته تر سنده پوري خپور سوی وو او د بلي خوا څخه د عراق او عربو اکثرو برخي لکه یمن، بحرين او عمان هم د فارس تر واک لاندي وه، د هغوی اخلاقي حالت هم د شاوخوا هیواد په ډول ډېر خراب وو، یزدان او اهرمن د نیکۍ او بدۍ دوه خدایان ګڼل کېدل او د اور عبادت د هیواد عام مذهب وو، د سلطنت د پاچا لقب به خسرو وو چي د هغه عربي لفظ کسری وو، رسول الله ﷺ خسرو یا کسری ته خط واستوی چي د هغه نوم پرویز وو چي د هرمز ابن نوشېروان زوی وو، په تاریخي روایاتو کي راځي چي هغه وخت د ایران دا رواج وو چي پاچاهانو ته به کوم خطونه استول کېدل نو په هغو کي به تر ټولو مخکي د پاچا نوم وو مګر دغه خط مبارک د الله جل جلاله په نامه (بسم الله) سره شروع سوی وو او بیا د رسول الله ﷺ مبارک نوم وو ځکه د خسرو پرویز په مخکي چي وویل سو نو هغه سخت په غصه سو او وه يې ويل چي زما غلام ته داسي جرئت پیدا سو چي ما ته دا ډول خط ليکي او بیا په غصه

كېدو سره هغه خط يې څيري كړ ، د رسول الله ﷺ قاصد په حاضرېدو سره دا واقعه بيان كړه نو رسول الله ﷺ وفرمايل همدارنګه دده حكومت په هم ټوټې ټوټې سي ، د خط مبارك سره د خسرو پرويز دغه خرابه رويه او پر هغه باندي د رسول الله ﷺ د ښېرا دا نتيجه سوه چي څه وخت وروسته د طبري رحمه الله د روايت سره سم په ۱۳ جمادي الاول ۷م هجري كال (۶۲۹ع) په شپه پروزېر خپل زوی شيرويه قتل كړی او بيا شپږ مياشتي وروسته د هغه زوی شيرويه هم مړ سو همدارنګه پر دغه حكومت او سلطنت باندي د همېشه لپاره داسي عذاب نازل سو چي لږ وخت وروسته د زرګونو كلونو دعظيم الشان سلطنت ټوټې ټوټې سو .

﴿۳۷۵۳﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ إِلَى كِسْرَى وَإِلَى

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ كسرى (د فارس او ايران پاچا) ،

قَيْصَرَ وَإِلَى النَّجَاشِيِّ وَإِلَى كُلِّ جَبَّارٍ يَدْعُوهُمْ إِلَى اللّٰهِ تَعَالَى وَلَيْسَ بِالنَّجَاشِيِّ الَّذِي صَلَّى عَلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه مسلم

قيصر (د روم پاچا) ، نجاشي (د حبش پاچا) او د هر ظالم او سركښ په نامه خطونه وليكل چي په هغو كي يې د اسلام قبلولو بلنه وركړې وه او هغه نجاشي چي رسول الله ﷺ دا خط ورته ليږلی وو هغه نجاشي نه دئ چي پر هغه رسول الله ﷺ (غائبانه) د جنازې لمونځ كړی وو . مسلم .

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۳۹۷/۳، رقم: ۷۵- ۱۷۷۴.

**تشريح**: د روايت د آخري برخي مقصد د هغه خلكو د خيال رد كول دي كوم چي د هغوی په نزد هغه نجاشي چي خط ور استول سوی وو د هغه نوم اصحمه وو چي د رسول الله ﷺ فرمانبردار او د رسول الله ﷺ د صحابه كرامو څخه وو ، كله چي مدينې ته د هغه د وفات خبر راغلی نو رسول الله ﷺ وفرمايل چي هغه صالح سړی او ستاسو ورور اصحمه په حق رسيدلی دی ولاړ سئ او د هغه د جنازې لمونځ وكړی نو رسول الله ﷺ د هغه غائبانه د جنازې لمونځ وركړ مګر د ځينو محققينو په نزد ددغه ترديد ضرورت نه سته ځكه چي هغوی وايي چي رسول الله ﷺ دواړو نجاشيانو ته خطونه استولي دي مخكي يې د اصحمه په نامه استولی وو او بيا د اصحمه څخه وروسته چي كوم سړی نجاشي سو هغه ته هم رسول الله ﷺ خط واستوی .

اوس پاته سوه دا خبره چي څرنګه چي اول نجاشي يعني اصحمه مسلمان سوی وو ايا دوهم نجاشي هم مسلمان سوی وو كه يا ؟ په دې باره كي مختلف روايات دي د ځينو په نزد هغه

هم مسلمان سوی وو مګر ځیني حضرات وايي چي هغه مسلمان سوی نه وو.

مخکي د قيصر او كسرى په باره كي ذكر سوى دى ځکه د نجاشي په باره کي هم يو څو خبري ذکر کول ضروري دي، حبش د عربو جنوب خوا ته په ختيځه افريقه کي د يو هيواد نوم دی، د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ په وخت کي د دغه هيواد حكمران اصحمه وو، اصحمه او د هغه هيوادوال عيسايان وه، حبش په اصل کي عربي نوم دی او په يوناني کي دې ته اتهوپيا وايي او د دنيا په اوسنۍ نقشه کي هم د اتهوپيا په نامه مشهوره دی، په حبشي ژبه کي پاچا ته نجوس وايي نجاشي د دغه نجوس معرب دی.

په اسلامي تاريخ کي د هغه وخت د حبشيانو ذکر په ډېر عزت، احترام او شکر ګزارۍ سره کيدی ځکه چي رسول الله ﷺ د خپل پيغمبرۍ څخه سمدستي وروسته دنيا د الله ﷻ د آخري دين خوا ته راوبلل او د خپل رسالت اعلان کولو سره يې دنيا ته د خپل اطاعت دعوت ورکړ او په کراره کراره د مکې خلک د رسول الله ﷺ په اطاعت کي داخلېدل شروع سول او همدا رنګه د الله ﷻ د نامه بېرغ لوړېدل شروع سول نو د مکې کفارو دا ونه زغمل او دهغوی له خوا د مکې مکرمې مځکه يې پر مسلمانانو باندي د يوه الله ﷻ د نامه اخيستلو په جرم کي تنګه کړل، هغه وخت کله چي د مکې د قريشو ظلمونه د انسانيت د حد څخه ووتل او د توحيد پر مؤمنانو باندي د ظلم او ستم انتهاء وسوه او رسول الله ﷺ مسلمانانو ته په د مکې څخه په هجرت کولو سره د تللو اجازه ورکړه نو دا حبش وو چي د خپل هيواد دروازې يې د مظلومو مسلمانانو لپاره په پراخ زړه سره خلاصي کړې او هغوی ته يې په خپل مځکه کي په ډېر عزت او احترام سره پناه ورکړه.

د مسلمانانو اولي قافلې چي د مکې مکرمې څخه هجرت وکړ د حضرت عثمان غني ؓ په مشرتابه کي حبشې ته ورسيدل ددې څخه وروسته دوهمه قافله حبشې ته ورسيدل او د هغو مشر د حضرت علي ؓ ورور حضرت جعفر طيار ؓ وو، په دغه دوهم وار رسول الله ﷺ د حبشې د پاچا په نامه يو خط واستوی او د ځينو تاريخ پوهانو د قول سره سم د نبي کريم ﷺ په خطونو کي دغه اول خط مبارک وو، په دې کي نجاشي ته يوازي د اسلام دعوت نه وو ورکړل سوی بلکه ددې نصيحت هم ورته سوی وو چي هغه د حکومت د غرور او تکبر په پرېښودو سره حبشې ته د پناه اخيستلو لپاره د ورتلونکو مظلوم مکي مسلمانانو سره تواضع وکړي، د مکې قريشو دا هم ونه زغمل چي مسلمان په حبشه کي د امن او سکون ژوند تېر کړي ځکه هغوی د مکې د معززو کسانو يو وفد د عمرو بن العاص په ډول موقع شناس او پوهانو په مشرتابه کي د

حبشې پاچا ته واستول چي هغه مهاجرين مسلمانان د حبشې څخه بېرته راواستوي او په مكي كي هغوى بيا د ظلم نښنه سي ، هغه وفد د حبشې د پاچا په مخكي د مسلمانانو پر خلاف شكايت وكړ او د نجاشي د غصې كولو لپاره يې دا وويل چي : دا خلك عجيب او غريب عقائد لري چي په هغه باندي نه موږ خبر يو او نه تاسو .

د حبشې پاچا نجاشي د وفد پر دغه شكايت باندي د مهاجرينو څخه د حقيقت معلومولو لپاره وويل او د هغوى څخه يې د هغه عقيدو پوښتنه وكړل ، په دغه وخت كي حضرت جعفر طيار ﷺ يو په زړه پوري تقرير وكړ چي هغه د حق ويني او بې باكي او په يو شاهي دربار كي د اسلامي عقائدو او نظرياتو د جرئت څخه ډكه ذريعه كېدو په وجه يوازي په اسلامي تاريخ كي يو قيمتي سرمايه نه ده بلكه د دنيا د ادبي تاريخ يو زريني ورقي او د خطابت د فن او تقرير يو قيمتي شاهكار هم دى ، هغه د حبشې پاچا ته وفرمايل : اې شاه ذي جاه : موږ ډېر جاهل قوم وو ، د مصنوعي او خپل په لاسو جوړو سوو بتانو عبادت زموږ مذهبي شعار وو ، مردار خوري ، بد كاري او بې رحمتي زموږ د ټولني اهم جزء ګرځيدلى وو موږ نه د همسايه په حقوقو خبر وو او نه د آخرت او همدردى د جذبې سره اشنا وو ، هر طاقتو به زموږ د كمزوري پر هضم كولو فخر كوى دا زموږ د ژوند معيار وو ، زموږ د دغه تباهى حال د ډېره وخت څخه قائم وو چي ناڅاپه الله ﷻ زموږ قسمت بدل كړ او موږ ته يې يو داسي پيغمبر راواستوى چي د هغه د نسب او حسب څخه موږ هم خبر يو چي د هغه د صداقت او امانت حال موږ ته معلوم دى او د هغه عفت او پاك لمني هر وخت زموږ په نظر كي ده ، هغه راغلى او موږ ته يې هدايت وكړ ، هغه ځلانده شمع راته وښوول چي هغه زموږ د ستركو څخه د بدكارى او جهالت د تيارې پردې وشكولې .

دغه پيغمبر موږ ته وښوول چي تاسو يوازي د يوه الله ﷻ عبادت كوئ او هغه خپل خالق او مالك وګڼئ ، د بتانو عبادت پرېږدئ دغه په خپل لاس جوړ سوي معبودان نه تاسو ته ګټه رسولاى سي او نه تاوان ، په ياد ولرئ د ګمراهى بنياد د پلار او نيكه په پټو ستركو تقليد دى . هغوى موږ ته تعليم راكړ چي همېشه رېښتيا واياست ، په امانت كي هيڅكله خيانت مه كوئ ، د همسايه سره همېشه ښه چلن او همدردي خپل شعار وګرځوئ ، وينه تويول او د الله ﷻ حرام كړي شيانو څخه ځان وساتئ ، فحش او دروغ مه واياست ، د يتيم مال مه خورئ او پر پاك لمنو ښځو باندي تهمت مه واياست د يوه الله ﷻ عبادت كوئ ، روژه نيسئ او د خپل مالو زكوة وركوئ ، اې پاچا ! دغه نبي موږ د داسي نورو ډېرو غوره كارو تعليم راكړى دى موږ د هغه تصديق وكړ او هغه مو د الله ﷻ پيغمبر ومنى او ايمان مو پر راوړئ او څه چي هغه د الله ﷻ

حکم موږ ته واوري موږ دهغه پیروي وکړه ، موږ الله ﷻ یو ومنی او د شرک څخه مو توبه وکښل ، حلال مو حلال وګڼل او حرام مو حرام وګڼل ، او همدا زموږ جرم دی چي موږ یې د خپل هیواد پر پرېښودو باندي مجبور کړو او موږ ستاسو هیواد ته په راتللو سره پناه اخیستې ده .

د حبشې پر پاچا باندي ددغه حقیقت او بصیرت څخه ډک تقریر ډېر اثر وسو ، هغه د قریشو وفد ته جواب ورکړ چي داسي د پاکو عقیدو لرونکي نیک خلک زه په بېرته استولو سره د ظالمانو دظلم او ستم ښکار کولای نه سم .

د شپږم هجري کال په پای کي رسول الله ﷺ د صلح حدیبیه څخه وروسته مدینې منورې ته بېرته راغلی او په اووم هجري کال د محرم په میاشت کي رسول الله ﷺ د نړۍ د پاچاهانو په نامه خطونه واستول . د حبشې پاچا ته یې بیا یو خط واستوی او حضرت عمرو ابن امیه ضمري ﷛ د رسول الله ﷺ خط مبارک د حبشې دربار ته ورسوی اول خو هغه د نجاشي په مخکي د اثر څخه ډک یو تقریر وکړ چي په هغه کي د نجاشي د مشفقانه روې څخه د اطمینان اظهار وسو چي هغه دمکې د مظلومو مسلمانانو په باره کي اختیار کړې وه بیا د اسلامي عقائدو او د رسول الله ﷺ د پیروۍ اختیارو مؤثر تبلیغ کولو څخه وروسته هغه وویل چي :

د رسول الله ﷺ له خوا زما په ډول نور ډېر خلک مختلفو پاچاهانو ته د اسلام د دعوت لپاره استول سوي دي مګر د رسول الله ﷺ چي کوم امید ستاسو څخه دی د نورو څخه داسي امید نه سته ستاسو څخه په دې باره کي پوره اطمینان دی چي تاسو به د ځان او د الله ﷻ په مینځ کي د خپل مخکنۍ نیکۍ او د راتلونکي اجر او ثواب لحاظ وساتئ .

لږ وخت مخکي د حضرت جعفر طیار ﷛ د معجز بیان څخه نجاشي د اسلام د دعوت څخه خبر سوی وو اوس د حضرت عمرو ابن امیه ﷛ مؤثر تبلیغ د هغه په سینه کي د ایمان شمع روښانه کړه هغه د شاهي تخت څخه په راکښته کېدو سره پر مځکه کښېنستی خط مبارک یې په لاس کي په اخیستو سره مچ کړ او پر دواړو سترګو یې ومږی بیا یې ژبارونکی (ترجمان) را وغوښتی او دهغه د ترجمه کولو حکم یې ورکړ ، نجاشي د رسول الله ﷺ فرمان اوریدی او متاثر کیدی ، کله چي مضمون ختم سو او د هغه په مقصد خبر سو نو د ډېره شوق څخه یې د خط مبارک په مچولو سره پر سر کښېښودی او وه یې ویل (اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمد رسول الله) او بیا یې وویل که چیري زه خپله تللای سوای نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي به حاضر سوی وای ، بیا هغه خپل زوی ارها د تحفو سره د رسول الله ﷺ دربار ته واستوی مګر په بد قسمتۍ سره ارها په لاره کي وفات سو او د رسول الله ﷺ دربار ته ونه رسیدی .

ددې څخه وروسته بيا رسول الله ﷺ حضرت عمرو ابن اميه ضمري ﷺ ته د نجاشي په نامه خپل يو بل خط واستوی ، نجاشي دغه مبارک خطونه په احتياط سره د فيل د غاښ په يو صندوق کي په خوندي کولو سره په خپل خزانه کي ايښودل ، نجاشي وويل تر څو چي دغه فرمان موجود وي زما يقين دی چي د حبشې خلک به مامون او خوندي وي نو تر څو چي دغه مبارک خطونه د حبشې په خزانه کي موجود وي د سلطنت هر والي به د دغه خطو ډېر تعظيم او تکريم کوی او د ټول هيواد خلکو ته به د دغه خطو په ذريعه برکت تر لاسه کيږي.

## د جهاد کونکو لپاره درې هدايات

﴿٣٧٥٤﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ بُرَيْدَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت سليمان بن بريدة ﷺ د خپل پلار څخه روايت کوي چي کله به رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَّرَ أَمِيرًا عَلَى جَيْشٍ أَوْ سَرِيَّةٍ أَوْصَاهُ فِي خَاصَّتِهِ بِتَقْوَى اللَّهِ

پر يو لوی لښکر يا کوچني لښکر يو څوک امير و ټاکی نو هغه ته به يې په خاصه توګه دا نصيحت کوئ چي د الله ﷻ څخه بيره کوئ

وَمَنْ مَعَهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ خَيْرًا ثُمَّ قَالَ اغْزُوا بِاسْمِ اللَّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ قَاتِلُوا

او کوم مسلمانان چي به د هغو سره تلل د هغوی په اړه يې دا وصيت فرمايه چي د هغوی سره غوره چلن کوئ او ددې وروسته به يې دا حکم ورکوی چي د الله ﷻ په نامه د الله ﷻ په لاره کي د هغه سړي سره وجنګيږي

مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ اغْزُوا وَلَا تَغُلُّوا وَلَا تَغْدِرُوا وَلَا تَمْثُلُوا وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا وَإِذَا

چي هغه د الله ﷻ سره کفر وکړ، او جهاد کوئ او (غنيمت د مال په ويشلو کي) خيانت مه کوئ او مه ټکي کوئ ، او مه مثله (پزه يا غوږ پريکول) کوئ او کوچنيان مه وژنئ ، او اې اميره !

لَقِيتَ عَدُوَّكَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَادْعُهُمْ إِلَى ثَلَاثِ خِصَالٍ أَوْ خِلَالٍ فَأَيَّتُهُنَّ مَا

هر کله چي ته د خپل دښمن مشرکانو سره مخامخ سې نو هغوی ته د درو خبرو دعوت ورکړه بيا په دې خبرو کي چي کومه خبره هغوی

أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَإِنْ أَجَابُوكَ

قبوله کړي نو هغه منظوره کړه او جنګ بند کړه او تر ټولو وړاندي هغوی ته د اسلام دعوت ورکړه که هغوی اسلام قبول کړي

فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى التَّحَوُّلِ مِنْ دَارِهِمْ إِلَى دَارِ

نو ته يې منظور کړه او بيا ورسره جنګ مه کوه او که هغوی اسلام قبول نه کړي نو بيا هغوی ته د دارالحرب (د کافرانو د وطن) څخه

الْمُهَاجِرِينَ وَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ إِنْ فَعَلُوا ذٰلِكَ فَلَهُمْ مَا لِلْمُهَاجِرِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا

دارالاسلام (د مسلمانانو حکومت) په لور د راتللو دعوت ورکړه او هغوی ته وښيه که هغوی دارالاسلام ته راسي نو د هغوی به هغه حقوق وي کوم چي

عَلَى الْمُهَاجِرِينَ فَإِنْ أَبَوْا أَنْ يَتَحَوَّلُوا مِنْهَا فَأَخْبِرْهُمْ أَنَّهُمْ يَكُونُونَ كَأَعْرَابِ

د مهاجرينو وي او د هغوی پر ذمه به هغه فرائض وي کوم چي د مهاجرينو پر ذمه دي، که هغوی د دې څخه هم انکار وکړي نو هغوی خبردار کړئ چي د هغوی سره به د صحرايي

الْمُسْلِمِينَ يَجْرِي عَلَيْهِمْ حُكْمُ اللهِ الَّذِي يَجْرِي عَلَى الْمُؤْمِنِينَ وَلَا يَكُونُ

مسلمانانو په ډول سلوک کيږي يعني پر هغوی به د الله تعالی هغه حکم جاري کيږي کوم چي پر ټولو مسلمانانو جاري دي (مثلاً لمونځ، زکوة، قصاص او ديت وغيره)

لَهُمْ فِي الْغَنِيمَةِ وَالْفَيْءِ شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يُجَاهِدُوا مَعَ الْمُسْلِمِينَ فَإِنْ هُمْ أَبَوْا

او مال غنيمت او د هغه مال څخه چي د کافرانو څخه تر لاسه سي هغوی ته به هيڅ حصه نه ورکول کيږي مګر کله چي هغوی د مسلمانانو سره جهاد کوي، نو د هغه څخه به هم حصه ورکول کيږي، که هغوی د دې څخه هم انکار وکړي

فَسَلْهُمُ الْجِزْيَةَ فَإِنْ هُمْ أَجَابُوكَ فَاقْبَلْ مِنْهُمْ وَكُفَّ عَنْهُمْ فَإِنْ هُمْ أَبَوْا

نو د هغوی څخه جزيه (محصول) وغواړي، که هغوی جزيه قبوله کړي نو ته يې منظوره کړه او

د جنگ څخه لاس واخله او که هغوی جزیه هم قبوله نه کړي

فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ وَقَاتِلْهُمْ وَإِذَا حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ تَجْعَلَ لَهُمْ

نو بیا د الله تعالی څخه مرسته وغواړه او د هغوی سره جګړه وکړه، او کله چې ته د هغوی یوه قلعه محاصره کړې (یا یو آبادۍ ونیسې) او د هغه ځای خلک ستاسو څخه

ذِمَّةَ اللّٰهِ وَذِمَّةَ نَبِيِّهِ فَلَا تَجْعَلْ لَهُمْ ذِمَّةَ اللّٰهِ وَلَا ذِمَّةَ نَبِيِّهِ وَلَكِنْ اجْعَلْ لَهُمْ

د الله تعالی او د هغه د نبي ﷺ ذمه (عهد) وغواړي نو ته د الله تعالی او د هغه د نبي عهد هغوی ته مه ورکوه

ذِمَّتَكَ وَذِمَّةَ أَصْحَابِكَ فَإِنَّكُمْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَمَكُمْ وَذِمَمَ أَصْحَابِكُمْ أَهْوَنُ

بلکه خپل عهد او د خپلو ملګرو عهد ورکړه، له دې کبله که ته خپل او د خپلو ملګرو عهد مات

مِنْ أَنْ تُخْفِرُوا ذِمَّةَ اللّٰهِ وَذِمَّةَ رَسُولِهِ وان حَاصَرْتَ أَهْلَ حِصْنٍ فَأَرَادُوكَ أَنْ

کړې نو د الله تعالی او د هغه د رسول د عهد ماتولو څخه به دا غوره وي، او هر کله چې ته د یوې قلعې خلک محاصره کړې او هغوی دا خواهش وکړي چې

تُنْزِلَهُمْ عَلَى حُكْمِ اللّٰهِ فَلَا تُنْزِلْهُمْ عَلَى حُكْمِ اللّٰهِ وَلَكِنْ أَنْزِلْهُمْ عَلَى حُكْمِكَ

فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي أَتُصِيبُ حُكْمَ اللّٰهِ فِيهِمْ أَمْ لَا . رواه مسلم .

د الله جل جلاله په حکم د هغوی محاصره پورته کړې نو ته د الله جل جلاله په حکم محاصره مه پورته کوه بلکه خپل رایه او په خپل حکم سره محاصره پورته کړه ځکه چې تا ته نه ده معلومه ده چې د الله جل جلاله حکم څه دئ. مسلم.

**تخریج** صحیح مسلم ۱۳۵۷/۳، رقم: ۳- ۱۷۳۱.

**د لغاتو حل** تخفروا: ای تنقضوا (مات کړئ).

**تشریح** په دغه حدیث شریف کې د هغه قاعدې اظهار سوی دی کوم چې د اسلام د دښمنانو پر خلاف د جهاد کولو په باره کې شریعت جاري کړې ده او هغه قاعده داده چې کله دښمن مخته راسي نو تر ټولو مخکې هغه ته د اسلام بلنه ورکړئ که هغه د اسلام بلنه قبوله نه کړي نو د هغه

ځخه دا غوښتنه وکړئ چي د محصول په ادا کولو سره د اسلامي هیواد وفادار اوسیدونکی جوړ سي او که دې ته هم تیار نه سي نو بیا په آخري صورت کي د هغه پر خلاف جهاد کول دي.

ثم ادهم ...الخ: (بیا هغوی ته د اسلام دعوت ورکړه) : د دغه جملې ځخه د هغه درو شیانو اظهار شروع کیږي کوم چي د هغه تعلق د ذکر سوې قاعدې سره دی او لفظ د ثم په فرمایلو سره د لښکر امیر ته خطاب کول مقصد دي چي کله تا دغه درې شیان په اجمالي توګه و پیژندل نو اوس د دغه درو شیانو تفصیلي حکم باندې هم پوه سه او هغه دا چي اول هغوی ته د اسلام دعوت ورکړه بیا د محصول غوښتنه وکړه او کله چي هغوی په دغه دواړو کي هیڅ شی قبول نه کړي نو بیا د هغوی پر خلاف جهاد وکړه.

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي د مسلم په ټولو نسخو کي (ثم ادعهم) دی مګر قاضي عیاض رحمة الله عليه ویلي دي چي د دغه روایت زیات صحت په دې کي معلومیږي چي دا (ادعهم) وي یعني د ثم لفظ نه وي ، په کتاب ابوعبید او سنن ابوداؤد او داسي نورو کي هم دغه لفظ د ثم ځخه پرته نقل سوی دی ځکه چي د دغه جملې ځخه په اصل کي د درو شیانو وضاحت بیانیږي نه دا چي د هغه درو شیانو ځخه پرته د یو بل شي وضاحت کول مقصد وي ، مازري رحمة الله عليه وايي چي دلته لفظ د ثم د معنی په اعتبار زیات دی مګر په جمله کي د دې استعمال د مخکي کېدونکي خبرې د شروع په توګه دی او دا په هغه درو شیانو کي د اول شي د وضاحت او بیان لپاره دی او تر مع المسلمین پوري د دې تتمه ده ، د دې ځخه وروسته دوهم شی یعني د محصول (جزیې) غوښتنه کول او بیا دریم شی جهاد کول دي.

رسول الله ﷺ چي دا حکم وفرمایه که هغه خلک د اسلام دعوت قبول کړي نو هغوی ته د هجرت کولو دعوت ورکړه، د ځینو حضراتو په نزد د دغه حکم بنیاد دادی چي د مکې د فتح ځخه مخکي هجرت کول د اسلام یو رکن وو.

هغوی ته به هغه حقونه تر لاسه کیږي ...الخ : یعني د مدینې مهاجرینو ته چي کوم ثواب او فضیلت او د فئ د مال کوم حق ورکول کیږي دا ټول به تاسو ته هم حاصلیږي نو د رسول الله ﷺ په زمانه کي مهاجرینو ته دغه حق په دې توګه حاصل وو چي هغوی ته د امام له خوا د جهاد پر حکم کېدو باندې د جهاد لپاره د وتلو په وخت کي به په هغوی باندې د فئ مال مصرف کیدی او د دښمن په مقابله کي د جنګ کونکو شمېر به زیات وو یا کم وو ، پر خلاف د غیر مهاجرینو چي هغوی ته دا حق حاصل نه وو ځکه چي د دښمن په مقابله کي د جنګ کونکو مسلمانانو شمېر د کافي کېدو په صورت کي پر هغوی باندې د جهاد لپاره وتل واجب نه وه نو د دغه

ارشاد : (وعليهم ما على المهاجرين) او پر هغوی به هغه ذمه داري عائد کيږي ...الخ: ددې مطلب هم دادی ځکه چي د ذمه دارۍ څخه مراد جهاد دی.

د صحرائي مسلمانانو څخه مراد هغه مسلمانان دي کوم چي د دارالاسلام په صحرا او ځنګلو کي او سيږي نه په دار الکفر کي او سيدونکي صحرائي مسلمانان.

د غنيمت او فئ يو معنی ده يعني هغه مال چي د کفارو څخه مسلمانانو ته په لاس راسي مګر ځينو حضراتو په دواړو کي دا فرق کړی دی چي د غنيمت مال هغه مال ته وايي کوم چي د جنګ په ذريعه او په تکليف سره د کفارو څخه تر لاسه کيږي او فئ هغه مال ته وايي چي کوم د جنګ او تکليف څخه ماسوا د کفارو څخه په لاس راسي.

که ته خپل او د خپلو ملګرو د امان عهد مات کړې ...الخ : ددې مطلب دادی که چيري ته هغوی ته د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ له خوا د امان عهد ورکړې او هغوی (کفار) هغه عهد او امان يو وخت مات کړي په دې توګه چي هغوی د شرطونو پوره کولو څخه انکار وکړي چي د هغه په بنياد د هغوی سره عهد سوی دی نو په دغه صورت کي ستا لپاره د هغوی په باره کي يو فيصله کول به مشکل وي تر دې چي تا ته د وحي يا د رسول الله ﷺ په ذريعه د هغوی په باره کي د يو فيصلې کولو اجازه وکړل سي چي هغه وخت به ممکن نه وي ځکه چي ته به د وحي نازلېدو د ځای يعني د رسالت د دربار څخه ليري يې ددې پر خلاف که ته هغوی ته خپل او د جهاد د ملګرو له خوا د امان عهد ورکړې او هغوی د شرطونو او معاهدې په خلاف ورزي کولو سره هغه عهد مات کړي نو په دغه صورت کي ستا لپاره د هغوی په باره کي فيصله کي به مشکل نه وي چي ته د هغوی د بيا محصرې کولو سره هغوی قتل کړې که دي خوښه وي نو د محصول غوښتنه ځيني وکړه او که دي خوښه وي بنديان يې کړه ، يا ددې څخه ماسوا د هغوی پر خلاف د حکمت سره سم کوم اقدام کول چي وغواړې په هغه کي به تا ته پوره اختيار وي.

## د زوال وروسته د جنګ شروع کولو حکمت

﴿۳۷۵۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ اَوْفٰى اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَعْضِ

د حضرت عبد الله بن ابي او فی رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د جنګ په ورځو کي (يو

اَيَّامِهِ الَّتِي لَقِيَ فِيهَا العدو انْتَظَرَ حَتّٰى مَالَتِ الشَّمْسُ ثُمَّ قَامَ فِي النَّاسِ

وار) انتظار وکړ (يعني د دښمن سره يې د ورځي په پيل کي جنګ ونه کړ) کله لمر پر زوال سو

نو رسول الله ﷺ د خلکو په منځ کې ودریدئ

فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ لَا تَتَمَنَّوْا لِقَاءَ الْعَدُوِّ وَسَلُوا اللّٰهَ الْعَافِيَةَ فَإِذَا لَقِيتُمُوهُمْ

او وه يې فرمايل : اې خلکو ! د دښمن سره د جنګ کولو ارزو مه کوئ بلکه د الله ﷻ څخه امن او عافيت غواړئ او هر کله چې د دښمن سره جنګيږئ

فَاصْبِرُوا وَاعْلَمُوا أَنَّ الْجَنَّةَ تَحْتَ ظِلَالِ السُّيُوفِ ثُمَّ قَالَ اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ

نو د صبر څخه کار اخلئ او دا دې خبرې يقين ساتئ چې جنت د تورو تر سايې لاندې دئ. بيا رسول الله ﷺ دا دعاء وکړه : اې الله ! د کتاب نازل کونکې !

وَمُجْرِيَ السَّحَابِ وَهَازِمَ الْأَحْزَابِ اهْزِمْهُمْ وَانْصُرْنَا عَلَيْهِمْ . متفق عليه

د وريځې چلونکې ! د دښمن ډلې ته ماته ورکونکې ! اې الله دښمن ته ماته ورکړې او د کافرانو په مقابله کې زموږ مرسته وکړې . بخاري او مسلم .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ١٣٠، رقم: ٢٩٦٥، ومسلم ٣\ ١٣٦٢، رقم: ٢٠ - ١٧٤٢.

**تشريح** د لمر تر زواله پورې په جنګ نه کولو کې دا حکمت وو چې د غرمې څخه وروسته کله چې لمر زوال سي نو د ګرمۍ په تيزۍ کې کمي راځي او هوا چلېدل شروع سي چې فرحت رسوي او همدارنګه هغه وخت د طبيعت د خوشحالۍ وي دوهم دا چې هغه د لمانځه او دعاء وخت هم وي . په حديث شريف کې راغلي دي چې هغه وخت د آسمان دروازې خلاصيږي او د انسانانو اعمال پورته کيږي نو په داسي وخت کي کله چې د انوارو او برکاتو او فتح او نصرت د نزول امېد کيدای سي . رسول الله ﷺ وغوښتل جهاد چې غوره عمل دی په دغه برکت ناکه وخت کي وکړل سي .

## رسول الله ﷺ به تر سهار کېدو مخکې پر دښمن حمله نه کول

﴿٣٧٥٦﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا غَزَا بِنَا قَوْمًا لَمْ

د حضرت انس ﷜ څخه روايت دئ چې کله به رسول الله ﷺ زموږ سره جهاد کوئ

يَكُنْ يَغْزُو بِنَا حَتَّى يُصْبِحَ وَيَنْظُرَ اليهم فَإِنْ سَمِعَ أَذَانًا كَفَّ عَنْهُمْ وَإِنْ لَمْ

نو د سهار کېدو څخه مخکې به يې پر دښمن حمله نه کول. کله چې به سهار سو نو رسول الله ﷺ

به د دښمن پر ډلې نظر واچوئ که د هغوی څخه به د آذان اواز راغلئ نو د جنګ څخه به منع سول

يَسْمَعُ أَذَانًا أَغَارَ عَلَيْهِمْ قَالَ فَخَرَجْنَا إِلَى خَيْبَرَ فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ لَيْلًا فَلَمَّا

او که د اذان اواز به نه راغلی نو پر هغوی به یې حمله کول، د حضرت انس رضی الله عنه بیان دئ چي موږ د خیبر په لور ولاړو او خیبر ته موږ د شپې په وخت کي ورسیدو، کله چي

أَصْبَحَ وَلَمْ يَسْمَعْ أَذَانًا رَكِبَ وَرَكِبْتُ خَلْفَ أَبِي طَلْحَةَ وَإِنَّ قَدَمِي لَتَمَسُّ

سهار سو او د آذان اواز نه واوریدل سو نو رسول الله ﷺ پر سپرلۍ سپور سو او زه د ابو طلحه سره د هغه پر سپرلۍ شاته کښېنستم زه د رسول الله ﷺ سپرلۍ ته دومره نژدې وم چي زما پښې

قَدَمَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَخَرَجُوا إِلَيْنَا بِمَكَاتِلِهِمْ وَمَسَاحِيهِمْ

د رسول الله ﷺ د قدم مبارک سره لګېدلې، انس رضی الله عنه وایي د سهار کېدو سره د خیبر خلک د ټوکرو او کودالو سره زموږ په لور راغلل (یعني خپلو مځکو ته چي هغوی زموږ د راتلو څخه نا

فَلَمَّا رَأَوُا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا مُحَمَّدٌ وَاللَّهِ مُحَمَّدٌ وَالْخَمِيسُ

خبره وه) کله چي هغوی نبي کریم ﷺ ولیدئ نو وه یې ویل محمد (راغی) قسم په خدای محمد (راغلی) او د هغوی لښکر هم (په دې ویلو سره)

فَلَجَاءُوا إِلَى الْحِصْنِ فَلَمَّا رَآهُمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُ

هغوی وتښتېدل او په قلعه کي یې پناه واخیستل، رسول الله ﷺ چي هغه خلک په تېښته ولېدل

أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ خَرِبَتْ خَيْبَرُ إِنَّا إِذَا نَزَلْنَا بِسَاحَةِ قَوْمٍ فَسَاءَ صَبَاحُ الْمُنْذَرِينَ . متفق عليه

نو وه یې فرمایل الله جل جلاله ډیر لوی دئ الله جل جلاله ډیر لوی دئ خیبر خراب سو . البته موږ (یعني مسلمانان) چي کله د یو قوم میدان کي کښېنته سو نو د هغه بیري وهلی قوم سهار خراب سي . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٢\٨٩- ٩٠، رقم: ٦١٠، ومسلم ٣\١٤٢٦، رقم: ١٢٠- ١٣٦٥.

**د لغاتو حل** مکاتلهم: جمع مکتل وهو الزنبیل الکبیر. مساحیهم: جمع مسحاة وهي المجرفة من الحدید

**تشریح** په دغه حدیث شریف کي د رسول الله ﷺ د جنګ دا معمول بیان سوی دی چي کله به یې د دښمنانو پر سیمه باندي د حملې کولو اراده وکړه نو د صبح صادق ختلو څخه وروسته به یې د هغه سیمي په باره کي فکر کوی او د سیمي د اوسیدونکو حالات او د هغوی په ذریعه به یې د هغوی د عقیدو معلومات کوی چي دا کوم خلک دي، که چیري رسول الله ﷺ ته به دا معلومه سوه چي دا د کفارو سیمه ده مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ به محض ددغه احتمال په فکر کولو سره چي کیدای سي په دغه سیمي کي مسلمانان هم وي، که چیري رسول الله ﷺ به د هغه سیمي څخه د سهار اذان واوریدی نو دا به یې ګڼل چي یا خو دغه سیمه د مسلمانانو ده او یا په دغه سیمه کي مسلمانان هم دي، رسول الله ﷺ به د حملې کولو اراده موقوف کړل او هغه سیمه به یې جنګي شغلو ته نه سپارل، مګر کله چي به یې اذان نه واوریدی نو بیا به یې حمله پر کول او هغه به یې په جنګي میدان بدلول ځکه چي په هغه زمانه کي دا تصور هم نه سو کیدای چي مسلمانان دي اذان پریږدي ځکه چي د هغه سیمي له خوا د اذان اواز نه راتلل ددې خبري واضح دلیل وو چي دغه سیمه د الله ﷻ د نامه اخیستونکو څخه بالکل خالي ده او دلته یوازي د کفر هستوګنه ده، خطابي رحمه الله وایي چي دا ددې ټینګ دلیل دی چي آذان د اسلام د شعائرو څخه دی او ددې پرېښودل بالکل جائز نه دي بلکه که چیري د یو ښار خلک د اذان پر پرېښودو باندي اتفاق وکړي او آذان کول پریږدي نو په دغه صورت کي د وخت امام او د اسلامي هیواد پاچا باندي واجب دي چي د هغوی جنګ او قتال وکړي او هغوی ددغه عامي ګمراهۍ څخه وساتي .حنفي فقهاؤ هم داسي لیکلي دي.

په دې کي هیڅ شک نه سته چي کله موږ د یو قوم میدان ته ورځو ...الخ: دا مستانفه جمله ده چي د مخکنۍ خبري یعني د خیبر د بربادۍ وضاحت کول او د هغه وجه بیانول دي.

بېرول سوی قوم: ددې څخه مراد کفار دي، ددغه جملې څخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي پر هغوی باندي د قتل او سختي ګرمۍ په صورت کي د الله ﷻ له خوا د نازلېدونکي عذاب په وجه د هغوی سهار ډېر خوفناک سوی دی او رسول الله ﷺ دا خبره د قرآن کریم ددغه آیت کریمه څخه کړې ده چي:

أَفَبِعَذَابِنَا يَسْتَعْجِلُونَ أَفَرَأَيْتَ إِن مَّتَّعْنَاهُمْ سِنِينَ ثُمَّ جَاءَهُم مَّا كَانُوا يُوعَدُونَ مَا أَغْنَىٰ عَنْهُم مَّا كَانُوا يُمَتَّعُونَ وَمَا أَهْلَكْنَا مِن قَرْيَةٍ إِلَّا لَهَا مُنذِرُونَ .

ژباړه : ایا دغه کفار زموږ د عذاب لپاره تلوار کوي کله چي د هغوی په میدان کي زموږ عذاب نازل سي نو د هغوی سهار به خراب وي څوک چي بیرول سوي وي.

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د دښمن مقابلې ته د رسيدو په وخت کي د تکبير نعره (الله اکبر) ويل مستحب دي او د داسي وخت په ډول د حالاتو په محققه امورو کي د قرآن کريم په ذريعه استشهاد جائز دي نو ددې په ډول هغه صورت وو کله چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په وخت کي ويلي وه : (جاء الحق و زهق الباطل) : حق راغلی او باطل باطل سو.

علماؤ ويلي دي چي د قرآن کريم څخه داسي استشهاد کول چي په محاوراتو کي د ضرب المثل په توګه وي ايا د لغو او بې ګټې خبرو او کلام په دوران کي مکروه دي ، ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي زموږ ځينو علماؤ ددې وضاحت کړی دی چي د يو سړي د خپل يو مفهوم د ادا کولو لپاره د خپل الفاظو پر ځای د الله تعالی کلام يعني د قرآن کريم يو آيت يا يوه ټوټه استعمالول کفر دي لکه يو سړی خپل مخاطب ته چي د هغه نوم يحيي وي د يو کتاب يا بل شي ورکولو په وخت کي داسي ووايي : (يا يحيى خذ الكتاب بقوة) ، دا په اصل کي د آيت کريمه يوه ټوټه ده چي د هغه ترجمه داده : اې يحيى! دا کتاب په ټينګی سره ونيسه ، يا يو سړی خپل مخاطب د خوراک کولو لپاره يا د مخته ويلو لپاره ويل غواړي نو په خپل الفاظو سره چي ووايه يا وخوره ددې پر ځای بسم الله ووايي يا په داسي بل صورت کي د قرآن کريم الفاظ استعمالول.

ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي چي د رسول الله ﷺ (جاء الحق و زهق الباطل) ويل د استشهاد په توګه نه وو بلکه په اصل کي د امتثال امر په توګه وو چي الله تعالی رسول الله ﷺ ته حکم ورکړی وو (قل جاء الحق و زهق الباطل) يعني اې محمد ! (ﷺ) ووايه چي حق راغلی او باطل ولاړی.

خلاصه دا چي دا ډول څو مره منقولات چي د رسول الله ﷺ ثابت دي هغه په اصل کي د الله تعالی د حکم اطاعت او پر ځای راوړل دي او دا مستحب دي.

## د ماپښين په وخت کي د جنګ شروع

﴿٣٧٥٧﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ شَهِدْتُ الْقِتَالَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى

د حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ سره په جنګ کي ملګری

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ فِي أَوَّلِ النَّهَارِ انْتَظَرَ حَتَّى تَهُبَّ الْأَرْوَاحُ وَتَحْضُرَ الصَّلٰوةَ. رواه البخاري.

و م. رسول الله ﷺ چي به په كومه ورځ د سهار په خت كي جنګ ونه كړي نو تر هغه وخته پوري به يې انتظار كوى چي بادونه به راوالوتل او د لمانځه (يعني ماپښين) وخت به راغلى. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٥٨، رقم: ٣١٦٠.

**د لغاتو حل** الارواح: جمع ريح.

**تشريح** ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د ماپښين په وخت كي د جنګ شروع په هغه صورت كي كېدل كله چي به په يو وجه د سهار په وخت كي جنګ شروع نه سو، په ظاهره دا معلوميږي چي د جنګ شروع به د حالاتو او حكمت سره سم كېدل كه چيري د حالاتو تقاضا به د سهار په وخت كي د جنګ كولو وه نو د سهار په وخت كي به جنګ كېدى او كه چيري په يو وجه به د سهار په وخت كي جنګ مناسب نه وو نو بيا د غرمې د زوال څخه وروسته به جنګ شروع كېدى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د لمر د زوال څخه وروسته جنګ

﴿١١-٣﴾: عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا لَمْ يُقَاتِلْ أَوَّلَ النَّهَارِ اِنْتَظَرَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ وَتَهُبَّ الرِّيَاحُ وَيَنْزِلَ النَّصْرُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت نعمان بن مقرن رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ سره په غزاګانو كي شريک سوى و م. كله چي به رسول الله ﷺ د ورځي په لومړنۍ برخه كي جنګ نه كوى نو انتظار به يې كوى كله چي به لمر زوال سو بادونه به راوالوتل او مرسته به نازله سوه نو جنګ به يې پيل كړ. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\١١٣، رقم: ٢٦٥٥.

## د رسول الله ﷺ د جنګ وختونه

﴿۳۷۵۹﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ عَنْ النُّعْمَانِ بْنِ مُقَرِّنٍ قَالَ غَزَوْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ

حضرت قتادة رضي الله عنه د نعمان بن مقرن رضي الله عنه څخه روايت کوي چي هغه وويل ما د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي جنګونه کړي دي،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ إِذَا طَلَعَ الْفَجْرُ أَمْسَكَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتْ

کله چي به سهار سو نو تر لمر ختو مخکي به يې جنګ نه شروع کوی او چي لمر به راوختی نو

قَاتَلَ فَإِذَا انْتَصَفَ النَّهَارُ أَمْسَكَ حَتَّى تَزُولَ الشَّمْسُ فَإِذَا زَالَتْ الشَّمْسُ

جنګ يې شروع کړ، او کله چي به غرمه سول نو جنګ به يې بند کړ، بيا چي به لمر پر زوال سو نو (ماپښين لمانځه وروسته)

قَاتَلَ حَتَّى الْعَصْرِ ثُمَّ أَمْسَكَ حَتَّى يُصَلِّيَ الْعَصْرَ ثُمَّ يُقَاتِلُ قَالَ وَكَانَ يُقَالُ

بيا به يې جنګ پيل کړ، او تر مازديګر پوري به دا لړۍ روانه وه، بيا به يې جنګ بند کړ او د مازديګر لمونځ به يې ادا کړي او د هغه وروسته به جنګيدل، د قتادة بيان دئ چي

عِنْدَ ذَلِكَ تَهِيجُ رِيَاحُ النَّصْرِ وَيَدْعُو الْمُؤْمِنُونَ لِجُيُوشِهِمْ فِي صَلَاتِهِمْ. رواه الترمذي.

صحابه کرامو به ويل په دغه وختونو کي د فتح هواوي چليږي او مسلمانان په لمنځونو کي د خپل لښکر د فتح دعاوي غواړي. ترمذي

**تخریج** سنن الترمذي ۴\۱۳۶، رقم: ۱۶۱۲.

## مجاهدينو ته يو خاص هدايت

﴿۳۷۶۰﴾: وَعَنْ عِصَامٍ الْمُزَنِيِّ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ فَقَالَ إِذَا رَأَيْتُمْ مَسْجِدًا أَوْ سَمِعْتُمْ مُؤَذِّنًا فَلَا تَقْتُلُوا أَحَدًا . رواه

الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت عصام بن مزني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ موږ په يو کوچني لښکر کي وليږلو او دا حکم يې راکړ چي کله تاسو مسجد ووينئ يا د مؤذن اذان واورئ نو هلته جنګ مه کوئ او څوک مه وژنئ. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۰۲\۴، رقم: ۱۵۴۹، وابوداود ۸۹\۳، رقم: ۲۶۳۵.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري تاسو په يو ځای کي د اسلام د شعائرو څخه يو قولي يا فعلي نښه ووينئ نو تر هغه وخته پوري څوک مه وژنئ تر څو چي دا معلومه نه سي چي دا مؤمن دی او دا کافر دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د خالد بن وليد ايران ته ليک ليږل

﴿۳۷۶۱﴾: عَنْ أَبِيْ وَائِلٍ قَالَ كَتَبَ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ إِلٰى أَهْلِ فَارِسٍ بِسْمِ اللهِ

د حضرت ابو وائل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت خالد بن وليد رضي الله عنه د فارس د سردارانو په نامه دا ليکلي وه: بسم الله

الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ مِنْ خَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ إِلٰى رُسْتَمَ وَمِهْرَانَ فِيْ مَلَأِ فَارِسٍ

الرحمن الرحيم، د خالد بن وليد د لوري د رستم او مهران په نامه چي د فارس په سردارانو کي

سَلاَمٌ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّا نَدْعُوْكُمْ إِلَى الْإِسْلاَمِ فَإِنْ أَبَيْتُمْ

دي، پر هغه چا دي سلامتي وي چي د حق او هدايت پيروي کوي ددې څخه وروسته موږ تاسو ته د اسلام منلو دعوت درکوو که تاسو اسلام نه قبلوئ نو په خپل لاس سره ذليل کېدو سره

فَأَعْطُوا الْجِزْيَةَ عَنْ يَدٍ وَّأَنْتُمْ صَاغِرُوْنَ فَإِنَّ مَعِيْ قَوْمًا يُّحِبُّوْنَ الْقَتْلَ فِيْ

جزيه راکړئ او که ددې څخه هم انکار کوئ نو زما سره داسي خلک دي چي د الله جل جلاله په لار کي

سَبِيْلِ اللهِ كَمَا يُحِبُّ فَارِسُ الْخَمْرَ وَالسَّلاَمُ عَلٰى مَنِ اتَّبَعَ الْهُدٰى. رواه في

شرح السنة.

جنګېدل یا قتلېدل داسي خوښوي لکه څرنګه چي د فارس خلک شراب خوښوي ، پر هغه چا دي سلام وي چي د هدايت او حق پیروي کوي . شرح السنة

**تخريج** لم نجده في شرح السنة.

===========

# بَابُ الْقِتَالِ فِي الْجِهَادِ

## (په جهاد کي د جګړې بيان)

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږئ په کوم کي چي رسول الله ﷺ د جهاد ترغيب ورکړی دی او د جهاد فضيلتونه او ثوابونه يې بيان کړي دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د شهيد منزل جنت دی

﴿٣٧٦٢﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ أُحُدٍ

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي د اُحد په ورځ يو سړي رسول الله ﷺ ته وويل :

أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فَأَيْنَ أَنَا قَالَ فِي الْجَنَّةِ فَأَلْقَى تَمَرَاتٍ فِي يَدِهِ ثُمَّ قَاتَلَ حَتَّى قُتِلَ . متفق عليه

که زه ووژل سم نو زما ځای به چيري وي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : په جنت کي ، هغه سړي د خپل لاس څخه خرماوي و غورځولې بيا وجنګېدی تر څو چي شهيد سو . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٧\٣٥٤، رقم: ٤٠٤٦، ومسلم ١٣\١٥٠٩، رقم: ١٤٣ - ١٨٩٩.

### د جهاد د اعلان لپاره د رسول الله ﷺ حكمت عملي

﴿٣٧٦٣﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت كعب بن مالك ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د يو جنګ اراده كول نو

يُرِيدُ غَزْوَةً إِلَّا وَرَّى بِغَيْرِهَا حَتَّى كَانَتْ تِلْكَ الْغَزْوَةُ تَبُوكَ غَزَاهَا رَسُولُ اللَّهِ

توريه به يې فرمايل، تر څو چي د تبوک د غزا موقع راغلل دا غزا رسول الله ﷺ د سختي ګرمۍ

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَرٍّ شَدِيدٍ وَاسْتَقْبَلَ سَفَرًا بَعِيدًا وَمَفَازًا وَعَدُوًّا

په ورځو كي وكړه ددې لپاره يې د ليري سفر وكړ او بې اوبو او بې وښو ځنګلونه يې قطع كړل د
دښمن شمير هم په دې كي زيات وو ، كله چي رسول الله ﷺ ددې اراده وكړل نو (توريه يې ونه

كَثِيرًا فَجَلَّى لِلْمُسْلِمِينَ أَمْرَهُمْ لِيَتَأَهَّبُوا أُهْبَةَ غَزْوِهِمْ فَأَخْبَرَهُمْ بِوَجْهِهِ
الَّذِي يُرِيدُ . رواه البخاري.

كړه بلكه) په ډاګه ددې اظهار يې وكړ چي مسلمانان دجنګ لپاره په ښه ډول تيار سي او خپل
سامان برابر كړي بيا رسول الله ﷺ صحابه كرام د خپلي هغه ارادې څخه خبر كړل كومه چي د
رسول الله ﷺ په ذهن كي وه . بخاري .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٨\١١٣، رقم: ۴۴۱۸.

**تشريح** توريه معنى خبره پټول ، په دې توګه چي اصلي خبره پټه كړل سي او بله خبره ظاهره كړل سي . رسول الله ﷺ به د جهاد د ارادې په وخت كي دا جنګي حكمت عملي اختياروى چي كوم ځاى ته به د جهاد لپاره تلل نو د هغه اعلان به يې نه كوى بلكه د يو بل ځاى په باره كي يې خبري كولې چي هلته د جهاد لپاره ځو ، دغه حكمت رسول الله ﷺ ددې لپاره اختياروى چي دښمن ته د رسول الله ﷺ د ارادې معلومات ونه سي او هغوى غافل وي ، داسي حكمت په اصل كي د جنګ ګټلو لپاره ضروري وي او ددنيا هر قانون دا روا ګڼي ځكه اسلام هم د (الحرب خدعة) يعني جنګ د مكر او فريب نوم دى. په ويلو سره داسي فريب او چم كول جائز ګرځولي دي. د رسول الله ﷺ دغه توريه كه څه هم د خدعة د ډول څخه وه مګر رسول الله ﷺ دا د صريح قول په ذريعه نه اختيارول بلكه د تعريض او كنايې په توګه يې اختيارول . كله چي به رسول الله ﷺ يو ځاى ته د جهاد لپاره د تلو اراده وفرمايل نو د خلكو څخه به يې د يو بل ځاى حالات او د هغه د لارو په باره كي پوښتني كولې . او يا داسي حكمت به يې اختياروى چي خلكو ته به د رسول الله ﷺ د حقيقي ارادې خبر نه كېدى ، رسول الله ﷺ به په صريحو الفاظو كي د يو بل

ځای د نامه په اخیستلو سره داسي نه ویل چي زه فلاني ځای ته د تلو اراده لرم تر څو د رواغ ویل لازم نه سي.

تر دې چي دغه غزا ...الخ: کعب ابن مالک ﷛ ددې په ذریعه د تبوک غزا ته اشاره وکړه چي د هغه د ذات د تعلق سره مشهور وو ، حضرت کعب ﷛ په خپله په دغه غزا کي نه وو . دا واقعه ډېره مشهوره ده چي په قرآن کریم کي هم ذکر سوې ده .

د لیري سفر یې وکړ : د جهاد لپاره تبوک ته تلل ځکه لیري سفر ویل سوي دي چي تبوک د دمشق او مدینې منورې په مینځ کي د خیبر او البلاد پر کرښه واقع د یو ځای نوم دی ، د مدینې منورې څخه د هغه زمانې د مسافت په اعتبار څوارلس منزله او وسنی زمانې د حساب مطابق تقریبا ۴۶۵ میله فاصله باندي واقع دی ، رسول الله ﷺ په خپل ژوند مبارک کي چي په کومو غزاو کي په خپله ګډون فرمایلی وو په هغه کي د تبوک غزا هم وه چي د نهم هجري کال په آخر کي واقع سوې وه ، په دغه غزا کي صحابه کرامو ته ډېر سخت مشکلات پېښ سول او هغوی ډېر تکلیفونه وزغمل .

## جنګ د مکر او فریب نوم دی

﴿۳۷۶۴﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَرْبُ خَدْعَةٌ . متفق علیه

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : جنګ یو چم دئ . بخاري او مسلم .

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\١٥٨، رقم: ٣٠٣٠، ومسلم ٣\١٣٦١، رقم: ١٧-١٧٣٩.

**تشریح** مطلب دادی چي په جنګ کي د لښکر د زیات شمېر او ډېر جنګېدل دومره ګټور نه دي لکه څومره چي مکر او چم ګټور وي کوم چي د نن ورځي په مهذبو الفاظو کي حکمت عملي ورته وایي. ددغه مکر او چم ګټه دا وي چي ټول جنګ په یو وار ختم سي ، غوره قومندان هغه وي چي د جنګ په میدان کي په خپل تدبیر او حکمت سره د دښمن لوی لښکر پر ماتي خوړلو باندي مجبوره کړي .

که څه هم د اسلام علماؤ په اتفاق سره د کفارو سره په کیدونکي جنګ کي مکر او چم جائز ګرځولی دی مګر په دې باره کي یو حد هم ټاکلی دی چي پر اسلامي او اخلاقي تعلیماتو

باندي يو حرف را نه سي . هغوی وايي چي د مکر او چم د لاري اختيارولو په صورت کي اول
بايد دا خبره په ذهن کي وي چي ښکاره درواغ ونه ويل سي او بل دا چي په هيڅ داسي صورت
کي مکر او چم ونه کړل سي چي په هغه کي د مسلمان له خوا ورکړل سوی د امان عهد مات کړل
سي ، علماؤ د مکر او چم کولو څو صورتونه ټاکلي دي د مثال په توګه داسي فريب ورکړل سي
چي اسلامي لښکر د جنګ څخه تښتيدلی دي او بيا د دښمن ددغه غفلت څخه په ګټه پورته
کولو سره پر هغوی په يو وار حمله وکړل سي ، همدارنګه داسي حکمت اختيار کړل سي چي په
هغه کي د ذکر سوو دواړو امورو لحاظ وي .

په حديث کي لفظ د خدعة په اصل کي د خ په پېښ او د دال په جذم سره يعني خُدعة دی
مګر زيات فصيح د خ په زبر سره يعني خِدعة دی ، ددې معنی داده چي جنګ په فريب او چم سره
ختميږي مګر دغه لفظ د خ په زبر سره او د خ په پېښ سره او د دال په زبر سره يعني خدعة هم نقل
سوی دی، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي جنګ په ډېره دوکه کي اچونکی دي يعني کوم
خلک چي د دښمن مقابلې ته ځي د هغوی په زړه کي ډول ډول خيالونه پيدا کيږي مګر کله چي د
جنګ ميدان ته ورسيږي او جنګ کيږي نو د هغوی د خيالاتو برعکس نتيجې ظاهريږي ، يو
سړی د فتح تر لاسه کولو او د دښمن د وژلو په خيال سره راځي مګر د جنګ په ميدان کي ماته
خوري او خپله ووژل سي همدارنګه يو سړی د ماتي او ناکامۍ په خيال سره راځي مګر هلته د
جنګ ميدان بدل سي او هغه کامياب سي ، غرض دا چي جنګ په دوکه او فريب کي اچونکی يو شی دی .

## جهاد ته د ښځو بېولو مسئله

﴿٣٧٦٥﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِأُمِّ سُلَيْمٍ وَنِسْوَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ مَعَهُ إِذَا غَزَا يَسْقِينَ الْمَاءَ وَيُدَاوِينَ الْجَرْحَى .

رواه مسلم

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ چي به د يو جنګ لپاره تشريف وړئ نو ام
سليم او د انصارو نوري ښځي به يې د ځان سره بيولې چي د جنګ په وخت کي خلکو ته اوبه
ورکړي او د زخميانو تداوي وکړي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴۴۳/۳ ، رقم: ۱۳۵ - ۱۸۱۰.

**تشریح** د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي مجاهدینو ته د اوبو ورکولو، د زخمیانو پټۍ او خدمت کولو په نیت د زیات عمر ښځي (سپین سري) د ځان سره بېول جائز دي او که چیري د صحبت او کوروالی په نیت وي نو بیا د ازادو ښځو په نسبت د مینزو بېول غوره دي (دا حکم هغه وخت وو کله چي د داسي مینزو ساتل رواج وو چي د هغوی سره صحبت او کوروالي کول جائز وه).

﴿۳۷۶۶﴾: وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ قَالَتْ غَزَوْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ غَزَوَاتٍ أَخْلُفُهُمْ فِي رِحَالِهِمْ فَأَصْنَعُ لَهُمُ الطَّعَامَ وَأُدَاوِي الْجَرْحَى وَأَقُومُ عَلَى الْمَرْضَى. رواه مسلم.

د حضرت ام عطیة رضي الله عنها څخه روایت دئ چي زه د رسول الله ﷺ سره په اوو جنګو کي شریکه سوې یم، زه به د دوی په قرارګاه کي پاته کېدم د هغوی خوراک به مي تیاروی د زخمیانو درملنه به مي کول او د ناروغانو خدمت به مي کوی. مسلم

**تخریج** صحیح مسلم ۳\۱۴۴۷، رقم: ۱۴۲- ۱۸۱۲.

## په جهاد کي د ښځو او کوچنیانو د وژلو مسئله

﴿۳۷۶۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ. متفق علیه

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د ښځو او کوچنیانو (په جهاد کي) د وژلو څخه منع فرمایلې ده. بخاري او مسلم

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ۶\۱۴۸، رقم: ۳۰۱۵، ومسلم ۳\۱۳۶۴، رقم: ۲۵- ۱۷۴۴.

**تشریح** په هدایه کي لیکلي دي چي ښځه، هلکان، ړوند او شیخ فاني دي نه وژل کیږي مګر که یو هلک یا لیونی په جنګ کي شریک وي او جنګ کوي نو هغوی قتل کیدای سي، همدا رنګه ملکه ښځه هم وژل کېدای سي او د هغې زوی وژل هم جائز دي کوم چي د پاچا یا مشر ښځه وي ځکه چي د دښمن د پاچا او مشر په قتلېدو سره د هغوی شان او شوکت ختمیږي.

﴿٣٧٦٨﴾: وَعَنِ الصَّعْبِ بْنِ جَثَّامَةَ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
د حضرت صعب بن جثامه رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول که د
عَنْ أَهْلِ الدَّارِ يُبَيَّتُونَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَيُصَابُ مِنْ نِسَائِهِمْ وَذَرَارِيِّهِمْ
قَالَ هُمْ مِنْهُمْ . وفي رواية هم من اباءهم . متفق عليه
کافرانو پر کور د شپې حمله وکړل سي او په هغه کي ښځو او کوچنیانو ته تاوان ورسېږي نو څه حکم دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغوی د هغوی څخه دي (یعني د شپې په حمله کي د ښځو او کوچنیانو وژل کېدل ګناه نه ده هغوی هم د کافرانو څخه دي مګر په قصد سره دي هغوی نه وژل کیږي) او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي هغوی د خپلو پلرونو تابع دي. بخاري او مسلم

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\١٤٦، رقم: ٣٠١٢، ومسلم ٣\١٣٦٤، رقم: ٢٦- ١٧٤٥.

**تشریح** مطلب دادی چي په جهاد کي ښځي او کوچنیان دي په قصد سره نه وژل کیږي او که چیري د شپې د حملې په صورت کي ووژل سي نو څه پروا نه سته ځکه چي د هغوی جنګ د کوم سړي سره وي په هغوی کي د فرق نه کېدو په وجه هغوی هم د قتل په حکم کي د خپلو مشرانو په ډول دي.

## د دښمن د درختو پرېکولو مسئله

﴿٣٧٦٩﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطَعَ نَخْلَ بَنِي
د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د یهودي قبیلې بني نضیر د خرماوو د
النَّضِيرِ وَحَرَّقَ وَلَهَا يَقُولُ حَسَّانُ (شعر) وَهَانَ عَلَى سَرَاةِ بَنِي لُؤَيٍّ حَرِيقٌ
درختو پرېکولو او سوځلو حکم وکړ، حسان په دې اړه دا شعر وایه: (د بني لوئي پر سردارنو د مقام بویره کي د خرماوو د درختو پریکول او سوځل آسان وي) او د دې پېښي په اړه دا آیت
بِالْبُوَيْرَةِ مُسْتَطِيرُ وَفِي ذٰلِكَ نَزَلَتْ {مَا قَطَعْتُمْ مِنْ لِينَةٍ أَوْ تَرَكْتُمُوهَا قَائِمَةً
عَلَى أُصُولِهَا فَبِإِذْنِ اللّٰهِ. متفق عليه
نازل سو: (ما قطعتم .....) (د خرماوو د درختو چي څه تاسو وهلي یا څه مو د هغه پر ریښو

ولاړي پرې ايښي دي دا ټول د الله په حکم سره دي ) . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٧\٣٢٩، رقم: ٤٠٣١، ومسلم ١٣\١٣٦٥، رقم: ٣٠ - ١٧٤٦.

**د لغاتو حل** مستطير: اى منتشر . (خپاره سوي).

**تشريح** کله چي رسول الله ﷺ د مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته په هجرت راغلی نو دلته يې د يهوديانو سره هم تعلق پيدا سو ، هغه وخت په مدينه کي د هغه يهوديانو درې ډلي ابادي وې ١: بنو نضير، ٢: بنو قريظه، ٣: بنو قينقاع، رسول الله ﷺ يو معاهده وکړه چي په هغه کي د مسلمانانو او يهودو په مينځ کي د ډېرو ټولنيزو او معاشرتي معاملاتو سره متعلق او په خپلو کي د تعلق په باره کي يو څو احکام هم فيصله سول چي په هغو کي يهوديانو ته د مسلمانانو سياسي او تمدني حقوقو کي په صراحت سره د مساوات په ورکولو سره پوره حقوق ورکړل سول او هغوی ته د مذهبي ازادۍ په ورکولو سره ډېره فياضانه رويه اختيار کړل سوه او د مسلمانانو له خوا پر هغه عمل هم وکړل سو مگر د يهوديانو له خوا د هغه معاهدې خلاف ورزي وکړل سول تر دې چي د بنو نضير يهوديانو له خوا تر دې حده د عهد ماتولو اظهار وسو چي د هغوی له خوا د رسول الله ﷺ د قتل فلان هم تيار کړل سو مگر الله ﷻ د وحي په ذريعه رسول الله ﷺ د هغه ناپاک فلان څخه خبر کړ نو هغه يهوديان د مدينې منورې څخه په جلا وطنه کولو سره خيبر ته وتښتېدل او د هغوی د خرماوو باغونه وسوځل سول او د هغوی سرايونه ونړول سول .

لؤیٔ : د لام په پېښ او د همزې په زور سره او د ياء په شد سره د نضر ابن کنانه د اولاد څخه د يو سړي نوم وو چي د رسول الله ﷺ د مشرانو نيکه گانو څخه دی او د بني لؤي څخه مراد د قريشو اشراف دي چي د رسول الله ﷺ صحابه کرام او د رسول الله ﷺ سره په هجرت راغلي وه .

بويره د يو ځای نوم دی چي هلته د بنو نضير باغونه وه کوم چي صحابه کرامو سوځلي وه.

نقل سوي دي چي کله رسول الله ﷺ د بنو نضير د خرماوو د پرې کولو او سوځلو حکم وکړ نو هغوی وويل اې محمد ! (ﷺ) تاسو خو پر مځکه باندي د فساد کولو څخه منع کول نو بيا تاسو زموږ د خرماوو درختي ولې پرې کړې او وسوځلې ، نو ذکر سوی آيت نازل سو چي د رسول الله ﷺ د حکم تائيد يې وکړ او دايې واضحه کړه چي دغه يهوديانو ته کومه سزا ورکړل سوې ده هغه د الله تعالی د حکم مطابق ده او د اسلام د دښمنانو درختې پرې کول او سوځل جائز دي.

## د دښمن د غفلت څخه ګټه اخيستل او د هغوی قتل جائز دی

﴿٢٧٧٠﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَوْنٍ اَنَّ نَافِعًا كَتَبَ اِلَيْهِ يُخْبِرُهُ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ

د حضرت عبد الله بن عون رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نافع رضي الله عنه هغه ته وليکل چي ابن عمر رضي الله عنه هغه

اَخْبَرَهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَغَارَ عَلَى بَنِي الْمُصْطَلِقِ غَارِّيْنَ فِيْ نَعَمِهِمْ بِالْمُرَيْسِيْعِ فَقَتَلَ الْمُقَاتِلَةَ وَسَبَى الذُّرِّيَّةَ. متفق عليه

ته دا وښودل چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بني مصطلق مقام مريسيع کي چي هغوی په خپلو حيوانانو کي بې خبره پراته وه لوټ کړل کومو خلکو چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مقابله وکړه، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوی ووژل او د هغوی ښځي او کوچنيان يې ونيول. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٧٠\٥، رقم: ٢٥٤١، ومسلم ١٣٥٦\٣، رقم: ١- ١٧٣٠.

**د لغاتو حل** غارين: اى غافلين. مريسيع: اسم ماء لبني مصطلق بالعصب.

**تشريح** بني مصطلق د خزاعه قبيلې يو ښاخ وو او مريسيع د يو ځای نوم دی چي د مکې او مدينې په مينځ کي د مدينې منورې څخه تقريبا پر اويا مېله فاصله واقع دی، دلته د پړي او به وې چي پر هغو باندي د بني مصطلق واک وو.

د جنګ کونکو څخه هغه خلک مراد دي کوم چي د جنګ کولو صلاحيت او وړتيا يې درلودل يعني عاقل او بالغ نارينه، د ذريت څخه د هغوی ښځي او کوچنيان مراد دي.

د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د اسلام دښمنان که چيري په غفلت کي وي نو د هغوی د غفلت څخه په ګټه اخيستلو سره ناڅاپه حمله کول او د هغوی د غفلت په حال کي د هغوی قتلول او د هغوی پر مال او سامان باندي قبضه کول جائز دي.

## د جنګ په باره کي يو فوجي حکم

﴿٢٧٧١﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَنَا يَوْمَ بَدْرٍ

د حضرت ابو اُسيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د بدر د غزا په ورځ چي موږ د قريشو

حِيْنَ صَفَفْنَا لِقُرَيْشٍ وَصَفُّوا لَنَا اِذَا اَكْثَبُوْكُمْ فَعَلَيْكُمْ بِالنَّبْلِ وفي رواية اِذَا

په مقابله کي صفونه تړلي وه او قريشو موږ ته مخامخ صف بندي کړې وه موږ ته وفرمايل: کله

چي قريش تاسو ته نژدې سي نو تاسو غشي پر واوروئ، او په يوه روايت کي دي کله چي هغوی

اَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ وَاسْتَبْقُوا نَبْلَكُمْ . رواه البخاري. و في حديث سعد

تـ سو ته نژدې راسي نو پر هغوی غشي و اوروئ او غشي هم د ځان سره وساتئ (يعني ټول غشي مه مصرفوئ)، بخاري او د سعيد حديث

هل تنصرون سنذكر في باب فضل الفقراء وحديث البراء بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم رهطا في باب المعجزات ان شاء الله تعالى.

(هل تنصرون) به د فضل فقراء په باب کي او د براء حديث: بعث رسول الله الخ. به د معجزات په باب کي بيان کړو.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٩١، رقم: ٢٩٠٠.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جنګ په ميدان کي د لښکر برابرول

{٢-٣}: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ عَبَّأَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَدْرٍ لَيْلًا . رواه الترمذي.

د حضرت عبد الرحمن بن عوف ﷛ څخه روايت دئ چي د بدر په غزا کي رسول الله ﷺ موږ د شپې تيار او برابر کړو. (يعني د شپې يې سره سم کړو تر څو د ورځي بيا هر سړی پر خپل ځای ودرېږي). ترمذي

**تخريج** سنن الترمذي ١٦٧\۴، رقم: ١٦٧٧.

**تشريح** د تعبية معنی تيارول دي، د حديث مطلب دادی چي د بدر په غزا کي د جنګ شروع کولو څخه مخکي په شپه کي خپل لښکر يې داسي تيار او مرتب کړي د مجاهدينو پر بدن يې وسله وتړل د هغوی صفونه يې برابر کړل او هر مجاهد يې پر خپل ځای ودروی يعني څوک چي په کوم ځای کي مناسب وو هلته درول يې ور وښوول چي کله د ورځي جنګ شروع سي نو هر سړی دي پر خپل خپل ځای همداسي قائم وي.

## د مجاهدينو لپاره امتيازي نښې

﴿۳۷۷۳﴾: وَعَنِ الْمُهَلَّبِ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنْ بَيَّتَكُمُ الْعَدُوُّ فَلْيَكُنْ شِعَارُكُمْ حم لَا يُنْصَرُونَ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د مهلب رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ د خندق په غزا کې موږ ته وفرمايل: که دښمن پر تاسو د شپې حمله وکړي نو ستاسو علامه (حم لا ينصرون) الفاظ دي. ترمذي او ابوداؤد

**تخريج** سنن الترمذي ۴\ ۱۷۰، رقم: ۱۶۸۲، وابوداود ۳\ ۷۴، رقم: ۲۵۹۷.

**تشريح** په فوجي او جنګي قواعدو کې په عامه توګه دا معمول دی چې د فوجيانو لپاره يو خاص نښه او علامه ټاکل کيږي چې په هغه سره د موافق او مخالف په مينځ کې فرق وکړل سي دغه نښې د غير لفظي نښو په صورتو کې هم ټاکل کيږي چې د فوجيانو پر بدن او کالو باندي لګول کيږي او د لفظي اشارو په صورت کې هم وي چې هغه په ژبه ادا کولو سره د خپل حيثيت او حقيقت اظهار کيږي، د لښکر د قومندان له خوا خپل فوجيانو ته مخکې دا ښوول کيږي که چيري د جنګ په ميدان کې يا په يو بل ځای کې پوښتنه در څخه وسي چې ته څوک يې؟ نو دغه لفظ په ژبه ادا کوه، که چيري پوښتنه کونکی د خپل لښکر سړی وي نو تا ته به څه تاوان نه رسوي په خاصه توګه د شپې د حملې په وخت کې چې د خپلو او پرديو په مينځ کې فرق کول مشکل وي او اکثر اشتباه کيږي د داسي علامو او اشاراتي الفاظو ډېر ضرورت وي، د نن سبا په رواجي اصطلاحاتو کې داسي اشاراتي الفاظو ته په انګريزي ژبه کې کوډ ورډ ( Code word) وايي. نو د حنين د غزا په وخت کې کله چې رسول الله ﷺ ته د دښمن له خوا د شپې د حملې کولو خطره پيدا سوه نو رسول الله ﷺ مسلمانان خبردار کړل چې هغوی په داسي حال کې خپل علامه (حم لا ينصرون) الفاظ ووايي چې ددې په ذريعه دا و پيژندل سي چې مسلمان څوک دی او کافر څوک دی. ددغه الفاظو معنی ده اې د حم نازلونکې! دښمنانو ته دې هيڅوک د مرستې لپاره تر لاسه نه سي.

﴿۳۷۷۴﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ شِعَارُ الْمُهَاجِرِينَ عَبْدَ اللّٰهِ وَشِعَارُ الْأَنْصَارِ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چې د مهاجرينو د پيژندني علامه په يوه غزا کې

(عبدالله) وه او د انصارو علامه (عبدالرحمن) وه. ابوداؤد.

**تخريج** سنن ابي داود ١٣\٧٣، رقم: ٢٥٩٥.

﴿٣٧٧٥﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ زَمَنَ

د سلمه بن اكوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په ملګرتيا كي

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَيَّتْنَاهُمْ نَقْتُلُهُمْ وَكَانَ شِعَارُنَا تِلْكَ اللَّيْلَةِ أَمِتْ أَمِتْ. رواه ابوداؤد

جهاد وكړ د رسول الله ﷺ په زمانه كي موږ پر كافرانو د شپې حمله وكړه او هغوى مو قتل كړل او په دغه شپه زموږ علامه يعني د مسلمانانو د پېژندني نښه د (اَمت اَمت) الفاظ وه. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ١٣\١٠٠، رقم: ٢٦٣٨.

## صحابه كرامو د جنګ په وخت كي شور نه خوښوى

﴿٣٧٧٦﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكْرَهُونَ الصَّوْتَ عِنْدَ الْقِتَالِ. رواه ابوداؤد

د حضرت قيس بن عباده رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د نبي كريم ﷺ صحابه كرامو به د جنګ پر وخت شور يا آواز بد ګڼى (او يوازي د الله ذكر به يې كاوه). ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ١٣\١١٣، رقم: ٢٦٥٦.

**تشريح** عام فوجيان وي چي هغوى د جنګ په مېدان كي چغي، نعرې، شور او بې مقصده نعرې وهي او د خپل مېړاني او شجاعت نعرې پورته كوي چي پر دښمن باندي هيبت او رعب ولوېږي مګر صحابه كرامو به داسي نه كول بلكه هغوى به يوازي د الله جل جلاله په نامه اخيستلو سره الله اكبر وايه.

او كه چيري د هغوى د خولې څخه به اواز پورته كېدى نو هغه به يوازي د الله جل جلاله پر ذكر مشتمل وو ځكه چي په حقيقت كي يوازي د الله جل جلاله په نامه اخيستلو كي د دنيا او آخرت مطلب تر لاسه كيږي.

## د دښمن مشران وژنئ

﴿۳۷۷۷﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اقْتُلُوا شُيُوخَ الْمُشْرِكِينَ وَاسْتَحْيُوا شَرْخَهُمْ اي صِبْيَانَهُمْ . رواه الترمذي وابوداؤد

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ فرمايلي دي : په مشركانو كي مشران وژنئ او كوچنيان ژوندي پرېږدئ . ترمذي او ابوداؤد

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۱۲۳، رقم: ۱۵۸۳، وابوداود ۳\۱۲۲، رقم: ۲٦٧٠.

**تشريح** د زيات عمر والا څخه يا خو زلميان مراد دي چي د كوچنيانو په مقابله كي لوى وي يا هغه سپين ږيري مراد دي چي د ټينګ قوت مالک وي ځكه چي شيخ فاني وژل صحيح نه دي مګر كوم شيخ فاني چي په جنګ كي د خپل عقل او رايه څخه كار اخلي او دښمن په جنګ كي د هغه پر ښوول سوو تدبيرو عمل كوي نو هغه قتلول جائز دي .

## د دښمن ښار او كښتونه سوځل جائز دي

﴿۳۷۷۸﴾: وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ حَدَّثَنِيْ أُسَامَةُ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَهِدَ إِلَيْهِ قَالَ أَغِرْ عَلٰى أُبْنٰى صَبَاحًا وَحَرِّقْ . رواه أبو داود

د حضرت عروة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما ته اسامه رضي الله عنه بيان وكړ چي نبي كريم ﷺ هغه د لښكر د مشر ټاكلو سره وليږئ نو تاكيد سره يې ورته حكم وركړ چي د ابناء پر ځاى باندي (چي په شام كي دئ) سهار وختي حمله وكړه او هغه وسوځه (يعني د هغوى مځكي او درختي) تباه او برباد يې كړه. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ۳\۸۸، رقم: ۲٦۱٦.

**تشريح** ابنا د يو سيمي نوم دى چي په شام كي واقع ده او هلته حضرت اسامه ابن زيد رضي الله عنه د مجاهدينو د امير په توګه د جهاد لپاره استول سوى وو .

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د اسلام د دښمنانو ښارونه لوټ كول د هغوى كور، مځكي ، درمن ، درختي او باغونه سوځل جائز دي .

﴿۳۷۷۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ

إِذَا أَكْثَبُوكُمْ فَارْمُوهُمْ وَلَا تَسُلُّوا السُّيُوفَ حَتَّى يَغْشَوْكُمْ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو اسید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د بدر د غزا په ورځ وفرمایل: کله چي دښمنان تاسو ته نژدې راسي نو پر هغوی غشي و اوروئ او توري تر هغه وخته پوري د تیکو څخه مه کاږئ تر څو پوري چي مخامخ نه سئ. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\١١٨، رقم: ٢٦٦٤.

## د دښمن د مزدورانو قتل کولو څخه منع

﴿٣٧٨٠﴾: وَعَنْ رِبَاحِ بْنِ الرَّبِيعِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت رباح بن الربيع رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ په یوې غزا کي د رسول الله ﷺ سره وو،

فِي غَزْوَةٍ فَرَأَى النَّاسَ مُجْتَمِعِينَ عَلَى شَيْءٍ فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ انْظُرْ عَلَى مَا

رسول الله ﷺ ولیدل چي خلک پر یو شي راجمع وه نو رسول الله ﷺ د حال معلومولو لپاره یو سړی ولیږی کله چي هغه راغلی

اجْتَمَعَ هٰؤُلَاءِ فَجَاءَ فَقَالَ عَلَى امْرَأَةٍ قَتِيلٍ فَقَالَ مَا كَانَتْ هٰذِهِ لِتُقَاتِلَ وَعَ

نو وه یې ویل چي یوه ښځه وژل سوې ده او پر هغې خلک جمع دي، رسول الله ﷺ وفرمایل: دا خو جنګ والا نه وه؟ (یعني ښځه خو د جنګیانو څخه نه وه نو دا ولي وژل سوې ده)، پر

الْمُقَدِّمَةِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَبَعَثَ رَجُلًا فَقَالَ قُلْ لِخَالِدٍ لَا تَقْتُلْ امْرَأَةً وَلَا

عَسِيفًا. رواه ابوداؤد.

مخکني فوج حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه سردار وو، رسول الله ﷺ یو سړی ور ولیږی او ورته وه یې ویل چي خالد ته ووایه چي ښځه او مزدور مه وژنئ. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\١٢١، رقم: ٢٦٦٩.

**د لغاتو حل** عسيفا: اى اجيرا وتابعا للخدمة. (مزدور)

**تشريح** د مزدور څخه مراد هغه مزدور دی چي د جنګ په میدان کي د جنګ لپاره نه وي راوستل سوی بلکه د خدمت او نورو کارو لپاره راوستل سوی وي.

## مجاهدينو ته د ليږلو پر وخت هدايات

﴿٣٧٨١﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ انْطَلِقُوا بِاسْمِ

د انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د ليږلو پر وخت مجاهدينو ته وفرمايل : ځئ د

اللّٰهِ وَبِاللّٰهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللّٰهِ وَلَا تَقْتُلُوا شَيْخًا فَانِيًا وَلَا طِفْلًا وَلَا صَغِيرًا

الله جل جلاله د نامه په برکت سره ، د الله تعالى په توفيق سره او د رسول الله ﷺ پر دين ، (خبردار!) چي شيخ فاني مه وژنئ ، مه کوچنی وژنئ

وَلَا امْرَأَةً وَلَا تَغُلُّوا وَضُمُّوا غَنَائِمَكُمْ وَأَصْلِحُوا وَأَحْسِنُوا فَإِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ . رواه ابوداؤد

او مه ښځه (وژنئ) ، د غنيمت په مال کي خيانت مه کوئ د غنيمت مال يو ځای کړئ په خپلو کي صلح کوئ او د يو بل سره ښه چلن کوئ ځکه چي الله تعالى نيکي کونکي خوښوي . ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٨٦، رقم: ٢٦١٤.

**تشريح** شيخ فاني مه وژنئ مگر که چيري يو سپين ږيری د جنگ کولو صلاحيت ولري يا د هغه رايه او د هغه د جنگي تدبير د ښمن لپاره کټور او مؤثر وي نو د هغه وژل جائز دي .

طفلا صغيرا : دلته لفظ د صغير بدل او بيان دی ، طفل يعني هغه هلک چي بلوغ ته نه وي رسيدلی د دغه حکم څخه هغه هلک مستثنی دی کوم چي د ښمن د قوم پاچا او مشر وي يا په جنگ کي برخه لري همدارنگه د هغه ښځي قتلول هم منع دي کوم چي په جنگ کي گډون نه لري او نه د قوم ملکه او نه په جنگي معاملاتو کي رايه او تدبير ورکونکې وي .

## د بدر د غزا يوه يادونه

﴿٣٧٨٢﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ بَدْرٍ تَقَدَّمَ عُتْبَةُ بْنُ رَبِيعَةَ وَتَبِعَهُ ابْنُهُ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د بدر د غزا په ورځ د کفارو د لښکر څخه عتبه بن ربيعه را مخته سو او په هغه پسي د هغه زوی وليد

وَأَخُوهُ فَنَادَى مَنْ يُبَارِزُ فَانْتَدَبَ لَهُ شَابٌّ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ مَنْ أَنْتُمْ

او ورور (شيبه) راغلل او آوازيې وکړ څوک سته چې زموږ سره د جنګ لپاره ميدان ته را مخته سي؟ د اسلام د لښکر څخه يو څو انصاري زلميان مقابلې ته راووتل،

فَأَخْبَرُوهُ فَقَالَ لَا حَاجَةَ لَنَا فِيكُمْ إِنَّمَا أَرَدْنَا بَنِي عَمِّنَا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى

عتبه پوښتنه وکړه تاسو څوک ياست؟ هغوی ورته وويل موږ انصاريو، عتبه ورته وويل: موږ ته ستاسو سره د جنګ ضرورت نسته، موږ خوخپل د اکا د زامنو سره جنګېدل غواړو. (يعني قريش او مهاجرينو سره) رسول الله ﷺ د عتبه د دې الفاظو په اورېدو سره وفرمايل:

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُمْ يَا حَمْزَةُ قُمْ يَا عَلِيُّ قُمْ يَا عُبَيْدَةَ بْنَ الْحَارِثِ فَأَقْبَلَ

حمزه ودرېږه، علي ودرېږه، عبيده بن حارث ودرېږه، نو

حَمْزَةُ إِلَى عُتْبَةَ وَأَقْبَلْتُ إِلَى شَيْبَةَ وَاخْتُلِفَ بَيْنَ عُبَيْدَةَ وَالْوَلِيدِ ضَرْبَتَانِ

حمزه د عتبه مقابلې ته را وړاندې سو (او هغه يې ووژئ) او زه (علي) د شيبه په لور متوجه سوم او هغه مې ووژئ او عبيده او وليد دواړو پر يو بل د توري وار وکړ

فَأَثْخَنَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا صَاحِبَهُ ثُمَّ مِلْنَا عَلَى الْوَلِيدِ فَقَتَلْنَاهُ وَاحْتَمَلْنَا

عُبَيْدَةَ. رواه احمد وابوداؤد

او يو بل يې سخت زخمي کړل او دواړه بې هوشه سول، بيا موږ پر وليد حمله وکړه او هغه مو هم ووژئ او موږ عبيده د ميدان څخه را واخيستی. احمد او ابوداؤد.

**تخريج** مسند الامام احمد ١١٧/١، وابوداود ١١٩/٣، رقم: ٢٦٦٥،

**د لغاتو حل** اثخن: اى جرح و اضعف (ژوبل سو)

## د يو مقصد په غرض د ميدان څخه تښتېدل جائز دي

﴿٣٧٨٣﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ بَعَثَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَرِيَّةٍ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ موږ د يو کوچني لښکر سره ولېږلو،

فَحَاصَ النَّاسُ حَيْصَةً فَأَتَيْنَا الْمَدِينَةَ فَاخْتَفَيْنَا بِهَا وَقُلْنَا هَلَكْنَا ثُمَّ أَتَيْنَا

خلک د دښمن د مقابلې څخه و تښتېدل او مدينې ته په راتګ سره موږ (د شرمندګۍ له کبله)

پټ سوو، او په خپل زړه کي مو وويل چي موږ هلاک سوو، بيا موږ حاضر سو

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ نَحْنُ الْفَرَّارُونَ قَالَ بَلْ

د رسول الله ﷺ په خدمت کي او عرض مو وکړ اې د الله رسوله! موږ تښتېدلي يو، رسول الله ﷺ وفرمايل: نه، بلکه

أَنْتُمُ الْعَكَّارُونَ وَأَنَا فِئَتُكُمْ. رواه الترمذي وفي رواية ابي داؤد نحوه وَقَالَ

تاسو د حملې سربيره حمله کونکي ياست او زه ستاسو جماعت يم، ترمذي، او په ابوداؤد کي هم دا ډول روايت دئ او د هغه اخري الفاظ دادي چي

لَا بَلْ اَنْتُمُ الْعَكَّارُوْنَ قَالَ فَدَنَوْنَا فَقَبَّلْنَا يَدَهُ فَقَالَ اَنَا فِئَةُ الْمُسْلِمِيْنَ وَ

نه، بلکه تاسو د حملې سربيره حمله کونکي ياست، ابن عمر وايي (د رسول الله ﷺ د دې الفاظو په اوريدو سره) موږ را مخته سولو او د رسول الله ﷺ مبارک لاس ونه مو مچ کړل، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د مسلمانانو جماعت يم.

سَنَذْكُرُ حَدِيْثَ اُمَيَّةَ ابْنِ عَبْدِاللّٰهِ كَانَ يَسْتَفْتِحُ وَحَدِيْثَ اَبِي الدَّرْدَاءِ اَبْغُوْنِي فِيْ ضُعَفَائِكُمْ فِيْ بَابِ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى.

او انشاء الله ډير ژر به د اميه بن عبدالله حديث کان يستفتح، او د ابودرداء حديث ابغوني في ضعفائکم. د فضل فقراء په باب کي بيان کړو.

**تخريج** سنن الترمذي ١٨٦\٤، رقم: ١٧١٦، وسنن ابي داود ١٠٦\٣، رقم: ٢٦٤٧.

**د لغاتو حل** حاص: اى مال. (مائل سو). العكارون: اى الكرارون الى الحرب والعطافون نحوها.

**تشريح** د عکر معنی ستنيدل دي او په جنگ کي ستنېدل، د دغه ارشاد مطلب دادی که چيري يو لښکر خپل کمزوري محسوس کړي او د دښمن د مقابلې څخه په دې نيت وتښتيږي چي د خپل مرکز څخه به په کومک او مرسته اخيستلو سره بيا د جنگ ميدان ته راسي نو دا گناه نه ده او تاسو خلک په دې نيت سره د جنگ د ميدان څخه تښتيدلي ياست ځکه نو د پښيمانۍ او شرمندگۍ محسوس کولو کي څه خبره نه سته.

زه د مسلمانانو ډله يم: رسول الله ﷺ د خپل عظمت او برکت په وجه خپل ځان يو پوره ډله

وګرځوی لکه څرنګه چي په قرآن کریم کي د حضرت ابراهیم علیه السلام په باره کي فرمایل سوي دي چي (ان ابراهیم کان امة) او رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه خپل مرکزیت ته هم اشاره وکړه چي زما ذات د مسلمانانو لپاره د قوت او طاقت منبع ده د کوم څخه چي هغوی ته مرسته او نصرت تر لاسه کیږي، نو ای ابن عمر! تاسو په دغه عارضي ماتي سره زړه مه ماتوئ زه ستاسو مرسته کونکی، حامي او ناصر یم.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د منجنیق استعمال

﴿۳۸۴﴾: عَنْ ثَوْبَانَ بْنِ يَزِيدَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَصَبَ الْمَنْجَنِيقَ عَلَى أَهْلِ الطَّائِفِ. رواه الترمذي مرسلا.

د حضرت ثوبان بن یزید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د طائف په مقابله کي منجنیق ودروئ (منجنیق یوه آله ده چي په هغه سره ډبري ویشتل کیږي) ترمذي مرسلا

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۸۷-۸۸، رقم: ۲۷۶۲.

**د لغاتو حل**: المنجنيق: آلة يرمي بها الحجارة. (د ډبري ویشتلو یوه آله.)

**تشریح**: په پخواني جنګي وسلو کي د منجنیق (مچلوغي) حیثیت د نن سبا د توپ په ډول وو، دا یو داسي مشین وو چي په هغه سره لوی لوی ډبري ویشتل کېدی په خاصه توګه کله چي به یو قلعه وغیره محاصره کېدل نو پر هغه به د منجنیق په ذریعه ډبري ویشتل کېدې.

طائف د حجاز یو لوی ښار دی چي د مکې مکرمې څخه تقریبا پر ۴۰ مېله فاصله جنوب لوېدیځ ته واقع دی مګر اوس تر څه وخته پوري هلته د رسېدو لپاره یو داسي سیده لار نه وه چي پر هغه باندي موټر وغیره ولاړ سي، د مکې مکرمې څخه تر طائف پوري چي کوم سړی تللی وو هغه د غرونو په مینځ کي وو څکه نو دغه لار به اوږدېدل پر دغه لاره د مکې مکرمې څخه تر طائف پوري ۸۵ مېله فاصله ښوول کیږي په دغه لاره کي منی او عرفات یو ځای کیږي او د محققینو په نزد دا هغه لار وه چي پر هغه رسول الله ﷺ په شروع کي د تبلیغ لپاره طائف ته تشریف وړی وو، د اوسني طائف څخه پر دوه نیم مېله فاصله جنوب لوېدیځ ته یو کوچنی کلی (مثناة) دی او دا د طائف یوه برخه ګڼل کیږي دا کلی چي په هغه ځای کي دی چیري چي د رسول

الله ﷺ په زمانه كي اصل طائف اباد وو .

دلته په دوو باغو كي دوه كوچني كوچني مسجدونه جوړ سوي دي چي يوه ته مسجد علي او بل ته مسجد الجعثي وايي ، د دغه دواړو مسجدو په مينځ كي يو شبله ده چي وادي اوج ورته وايي، د محققينو نظر دى چي رسول الله ﷺ د طائف په غزا كي د طائف محاصره وكړه او غالبا دا هغه ځاى دى چيري چي رسول الله ﷺ منجنيق نصب كړى وو .

==========

## بَابُ حُكْمِ الْاَسَرَاءِ (د بنديانو د حكم بيان)

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

**هغه بنديان چي جنت ته داخليږي**

﴿٣٧٨٥﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَجِبَ اللّٰهُ مِنْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى پر هغه قوم تعجب كوي (يعني د هغو څخه خوشحاله وي)

قَوْمٍ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ فِي السَّلَاسِلِ . و في رواية يُقَادُوْنَ اِلَى الْجَنَّةِ بِالسَّلَاسِلِ . رواه البخاري.

چي په زنځيرونو كي تړلي په جنت كي داخليږي او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي الله تعالى پر هغه خلكو تعجب كوي چي په زنځيرونو تړلي جنت ته راوستل سي . بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١۴۵، رقم: ٣٠١٠.

**تشريح** مطلب دادى چي كفارو كوم خلك په جهاد وغيره كي بندي كړي وي او هغوى په زنځيرونو تړلي دارالاسلام ته راوستل سي او بيا الله تعالى د هغوى ايمان نصيب كړي نو هغوى به په جنت كي داخل كړل سي ، په دې اعتبار سره كه څه هم د هغوى د جنت د داخلېدو سبب به د هغوى د ايمان قبلول وي مگر په ظاهره كي هغوى به په زنځيرونو كي تړلي په جنت كي داخل كړل سي .

## د دښمن د جاسوس وژلو حکم

﴿۳۷۸۶﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَيْنٌ مِنَ

د حضرت سلمه بن اکوع رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ په سفر کي وو چي د مشرکانو يو

الْمُشْرِكِينَ وَهُوَ فِي سَفَرٍ فَجَلَسَ عِنْدَ أَصْحَابِهِ يَتَحَدَّثُ ثُمَّ انْفَتَلَ فَقَالَ النَّبِيُّ

جاسوس راغلئ او د صحابه کرامو سره کښېنستئ خبري يې ورسره وکړې او بيرته ولاړئ

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اطْلُبُوهُ وَاقْتُلُوهُ فَقَتَلَهُ فَنَفَلَهُ سَلَبَهُ. متفق عليه.

(رسول الله ﷺ چي خبر سو) وه يې فرمايل: هغه پيدا کړئ او قتل يې کړئ نو ما هغه ووژئ، او رسول الله ﷺ د هغه ټول سامان ما ته راکړ

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٦٨، رقم: ٣٠٥١، ومسلم٣\ ١٣٧٤، رقم: ٤٥- ١٧٥٤.

**د لغاتو حل** نفلني: اى اعطاني (ما ته يې راکړ).

﴿۳۷۸۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَوَازِنَ فَبَيْنَا

د حضرت سلمه بن اکوع رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي د قبيله هوازن سره جنګ وکړ،

نَحْنُ نَتَضَحَّى مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى جَمَلٍ

يوه ورځ موږ د څاښت ډوډۍ د رسول الله ﷺ سره وخوړل چي يو سړی پر سره اوښ سپور راغلئ

أَحْمَرَ فَأَنَاخَهُ وَجَعَلَ يَنْظُرُ وَفِينَا ضَعْفَةٌ وَرِقَّةٌ فِي الظَّهْرِ وَبَعْضُنَا مُشَاةٌ إِذْ

هغه اوښ کښېنوئ او څلورو خواوو ته يې کتل پيل کړل، په موږ کي ډير خلک د سپرلۍ د کموالي په سبب او پر پښو تللو په سبب کمزوري او سست وو،

خَرَجَ يَشْتَدُّ فَأَتَى جَمَلَهُ فَأَثَارَهُ فَاشْتَدَّ بِهِ الْجَمَلُ فَخَرَجْتُ أَشْتَدُّ حَتَّى أَخَذْتُ

بيا هغه سړی په څغاسته راغلئ پر اوښ سپور سو او هغه يې ودروئ بيا يې وځغلوئ زه هم په هغه پسي ور وځغاستم تر څو چي ما د هغه د اوښ

بِخِطَامِ الْجَمَلِ فَأَنَخْتُهُ ثُمَّ اخْتَرَطْتُ سَيْفِي فَضَرَبْتُ رَأْسَ الرَّجُلِ ثُمَّ جِئْتُ

مهار ونيوئ هغه مي كښينوئ بيا مي توره د تيكي څخه راوكښل او د هغه سر مي پري كړ، ددې

بِالْجَمَلِ أَقُودُهُ عَلَيْهِ رَحْلُهُ وَسِلَاحُهُ فَاسْتَقْبَلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ وَالنَّاسُ

وروسته زه د اوښ سره راغلم ما د هغه كته چي د هغه سامان او وسله پكښې وه راكشوى مي او رسول الله ﷺ او نور خلك ما ته راغلل،

فَقَالَ مَنْ قَتَلَ الرَّجُلَ قَالُوا ابْنُ الْأَكْوَعِ قَالَ لَهُ سَلَبُهُ أَجْمَعُ . متفق عليه.

نو رسول الله ﷺ وفرمايل هغه سړى چا ووژئ، صحابه كرامو عرض وكړ ابن اكوع، رسول الله ﷺ وفرمايل د هغه ټول سامان د هغه دئ. بخاري او مسلم.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦٨\٦، رقم: ٣٠٥١، ومسلم ٣\ ١٣٧۴، رقم: ۴۵- ١٧۵۴.

**د لغاتو حل** تتضحى: اى تتغذي (د سهار ودوډى خوړل).

## د مديني د عهد ماتونكي يهوديانو په اړه فيصله

﴿٣٧٨٨﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ بَنُو قُرَيْظَةَ عَلَى حُكْمِ سَعْدِ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله بنو قريظه (د يهودو يو ډله) د سعد

ابْنُ مُعَاذٍ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ عَلَى حِمَارٍ فَلَمَّا دَنَا قَالَ

بن معاذ پر فيصله اماده سول نو رسول الله ﷺ سعد بن معاذ راوغوښتئ، سعد پر خره سپور راغلئ كله چي رسول الله ﷺ ته نژدې سو نو

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُومُوا إِلَى سَيِّدِكُمْ فَجَاءَ فَجَلَسَ فقال إِلَى

رسول الله ﷺ خلكو ته وفرمايل: د خپل سردار د تعظيم لپاره ودريږئ، سعد بن معاذ راغلئ د رسول الله ﷺ سره كښېنستئ، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل:

رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰؤُلَاءِ نَزَلُوا عَلَى حُكْمِكَ قَالَ فَإِنِّي أَحْكُمُ

دا خلك (يعني بنو قريظه) ستا پر فيصله راضي سوي دي؟ سعد بن معاذ عرض وكړ زه دا

أَنْ تُقْتَلَ الْمُقَاتِلَةُ وَأَنْ تُسْبَى الذُّرِّيَّةُ قَالَ لَقَدْ حَكَمْتَ فِيهِمْ بِحُكْمِ الْمَلِكِ .

وَفِيْ رِوَايَةٍ بِحُكْمِ اللهِ . متفق عليه

فيصله كوم چي په هغوی کي کوم خلک د جنګ وړ دي هغوی دي قتل کړل سي او کوچنيان او ښځي دي بنديان کړل سي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تا د هغوی په اړه د پاچا په ډول حکم وکړ ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي تا د هغوی لپاره د الله د حکم سره سم فيصله وکړه . بخاري او مسلم .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٦٥، رقم: ٣٠٤٣، ومسلم ٣\١٣٨٨، رقم: ٦٤ - ١٧٦٩.

**تشريح** حضرت سعد ابن معاذ رضي الله عنه يو ستر صحابي او د مشهور انصارو څخه دی ، د مدينې انصارو به هغه خپل مشر ګڼي، بنو قريظه د مدينې د يهوديانو يوه قبيله وه دا قبيله د سعد ابن معاذ رضي الله عنه حليف او د هغه يهوديانو په امان کي وه لکه څرنګه چي مخکي هم ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ مدينې منورې ته په رسېدو سره د هغه ځای د يهودو سره يوه معاهده کړې وه چي په هغه کي د مسلمانانو او يهوديانو په مينځ کي د يو تر بله تعلق او د يو بل د ښاري او سياسي حقوقو او مفاداتو تحفظ فيصله سوی وو مګر يهوديانو څو ورځي وروسته هغه فيصله ماته کړه او د مسلمانانو پر خلاف فلانونه او هغوی ته د تاوان رسولو اقدام يې شروع کړی ، د نورو يهودو قبيلو په ډول بنو قريظه هم هغه عهد مات کړ او رسول الله ﷺ په پنځم هجري کال کي د خندق د غزا څخه وروسته د الله تعالی په حکم سره د بنو قريظه پر خلاف د جهاد اراده وکړه او د هغوی محاصره يې وکړه او دا محاصره پنځه ويشت ورځو پوري جاري وه کله چي بنو قريظه بالکل مجبور سول نو هغوی وويل چي سعد ابن معاذ رضي الله عنه زموږ په باره کي کومه فيصله وکړي هغه موږ ته قبوله ده د دوی خيال وو چي موږ د سعد رضي الله عنه حليف او د هغه په امان کي يو ځکه نو هغه به زموږ رعايت وکړي او موږ ته به ددغه محاصرې څخه خلاصون راکړې مګر حضرت سعد رضي الله عنه د هغوی سره د تعلق د لحاظ کولو پرته هغه فيصله وکړه کوم چي د هغه يهوديانو د حال او حکمت سره عين مطابق وه .

تاسو د خپل مشر لپاره ودرېږئ : ددغه حکم په باره کي امام نووي رحمه الله وايي چي ددې څخه معلومه سوه چي د صاحب فضل دي تعظيم او تکريم وکړل سي او د هغه پر راتلو باندي د تعظيم په توګه د رېدل پکار دي ، اکثر علماء په دغه مسئله کي دغه حکم دليل ګرځوي او ځيني

حضرات وايي چي د رسول الله ﷺ دغه حکم د حضرت سعد رضی اللہ عنہ د تعظيم په وجه نه وو بلکه په دې وجه وو چي د سعد رضی اللہ عنہ پر ورانه باندي د غشي زخم وو چي د خندق په غزا کي هغه ته لګيدلی وو او د هغه په وجه هغه د سپرلی څخه پر کښنته کېدو مجبور وو نو رسول الله ﷺ خلکو ته حکم ورکړ چي ورسئ او د سعد رضی اللہ عنہ د سپرلی څخه په راکښنته کېدو کي مرسته وکړئ.

## د يمامه د اسلام راوړلو واقعه

﴿۳۷۸۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ بَعَثَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْلًا قِبَلَ

د حضرت ابوهريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو لښکر وليږئ په لور

نَجْدٍ فَجَاءَتْ بِرَجُلٍ مِنْ بَنِي حَنِيفَةَ يُقَالُ لَهُ ثُمَامَةُ بْنُ أُثَالٍ سَيِّدُ أَهْلِ الْيَمَامَةِ

د نجد. د هغه لښکر خلکو د قبيله بنو حنيفه يو سړی نيولی راويستئ چي د هغه نوم ثمامه بن آثال وو ، او د يمامه ښار د خلکو سردار وو ،

فَرَبَطُوْهُ بِسَارِيَةٍ مِنْ سَوَارِي الْمَسْجِدِ فَخَرَجَ إِلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

خلکو هغه د مسجد نبوي په يوې ستني پوري وتړئ ، رسول الله ﷺ د هغه په لور تشريف راوړ

وَسَلَّمَ فَقَالَ مَاذَا عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ فَقَالَ عِنْدِي يَا مُحَمَّدُ خَيْرٌ إِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا

پوښتنه يې ځيني وکړه : ثمامه ! ستا سره څه شي دي (يعني زړه دي څه وايي) ، ثمامه وويل زما سره مال او دولت سته که ته ما قتل کړې نو يو داسي سړی به قتل کړې چي د خون کولو په سبب د قتل ور دئ (يا که ته ما قتل کړې) نو داسي سړی به قتل کړې چي زما

دَمٍ وَإِنْ تُنْعِمْ تُنْعِمْ عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ

خون به ضائع کيږي نه ، بلکه زما قوم به زما د خون بدله اخلي او که بخښنه وکړې نو پر يو داسي سړي به يې وکړې چي شکر ګزار او قدردان دئ ، (يعني تا ته به د دې بدله درکړل سي) او که ته د مال خواهش لرونکی يې نو څه چي غواړې در به کړل سي ، (د دې په اوريدو سره)

فَتَرَكَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَانَ بَعْدَ الْغَدِ فَقَالَ له مَا عِنْدَكَ يَا

رسول الله ﷺ هغه پر خپل حال پرېښود ئ په دويمه ورځ بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې ثمامه

ثُمَامَةُ فقَالَ عندي مَا قُلْتُ لَكَ إِنْ تُنعِمْ تُنعِمْ عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا

څه حال دئ ؟ هغه وويل زه هغه وايم څه چي مي وړاندي ويلي دي يعني که انعام وکړې نو پر يو قدردان به انعام او احسان وکړې او که مي قتل کړې نو د ويني خاوند به قتل کړې

دَمٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ فَتَرَكَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

او که د مال خواهش لرونکی يې نو څومره چي غواړې دربه کړل سي ، په دغه ورځ هم رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَانَ بعد الْغَدِ فَقَالَ له ما عِنْدَكَ يَا ثُمَامَةُ فَقَالَ عِنْدِي مَا

ﷺ هغه پر خپل حال پرېښودئ ، په دريمه ورځ بيا رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اې ثمامه ! څه خبره ده ، هغه وويل هغه خبره ده چي

قُلْتُ لَكَ إِنْ تُنعِمْ تُنعِمْ عَلَى شَاكِرٍ وَإِنْ تَقْتُلْ تَقْتُلْ ذَا دَمٍ وَإِنْ كُنْتَ تُرِيدُ الْمَالَ

ما تاسو ته کړې ده ، يعني که بخښنه وکړئ نو پر قدردان به بخښښ وکړئ او که قتل مي کړئ نو د ويني خاوند به قتل کړئ او که مال غواړئ

فَسَلْ تُعْطَ مِنْهُ مَا شِئْتَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَطْلِقُوا ثُمَامَةَ

نو څومره چي غواړئ دربه کړل سي ، رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل : ثمامه پرېږدئ ،

فَانْطَلَقَ إِلَى نَخْلٍ قَرِيبٍ مِنَ الْمَسْجِدِ فَاغْتَسَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَقَالَ أَشْهَدُ

نو هغه د ستني څخه خلاص کړل سو هغه د مسجد څخه راووتئ او د خرماوو هغه درختي ته ولاړئ چي د مسجد سره نژدې وه هلته يې غسل وکړ ، بيا مسجد ته راغلئ او وه يې ويل زه شاهدي اداکوم

أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ يَا مُحَمَّدُ وَاللهِ مَا كَانَ عَلَى

چي د الله ﷻ څخه ماسيوا بل د عبادت وړ نسته او شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دئ .. اې محمد ! قسم په خدای !

وجه الْأَرْضِ وَجْهٌ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ وَجْهِكَ فَقَدْ أَصْبَحَ وَجْهُكَ أَحَبَّ الْوُجُوهِ كُلِّهَا إِلَيَّ

د مځکي پر مخ ستا تر مخ زيات نفرت انگيز زما په نزد هيڅ مخ نه وو ، مگر نن ستاسو مخ ما ته د دنيا تر ټولو مخونو زيات محبوب دئ،

وَاللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ دِينٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ دِينِكَ فَأَصْبَحَ دِينُكَ أَحَبَّ الدِّينِ كُلِّهِ إِلَيَّ و

په الله دي مي قسم وي چي زما په نزد ستا د دين څخه زيات نفرت کونکی شي هيڅ نه وو مگر اوس ستاسو دين ما ته تر ټولو زيات خوښ دئ ،

وَاللّٰهِ مَا كَانَ مِنْ بَلَدٍ أَبْغَضَ إِلَيَّ مِنْ بَلَدِكَ فَأَصْبَحَ بَلَدُكَ أَحَبَّ الْبِلَادِ كُلِّهَا إِلَيَّ وَإِنَّ

په الله تعالى دي مي قسم وي زما په خيال کي ستا د ښار څخه زيات نفرت کوونکی هيڅ ښار نه وو مگر اوس ستاسو ښار ما ته تر ټولو ښارونو زيات محبوب دئ ،. (اې د الله رسوله)

خَيْلَكَ أَخَذَتْنِي وَأَنَا أُرِيدُ الْعُمْرَةَ فَمَاذَا تَرَى فَبَشَّرَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

زه د عمرې اراده وه چي ستاسو لښکر زه ونيولم ، اوس تاسو ما ته څه حکم راکوئ ؟ رسول الله ﷺ ورته زيری ورکړ (چي د اسلام قبلولو په سبب د هغه ټول گناهونه و بخښل سول)

وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَنْ يَعْتَمِرَ فَلَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ قَالَ لَهُ قَائِلٌ أَصَبَوْتَ فَقَالَ لَا وَلَكِنِّي

او بيې حکم ورکړ چي هغه عمره وکړي ، بيا چي ثمامه مکې ته راغلئ نو يو سړي هغه ته وويل ايا ته بې دينه سوی يې ؟ هغه ورته وويل : نه ، بلکي ما

أَسْلَمْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا وَاللّٰهِ لَا يَأْتِيكُمْ مِنَ الْيَمَامَةِ

پر رسول الله ﷺ ايمان راوړي دئ (بې دينه سوی نه يم) قسم په الله ! اوس تر څو پوري چي رسول الله ﷺ اجازه رانه کړي د يمامه څخه به

حَبَّةُ حِنْطَةٍ حَتَّى يَأْذَنَ فِيهَا رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ . رواه مسلم و اختصره البخاري

يو دانه غنم هم نه سي در ليږل کېدلای . مسلم او بخاري په لنډه توگه بيان کړی دئ .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٨\٨٧، رقم: ٤٣٧٢، ومسلم ٣\١٣٨٦، رقم: ٥٩- ١٧٦٤.

**د لغاتو حل** اصبوت: اى اخرجت عن دينک. (ايا د دين څخه وتلی يې)

## جبیر ابن مطعم ته د اسلام ترغیب

﴿۳۷۹۰﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ لَوْ كَانَ الْمُطْعِمُ بْنُ عَدِيٍّ حَيًّا ثُمَّ كَلَّمَنِي فِي هَؤُلَاءِ النَّتْنَى لَتَرَكْتُهُمْ لَهُ. رواه البخاري

د حضرت جبیر بن مطعم رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د بدر د جنګ د بندیانو په اړه وفرمایل: که مطعم بن عدي نن ژوندی وای او ما ته یې د دغه بندیانو په اړه سفارش کړی وای نو ما به د هغه پر سفارش دوی پرېښي ایښی وای، (مطعم پر رسول الله ﷺ یو احسان کړی وو او د هغه زوی په خیبر کي اسلام قبول کړی وو پر دې خبره رسول الله ﷺ د جبیر د زړه مائل کولو لپاره دا الفاظ وفرمایل). بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٤٣، رقم: ٣١٣٩.

**تشريح**: حضرت جبیر رضی الله عنه د اسلام قبلولو څخه مخکي د بدر په غزا کي د مکې د کفارو سره وو او د مسلمانانو په مقابله کي یې جنګ کوی، د غزا څخه وروسته چي کوم کسان بندیان راوستل سول نو په هغوی کي حضرت جبیر رضی الله عنه هم وو همدارنګه حضرت جبیر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه دغه حدیث د کفر په حالت کي واوریدی مګر د اسلام قبلولو څخه وروسته یې هغه بیان کړ.

مطعم ابن عدي د حضرت جبیر رضی الله عنه پلار وو او د نوفل ابن مناف د ملسي کېدو په وجه د رسول الله ﷺ قریب وو، د مطعم پر رسول الله ﷺ یو دا احسان وو چي کله رسول الله ﷺ طائف ته د اسلام د تبلیغ لپاره تشریف وړی وو نو د مکې مشرکینو رسول الله ﷺ ته تاوان رسول وغوښتل مګر معطم هغه مشرکین د رسول الله ﷺ څخه لیري کړل ځکه نو رسول الله ﷺ د حضرت جبیر رضی الله عنه په مخکي ذکر سوي الفاظ وفرمایل چي د هغه یو لوی مقصد د جبیر رضی الله عنه د زړه تالیف او د هغه اسلام ته راغب کول وو.

## د حدیبیې یوه واقعه

﴿۳۷۹۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ ثَمَانِينَ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ مَكَّةَ هَبَطُوا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کفار د مکې څخه د اتیا مسلح کسانو سره جبل تنعیم

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ جَبَلِ التَّنْعِيمِ مُتَسَلِّحِينَ يُرِيدُونَ غِرَّةَ النَّبِيِّ

څخه په دې اراده راکښته سول چي رسول الله ﷺ او د هغوی صحابه به غافل تر لاسه کړي او

عَلَيْهَا رَحْلُهَا ثُمَّ مَشَى وَاتَّبَعَهُ أَصْحَابُهُ حَتَّى قَامَ عَلَى شَفَةِ الرَّكِيِّ فَجَعَلَ

د رسول الله ﷺ پر سپرلی دي کجاوه وتړل سي نو کجاوه وتړل سوه او رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو سره روان سوو، څه وخت چي هغه ځاه ته ورسیدل په کوم کي چي د قریشو سرداران غورځول سوي وه نو رسول الله ﷺ د هغه ځاه پر غاړه ودریدئ

يُنَادِيهِمْ بِأَسْمَائِهِمْ وَأَسْمَاءِ آبَائِهِمْ يَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ وَيَا فُلَانُ بْنَ فُلَانٍ

او د هغوی او د هغوی د پلرونو نومان يې بلل پيل کړل يعني اې د فلاني زويه فلانيه او اې د فلاني زويه فلانيه!

أَيَسُرُّكُمْ أَنَّكُمْ أَطَعْتُمُ اللهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّا قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا فَهَلْ

اې تاسو ته دا بنه معلوميږي چي تاسو د الله تعالى او د هغه د رسول اطاعت کړی وای؟ البته موږ هغه شي تر لاسه کړ کوم چي د هغه زموږ سره زموږ رب وعده کړې وه نو ايا

وَجَدْتُمْ مَا وَعَدَ رَبُّكُمْ حَقًّا فَقَالَ عُمَرُ يَا رَسُولَ اللهِ مَا تُكَلِّمُ مِنْ أَجْسَادٍ لَا

تاسو هغه شي تر لاسه کړ د کوم چي ستاسو پروردګار ستاسو سره وعده کړې وه (يعني موږ ته خو فتح راکړل سوه ايا تاسو ته هم هغه عذاب درکړل سو) حضرت عمر رضي الله عنه عرض وکړ اې دا الله رسوله! ايا تاسو د هغه بدنو سره خبري کوئ

أَرْوَاحَ لَهَا قَالَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ مَا أَنْتُمْ

چي په هغه کي روح نه نسته، رسول الله ﷺ وفرمايل: قسم دئ په هغه ذات چي د هغه په لاس کي زما ساه ده! څه چي زه وايم تاسو

بِأَسْمَعَ لِمَا أَقُولُ مِنْهُمْ. وَفِي رِوَايَةٍ مَّا أَنْتُمْ بِأَسْمَعَ مِنْهُمْ وَلٰكِنَّ لَا تُجِيْبُوْنَ.

د دې خلکو څخه زيات د هغه اوريدونکي نه ياست، مګر هغوی جواب نه ورکوي. بخاري او

متفق عليه و زاد البخاري قَالَ قَتَادَةُ أَحْيَاهُمُ اللهُ حَتَّى أَسْمَعَهُمْ قَوْلَهُ تَوْبِيْخًا وَّتَصْغِيْرًا وَّنِقْمَةً وَّحَسْرَةً وَّنَدَمًا.

مسلم . او د بخاري په روایت کي دا الفاظ زیات دي چي قتاده وویل چي الله تعالی هغه سرداران را ژوندي کړل چي د رسول الله ﷺ خبره واوریدل سي چي د هغوی زورونه وسي او هغوی خپل ذلت او خواري باندي پښیمان ، افسوس او عذاب محسوس کړي .

**تخریج** صحیح البخاري (فتح الباري): ۷\ ۳۰۰ – ۳۰۱، رقم: ۳۹۷۶، ومسلم ۴\ ۲۲۰۴، رقم: ۷۸ – ۲۸۷۵.

**د لغاتو حل** طوِي: ای بئر (څاه). العرصة: کل موضع واسع لا بناء فیه (پراخ ځای چي ابادي پکښې نه وي). شفة الرکي: ای حافة البئر (د څاه پر غاړه).

**تشریح** شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله او داسي نورو علماؤ ددغه حدیث په ذریعه د سمع موتی مسئله ثابته کړې ده حال دا چي اکثر حنفي علماء د سماع موتی څخه انکار کړی دی . د هغه علماؤ له خوا په مختلف انداز کي جواب ورکړل سوی دی چي د هغه تفصیل د فقهي په کتبو کي لکه فتح القدیر او داسي نورو کي کتلای سئ .

### د حنین د غزا د بندیانو ستنېدل

﴿۳۶۹۳﴾: وَعَنْ مَرْوَانَ وَالْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مروان او حضرت مسور ابن مخرمه (رض) څخه روایت دئ چي د رسول الله ﷺ په

قَامَ حِينَ جَاءَهُ وَفْدُ هَوَازِنَ مُسْلِمِينَ فَسَأَلُوهُ أَنْ يَرُدَّ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ وَسَبْيَهُمْ

خدمت کي د هوازن قوم یوه جرګه حاضره سوه او خواست یې وکړ چي زموږ مال او بندیان بیرته راکړل سي (د هوازن قوم سره د مسلمانانو جنګ سوی وو چي د حنین د غزا په نامه مشهور دئ په دې جګړه کي د هغوی ډیر مال لوټ سوی وو او په هغوی کي چي کوم خلک نیول سوی وه هغه بندیان کړل سول ددې پېښې څخه وروسته دا خلک مسلمانان سول او د خپل وفد لیږلو سره یې د مال او بندیانو د بیرته راکولو غوښتنه وکړه)

فَقَالَ فَاخْتَارُوا إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ إِمَّا السَّبْيَ وَإِمَّا الْمَالَ قَالُوا فَإِنَّا نَخْتَارُ

رسول الله ﷺ د وفد پر مطالبه وفرمایل په دغه دوو خبرو کي یوه غوره کړئ ، یا خو بندیان واخلئ یا مال، د وفد خلکو عرض وکړ موږ

سَبْيَنَا فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُسْلِمِينَ فَأَثْنَى عَلَى اللّٰهِ بِمَا

بندیان اخیستل خوښوو، (د دې په اوریدو سره) رسول الله ﷺ ولاړ سو او د خلکو په وړاندي

یې خطبه وفرمایل لومړی یې د الله ﷻ حمد او ثناء په هغه الفاظو کې بیان کړه

هُوَ أَهْلُهُ ثُمَّ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ إِخْوَانَكُمْ قَدْ جَاءُونَا تَائِبِينَ وَإِنِّي قَدْ رَأَيْتُ أَنْ

چې د هغه مستحق دئ، بیا یې وفرمایل: (اې خلکو!) دوی تاسو ته توبه کړې راغلي دي او ما دا کار مناسب وګڼئ چې

أَرُدَّ إِلَيْهِمْ سَبْيَهُمْ فَمَنْ أَحَبَّ مِنْكُمْ أَنْ يُطَيِّبَ بِذَلِكَ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ

د دوی بندیان بیرته ورکړم، په تاسو کې چې څوک په خوشحالۍ سره داسې کولای شي نو وه دې یې کړي او څوک چې دا خبره خوښوي چې

مِنْكُمْ أَنْ يَكُونَ عَلَى حَظِّهِ حَتَّى نُعْطِيَهُ إِيَّاهُ مِنْ أَوَّلِ مَا يُفِيءُ اللَّهُ عَلَيْنَا فَلْيَفْعَلْ

په خپله برخه قائم پاتې شي تر څو چې هغه ته به تر ټولو وړاندې راتلونکې (د غنیمت) په مال کې د هغه معاوضه ورکړل شي نو هغه دې داسې وکړي،

فَقَالَ النَّاسُ قَدْ طَيَّبْنَا ذَلِكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ

خلکو عرض وکړ اې د الله رسوله! موږ په خوشحالۍ سره په ورکولو تیار یو، رسول الله ﷺ

اللَّهِ ﷺ إِنَّا لَا نَدْرِي مَنْ أَذِنَ مِنْكُمْ مِمَّنْ لَمْ يَأْذَنْ فَارْجِعُوا حَتَّى يَرْفَعُوا

وفرمایل: ما ته دا معلومه نه سوه چې په تاسو کې چا اجازه ورکړه او چا ور نه کړه، نو تاسو (خپلو ځایو ته) ستانه سئ او ستاسو مشران به

إِلَيْنَا عُرَفَاؤُكُمْ أَمْرَكُمْ فَرَجَعَ النَّاسُ فَكَلَّمَهُمْ عُرَفَاؤُهُمْ ثُمَّ رَجَعُوا إِلَى

موږ ته ستاسو خیالات راورسوي، نو خلک ستانه سول، خپلو مشرانو د هغوی سره خبرې وکړې، بیا مشران رسول الله ﷺ ته راغلل او

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرُوهُ أَنَّهُمْ قَدْ طَيَّبُوا وَأَذِنُوا. رواه البخاري

رسول الله ﷺ ته یې خبر ورکړ چې خلکو په خپله خوښه (د بندیانو ورکولو) اجازه ورکړه. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٤\٤٨٣، رقم: ٢٣٠٧.

**تشریح** د مکې مکرمې څخه شمال لویدیځ ته چې د طائف کومه لاره ده پر هغه باندې یو پراخ میدان دی چې د هغه شاخوا غرونه دي او د هغه څخه د تېرېدو وروسته یو کوچنی کلی راځي، ددغه میدان په باره کې ویل کیږي چې د هغه په شاوخوا کې د هوازن قبیلې خلک پراته وه او دلته د مکې د فتح څخه وروسته هغه غزا سوې ده کوم ته چې د حنین یا هوازن غزا وایي، په دغه غزا کې مسلمانانو ته ډېر د غنیمت مال په لاس ورغلی او د دښمن بې شمېره خلک یې بندیان کړل او مدینې منورې ته یې راوستل چې د صحابه کرامو په مینځ کې وویشل سول، کله چې ددغه غزا څخه وروسته د هوازن قبیلې خلک په اسلام مشرف سول نو هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سول او د خپل مال او بندیانو د بېرته ورکولو درخواست یې وکړ د هغوی مال او بندیان د مجاهدینو (صحابه کرامو) ملکیت سوی وو او د هغوی د اجازې څخه پرته د هغوی ملکیت بېرته اخیستل جائز نه وه ځکه رسول الله ﷺ په دې باره کې د صحابه کرامو په وړاندې ذکر سوی ارشاد وفرمایه او د هغوی څخه یې اجازه وغوښتل.

## د بندیانو په بدله سره ایله کول

﴿۳۷۹۴﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ كَانَ ثَقِيفُ حَلِيفًا لِبَنِي عُقَيْلٍ فَأَسَرَتْ

د عمران بن حصین رضی الله عنه څخه روایت دئ چې د ثقیف قبیله د بني عقیل حلیف (ملګري) وه،

ثَقِيفُ رَجُلَيْنِ مِنْ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَسَرَ أَصْحَابُ

ثقیف د رسول الله ﷺ دوه صحابه کرام ونیول، او د رسول الله ﷺ صحابوو د

رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا مِنْ بَنِي عُقَيْلٍ فَأَوْثَقُوهُ فَطَرَحُوهُ فِي

بني عقیل یو سړی ونیوئ او وه یې تړئ او په ډبرینه مځکه کي یې وغورځوی،

الْحَرَّةِ فَمَرَّ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَادَاهُ يَا مُحَمَّدُ يَا مُحَمَّدُ فِيمَ

رسول الله ﷺ د هغه پر خوا تیریدئ نو هغه بندي اواز ورته وکړ اې محمد! اې محمد! زه مو

أُخِذْتُ قَالَ بِجَرِيرَةِ حُلَفَائِكَ ثَقِيفَ فَتَرَكَهُ وَمَضَى فَنَادَاهُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ يَا

ولي نیولی یم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ستاسو د حلیف د جرم په سبب چې ثقیف دي، په دې ویلو سره رسول الله ﷺ هغه پر خپل حال پرېښودئ او وړاندې یې تشریف یوړ، هغه بندي

بيا آواز ورته وکړ اې محمد ! اې محمد !

مُحَمَّدُ فَرَحِمَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَجَعَ قَالَ مَا شَأْنُكَ قَالَ إِنِّي

رسول الله ﷺ ته پر هغه رحم راغلئ او بيرته ورغلئ او وه يې فرمايل : ستا څه حال دئ ؟ هغه

مُسْلِمٌ فَقَالَ لَوْ قُلْتَهَا وَأَنْتَ تَمْلِكُ أَمْرَكَ أَفْلَحْتَ كُلَّ الْفَلَاحِ قَالَ فَفَدَاهُ

عرض وکړ زه مسلمان يم . رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که تا دا کلمه په داسي حالت کي ويلی وای چي ستا پر خپل ځان اختيار وو نو تا ته به پوره خلاصون تر لاسه سوی وای ، د راوي بيان

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالرَّجُلَيْنِ الَّذِيْنَ اَسَرَتْهُمَا ثَقِيْفٌ . رواه مسلم

دئ د دې وروسته رسول الله ﷺ د دوو بنديانو په بدله کي چي د ثقيف سره بنديان وه هغه پرېښودئ . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۳\۱۲۶۲، رقم: ۸- ۱۶۴۱.

**تشريح** ثقيف د عربو د يو لوی او مشهوري قبيلې نوم دی چي د بنو هوازن يو ښاخ ده او په طائف کي پرته وه ، همدارنګه بنو عقيل هم يوه قبيله وه دغه دواړي قبيلې د يو بل مرسته کونکي وې ، د جاهليت په زمانه کي د عربو دا رواج وو چي په قبائلو کي د يو بل په مينځ کي په حلف او قسم سره دا عهد کيدی چي موږ به د يو بل په ښه او بد کي ملګري يو نو په موږ کي به د يوه دښمن د دوهم هم دښمن وي او د يوه دوست به د دوهم هم دوست وي مګر کله چي د اسلام زمانه راغله نو د جاهليت د زمانې هغه رواج خو جائز وو چي د هغه تعلق د حق او جائز خبرو سره وي مګر د کوم کار تعلق چي د ناحق او ناجائز سره وي هغه ختم کړل سو او حکم وکړل سو چي د اسلام کوم حلف دی هغه کافي دی .

د بنو عقيل يو سړی بندي کړل سو : يعني د ثقيف د قبيلې خلکو چي کوم دوه صحابه کرامو ونيول او د ځان سره يې بوتله نو د هغوی په بدله کي مسلمانانو د بنو عقيل يو سړی ونيوی او هغه يې دځان سره بندي کړی ځکه چي هغه وخت د قبيلو دا رواج وو چي د يوه حليف په جرم کي د دوهم حليف سړی به نيول کيدی مسلمانانو هم د دغه رواج سره سم عمل وکړ او په ظاهره په دې کي مصلحت هم وو .

حره د مدينې په شاوخوا کي د غرنی سيمي هغه تړتې ته ويل کيږي چي د هغه مځکه توره او ډبرينه وي .

زه مسلمان يم : ددغه الفاظو په ذريعه هغه سړي دا ښوول وغوښتل چي زه د مخکي څخه مسلمان يم ، ددې څخه معلومه سوه چي کوم غير مسلم د مسلمانانو په بند کي وي او هغه دا دعوه وکړي چي زه مسلمان يم نو د هغه خبره دي تر هغه وخته پوري نه منل کيږي تر څو چي د هغه دعوه د شاهدی په ذريعه ثابته نه سي مگر دا احتمال هم کېدای سي چي ددغه الفاظو په ذريعه د هغه سړي دا مراد وي چي زه اوس اسلام قبلوم ، په هر حال رسول الله ﷺ د هغه د اسلام دعوه قبوله نه کړه ځکه چي رسول الله ﷺ وليدل چي هغه يا خو د نفاق له مخي د خپل اسلام دعوه کوي يا د مجبوری په حالت کي هغه د اسلام دعوه کوي ځکه نو رسول الله ﷺ هغه دروا غجن کړ او دارالحرب ته يې پرېښودی ، په دې اعتبار د هغه سړي سره د رسول الله ﷺ دا سي معامله گويا د رسول الله ﷺ د خصائصو څخه ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ابوالعاص د ايله کېدو واقعه

﴿۳۷۹۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ لَمَّا بَعَثَ أَهْلُ مَكَّةَ فِي فِدَاءِ أَسْرَاهُمْ بَعَثَتْ زَيْنَبُ

د حضرت عائشي ؓ څخه روايت دئ چي د بدر د غزا څخه وروسته چي د مکې کفارو رسول الله ﷺ ته د خپلو بنديانو د خلاصون معاوضه وليږل نو بي بي زينب

فِي فِدَاءِ أَبِي الْعَاصِ بِمَالٍ وَبَعَثَتْ فِيهِ بِقِلَادَةٍ لَهَا كَانَتْ عِنْدَ خَدِيجَةَ أَدْخَلَتْهَا

د خپل خاوند ابوالعاص د خلاصون لپاره هم مال وليږئ چي په هغه کي ددې اميل وو ، کوم چي د بي بي خُديجې سره وو ، او هغه يې

بِهَا عَلَى أَبِي الْعَاصِ فَلَمَّا رَآهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَقَّ لَهَا رِقَّةً

بي بي زينب ته د نکاح پر وخت په مهر کي ورکړی وو ، رسول الله ﷺ چي هغه اميل وليدئ نو زړه مبارک يې نرم سو

شَدِيدَةً وَقَالَ إِنْ رَأَيْتُمْ أَنْ تُطْلِقُوا لَهَا أَسِيرَهَا وَتَرُدُّوا عَلَيْهَا الَّذِي لَهَا فَقَالُوا

رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل که ستاسو خوښه وي نو د زينب بندي پرته د معاوضې پريږدئ او زينب چي کوم مال راليږلی دئ هغې ته يې بيرته ورکړئ ، صحابه کرامو عرض وکړ

نَعَمْ وَكَانَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَ عَلَيْهِ ان يخلى سَبِيلَ زَيْنَبَ إِلَيْهِ

ډېره ښه ده ، نو . ابو العاص خلاص کړل سو او کله چي هغه مکې ته تلئ نو د هغه څخه يې عهد واخيست چي هغه به بي بي زينب مدينې ته راوليږي ،

وَبَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدَ بْنَ حَارِثَةَ وَرَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ

رسول الله ﷺ زيد بن حارثه او يو انصاري د ابو العاص سره کړل او هغوی ته يې دا هدايت وکړ

فَقَالَ كُونَا بِبَطْنِ يَأْجَجَ حَتَّى تَمُرَّ بِكُمَا زَيْنَبُ فَتَصْحَبَاهَا حَتَّى تَأْتِيَا بِهَا . رواه احمد وابوداؤد

چي تاسو پر بطن يا جج (د ځايو نومان دي) باندي تم سئ کله چي زينب هلته را ورسيږي نو تاسو ورسره سئ او مدينې ته يې راولئ . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٦\٢٧٦، وابوداؤد ٣\١٤٠، رقم: ٢٦٩٢.

**تشريح**: بي بي زينب ﷺ د رسول الله ﷺ تر ټولو مشره لور ده او ابو العاص ابن ربيع چي د عبدالعزى ابن عبد شمس ابن عبدمناف ملسى وو د ام المؤمنين بي بي خديجې ﷺ خوريى وو او د بي بي زينب ﷺ د خاوند کېدو په وجه يې زوم هم وو .

بي بي خديجة ﷺ د رسول الله ﷺ تر ټولو مخکنى بي بي مبارکه وه ، د رسول الله ﷺ ټول اولاد پرته د ابراهيم ﷺ څخه د بي بي خديجې ﷺ څخه پيدا سوي وه ، ابراهيم ﷺ کوم چي په کم عمر کي وفات سوی وو د بي بي ماريه قبطيه ﷺ څخه پيدا سوی وو .

بي بي زينب ﷺ د يو کافر يعني ابو العاص په نکاح کي وه نو ددې سبب دا وو چي هغه وخت د مسلماني ښځي نکاح د کافر سړي سره جائز وه او د مکې څخه د بي بي زينب ﷺ د راوستلو لپاره د رسول الله ﷺ له خو د داسي دوو کسانو استول کوم چي د بي بي زينب ﷺ د شرعي محارمو څخه وه دا بالکل يو خاص ډول معامله وه او هغه يو داسي صورت وو چي د آمن صورت ورته ويل کيږي ، بي بي زينب ﷺ د رسول الله ﷺ لور وه ځکه د هغې سره د يو غير محرم کېدل د يو ډول شک او شبهې څخه لوړ وو او د يو بيري او خطرې پيدا کېدو سوال هم نه وو . دا يوه عامه مسئله ده چي ښځي ته د نامحرم سره سفر کول جائز نه دي .

بطن يا جج د يو ځاى نوم دی چي د مکې مکرمې څخه تقريبا پر اته ميله فاصله باندي واقع

دی ، دغه لفظ (جج) په قاموس کې په يا او دوو جيمو سره (ياجج) هم نقل کړی دی ، د مشکوة او مصابيح په اکثرو پخوانيو نسخو کې دغه لفظ په ناجج سره ذکر سوی دی .

کله چې بي بي زينب ﷺ د مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته راغلل نو ابو العاص په مکه کې پاته سو او پر کفر باندې قائم وو ، څو ورځې وروسته هغه د تجارت لپاره شام ته سفر وکړی ، کله چې د مدينې مسلمانانو ته معلومه سوه چې ابو العاص په دغه سفر کې مدينې ته نژدې تېرېږي نو هغوی دا فلان جوړ کړی چې کله ابو العاص د مدينې په سيمه کې داخل سي نو د هغه سامان دې لوټ کړل سي، کله چې د دغه فلان خبر بي بي زينب ﷺ ته ورسېدی نو د هغې زړه د خپل خاوند په مينه کې بې تابه سو او سمدستي د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره سوه او ورته وه يې ويل چې اې د الله رسوله ! ايا په مسلمانانو کې د يو چا د عهد او امان اعتبار نه سته ؟ يعني کله چې يو مسلمان يو کافر ته د امان عهد ورکړي نو بيا دا د ټولو مسلمانانو ذمه داري ده چې هغه کافر ته امان او پناه ورکړي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هو د يو مسلمان د عهد امان اعتبا روي نو بي بي زينب ﷺ وويل بيا تاسو شاهد اوسئ چې زه ابو العاص ته د امان عهد ورکوم. صحابه کرامو چې دا حال وليدی نو د هغوی لپاره پر خپل فلان باندې عمل کول نه ممکن سول مگر بيا هم هغوی بېله اسلحې مدينې ته نژدې د ابو العاص لاري ته ورسيدل او د هغه سره يو ځای سول او ورته وه يې ويل چې اې ابو العاص! ته د قريشو يو عزتمند ، شريف او د حيثيت خاوند سړی يې او د پيغمبر ﷺ د اکا زوی هم يې نو په دې نسبت سره ستا په باره کې تر دې غوره بله لار نه سته چې ته مسلمان سې تر څو د آخرت فلاح او خلاصون تر لاسه کړې او ستا دغه مال به هم ستا سره وي ، ابو العاص وويل تاسو چې دا ويلي دي چې د مسلمان کېدو په وجه به ستا مال هم خوندي سي نو دا بالکل يو نامناسبه خبره ده زه ددې څخه پناه غواړم چې خپل اسلام په مال او دولت سره چټل کړم ، ددې څخه وروسته ابو العاص مکې ته روان سو او هلته په رسيدو سره د خلکو مالونه هغوی ته وسپارل او بيا يې ټولو ته وويل اې د مکې د اوسيدونکو! ستاسو مالونه تاسو ته ورسېدل ؟ هغوی وويل هو موږ ته راورسېدل ، بيا ابو العاص د هغوی په مخکې اعلان وکړ چې تاسو ټول شاهد اوسئ چې زه مسلمان سوی يم : اشهد ان لااله الاالله واشهد ان محمدا رسول الله .

ددې څخه وروسته حضرت ابو العاص ﷺ په مکه مکرمه کې د خپل کور ، قريبان، مال او سامان هر څه په پرېښودو سره د هجرت لار اختياره کړه او مدينې ته په رسېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سو ، رسول الله ﷺ د ډېري مينې او الفت څخه ورته بنه راغلاست

و وایه او بي بي زینب ﷺ یې هغه ته وسپارل.

په دې باره کي اختلاف دی چي رسول الله ﷺ د ابو العاص مدینې ته په رسېدو سره د بي بي زینب ﷺ سره د هغه دوهم وار نکاح کړې وي او که په مخکنۍ نکاح کي یې ساتلې وه.

د رسول الله ﷺ د ابو العاص ﷺ سره ډېر زیات تعلق وو په خاصه توګه د هغه د مسلمان کېدو څخه وروسته یې د هغه سره ډېره مینه درلودل او د هغه څخه ډېر زیات خوشحاله وو، نوموړی د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ د خلافت په زمانه کي د یمامه په جګړه کي شهید سو.

## په جنګ بدر کي د بندیانو وژنه

﴿۳۷۹٦﴾: وَعَنْهَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَسَرَ أَهْلَ بَدْرٍ قَتَلَ عُقْبَةَ بْنَ أَبِيْ مُعِيْطٍ وَّالنَّضْرَ بْنَ الْحَارِثِ وَمَنَّ عَلٰى أَبِيْ عَزَّةَ الْجُمَحِيِّ. رواه في شرح السنة

د عائشې ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ چي د بدر خلک بندیان کړل نو عقبه بن ابي معیط او نضر بن حارث یې ووژل او په ابي عزة جمحي یې احسان وکړ (پرې یې ښودی). شرح السنه

**تخریج** البغوي في شرح السنة ١١\٧٨، رقم: ٢٧١١.

**تشریح** د وخت امیر او پاچا ته دا اختیار حاصل دی چي کوم کافران د هغه په بند کي وي او هغوی اسلام قبول نه کړي نو که امیر وغواړي هغوی دي قتل کړي او که وغواړي غلامان دي یې کړي او که وغواړي د مسلمانانو د امان په وجه دي هغوی ازاد کړي البته د هغوی مشکور کول یعني بېله معاوضې اېله کول جائز نه دي ځکه چي د دې جواز منسوخ سوی دی.

﴿۳۷۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا أَرَادَ قَتْلَ عُقْبَةَ بْنَ أَبِيْ مُعِيْطٍ قَالَ مَنْ لِلصِّبْيَةِ قَالَ النَّارُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ د عقبه بن ابي معیط د قتل اراده وکړه نو هغه وویل کوچنیان به څوک پالي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: اور. (یعني ته اور ته د تللو فکر کوه کوچنیان به الله ساتي). ابوداؤد.

**تخریج** سنن ابي داود ١٣\١٣٥، رقم: ٢٦٨٦.

**تشريح** د رسول الله ﷺ دا ویل چي کوچنيان به يې اورپالي، دا د هغه کوچنيانو د ضائع کېدو د مفهوم حامل دی يعني که اور ددې صلاحيت ولري چي هغه د يو شي مرسته کونکی او غم خوار سي نو يقينا هغه به د کوچنيانو هم مرسته کونکی او کفيل کيدای مگر هغه داسي صلاحيت نه لري ځکه د کوچنيانو د بل مرسته کونکي او کفيل نه کېدو په وجه د هغوی تباهي لازمه ده.

او يا د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي ته اوس خپل فکر کوه چي د دوږخ اور ستا هستوگن ځای دی د کوچنيانو په فکر کي مه اخته کيږي چي د هغوی روزنه نه پر تا منحصر ده او نه پر بل چا بلندي د هغوی مرسته کونکی او کفيل د الله ﷻ ذات دی هغه به يې روزنه کوي.

## د بدر د غزا د بنديانو په باره کي اختيار

﴿۳۷۹۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ عَنْ رَّسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ جِبْرَائِيلَ هَبَطَ

د حضرت علي ﷜ څخه روايت دئ چي د بدر د غزا وروسته حضرت جبرائيل عليه السلام

عَلَيْهِ فَقَالَ لَهُ خَيِّرْهُمْ يَعْنِي أَصْحَابَكَ فِي أُسَارَى بَدْرٍ الْقَتْلَ أَوِ الْفِدَاءَ عَلَى

رسول الله ﷺ ته تشريف راوړ او وه يې فرمايل: خپلو اصحابو ته د بدر د بنديانو په اړه اختيار ورکړئ که هغه وژني او که په معاوضه يې ايله کوي،

أَنْ يُقْتَلَ مِنْهُمْ قَابِلًا مِثْلُهُمْ قَالُوا الْفِدَاءَ وَيُقْتَلُ مِنَّا . رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

که هغوی معاوضه واخلئ نو راتلونکی کال به د هغوی اويا کسان ووژل سي (نو همداسي وسول او د احد په غزا کي اويا کسان ووژل سول) صحابه کرامو په دې اختيار اوريدو سره وويل موږ معاوضه اخيستل او اويا زموږ څخه وژل کيدل قبلوو . ترمذي.

**تخريج** سنن الترمذي ۱۴ \ ۱۱۴، رقم: ۱۵۶۷.

**تشريح** د بدر په غزا کي چي کوم کفار د مسلمانانو مقابلې ته راغلی وه په هغوی کي اويا د قريشو کفار قتل سوي وه او اويا کسان يې په نېولو سره مدينې ته راوستل ، کله چي يې اويا بنديان مدينې ته راوستل نو رسول الله ﷺ د هغوی په باره کي د صاحب الرايه صحابه کرامو سره مشوره وکړل چي د دوی سره څه وکړل سي ايا ووژل سي او که د مال په بدله کي ايله کړل

سي ؟ حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه دا مشوره ورکړه که چیري و نه وژل سي بلکه ژوندي پرېښودل سي نو څه عجیبه نه ده چي الله تعالی د کفر څخه د توبې توفیق ورکړي او مسلمانان سي البته د دوی څخه فدیه واخلئ او د دوی څخه د فدیې په توګه چي کوم مال واخیستل سي هغه دي ستاسو د ملګرو یعني مسلمانانو د تقویت او د دیني او دنیوي اړتیاوو لپاره استعمال کړل سي.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه وویل چي زما رایه داده چي تاسو د دوی ټولو سرونه پرې کړئ ځکه چي دوی د کفر او شرک مشران او پېشوا دي او کوم چي د دوی د اېله کېدو په ذریعه د مالي ګټې سوال دی نو الله تعالی تاسو د مال تر لاسه کولو څخه مستغني او بې نیازه کړي یاست، رسول الله صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو د اختلاف په لېدو سره د حضرت جبرائیل علیه السلام په مشوره صحابه کرامو ته اختیار ورکړل چي تاسو په دغه دواړو کارو کي یو وټاکئ که وغواړئ نو د خپلو بندیانو سرونه پرې کړئ او که وغواړئ نو د فدیې په اخیستلو سره هغوی ازاد کړئ مګر دا دي څرګنده وي چي د فدیې اخیستلو په صورت کي دا مقدر سوي دي چي په راتلونکي کال به ستاسو څخه اویا کسان شهیدان کیږي او کفارو ته به فتح حاصلیږي.

صحابه کرامو ددغه خبرتیا سربېره فدیه اخیستل اختیار کړل، په راتلونکي کال چي کله د اُحد غزا وسوه نو د جنګ په مېدان کي مسلمانانو ته سخته مقابله رامنځته سول تر دې چي پر یو موقع باندي د ماتي خوړلو صورت هم اختیار کړل سو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم چي یو کال مخکي د کومو شیانو څخه خبر کړي وه هغه مخته راغلل یعني په دغه غزا کي د مسلمانانو اویا قیمتي کسان شهیدان سول او په دغه اویا شهیدانو کي حضرت حمزه رضی الله عنه ابن عبد المطلب او حضرت معصب رضی الله عنه ابن عمیر په ډول ستر صحابه کرامو هم شامل وه.

د جنګ څخه وروسته حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سو نو وه یې لېدل چي رسول الله صلی الله علیه وسلم او ابوبکر صدیق رضی الله عنه دواړه ژاړي، حضرت عمر فاروق رضی الله عنه پوښتنه وکړه چي تاسو ولي ژاړئ ما ته هم وښیاست چي زه هم وژاړم، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل زه ستا پر ملګرو ژاړم چي هغوی فدیه اخیستل اختیار کړي وه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره نژدې یوه درخته ولاړه وه او هغه ته په اشاره کولو سره یې وفرمایل چي ما ته ددغه درختي څخه هم زیات نژدې د دوی عذاب ښوول سوی دي او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل که پر هغوی عذاب نازل سوی وای نو د هغه عذاب څخه به د عمر او سعد ابن معاذ څخه پرته بل هیچا ته خلاصون تر لاسه سوی نه وای.

په هر حال کله چي صحابه کرامو فدیه اخیستل اختیار کړل نو ددې بنیاد د هغه بندیانو په

باره کي د هغه صحابه کرامو د رحم جذبه هم د هغه متقاضي سوه چي هغه بنديان دي قتل نه کړل سي . دلته يو اشکال پيدا کيږي چي کله مسلمانانو ته په دوو شيانو کي د يوه شي اختيار ورکړل سوی وو او د هغه اختيار په وجه يې يو شی خوښ کړ نو بيا پر هغوی عتاب ولي نازل سو ، اي دغه عتاب ددې خلاف نه دی ؟ ددې جواب دادی چي دغه اختيار ورکول په اصل کي د امتحان او ازمويني په توګه وو چي ايا مسلمانان هغه شي اختياري کوم چي خوښ او حق دی يا هغه شی اختياروي کوم چي د هغوی د خواهش مطابق دی، په دې اعتبار سره ګويا هغوی په امتحان کي کامياب نه سول ځکه چي هغوی هغه شی اختيار کړی کوم چي د هغوی زړه غوښتی نو په دې وجه پر هغوی عتاب نازل سو .

علامه توريشتي رحمة الله عليه دغه حديث بعيد ګڼلی دی ځکه چي دا په ظاهره د هغه خبري مخالف دی کوم چي د قرآن کريم څخه مفهوم کيږي او په ترمذي کي پر دغه روايت کي د غرابت حکم لګول سوی دی مګر ويل سوي دي چي د غريب روايت په ذريعه يو خبره ثابتول د طعن سبب نه دی ځکه چي غريب روايت کله صحيح هم وي .

### د بنديانو پلټنه

﴿۲۷۹۹﴾: وَعَنْ عَطِيَّةَ الْقُرَظِيِّ قَالَ كُنْتُ فِيْ سَبْيِ قُرَيْظَةَ عُرِضْنَا عَلَى النَّبِيِّ

د حضرت عطيه قرظي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د بنو قريظه په بنديانو کي وم ، موږ د نبي

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانُوا يَنْظُرُونَ فَمَنْ أَنْبَتَ الشَّعْرَ قُتِلَ وَمَنْ لَمْ يُنْبِتْ

کريم ﷺ په خدمت کي وړاندي کړل سوو د صحابه کرامو دا عادت وو چي د بنديانو تر نامه لاندي ځای به يې خلاص کړ او کتل به يې چي د چا وربښتان به راغلي وه هغه به يې وژل او د چا

لَمْ يُقْتَلْ فَكَشَفُوا عَانَتِي فَوَجَدُوهَا لَمْ تُنْبِتْ فَجَعَلُونِي مِنَ السَّبْيِ . رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

چي به وربښتان نه وه نو هغه به يې پرېښودل . زما تر نامه لاندي وربښتان نه وه نو زه يې بندي کړم . ابوداؤد ، ابن ماجه او دارمي .

**تخريج** سنن ابي داود ۴\ ۵٦۱، رقم: ۴۴۰۴، وابن ماجه ۲\ ۸۴۹، رقم: ۲۵۴۱، والدارمي ۲\ ۲۹۴، رقم: ۲۴٦۴.

**تشريح** علامه توربشتي رحمه الله وايي چي د نامه لاندي وېښتانو را ختل د بلوغ علامه ګرځول د ضروري حکمت په وجه وو ځکه که د هغه بنديانو څخه د بلوغ د علامو يعني احتلام او د بلوغ د عمر پو ښتنه سوې واى نو هغوى به د خپل هلاکت د ېيري څخه صحيح خبره نه کولاى.

## د مسلمان سوو غلامانو د بيرته ورکولو څخه انکار

﴿۳۸۰۰﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ خَرَجَ عِبْدَانٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حديبې په ورځ د صلح څخه مخکي د رسول الله ﷺ په خدمت کي يو څو غلامان پيش کړل سول (چي د خپلو مالکانو څخه راغلي وه)

يَعْنِي يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ قَبْلَ الصُّلْحِ فَكَتَبَ إِلَيْهِ مَوَالِيهُمْ فَقَالُوا يَا مُحَمَّدُ وَاللَّهِ

د غلامانو مالکانو رسول الله ﷺ ته وليکل چي اې محمد ! قسم په الله!

مَا خَرَجُوا إِلَيْكَ رَغْبَةً فِي دِينِكَ وَإِنَّمَا خَرَجُوا هَرَبًا مِنَ الرِّقِّ فَقَالَ نَاسٌ

دا غلامان تاسو ته ددې لپاره نه دي راغلي چي ستاسو دين ته شوق لري بلکه دا خلک تښتېدلي دي او د غلامۍ څخه خلاصيدل غواړي، په صحابه کرامو کي يو څو کسانو وويل:

صَدَقُوا يَا رَسُولَ اللَّهِ رُدَّهُمْ إِلَيْهِمْ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اې دالله رسوله ! د دوى مالکانو صحيح ويلي دي دا غلامان بيرته ورکړئ، (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ په غصه سو

وَقَالَ مَا أُرَاكُمْ تَنْتَهُونَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ حَتَّى يَبْعَثَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ مَنْ يَضْرِبُ

او وه يې فرمايل: قريشو ! زه وينم چي تاسو د خپلي سرکښۍ او نافرمانۍ څخه نه منع کيږئ تر څو پوري چي الله تعالى هغه سړى را ونه ليږي چي ستاسو پر دې تجويز ستاسو

رِقَابَكُمْ عَلَى هَذَا وَأَبَى أَنْ يَرُدَّهُمْ وَقَالَ هُمْ عُتَقَاءُ اللَّهِ. رواه ابوداؤد.

غاړي ووهئ، ددې څخه وروسته يې د غلامانو د بيرته ورکولو څخه انکار وکړ او وه يې فرمايل: دوى د الله تعالى ازاد کړل سوي دي. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ۳\۱۴۸، رقم: ۲۷۰۰.

**تشريح**: رسول الله ﷺ ځکه په غصه سو چي صحابه کرامو د هغه غلامانو په باره کي خپل ذاتي رايه د شرعي حکم مقابل کړل او ګويا د هغوی د مالکانو د دعوې شاهدي يې ورکړل نو د هغه غلامانو په باره کي شرعي حکم دا وو چي هغوی د دارالحرب څخه د راوتلو په سبب محض د اسلام قبلولو په وجه معصوم او ازاد سوي وه او د هغوي مالکانو ته دار الحرب ته ورکول جائز نه وه نو د صحابه کرامو د هغوی د بيرته ورکولو د مطالبې تائيد کول پر جبر او زياتوب باندي دهغوی د مالکانو د مرسته کولو مترادف وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حضرت خالد رضي الله عنه له خوا د احتياط يوه واقعه

﴿٣٨٠١﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ولېږی خالد بن وليد،

إِلَى بَنِي جَذِيمَةَ فَدَعَاهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ فَلَمْ يُحْسِنُوا أَنْ يَقُولُوا أَسْلَمْنَا فَجَعَلُوا

جذيمې قبيلې ته ، خالد هغوی ته د اسلام بلنه ورکړه ، هغوی د پريشانی په حالت کي دا جمله هم په ښه ډول ادا نه کړلای سوه چي (اسلمنا) (يعني موږ اسلام راوړ) او دا ويل يې پيل کړل

يَقُولُونَ صَبَأْنَا صَبَأْنَا فَجَعَلَ خَالِدٌ يَقْتُلُ وَيَأْسِرُ وَدَفَعَ إِلَى كُلِّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ

چي (صبانا) (يعني موږ د خپل دين څخه ووتو) د دې په اورېدو سره خالد د هغوی قتلول او نيول پيل کړل او زموږ په خلکو کي هر يو ه ته د هغه نيول سوی بندي ورکړ

حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمٌ أَمَرَ خَالِدٌ أَنْ يَقْتُلَ كُلُّ رَجُلٍ مِنَّا أَسِيرَهُ فَقُلْتُ وَاللّٰهِ لَا

بيا يوه ورځ خالد بن وليد دا حکم جاري کړ چي په موږ کي دي هر يو سړی خپل بندي مړ کړي، ما وويل قسم په الله!

أَقْتُلُ أَسِيرِي وَلَا يَقْتُلُ رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِي أَسِيرَهُ حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى

زه خپل بندي نه مړ کوم او نه به په موږ کي بل سړی بندي مړ کوي، غرض دا چي موږ ټول د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْنَاهُ فَرَفَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ فَقَالَ اللَّهُمَّ

او پېښه مو ورته بيان كړه، رسول الله ﷺ خپل مبارك لاسونه د دعاء لپاره پورته كړل او وه يې

إِنِّي أَبْرَأُ إِلَيْكَ مِمَّا صَنَعَ خَالِدٌ مَرَّتَيْنِ. رواه البخاري.

ويل اې الله ! زه د هغه كار څخه چې خالد كړى دئ تا ته بيزاري ښكاره كوم دوه واره يې وويل، (يعني د خالد د غلطۍ څخه د بيزارۍ اظهار كوم). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۸۱، رقم: ۷۱۸۹.

**تشريح**: خطابي رحمة الله عليه وايي چې رسول الله ﷺ د الله تعالى په دربار كې د حضرت خالد رضي الله عنه د عمل څخه ځكه د بېزارۍ اظهار وكړ چې خالد رضي الله عنه په هغه وخت كې د احتياط لار اختيار نه كړل او په دې خبره كې يې غور او فكر ونه كړ چې هغه خلكو د صبانا څخه څه مراد اخيستى ځكه چې دغه لفظ (صبانا) د اسلام اختيارولو د مفهوم احتمال هم درلودى مگر خالد رضي الله عنه محض په دې لېدو سره چې هغه خلكو د اسلام د قبوليت مفهوم په واضحه توگه د ظاهرو الفاظو (اسلمنا) استعمالولو څخه غاړه اړولې ده ځكه يې د هغه خلكو خبره ونه منل او د هغوى ويل سوي الفاظ يې د هغوى پر بې دينه كېدو باندې محمول كړل او د هغوى وژل او بندي كول يې شروع كړل.

==========

## بَابُ الْأَمَانِ (د امان وركولو بيان)

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

**د ام هاني له خوا د خپل يو قريب د امان وركولو واقعه**

﴿۳۸۰۲﴾: عَنْ أُمِّ هَانِئٍ بِنْتَ أَبِي طَالِبٍ قَالَتْ ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت ام هانئ بن ابي طالب (رض) څخه روايت دئ چې د مكې د فتح په كال زه د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضره سوم،

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ فَوَجَدْتُهُ يَغْتَسِلُ وَفَاطِمَةُ ابْنَتُهُ تَسْتُرُهُ بِثَوْبٍ فَسَلَّمْتُ

رسول الله ﷺ دغه وخت غسل كوئ او د هغوى لور بي بي فاطمې پرده كړې وه، ما سلام ادا كړ،

فَقَالَ مَنْ هَذِهِ قُلْتُ أُمُّ هَانِئٍ بِنْتُ أَبِي طَالِبٍ فَقَالَ مَرْحَبًا بِأُمِّ هَانِئٍ فَلَمَّا

رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه څوک؟ ما عرض وکړ زه د ابو طالب لور ام هاني یم، رسول الله ﷺ وفرمایل: ام هاني ته دې ښه راغلاست وي، بیا کله چې

فَرَغَ مِنْ غُسْلِهِ قَامَ فَصَلَّى ثَمَانِيَ رَكَعَاتٍ مُلْتَحِفًا فِي ثَوْبٍ ثُمَّ انْصَرَفَ فَقُلْتُ

رسول الله ﷺ غسل وکړنو پر بدن مبارک یې جامه کې نغښتې وو د څاښت اته رکعته لمونځ یې وکړ، (کله چې دلمانځه څخه فارغ سو) نو ما عرض وکړ

يَا رَسُولَ اللَّهِ زَعَمَ ابْنُ أُمِّي عَلِيٌّ أَنَّهُ قَاتِلٌ رَجُلًا أَجَرْتُهُ فُلَانُ ابْنُ هُبَيْرَةَ

اې د الله رسوله! زما د مور زوی (حضرت علي) ویلي دي چې هغه د دا سړی وژونکي دئ چا ته چې ما خپل په کور کې پناه ورکړې ده یعني د هبیره زوی ته،

فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَجَرْنَا مَنْ أَجَرْتِ يَا أُمَّ هَانِئٍ قَالَتْ

رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ام هانئ! چا ته چې تا پناه ورکړې ده هغه ته موږ هم پناه ورکړې ده،

أُمُّ هَانِئٍ وَذَلِكَ ضُحًى. متفق عليه، و في رواية للترمذي قَالَتْ أَجَرْتُ رَجُلَيْنِ

ام هانئ وایي دا پېښه د څاښت د وخت ده، بخاري او مسلم. او د ترمذي په روایت کې دا الفاظ

مِنْ أَحْمَائِي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَمَّنَّا مَنْ أَمَّنْتِ.

دي چې ام هانئ دا عرض وکړ چې ما دوو کسانو ته پناه ورکړې ده چې زما د خاوند قریبان دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: موږ هم هغوی ته امان ورکړ چا ته چې تا امان ورکړ.

**تخریج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٢٧٣، رقم: ٣١٧١، ومسلم ١\ ٤٩٨، رقم: ٨٢- ٣٣٦، والترمذي ٤\ ١٢٠، رقم: ١٥٧٩.

**د لغاتو حل** احمائي: جمع حمو وهو قريب الزوج (د خاوند خپل لکه لېور)

**تشریح** د بي بي ام هاني رضي الله عنها اصل نوم فاخته وو، او ځینو عاتکه بیان کړی دی، نوموړې د ابو طالب لور او د حضرت علي رضي الله عنه سکه خور وه، هبیره د هغې د خاوند نوم دی، کله چې ام هاني رضي الله عنها د مکې د فتح په کال اسلام قبول کړنو د هبیره څخه د هغې جلاوالی واقع سو ځکه چې

هغه مسلمان نه سو .

کوم سړي ته چي بي بي ام هاني ﷺ پناه ورکړې وه هغه سړی د دې د خاوند د اولاد څخه وو ، غالبه داده چي هغه د ام هاني ﷺ څخه پرته د هبيره د بلي ښځي د نس څخه وو ، حضرت علي رضي الله عنه د هغې د پناه په نه قبلولو سره د هغه سړي وژل وغوښتل، ام هاني ﷺ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او واقعه يې ورته بيان کړه نو رسول الله ﷺ د هغې پناه قبوله کړه او هغه سړی د حضرت علي رضي الله عنه دلاسه د وژل کېدو څخه وساتل سو .

ترمذي چي کوم روايت نقل کړی دی د هغه څخه دا معلومېږي چي رسول الله ﷺ هغه وخت د ام هاني ﷺ په کور کي غسل کوی مګر دلته چي د بخاري او مسلم کوم روايت نقل سوی دی د هغه د ظاهري مفهوم څخه دا واضحه کيږي چي رسول الله ﷺ په خپل سرای کي يا د بي بي فاطمې ﷺ په کور کي غسل کوی ، په دغه صورت کي به د دواړو روايتو په مينځ کي داسي مطابقت وي چي د بخاري او مسلم په روايت کي دغه عبارت مقدر دی چي رسول الله ﷺ زما په کور کي غسل کوی او يا دا به ويل کيږي چي د ترمذي په روايت کي کومه واقعه بيان سوې ده هغه د بل وخت واقعه ده او د بخاري او مسلم په روايت کي د بل وخت واقعه ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ښځي امان ورکول

﴿۳۸۰۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَرْأَةَ لَتَأْخُذُ لِلْقَوْمِ يَعْنِي تُجِيرُ عَلَى الْمُسْلِمِينَ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ وفرمايل : ښځه د مسلمانانو په باور قوم ته پناه ورکوي يعني ښځه چي چا ته امان ورکړي هغه د ټول قوم امان دئ . ترمذي

**تخريج** سنن الترمذي ۴/ ۱۲۰، رقم: ۱۵۷۹.

**تشريح** مطلب دادی که يو مسلمانه ښځه يو کافر ته يا د کافرانو يو ډلي ته امان ورکړي نو دا به د ټولو مسلمانانو ذمه داري وي چي هغوی د ښځي د امان لحاظ وساتي او هغه کافر يا هغه ډلي ته امان او پناه ورکړي او د هغې د امان عهد مات نه کړي.

## د عهد ماتونکي په اړه وعيد

﴿٣٨٠٤﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَمِقِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ أَمَنَ رَجُلاً عَلٰى نَفْسِهِ فَقَتَلَهُ أُعْطِيَ لِوَاءَ الْغَدْرِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه في شرح السنة.

د حضرت عمرو بن حمق رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي څوک چي چا ته امان ورکړي او بيا هغه ووژني هغه ته به د قيامت په ورځ د بد عهدۍ (بې قولۍ) او بيرغ ورکړل سي. شرح السنة

**تخريج** البغوي في شرح السنة ١١\٩١، رقم: ٢٧١٧.

**تشريح** هغه ته به د بې قولۍ نښه ورکړل سي: ددغه جملې په ذريعه کنايةً دا بيان سوي دي چي هغه سړی به د حشر په ميدان کي د ټولو مخلوقاتو په مخکي ذليل او رسوا کړل سي، په نورو حديثو کي دا بيان سوی دی چي د قيامت په ورځ به قول ماتونکی ته داسي نښه ورکړل سي چي د هغه په ذريعه به هغه پېژندل کيږي چي دا هغه سړی دی کوم چي عهد يې مات کړی وو.

## د معاهدې پوره پابندي کول پکار دي

﴿٣٨٠٥﴾: وَعَنْ سُلَيْمِ بْنِ عَامِرٍ قَالَ كَانَ بَيْنَ مُعَاوِيَةَ وَبَيْنَ أَهْلِ الرُّوْمِ عَهْدٌ

د حضرت سليم بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د معاويه رضي الله عنه او د روميانو په منځ کي دا عهد

وَكَانَ يَسِيْرُ نَحْوَ بِلَادِهِمْ حَتّٰى إِذَا انْقَضَى الْعَهْدُ أَغَارَ عَلَيْهِمْ فَجَاءَ رَجُلٌ عَلٰى

سوی وو (چي هغوی به تر ټاکلي وخت پوري جنګ نه کوي) معاويه به د دغه عهد په زمانه کي د روم په ښارونو کي تګ کوئ کله چي د عهد وخت ختم سو نو هغه به ناڅاپه پر روميانو حمله وکړي او لوټ به يې کړي، (په دغه ورځو کي) يو سړی

فَرَسٍ أَوْ بِرْذَوْنٍ وَهُوَ يَقُوْلُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ وَفَاءٌ لَا غَدْرٌ فَنَظَرُوْا فَإِذَا هُوَ

پر عربي يا ترکي آس باندي سپور راغلئ او وه يې ويل د الله اکبر الله اکبر عهد دي پوره کړل سي، بد عهدي دي نه کيږي، (د هغه مطلب دا وو چي د عهد او صلح په ورځو کي تاسو خلک د روم په ښارونو کي تګ کوئ نو دا بد عهدي ده) خلکو وليدل چي دا سړی

عَمْرُو بْنُ عَبَسَةَ فَسَأَلَهُ مُعَاوِيَةُ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ

عمرو بن عبسه صحابي وو ، معاويه د هغه څخه پښتنه وپوښتل هغه ورته وويل ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ كَانَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَوْمٍ عَهْدٌ فَلَا يَحُلَّنَّ عَهْدًا وَلَا يَشُدَّنَّهُ

څوک چي د يو قوم سره عهد وکړي نو هغه ته پکار ده چي هغه عهد مات نه کړي او وه يې نه تړي (د تړلو څخه مراد د عهد بدلو ن دئ)

حَتّٰى يَمْضِيَ أَمَدُهُ أَوْ يَنْبِذَ إِلَيْهِمْ عَلٰى سَوَاءٍ قَالَ فَرَجَعَ مُعَاوِيَةُ بِالنَّاسِ . رواه الترمذي و ابوداؤد

تر څو پوري چي د هغه عهد وخت تير نسي ، يا عهد دواړي ډلي مات نه کړي ، د سليم بن عامر روي بيان دئ چي د عمرو بن عبسه په دې خبره اوريدو سره معاويه د خپلو کسانو سره بيرته ولاړئ . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج** سنن الترمذي ١٤\١٢١، رقم: ١٥٨٠، وابوداؤد ١٣\١٩٠، رقم: ٢٧٥٩.

**د لغاتو حل** برذون: التركي من الخيل (تركي آس)

**تشريح** د نه تړلو مطلب دادی چي په خپل هيڅ فعل سره د معاهدې په مقصد کي تغير او تبديلي ونه کړئ ګويا ددغه جملې مراد د وعدې په پوره کولو کي هيڅ ډول تغير نه کول دي ، د شدنه معنی د خپل عهد ټينګ او مستحکم کول دي او دا د شريعت په نظر کي مستحسن او مطلوب دی.

## د عهد دوفا او د قاصد د احترام اهميت

﴿٣٨٠٦﴾: وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ بَعَثَتْنِي قُرَيْشٌ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو رافع ﷺ څخه روايت دئ چي د صلح حديبيې پر وخت قريشو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي وليږلم .

فَلَمَّا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُلْقِيَ فِي قَلْبِي الْإِسْلَامُ فَقُلْتُ يَا

کله چي زما نظر پر رسول الله ﷺ ولګیدئ نو زما په زړه کي اسلام صداقت او عظمت ځای وکړ ، ما عرض وکړ اې

رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي وَاللّٰهِ لَا أَرْجِعُ إِلَيْهِمْ أَبَدًا قَالَ إِنِّي لَا أَخِيسُ بِالْعَهْدِ وَلَا أَحْبِسُ

دالله رسوله ! اوس زه هیڅکله قریشو ته نه ورځم ، رسول الله ﷺ وفرمایل زه نه عهد ماتوم او نه قاصدان بندي کوم ،

الْبُرُدَ وَلَكِنِ ارْجِعْ فَإِنْ كَانَ فِي نَفْسِكَ الَّذِي فِي نَفْسِكَ الْآنَ فَارْجِعْ قَالَ فَذَهَبْتُ ثُمَّ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمْتُ . رواه ابوداؤد

ته بیرته ولاړ سه که ستا په زړه کي هغه شی قائم او باقي پاته سيَ کوم چي دې په دغه.وخت کي تر لاسه کړی دئ نو بیا به راسې ، د ابو رافع بیان دئ چي زه مکې ته ولاړم ، بیا د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او اسلام مي قبول کړ . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\١٨٩، رقم: ٢٧٥٧.

**د لغاتو حل**: البرد : جمع برید وهو الرسول (استازی)

**تشريح**: ابو رافع رضي الله عنه د مکې د کفارو له خوا يو پيغام راوړی وو ځکه رسول الله ﷺ هغه د ځان سره تم نه کړ چي هغه مکې ته په بېرته تللو سره د قریشو کفارو ته د هغوی د پيغام جواب ورکړي نو رسول الله ﷺ چي هغه ته کوم حکم ورکړ د هغه مطلب دا وو چي اسلام ستا په زړه کي ځای نیولی دی او اوس تا د مسلمان کېدو څخه هیڅوک منع کولای نه سي مګر د احتیاط او وعدې پوره کولو غوښتنه داده چي ته اوس د خپل اسلام اظهار او اعلان مه کوه بلکه مکې ته ولاړ سه او د قریشو کفارو چي کومه ذمه داري تا ته سپارلې ده د هغه په پوره کولو سره راسه یعني هغوی چي ته د کومي خبري د جواب راوړلو لپاره استولی یې هغوی ته جواب ورسوه او بیا موږ ته په راتلو سره د خپل اسلام اظهار او اعلان وکړه .

﴿٣٨٠٧﴾ : وَعَنْ نُعَيْمِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِرَجُلَيْنِ جَاءَ مِنْ عِنْدَ مُسَيْلِمَةَ أَمَا وَاللّٰهِ لَوْلَا أَنَّ الرُّسُلَ لَا تُقْتَلُ لَضَرَبْتُ

أَعْنَاقَكُمَا . رواه احمد وابوداؤد .

د حضرت نعيم بن مسعود ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ هغه دوو كسانو ته چي د مسيلمه كذاب (د نبوت دعوه كونكي) د لوري راغلي وه وفرمايل : قسم په الله كه په شريعت كي د قاصد وژل منع نه واى نو ما به ستاسو غاړي وهلي واى . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٣\٤٨٧، وابوداؤد ٣\١٩١، رقم: ٢٧٦١.

**تشريح**: مسيلمه د يو سړي نوم وو چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي يې د خپل نبوت درواغجنه دعوه كړې وه ځكه هغه ته مسيلمه كذاب ويل كيږي، هغه دوه كسان چي د مسيلمه كذاب له خوا د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوي وه په هغوى كي د يوه نوم عبد الله ابن نواحه او د بل نوم ابن اثال وو، دوى دواړو رسول الله ﷺ ته دا ويلي وه چي نشهد ان مسيلمه رسول الله، يعني زموږ شاهدي ادا كوو چي مسيلمه د الله رسول دئ، ځكه رسول الله ﷺ په پته خوله ذكر سوي الفاظ وفرمايل .

## د جاهليت د زماني معاهدې پوره كول

﴿٣٨٠٨﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

حضرت عمرو بن شعيب ﷜ د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت دئ چي رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي خُطْبَتِهِ أَوْفُوا بِحِلْفِ الْجَاهِلِيَّةِ فَإِنَّهُ لَا يَزِيدُهُ يَعْنِي

ﷺ په يوه خطبه كي وفرمايل : د جاهليت قسم پوره كړئ ، ځكه چي اسلام د قسم قوت زياتوي ،

الْإِسْلَامَ إِلَّا شِدَّةً وَلَا تُحْدِثُوا حِلْفًا فِي الْإِسْلَامِ . رواه الترمذي مِنْ طَرِيقِ

او په اسلام كي قسم مه پيدا كوئ (يعني د جاهليت په ډول قسمونه مه رواج كوئ) ، ترمذي دا

حُسَيْنِ بْنِ ذَكْوَانَ عَنْ عَمْرٍو وَقَالَ حَسَنٌ وَ ذُكِرَ حَدِيثُ عَلِيٍّ اَلْمُسْلِمُوْنَ تَتَكَافَا دِمَائُهُمْ فِيْ كِتَابِ الْقِصَاصِ .

د حسين بن ذكوان او د عمرو په لړۍ سره روايت كړ او دغه حديث ته يې حسن ويلي دي، او د حضرت علي ﷜ حديث المسلمون تتكافا الخ . په كتاب القصاص كي بيان سوى دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۱۲۴، رقم: ۱۵۸۵.

**تشريح**: قسم پوره کوئ: ددې مطلب دادی که تاسو د اسلام څخه مخکي د جاهليت په زمانه کي د يو بل د مرستي کولو عهد او قول کړی وي يا قسم مو کړی وي نو د الله ﷻ د دغه حکم (اوفو بالعقود) يعني خپل معاهدې پوره کوئ، ددغه آيت سره سم هغه عهد او قسمونه پوره کړئ کوم چي د اسلام د تعليماتو او عقائدو خلاف او د دين په تاوان کي نه وي ځکه چي الله تعالی دا هم فرمايلي دي:

وَتَعَاوَنُواْ عَلَى الْبرِّ وَالتَّقْوَى وَلاَ تَعَاوَنُواْ عَلَى الإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ.

ژباړه: او مرسته کوئ د يو بل په نېکۍ او تقوا کي او مرسته مه کوئ د يو بل په ګناه او زياتی کي.
خلاصه دا چي د اسلام راوړلو څخه وروسته د جاهليت د زمانې هغه عهدونه او قسمونه پوره کول منع دي کوم چي د فتنې، فساد او ويني تويولو سبب وي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (لا حلف في الاسلام) او د جاهليت د زمانې د کوم عهد او قسم تعلق چي د مظلوم او بې چاره خلکو د مرستي او اعانت سره وي نو اسلام د هغه تاکيد کونکی دی لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي (ايما حلف كان في الجاهلية لم يزده الاسلام الا شدة).

په اسلام کي حلف يعني قسم کول مه رواجوئ ځکه چي پر مسلمانانو باندي د يو بل مرسته او ښه چلن واجب کېدو لپاره د هغوی د اسلام تعليم او تلقين کافي دی.

طيبي رحمة الله عليه وايي چي په اسلام کي حلف (قسم) ته رواج مه ورکوئ په دې کي چي کوم منعه سوې ده د هغه په باره کي دوه احتماله دي يو خو دا چي دغه منع د جنس لپاره هم کېدای سي يعني په اسلام کي هيڅ ډول قسم مه رواجوئ او دوهم احتمال دادی چي دغه منع د حلف د يو ډول لپاره وي مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه وايي زما په نزد احتمال زيات قوي او صحيح دی، د مظهر دا قول هم ددې خبري تائيد کوي چي ذکر سوی حديث د وضاحت په توګه دی چي ددغه ارشاد مقصد دا واضح کول دي که تاسو د جاهليت په زمانه کي يعني د مسلمان کېدو څخه مخکي دا قسم کړی وي چي موږ به په خپلو کي د يو بل مرسته کوو نو هغه قسم پوره کوئ يعني خپل په مينځ کي د معاهدې او قسم سره سم د يو بل مرسته کوئ په شرط ددې چي د چا مرسته کيږي هغه پر حق وي مګر په اسلام کي دا ډول قسم مه رواجوئ چي د هغه تعلق د يو بل وارث کېدو سره وي (لکه څرنګه چي د جاهليت په زمانه کي رواج وو چي دوو کسانو به په خپل مينځ کي د يو بل سره په قسم کولو دا عهد وکړ که زه مخکي مړ سوم نو ته به زما وارث يې او که ته

مخکي مړ سوي نو زه به ستا وارث يم).

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### قاصد نه وژل کيږي

﴿٣٨٠٩﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ جَاءَ ابْنُ النَّوَّاحَةِ وَابْنُ أُثَالٍ رَسُولَا مُسَيْلِمَةَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د مسيلمه کذاب (د نبوت دعوه کونکي) دوه قاصدان ابن النواحه او ابن آثال

إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَهُمَا أَتَشْهَدَانِ أَنِّي رَسُولُ اللّٰهِ قَالَا

د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل: ايا تاسو دواړه ددې خبري اقرار کوئ چي زه د الله رسول يم؟ هغوی دواړو وويل:

نَشْهَدُ أَنَّ مُسَيْلِمَةَ رَسُولُ اللّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آمَنْتُ بِاللّٰهِ

موږ ددې خبري اقرار کوو چي مسيلمه د الله رسول دئ، رسول الله ﷺ وفرمايل، ما پر الله جل جلاله

وَرُسُلِهِ لَوْ كُنْتُ قَاتِلًا رَسُولًا لَقَتَلْتُكُمَا قَالَ عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ فَمَضَتِ السُّنَّةُ أَنَّ الرَّسُولَ لَا يُقْتَلُ. رواه احمد

او د هغه پر رسولانو ايمان راوړ که زه د قاصدانو قتلونکی وای نو ما به تاسو دواړه قتل کړي وای، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وايي د هغه وخت څخه دا طريقه جاري سوه چي قاصد دي نه وژل کيږي. احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ١\٣٩٠ - ٣٩١.

**تشريح**: استازو چي کوم جواب ورکړ د هغه په ذريعه د رسول الله ﷺ د رسالت انکار او د مسيلمه کذاب د دروا غو د رسالت اقرار يې وکړ او بيا رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي ما پر الله جل جلاله او د هغه پر رسول ايمان راوړ نو ددې په ذريعه ګويا رسول الله ﷺ د خپل حق کېدو د جذبې، د حلم او زغم او د هغوی د الله جل جلاله په عذاب کي د ژر اخته کېدو اظهار وکړ او ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ د هغه لعين د نبوت انکار او د هغه د دعوې درواغ کېدو ته اشاره وفرمايل.

# بَابُ قِسْمَةِ الْغَنَائِمِ وَالْغُلُوْلِ فِيْهَا

## (د غنيمت دويشلو او په هغه كي د خيانت بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د غنيمت مال د مسلمانانو لپاره حلال دى

﴿۳۸۱۰﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَلَمْ تَحِلَّ الْغَنَائِمُ لِأَحَدٍ مِنْ قَبْلِنَا ذٰلِكَ بِأَنَّ اللّٰهَ تَبَارَكَ وَتَعَالَى رَأَى ضَعْفَنَا وَعَجْزَنَا فَطَيَّبَهَا لَنَا . متفق عليه

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: تر موږ مخكي د غنيمت مال چا ته جائز نه وو هر كله چي الله تعالى زموږ كمزوري وليدل نو دا يې زموږ لپاره حلال كړ. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٢٠، رقم: ٣١٢٤، ومسلم ٣\١٣٦٦، رقم: ٣٢ – ١٧٤٧.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي په (فلم تحل) كي د فاء حرف عاطفه دى چي د هغه په ذريعه ارشاد پر هغه جملو باندي عطف سوى دى كوم چي ددې څخه مخكي فرمايل سوى وو ، خلاصه دا چي دلته كوم حديث نقل سوى دى هغه په اصل كي د هغه ارشاد تتمه ده كوم چي دلته نقل سوى نه دى بلكه ددغه باب په دريم فصل كي د حضرت ابو هريره رضي الله عنه په روايت كي نقل سوى دى.

### د مقتول څخه اخيستل سوى مال د قاتل دى

﴿۳۸۱۱﴾: وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حُنَيْنٍ فَلَمَّا الْتَقَيْنَا كَانَتْ لِلْمُسْلِمِينَ جَوْلَةٌ فَرَأَيْتُ رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره د جنګ لپاره ووتلو د حنين په كال (يعني د مكې د فتح څخه وروسته)، كله چي زموږ د كافرانو سره مقابله سول نو

مسلمانانو ته د ماتي په ډول صورت څرګند سو ، ما وليدل چي يو کافر

قَدْ عَلَا رَجُلًا مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَضَرَبْتُهُ مِنْ وَرَائِهِ عَلَى حَبْلِ عَاتِقِهِ بِالسَّيْفِ

پر مسلمان واک تر لاسه کړی دئ ما د شا څخه هغه کافر په توره ووهئ چي د هغه غاړه پر رګ

فَقَطَعْتُ الدِّرْعَ وَأَقْبَلَ عَلَيَّ فَضَمَّنِي ضَمَّةً وَجَدْتُ مِنْهَا رِيحَ الْمَوْتِ ثُمَّ أَدْرَكَهُ

پريوتل د هغه زغره يې پريکړه هغه پر ما حمله وکړه هغه زه ونيولم او په دومره زور يې ونيولم چي د مرګ حالت را باندي تير سو بيا مرګ هغه ونيوئ

الْمَوْتُ فَأَرْسَلَنِي فَلَحِقْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَقُلْتُ مَا بَالُ النَّاسِ قَالَ أَمْرُ اللَّهِ

او هغه زه پرېښودلم ، بيا زما ملاقات د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه سره وسو ، ما وويل د خلکو څه حال دئ (چي د ښمن څخه تښتي) هغه وويل د الله تعالى دغه حکم دئ ،

ثُمَّ رَجَعُوا وَجَلَسَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا لَهُ عَلَيْهِ

ددې وروسته مسلمانان (په ماته خوړلو سره) ستانه سول، او پر يو ځای ناسته باندي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي يو کافر قتل کړی وي او پر هغه شاهد لري د هغه د سامان د هغه دئ

بَيِّنَةٌ فَلَهُ سَلَبُهُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

نو ما وويل چي زما شاهدي به څوک ورکوي (چي ما دا مشرک قتل کړی دئ) آخر زه پټه خوله کښېنستم، رسول الله ﷺ بيا دا الفاظ و فرمايل :

وَسَلَّمَ مِثْلَهُ فَقُلْتُ مَنْ يَشْهَدُ لِي ثُمَّ جَلَسْتُ ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

ما وويل زما شاهدي به څوک وکړي زه بيا کښېنستم، رسول الله ﷺ په دريم وار دغه الفاظ

وَسَلَّمَ مِثْلَهُ فَقُمْتُ فَقَالَ مَا لَكَ يَا أَبَا قَتَادَةَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ رَجُلٌ صَدَقَ

وفرمايل : نو زه سمد ستي ولاړ سوم ، رسول الله ﷺ زما څخه پوښتنه وکړه : ابو قتاده څه دي ؟ ما پېښه عرض کړه يوه زما د بيان تصديق وکړ

وَسَلَبُهُ عِنْدِي فَأَرْضِهِ مِنِّي فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ لَاهَا اللَّهِ إِذًا

او وه يې ويل چي د هغه مشرک سامان زما سره دئ ، بيا هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړ تاسو په دې اړه ابوقتاده راضي کړئ (يعني ددې مشرک د سامان په بدله کي ما ته بل څه راکړئ يا پر سامان باندي د دواړو په منځ کي مصالحت وکړئ) حضرت ابوبکر ﷺ وويل : نه داسي نه ده

لَا يَعْمِدُ إِلَى أَسَدٍ مِنْ أُسْدِ اللَّهِ يُقَاتِلُ عَنِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قسم په الله ، رسول الله ﷺ به هيڅکله د الله ﷻ ددې زمري (يعني ابوقتاده) په اړه (دده د مرضۍ خلاف) څه اراده نه کوي ، ابوقتاده د الله د زمرو څخه يو زمری دئ او د الله او رسول د

فَيُعْطِيكَ سَلَبَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ فَأَعْطِهِ فَأَعْطَانِيهِ

خوشحاله کولو لپاره جنګيږي ، په داسي حالت کي څنګه ممکن ده چي دده سامان تا ته درکړل سي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ابوبکر ﷺ رښتيا وويل ته ددې مشرک سامان ابوقتاده ته ورکړه نو هغه سړي د هغه مشرک سامان ما ته راکړ ،

فَابْتَعْتُ بِهِ مَخْرَفًا فِي بَنِي سَلِمَةَ فَإِنَّهُ لَأَوَّلُ مَالٍ تَأَثَّلْتُهُ فِي الْإِسْلَامِ . متفق عليه

چي په هغه کي ما يو باغ رانيوی چي په قبيله سلمه کي واقع دئ او دا لومړنی مال وو چي ما د اسلام راوړلو څخه وروسته جمع کړی وو

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٨\ ٣٤، رقم: ٤٣٢١، ومسلم ٣\ ١٣٧٠، رقم: ٤١ - ١٧٥١.

**د لغاتو حل**: جولة: اى هزيمة قليلة. عاتقه: هو مابين العنق والكتف. مخرفا : اى بستانا.

**تشريح**: په دغه غزا کي مسلمانانو ته د لږ وخت لپاره ماتي رامنځته سوه ځکه چي د اسلامي لښکر ځينو خلکو پر يو موقع باندي ماته خوړل اختيار کړل چي په هغه سره د دښمن لښکر ته په ظاهري د حاوې کېدو موقع تر لاسه سوه مګر رسول الله ﷺ د جنګ په ميدان کي پر خپل ځای قائم وو ، رسول الله ﷺ پر غاتري سپور وو چي د هغه قيزه د حضرت عباس ابن عبد المطلب او حضرت ابوسفيان بن الحارث نيولې وه، ددغه عارضي ماتي په وخت کي کله چي په اسلامي لښکر کي تقريبا تزلزل رامنځته سو نو رسول الله ﷺ نه يوازي دا چي په مېړانه سره د دښمن مقابلې ته تينګ وو بلکه په مخته کېدو سره د دښمن پر لښکر باندي يوازي د حملې کولو اراده يې کول او دا يې فرمايل (انا النبي لا کذب انا ابن عبد المطلب) يعني زه نبي يم او درواغ نه يم او زه د عبد المطلب زوی يم .

دغه دوارو حضراتو د رسول الله ﷺ غاترې قيزې نيولي وې چې په پای کې الله ﷻ اسلامي لښکر ته ثابت قدمي ورکړه او دوهم وار پر دښمن باندې په حمله کولو سره هغه لښکر يې پاش پاش کړ او فتح يې تر لاسه کړه.

## د غنيمت د مال تقسيم

﴿۳۸۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْهَمَ لِرَجُلٍ وَلِفَرَسِهِ ثَلَاثَةَ أَسْهُمٍ سَهْمًا لَّهُ وَسَهْمَيْنِ لِفَرَسِهِ. متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ (د غنيمت د مال څخه) د يو سړي او د هغه د آس لپاره درې برخې و ټاکلې، يوه برخه د سړي او دوې برخې د هغه د آس. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦٧، رقم: ٢٨٦٣، ومسلم ١٣\١٣٨٢، رقم: ٥٧- ١٧٦٢.

**تشريح**: د اکثرو علماؤ مذهب ددغه حديث مطابق دی حال دا چې د ځينو علماؤ په نزد د غنيمت په مال کې د سپاره مجاهد دوې برخې وي د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله مذهب هم دا دی ځکه چې رسول الله ﷺ سپاره مجاهد ته دوې برخې ورکولې لکه څرنګه چې ددغه باب په دوهم فصل کې د روايت سوي حديث څخه واضحه کيږي او د حضرت علي او ابوموسی اشعري رضي الله عنهما څخه هم دا منقول دي بلکه په هدايه کې د ابن عباس او ابن عمر رضي الله عنهما څخه دا هم نقل سوي دي او ليکلي يې دي چې کله په دې باره کې د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه دوه روايتونه د يو بل مختلف دي نو په دغه صورت کې ظاهره داده چې هغه روايت ته ترجيح ورکړل سي کوم چې دده څخه ماسوا نورو نقل کړي دي.

## د غنيمت په مال کې د ښځو او غلامانو برخه نه سته

﴿۳۸۱۳﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ هُرْمُزَ قَالَ كَتَبَ نَجْدَةُ الْحَرُوْرِيُّ إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ

د يزيد بن هرمز رضي الله عنه څخه روايت دئ چې نجده حروري حضرت ابن عباس رضي الله عنهما ته ليک وليکئ

يَسْأَلُهُ عَنِ الْعَبْدِ وَالْمَرْأَةِ يَحْضُرَانِ الْمَغْنَمَ هَلْ يُقْسَمُ لَهُمَا فَقَالَ لِيَزِيدَ

او دا پوښتنه يې ځيني وکړه چې غلام او مينځې ته هم د غنيمت په مال کې څه ورکول پکار دي يا نه؟ ابن عباس رضي الله عنهما يزيد ته وويل:

اُكْتُبْ إِلَيْهِ اَنَّهُ لَيْسَ لَهُمَا سهم إِلَّا أَنْ يُحْذَيَا ، و في رواية كَتَبَ إِلَيْهِ ابْنُ عَبَّاسٍ

دده په جواب كي دا وليكه چي د غلام او مينځي د غنيمت په مال كي هيڅ برخه ټاكلې نه ده ، هغوی ته دي څه ورکړل سي ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي ابن عباس په جواب كي

اِنَّكَ كَتَبْتَ الي تَسْأَلُنِي هَلْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْزُو بِالنِّسَاءِ

وليكل چي ته زما څخه دا پوښتنه كوې چي ايا رسول الله ﷺ به په جهاد كي د ګډون لپاره ښځي

وَهَلْ كَانَ يَضْرِبُ لَهُنَّ بِسَهْمٍ فَقَدْ كَانَ يَغْزُو بِهِنَّ فَيُدَاوِينَ الْمَرْضَى

بيولې ، او ايا (د غنيمت په مال كي) د هغوی څه برخه ټاكلې وه ؟ رسول الله ﷺ به ښځي جهاد

وَيُحْذَيْنَ مِنَ الْغَنِيمَةِ وَأَمَّا السَّهْمَ فَلَمْ يُضْرَبْ لَهُنَّ بِسَهْمٍ . رواه مسلم

ته بيولې هغوی به د ناروغانو درملنه كول او د غنيمت د مال څخه به هغوی ته وركول كېدل ، مګر رسول الله ﷺ د هغه څه برخه ټاكلې نه وه . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۴۵، رقم: ۱۳۹– ۱۸۱۲.

**تشريح**: نجد د يو سيمي نوم دی چي د خوارجو يعني د حضرت علي رضي الله عنه د مخالفينو مشر وو ، حروري په اصل كي حروراء ته منسوب دی كوم چي د كوفې په شاوخوا كي د يو سيمي نوم وو ، ويل كيږي چي د خوارجو تر ټولو اوله غونډه په دغه سيمه كي سوې وه .

د اكثرو علماؤ دا مذهب دی چي غلامانو ، كوچنيانو او ښځو ته دي د غنيمت د مال څخه همدغسي يو څه وركړل سي يعني د برخي څخه كم دي وركړل سي پوره برخه دي نه وركول كيږي د حنفيه مذهب هم دا دی او په هدايه كي ليكلي دي چي غلام ته دي د غنيمت د مال څخه يو څه په هغه صورت كي وركړل سي كله چي هغه په جنګ كي ګډون كړی وي او د دښمن سره يې جنګ كړی وي همدارنګه ښځي ته دي هم په هغه صورت كي وركړل سي كله چي هغې د ناروغ او زخمي مجاهد پوښتنه كړې وي او د هغوی درملنه يې كړې وي .

**په خاصه توګه ځينو مجاهدينو ته د خپلي برخي څخه زياته وركول كيدای سي**

﴿۳۸۱۴﴾ : وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِظَهْرِهِ

د حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ خپل غلام رباح سره د خپلي

مَعَ رَبَاحٍ غُلَامِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا مَعَهُ فَلَمَّا أَصْبَحْنَا إِذَا عَبْدُ

سپرلی اوښان ولیږل زه هم د رباح سره وم، کله چي سهار سو نو

الرَّحْمَنِ الْفَزَارِيُّ قَدْ أَغَارَ عَلَى ظَهْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُمْتُ عَلَى

عبدالرحمن فزاري د رسول الله ﷺ اوښان لوټ کړل ، زه پر يوې

أَكَمَةٍ فَاسْتَقْبَلْتُ الْمَدِينَةَ فَنَادَيْتُ ثَلَاثًا يَا صَبَاحَاهُ ثُمَّ خَرَجْتُ فِي آثَارِ الْقَوْمِ

غونډۍ وختم ، د مدينې په لور مي مخ کړ او درې واره مي په لوړ آواز دا الفاظ وويل خبردار سئ !
ياصباحاه دښمن لوټ کړلو ، ددې وروسته زه پسې سوم

أَرْمِيهِمْ بِالنَّبْلِ وَأَرْتَجِزُ أَقُولُ وَأَنَا ابْنُ الْأَكْوَعِ وَالْيَوْمُ يَوْمُ الرُّضَّعِ فَمَا زِلْتُ

په عبدالرحمن او د هغه په ملګرو غشي مي ويشتل ، شعري الفاظ ويل مي شروع کړل ما ويل زه د اکوع
زوی يم او نن ورځ د خرابو خلکو د هلاکت ورځ ده ،

أَرْمِيهِمْ وَأَعْقِرُ بِهِمْ حَتَّى مَا خَلَقَ اللّٰهُ مِنْ بَعِيرٍ مِنْ ظَهْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ما پرله پسې غشي ويشتل او د دښمن کومي سپرلی چي به مي لاندي کولې د هغه پښې به مي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا خَلَّفْتُهُ وَرَاءَ ظَهْرِي ثُمَّ اتَّبَعْتُهُمْ أَرْمِيهِمْ حَتَّى أَلْقَوْا أَكْثَرَ مِنْ

شلي کولې کوم اوښ چي به مي په لاس کي تر لاسه کړ هغه به مي هلته پرېښود او پر مخ به تلم ،
غرض دا چي د رسول الله ﷺ يو يو اوښ ما تر ځان وروسته پرېښودل زه مخ پر وړاندي ولاړم په
هغوی پسي ، او غشي مي ويشتل

ثَلَاثِينَ بُرْدَةً وَثَلَاثِينَ رُمْحًا يَسْتَخِفُّونَ وَلَا يَطْرَحُونَ شَيْئًا إِلَّا جَعَلْتُ عَلَيْهِ

، بيا دښمنانو څادرونه او ديرش نيزې وغورځولې ما به پر هغه څادرونو او نيزو باندي

آرَامًا مِنَ الْحِجَارَةِ يَعْرِفُهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ واصحابه حتى رايت

د کاڼي نښه اېښودل، چي د رسول الله ﷺ صحابه تشريف راوړي نو وه به يې پيژني لنډه دا چي

فوارس رسول الله صلى الله عليه وسلم وَلَحِقَ أَبُو قَتَادَةَ فَارِسُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

تر ليري پوري زه په هغوی پسي ولاړم تر دي چي زما نظر د رسول الله ﷺ پر سپرلو پريوتی او د رسول الله ﷺ خاص سپور ابو قتاده

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَبْدِ الرَّحْمٰنِ فَقَتَلَهُ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ

د عبد الرحمن سره يو ځای سو او هغه يې قتل کړ ، او رسول الله ﷺ ددې پېښي په اړه وفرمايل :

فُرْسَانِنَا الْيَوْمَ أَبُو قَتَادَةَ وَخَيْرُ رَجَّالَتِنَا سَلَمَةُ قَالَ ثُمَّ أَعْطَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

نن ورځ زموږ په سپرو کي غوره سپور ابو قتاده دئ او په پياده کي غوره پياده سلمه بن اکوع دئ ، د راوي بيان دئ بيا رسول الله ﷺ ما ته

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَهْمَيْنِ سَهْمَ الْفَارِسِ وَسَهْمَ الرَّاجِلِ فَجَمَعَهُمَا لِي جَمِيعًا ثُمَّ

دوې برخي راکړي يعني يوه برخه سپور او يوه برخه د پياده او دواړي برخي يې زما لپاره جمع

أَرْدَفَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَرَاءَهُ عَلَى الْعَضْبَاءِ رَاجِعِينَ إِلَى الْمَدِينَةِ. رواه مسلم.

کړې . بيا رسول الله ﷺ زه پر خپله اوښه د ځان سره سپور کړم چي د هغې نوم غضباء وو او د مديني په لور راوګرزيدو . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۳\۱۴۳۳، رقم: ۱۳۲- ۱۸۰۷.

**د لغاتو حل** بظهره: ای ابله ومرکوبه. رجالتنا: جمع راجل بمعنی الماشي.

**تشريح** رضع په اصل کي د راضع جمع ده لکه څرنګه چي راکع د رکع جمع ده، راضع خراب سړي ته وايي. ارام د ارم جمع ده لکه څرنګه چي اعناب د عنب جمع ده ، ارم هغه ډبري ته وايي چي په يو ځنګل. ميدان او يا لاره کي د نښي لپاره درول سوي وي ، د عربو دا عادت وو چي هغوی به په لاره کي يو شی پيدا کړ او د ځان سره به يې نه سو وړلای نو پر هغه به يې د نښي په توګه يو ډبره کښېښودل او يا د ډبرو په ايښودلو سره به يې هغه شي پکښې پټ کړ او بيا په راتلو سره به يې هغه شی راوکښی .

حضرت سلمه رضي الله عنه که څه هم پر پښو وو مګر رسول الله ﷺ هغه ته د پياده د برخي په ورکولو سره د سپاره برخه هم ورکړه ځکه چي دا ټول جنګ د هغه د هڅو په وجه سرته رسيدلی وو او

گويا هغه د دغه غزا يو لوى منتظم هم وو ، د دې څخه معلومه سوه چي د وخت امام لپاره دا جائز دي چي هغه د غنيمت د مال څخه يو مجاهد ته د هغه د برخي څخه زيات ورکړي کوم چي په جهاد کي زيات محنت او کوښښ کړى وي تر څو خلک په جهاد کي زيات محنت او کوښښ کولو ته راغب سي .

﴿٣٨١٥﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ بَعْضَ مَنْ يَبْعَثُ مِنَ السَّرَايَا لِأَنْفُسِهِمْ خَاصَّةً سِوَى قَسْمِ عَامَّةِ الْجَيْشِ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به ځيني خلکو ته چي هغه به په لښکر کي ليږل سوي وه په خاصه توگه سره د عامي برخي څخه يو څه زيات ورکول . بخاري او مسلم .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٣٧، رقم: ٣١٣٥، ومسلم ٣\١٣٦٩، رقم: ٤٠- ١٧٥٠.

**تشريح** مطلب دا دى چي رسول الله ﷺ د غنيمت د مال د ويشلو پر وخت يعني مجاهدينو ته د هغوى د ټاکلو برخو څخه پر ته هم څه زيات ورکړل چي هغوى ته د دښمنانو په مقابله کي د جنگ کولو ترغيب وي .

﴿٣٨١٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَفَّلَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَلًا سِوَى نَصِيبِنَا مِنَ الْخُمُسِ فَأَصَابَنِي شَارِفٌ وَالشَّارِفُ الْمُسِنُّ الْكَبِيرُ . متفق عليه .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي يو وار رسول الله ﷺ زموږ د برخي څخه پر ته چي په خمس (پنځمه) کي به موږ ته تر لاسه کېدل يو څه زيات را کړل او ما ته يوه زړه اوښه را ورسېدل . بخاري او مسلم

**تخريج** لم نجده عند البخاري ، و صحيح مسلم ٣\١٣٦٩، رقم: ٣٨- ١٧٥٠.

## د مسلمانان مال چي بيرته په غنيمت راسي

﴿٣٨١٧﴾: وَعَنْهُ قَالَ ذَهَبَتْ فَرَسٌ لَهُ فَأَخَذَهَا الْعَدُوُّ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُونَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي يو وار زما آس و تښتېدئ او د دښمنانو ونيوئ ، کله چي مسلمانانو پر کافرانو غلبه تر لاسه کړه

فَرُدَّ عَلَيْهِ فِيْ زَمَنِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . وَفِيْ رِوَايَةٍ أَبَقَ عَبْدٌ لَّهُ

نو هغه آس ابن عمر رضي الله عنه ته ورکړل سو ، دا د رسول الله ﷺ د زمانې پېښه ده او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي د ابن عمر رضي الله عنه مريي وتښتېدئ

فَلَحِقَ بِالرُّوْمِ فَظَهَرَ عَلَيْهِمُ الْمُسْلِمُوْنَ فَرَدَّ عَلَيْهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ بَعْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه البخاري

او روم ته ولاړ بيا مسلمانانو پر روم فتح تر لاسه کړه نو خالد بن وليد رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه وروسته هغه غلام ابن عمر رضي الله عنه ته ورکړ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٨٢، رقم: ٣٠٦٧،

**تشريح**: ابن مالک رحمه الله وايي چي د دغه حديث څخه دا ثابته سوه که کافر د مسلمانانو څخه تښتيدلی غلام ونيسي نو هغوی د هغه نه مالک کيږي پر هغه کافرانو باندي د مسلمانانو د غلبې تر لاسه کولو په صورت کي که چيري هغه غلام د غنيمت په مال کي د مسلمانانو په واک کي راسي نو دا واجب ده چي هغه غلام د هغه مالک ته بېرته ورکړل سي که څه هم دا ستنېدل د غنيمت د مال د وېشتلو څخه مخکي په عمل کي راسي يا د ويشلو څخه وروسته بېرته ورکول وي . ابن همام رحمه الله وايي که د يو مسلمان يا ذمي غلام وتښتيږي او دارالحرب ته ولاړ سي او د هغه ځای يو کافر يې ونيسي نو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد هغه کافر د هغه نه مالک کيږي او د امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما په نزد هغه کافر به د هغه مالک سي ، د امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهما قول هم دادی مګر هغه غلام که چيري په مرتد کېدو سره تښتيدلی وي او کافران يې ونيسي نو په دغه صورت کي د ټولو امامانو په نزد هغه به دده مالک وي همدارنګه که د يو مسلمان يا ذمي يو اوښ وتښتيږي او کافران هغه ونيسي نو هغوی به د اوښ مالکان سي .

## د خيبر په غنيمت کي د بنو عبد شمس او بنو نوفل محرومي

﴿٣٨١٨﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ مَشَيْتُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ إِلَى النَّبِيِّ

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه او عثمان بن عفان د رسول الله ﷺ په خدمت

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا أُعْطِيْتَ بَنِي الْمُطَّلِبِ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ وَتَرَكْتَنَا

كي حاضر سو او عرض مو وكړ چي تاسو د خيبر په خمس كي بني مطلب ته څه وركړه او موږ ته مو رانه كړل، حال دا چي تر ټولو پوري چي ستاسو د ذات مبارک (يعني بني هاشم) تعلق دئ

وَنَحْنُ بِمَنْزِلَةٍ وَاحِدَةٍ مِنْكَ فَقَالَ إِنَّمَا بَنُو هَاشِمٍ وَبَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ

موږ او هغوی دواړه د يوې مرتبې يو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : بېشكه بنو مطلب او بنو هاشم

قَالَ جُبَيْرٌ وَلَمْ يَقْسِمِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِبَنِي عَبْدِ شَمْسٍ وَبَنِي نَوْفَلٍ شَيْئًا . رواه البخاري.

يو دي ، جبير ويلي دي چي رسول الله ﷺ بنو عبدالشمس او بنو نوفل ته په ويش كي هيڅ ور نه كړل . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٧\٤٨٤، رقم: ٤٢٢٩.

**تشريح**: موږ ټول د يوې مرتبې يو : ددې مطلب دا وو چي زه حضرت عثمان، بنوهاشم او بنو مطلب ستاسو په اعتبار د يوې درجې يو په دې توګه چي موږ ټول د يوه نيكه يعني عبدمناف اولاده يو او هغه داسي چي هاشم، مطلب، نوفل او عبد شمس دا څلور سره د عبدمناف زامن وه چي زموږ او ستاسو څلورم نيكه دی ، زه جبير ابن مطعم ابن عدي ابن نوفل ابن عبدمناف يم ، حضرت عثمان ابن عفان ابن ابوالعاص ابن اميه ابن عبدشمس ابن عبدمناف دی او تاسو (ﷺ) محمد ابن عبدالله ابن عبدالمطلب ابن هاشم ابن عبد مناف ياست، همدارنګه موږ ټول د يوې لړۍ د نسب كړۍ يو نو بيا موږ نه پوهيږو چي تاسو د خيبر څخه د راغلي مال د پنځمي برخي څخه ددغه لړۍ يو ښاخ بنو مطلب ته خو برخه وركړل مګر موږ يعني عبدشمس او بنونوفل مو ولي ولي محروم كړو ، ددې په جواب كي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي ددې څخه ماسوا نور هيڅ نه سته چي بنوهاشم او بنو مطلب يو دي نو ددې خلاصه دا وه چي كه څه هم دغه څلور كسان د يوه نسب دي او د يوه جد اعلى (لوړ نيكه) عبدمناف د اولاد كېدو په وجه د يوې كورنۍ كسان دي مګر دا حقيقت هيرول نه دي پكار چي د تعلقاتو او معاملاتو په اعتبار په اصل كي يوازي بنو هاشم او بنو مطلب د يوې مرتبې په ډول دي ځكه چي هغوی دواړه د يو بل ممد، مرسته كونكي او غمخوار دي د دغه دواړو په مينځ كي نه د جاهليت په زمانه كي

مخالفت او منافرت وو او نه اوس د اسلام په زمانه کي څه اختلاف او انتشار دی حال دا چي تاسو دواړه يعني بنو عبدشمس او بنو نوفل د جاهليت په زمانه کي د بنوهاشم او بنو مطلب مخالف وه ، ددې تفصيل داډی چي رسول الله ﷺ د نبوت څخه وروسته د اسلام تبليغ شروع کړی او د قريشو کفار يې د الله ﷻ وحدانيت او خپل رسالت ته راوبلل نو د بنو عبدشمس خلکو د رسول الله ﷺ د دعوت او تبليغ نه يوازي په سخته مخالفت وکړ بلکه رسول الله ﷺ ته يې ازار رسول هم شروع کړل تر دې چي دغه دواړو يعني بنو عبد شمس او بنو نوفل د هغه مخالفت او عداوت په وجه په خپلو کي د يو بل سره دا عهد وکړ چي تر څو پوري د بنو هاشم خلک محمد ﷺ موږ ته ونه سپاري نو تر هغه وخته پوري به موږ د بنو هاشم سره واده، راکړه ورکړه او د رانيولو او پلورلو هيڅ معامله نه کوو، هغه وخت بنو مطلب د بنو هاشم سره پوره مرسته وکړه او د هغوی سره متفق او متحد وه نو رسول الله ﷺ بنو عبد شمس (يعني حضرت عثمان ؓ او داسي نور) او بنو نوفل (يعني حضرت جبير ؓ او داسي نورو) ته د خيبر د مال د پنځمي برخي څخه هيڅ برخه ور نه کړل سره ددې چي هغوی د رسول الله ﷺ د ذوي القربی څخه وه ځکه چي د هغوی او د بنوهاشم په مينځ کي اتفاق او اتحاد نه وو او د دواړو په مينځ کي مخالفت او منافرت وو.

## د فئ د مال حکم

﴿۳۱۱۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا قَرْيَةٍ

د حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم ځای ته چي تاسو ولاړ

اَتَيْتُمُوهَا وَأَقَمْتُمْ فِيهَا فَسَهْمُكُمْ فِيهَا وَأَيُّمَا قَرْيَةٍ عَصَتْ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَإِنَّ خُمُسَهَا لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ ثُمَّ هِيَ لَكُمْ . رواه مسلم .

سئ او هلته قيام وکړئ (او د هغه ځای خلک د صلح څخه وروسته هغه ابادي خالي کړي) نو څه چي په دې آبادي کي د ننه وي هغه ستاسو برخه ده او کومي آبادي چي د الله ﷻ او رسول ﷺ نافرماني وکړه (او ستاسو سره په جنګ کولو سره) پر هغه قبضه وکړه نو د هغه د مال څخه پنځمه برخه د الله ﷻ او رسول ﷺ لپاره ده بيا چي څه پاته سي هغه ستاسو ده . مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۱۳۷۶/۳، رقم: ۴۷- ۱۷۵٦.

**تشریح** او هلته قیام وکړي : ددې مطلب دادی چې د جهاد لپاره یو کلي ته ورغلی او د هغوی سره یې جنګ وکړ او بیا د هغه ځای په پرېښودو سره وتښتیدی یا هغوی ستاسو سره د مصالحت کولو سره هغه کلی او خپل ځان تاسو ته حواله کړ او تاسو په هغه کي قیام وکړ.

نو په هغه کي ستاسو برخه ده : ددې په ذریعه دا واضحه سوې ده چې د ذکر سوې کلي څخه کوم مال او سامان تاسو ته په لاس درسي هغه یوازي ستاسو حق نه دی بلکه ستاسو او د هغه مجاهدینو په مینځ کي به مشترک وي کوم چې ستاسو سره جهاد ته نه دي تللي بلکه په خپلو کورو کي پاته سوي دي ځکه چې داسي مال ته فئ ویل کیږي او د فئ حکم دادی چې هغه یوازي د هغه مجاهدینو لپاره خاص نه وي کوم چې په جنګ کي د ګډون کولو لپاره د خپل کورو څخه وتلي وي.

کوم کلی چې د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ نافرماني وکړي . . : ددې مطلب دادی چې د کوم کلي خلک د اسلام دعوت قبول نه کړي او نه د صلح په ذریعه خپل ځان تاسو ته وسپاري بلکه د سرکښۍ لار اختیار کړي او ستاسو سره جنګ وکړي او تاسو د جنګ او زور په ذریعه پر هغوی غلبه تر لاسه کړئ نو په دغه صورت کي د هغه کلي څخه چې کوم مال او سامان په لاس راسي نو هغه ته د غنیمت مال ویل کیږي د هغه مال څخه به خمس یعني پنځمه برخه د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ لپاره جلا کړل سي او بیا چې څه پاته سي هغه به په جنګ کي د ګډون کونکو په مینځ کي وویشل سي.

ددې څخه معلومه سوه چې خمس (پنځمه برخه) یوازي د غنیمت د مال څخه ایستل کیږي د فئ د مال څخه نه ایستل کیږي مګر د امام شافعي رحمه الله مذهب دادی چې څرنګه چې د غنیمت د مال څخه پنځمه برخه ایستل کیږي همدارنګه د فئ د مال څخه هم پنځمه برخه ایستل کیږي په دې اعتبار سره دغه حدیث د امام شافعي رحمه الله د مذهب دلیل دی.

ځینو حنفي علماؤ ددغه حدیث تشریح داسي کړې ده چې د اولي برخي څخه مراد هغه صورت دی چې په هغه کي مسلمانان یو کلي او علاقه په داسي حال کي فتح کړې وي چې د هغوی سره رسول الله ﷺ نه وي او د دوهمي برخي څخه مراد هغه صورت دی چې په هغه کي مسلمانانو یو کلی یا یو ښار په داسي حال کي فتح کړی وي چې رسول الله ﷺ په خپله په هغه جهاد کي ګډون کړی وي نو په دغه دوهم صورت کي به رسول الله ﷺ پنځمه برخه اخیستل او پاته برخه به یې د لښکر د خلکو په مینځ کي ویشل.

## د غنيمت په مال کې د خيانت کونکو وعيد

﴿٣٨٢٠﴾: وَعَنْ خَوْلَةَ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خوله انصاريه ﷺ څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چې

يَقُولُ إِنَّ رِجَالًا يَتَخَوَّضُونَ فِي مَالِ اللّٰهِ بِغَيْرِ حَقٍّ فَلَهُمُ النَّارُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري.

ځيني خلک د الله تعالى په مال کې په ناحقه تصرف کوي نو د قيامت په ورځ د هغوی لپاره د دوږخ اور دئ. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢١٧، رقم: ٣١١٨.

**د لغاتو حل** يتخوضون: اى يسرعون ويدخلون ويتصرفون.

**تشريح** يعني که چيري هغوی په حلال ګڼلو سره ناحقه تصرف کړی وي نو د همېشه لپاره به د دوږخ په اور کې سوځي او که چيري هغوی دغه ګناه کول په حلال ګڼلو سره نه وي کړي نو بيا الله تعالى چې تر څو مره وخته پوري وغواړي هغوی به د دوږخ په اور کې واچوي.

﴿٣٨٢١﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَامَ فِينَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ يوه ورځ موږ ته نصيحت وکړی او په

يَوْمٍ فَذَكَرَ الْغُلُولَ فَعَظَّمَهُ وَعَظَّمَ أَمْرَهُ ثُمَّ قَالَ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ

مال غنيمت کې يې د خيانت ذکر وکړ، رسول الله ﷺ هغه سخته ګناه وګڼل او هغه يې لوی کار وګڼی او بيا يې وفرمايل: زه په تاسو کې هيڅوک د قيامت په ورځ په داسې حال کې ونه وينم

الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ بَعِيرٌ لَهُ رُغَاءٌ يَقُولُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ

چې د هغه پر څټ دي اوښ سپور وي او بيا هغه ما ته وايي اې د الله رسوله! زما فرياد رسونه وکړئ، او زه د هغه په جواب کې دا ووايم چې زه تا لره مالک نه يم د هيڅ شي.

شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ فَرَسٌ لَهُ

زما چې څه فرض وه ما په دنيا کې تاسو ته ورسول، زه دي تاسو په قيامت کې په داسې کې حال

كي ونه نيم چي د هغه پر څټ دي آس زړيږي

حَمْحَمَةٌ فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا

او هغه دي ووايي اې د الله رسوله ! زما فرياد رسونه وکړئ، (يعني زما سفارش وکړئ) او زه ورته دا ووايم چي زه ستا لپاره د هيڅ شي مالک نه يم ما تاسو ته د شريعت احکام رسولي وه،

أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ شَاةٌ لَهَا ثُغَاءٌ يَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ

او زه دي په تاسو کي هيڅوک د قيامت په ورځ په داسي حال کي ونه وينم چي د هغه پر څټ پسه سپور وي او چغي وهي او دا وايي اې د الله رسوله !

أَغِثْنِي فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

زما مرسته وکړئ، او زه ورته دا ووايم چي زه اوس ستا لپاره د هيڅ شي مالک نه يم ما خپل پيغام تاسو ته رسولی دئ، او زه دي د قيامت په ورځ

عَلَى رَقَبَتِهِ نَفْسٌ لَهَا صِيَاحٌ فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا

په تاسو کي څوک په دې کي حال کي ونه وينم چي د هغه پر غاړه مريی وي، او هغه چغي وهي چي اې د الله رسوله ! ما وژغورئ او زما فرياد واورئ او زه به ورته وايم چي زه ستا لپاره د هيڅ شي مالک نه يم

قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ رِقَاعٌ تَخْفِقُ

ما تاسو ته د شريعت احکام رسولي وه او زه دي په تاسو کي د قيامت په ورځ هيڅوک په داسي حال کي ونه وينم چي د هغه پر غاړه دي جامې وي او حرکت دي کوي

فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ لَا أُلْفِيَنَّ

او هغه ما ته ووايي اې د الله رسوله ! زما سفارش وکړئ او زه دا ورته ووايم چي زه ستا لپاره هيڅ نه سم کولای ما تاسو ته شريعت رسولی وه، او زه دي په تاسو کي هيڅوک د قيامت په ورځ

أَحَدَكُمْ يَجِيءُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَلَى رَقَبَتِهِ صَامِتٌ فَيَقُولُ يَا رَسُولَ اللهِ أَغِثْنِي

په داسي حال کي ونه وينم چي د هغه پر غاړه د سرو يا سپينو زرو (بار) وي او هغه ووايي اې د

الله رسوله ! زما مرسته وکړئ

فَأَقُولُ لَا أَمْلِكُ لَكَ شَيْئًا قَدْ أَبْلَغْتُكَ . متفق عليه و هذا الفظ مسلم و هو اتم .

او زه دا ووايم چي زه ستا لپاره هيڅ نه سم کولای ما تاسو ته د شريعت احکام رسولي وه . بخاري او مسلم ، دا د مسلم الفاظ دي چي زيات پوره دي .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦\١٨٥، رقم: ٣٠٧٣، ومسلم ١٣\١٤٦١، رقم: ٢٤- ١٨٣١.

**د لغاتو حل** رُغا: صوت الابل (د اوښ رمباړی). حمحمة: صوت الفرس دون الصهيل (د شيشني پرته د آس ږغ. صامت : اى ذهب وفضة وما في معناهما . )

## په مال کي د ناحق تصرف کولو وعيد

﴿٣٨٢٢﴾: وَعَنْهُ قَالَ اَهْدٰى رَجُلٌ لِرَسُوْلِ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامًا يُقَالُ لَهُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي په تحفه کي ورکړ رسول الله ﷺ ته يو غلام

مِدْعَمٌ فَبَيْنَمَا مِدْعَمٌ يَحُطُّ رَحْلًا لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اصابه

چي د هغه نوم مدعم وو يوه ورځ مدعم د رسول الله ﷺ کجاوه کښته کول چي پر هغه يو غشي

سَهْمٌ عَائِرٌ فَقَتَلَهُ فَقَالَ النَّاسُ هَنِيئًا لَهُ الْجَنَّةُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ولګيدئ چي هغه د ويشتونکي معلومات ونه سو او هغه مړ سو ، خلکو وويل مدعم ته دي جنت مبارک وي، رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَّا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّ الشَّمْلَةَ الَّتِي أَخَذَهَا يَوْمَ خَيْبَرَ مِنَ

نه. قسم په هغه ذات چي د هغه په لاس کي زما ساه ده هغه څادر چي مدعم د خيبر په ورځ د

الْمَغَانِمِ لَمْ تُصِبْهَا الْمَقَاسِمُ لَتَشْتَعِلُ عَلَيْهِ نَارًا فَلَمَّا سَمِعَ ذٰلِكَ النَّاسُ جَاءَ

غنيمت د مال د ويشلو څخه ترمخه اخيستی وو د اور شعلې جوړي سوي دي او پر مدعم بليږي ، خلکو چي د رسول الله ﷺ دا الفاظ واوريدل نو سمدستي يو سړي

رَجُلٌ بِشِرَاكٍ أَوْ شِرَاكَيْنِ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ شِرَاكٌ مِنْ نَارٍ أَوْ شِرَاكَانِ مِنْ نَارٍ

يوه يا دوې تسمې رسول الله ﷺ ته راوړلې چي هغه (په معمولي شي ګڼلو سره) د غنيمت د مال څخه اخيستي وي، رسول الله ﷺ وفرمايل: دا تسمه يا تسمې د اور دي، بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٥٩٢، رقم: ٦٧٠٧، ومسلم ١\١٠٨، رقم: ١٨٣-١١٥.

**د لغاتو حل** عاثر: اى لايدري من رماه.

**تشريح** په دغه حديث كي د هغه سړي لپاره سخته خبرتيا او سخت وعيد دى چي هغه د يو داسي مال څخه شى وخوري د كوم سره چي د مسلمانانو حقوق متعلق وي لكه اوقاف، بيت المال او داسي نور، ځكه چي د يو سړي حق خو ادا كيداى سي مګر د ډېرو خلكو د حقوقو بېرته وركول او د هغوى د حق تلاف كول نه يوازي دا چي مشكل ده بلكه ناممكن هم ده.

﴿٣٨٢٣﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ كَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په يوه غزا كي د رسول الله ﷺ پر اسباب

وَسَلَّمَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ كِرْكِرَةُ فَمَاتَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ

باندي يو ساتونكى وو چي د هغه نوم كركره وو، هغه مړ سو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه

فِي النَّارِ فَذَهَبُوا يَنْظُرُونَ فَوَجَدُوا عَبَاءَةً قَدْ غَلَّهَا. رواه البخاري.

په دوږخ كي دئ، خلكو د هغه اسباب وكتل نو په هغه كي يې يو كمبل پيدا كړي چي د غنيمت په مال كي يې خيانت كړى وو. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٨٧، رقم: ٣٠٧٤.

**تشريح** يحيى رحمه الله وايي چي په (فذهبوا) كي د فا حرف عاطفه دى، يعني د دغه لفظ څخه مخكي دا مفهوم محذوف دى چي صحابه كرامو د رسول الله ﷺ ارشاد واوريدى نو هغوى ته معلوم مه سوه چي د كركره په باره كي دا وعيد ځكه دى چي هغه د غنيمت په مال كي خيانت كړى وو نو هغوى سامان كتل شروع كړل... الخ.

## د غنيمت په مال كي د تقسيم څخه مخكي د خوراكي شيانو د استعمال اجازت

﴿٣٨٢٤﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا نُصِيبُ فِي مَغَازِينَا الْعَسَلَ وَالْعِنَبَ فَنَأْكُلُهُ وَلَا نَرْفَعُهُ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ به په غزاوو كي شات او انګور تر لاسه كول، نو هغه به مو خوړل مګر د ځان سره مو نه وړل، (يعني د خوراک شيان د ضرورت په اندازه د جنګ په ميدان كي خوړل جائز دي). بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٥٥، رقم: ٣١٥٤.

**تشريح** يعني موږ به هغه عسل او انګور د وېشلو لپاره رسول الله ﷺ ته نه وړل، يعني په دې سره دا څرګندول دي چي رسول الله ﷺ زموږ دغه كار جائز ګڼي نو پر دغه مسئله باندي د علماؤ اتفاق دی چي مجاهدين تر څو پوري په دارالحرب يعني د جنګ په مېدان كي وي تر هغه وخته د غنيمت د مال څخه د خوراک او څښاک شيان د وېشلو څخه مخكي د اړتيا او ضرورت په اندازه مصرفول جائز دي.

﴿٣٨٢٥﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ أَصَبْتُ جِرَابًا مِنْ شَحْمٍ يَوْمَ خَيْبَرَ

د حضرت عبد الله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د خيبر په ورځ ما ته د وازګو څخه ډكه يوه

فَالْتَزَمْتُهُ فَقُلْتُ لَا أُعْطِي الْيَوْمَ أَحَدًا مِنْ هٰذَا شَيْئًا فَالْتَفَتُّ فَإِذَا رَسُولُ

كڅوړه په لاس راغلل، ما هغه پورته كړه او ما وويل چي نن به د دې وازګو څخه هيچا ته شی نه وركوم، ما چي وكتل نو

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَسَّمُ إِلَيَّ. متفق عليه و ذكر حديث ابي هريرة ما اعطيكم في باب رزق الولاة.

رسول الله ﷺ ولاړ وو او خندل يې، (يعني زما پر دغه كار خندا ورغلل). بخاري او مسلم، د ابو هريرة حديث (ما اعطيكم) د رزق الولاة په باب كي بيان سوی دئ.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٥٥، رقم: ٣١٥٣، ومسلم ٣\١٣٩٣، رقم: ٧٢- ١٧٧٢.

**تشريح** لكه څرنګه چي د مخكني حديث په تشريح كي بيان سوی دی د دغه روايت څخه هم دا معلومه سوه چي مجاهدينو ته د غنيمت د مال څخه د ضرورت په اندازه د خوراک او څښاک شيان اخيستل جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امت محمدي پر نورو امتو فضيلت

﴿۳۸۲۶﴾: عَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ فَضَّلَنِي عَلَى الْأَنْبِيَاءِ أَوْ قَالَ أُمَّتِي عَلَى الْأُمَمِ وَأَحَلَّ لِيَ الْغَنَائِمَ. رواه الترمذي

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی ما ته پر انبیاؤو فضیلت راکړی دئ، یا رسول الله ﷺ داسي وفرمایل چي الله تعالی زما امت ته پر نورو امتونو فضیلت ورکړی دئ چي د غنیمت مال یې زموږ لپاره حلال ګرځولی دئ. ترمذي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): سنن الترمذي ۱۴\۱۰۴، رقم: ۱۵۵۳.

**تشريح**: د حديث آخري جمله د ذکر سوي فضيلت د وضاحت په توګه ده يعني الله تعالی زموږ لپاره د غنيمت مال په خاصه توګه حلال ګرځولی دی او موږ ته يې پر نورو امتو فضيلت او بزرګي راکړې ده، يا دا مراد دی چي الله تعالی موږ پر نورو امتو باندي ډېر فضيلتونه راکړي دي چي په هغو کي يو فضيلت دا هم دی چي زموږ لپاره يې د غنيمت مال حلال ګرځولی دی.

### د مقتول مال د قاتل دی

﴿۳۸۲۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَئِذٍ يَعْنِيْ يَوْمَ حُنَيْنٍ مَنْ قَتَلَ كَافِرًا فَلَهُ سَلَبُهُ فَقَتَلَ أَبُوْ طَلْحَةَ يَوْمَئِذٍ عِشْرِيْنَ رَجُلاً وَأَخَذَ أَسْلَابَهُمْ. رواه الدارمي

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د حنين په ورځ وفرمايل: څوک چي يو کافر مړ کړي نو د هغه سامان د هغه دئ، ابو طلحه په هغه ورځ شل کسان (کافران) ووژل او د هغوی سامان يې واخيست. دارمي

**تخريج** سنن الدارمي ۲\۳۰۱، رقم: ۲۸۸۴.

﴿۳۸۲۸﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ وَخَالِدِ بْنِ الْوَلِيْدِ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ

ﷺ قَضٰى فِي السَّلَبِ لِلْقَاتِلِ وَلَمْ يَخْمِسِ السَّلَبَ . رواه أبو داود

د حضرت عوف بن مالک اشجعي او خالد بن وليد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د مقتول د سامان په اړه دا حکم وکړ چي هغه د قاتل لپاره دئ او په هغه مال کي يې خمس (پنځمه برخه) ونه ايستل. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ١٦٥/٣، رقم: ٢٧٢١.

﴿٣٨٢٩﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ نَفَّلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ سَيْفَ أَبِي جَهْلٍ كَانَ قَتَلَهُ . رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د بدر په ورځ رسول الله ﷺ زما د برخي څخه زيات ما ته د ابوجهل توره راکړه او ابوجهل هغه قتل کړی وو . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ١٦٦/٣، رقم: ٢٧٢٢.

**تشريح**: د بدر په غزا کي ابوجهل د مديني منورې د انصارو څخه دوو کم عمره کوچنيانو قتل کړی وو مګر ابن مسعود رضي الله عنه د هغه په وژلو کي د هغوی سره شريک وو په دې توګه چي د هغه سر يې د بدن څخه جلا کړی وو ځکه رسول الله ﷺ د هغه د سامان څخه يو شی يعني توره عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ته ورکړه .

## غلام ته د غنيمت د مال څخه لږ څه ورکول کيدای سي

﴿٣٨٣٠﴾: وَعَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ قَالَ شَهِدْتُ خَيْبَرَ مَعَ سَادَتِي فَكَلَّمُوا

د حضرت عمير رضي الله عنه څخه چي د حضرت ابي اللحم رضي الله عنه آزاد کړل سوی غلام دئ روايت دئ چي زه د خپلو مالکانو سره د خيبر په جنګ کي شريک سوم ، زما مالکانو زما په اړه

فِيَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَلَّمُوهُ أَنِّي مَمْلُوكٌ قَالَ فَأَمَرَ بِي فَقُلِّدْتُ

د رسول الله ﷺ سره خبري وکړې او وه يې ښودل چي زه د هغوی غلام يم ، رسول الله ﷺ ما ته

السَّيْفَ فَإِذَا أَنَا أَجُرُّهُ فَأَمَرَ لِي بِشَيْءٍ مِنْ خُرْثِيِّ الْمَتَاعِ وَعَرَضْتُ عَلَيْهِ رُقْيَةً

حكم راكړ چي زه توره واخلم او د مجاهدينو سره سم، زما پر بدن توره وتړل سوه (زما قد كوچنى وو) نو له دي كبله ما هغه توره په كشولو سره د ځان سره وړل، او د غنيمت د مال د ويشلو پر

كُنْتُ أَرْقِي بِهَا الْمَجَانِينَ فَأَمَرَنِي بِطَرْحِ بَعْضِهَا وَحَبْسِ بَعْضِهَا . رواه الترمذي و ابوداؤد الا ان روايته انتهت عند قوله الْمتاع

وخت رسول الله ﷺ حكم وكړ چي لږ مال ده ته هم وركړئ، او ما د رسول الله ﷺ يو دم ووايه چي ما به پر ليونيانو چف كوئ، رسول الله ﷺ ما ته حكم وكړ چي ددې (دم) دومره برخه موقوف كړه او دومره پاته وساته . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۱۰۷، رقم: ۱۵۵۷، وابوداؤد ۳\۱۷۱، رقم: ۲۷۳۰.

**د لغاتو حل** خرثي: اى اثاث البيت (د كور سامان)

**تشريح** په ظاهره دا معلوميږي چي عمير ؓ په كوم منتر (جادو) پوهېدى د هغه ځيني كلمې د اسلامي عقائدو او تعليماتو خلاف وې نو رسول الله ﷺ دهغه كلمو د پرېښودو حكم وركړ البته كومي كلمې چي د اسلامي عقائدو او تعليماتو خلاف نه وې د هغو اجازه يې وركړه .

## د خيبر د مال تقسيم

﴿۳۸۳۱﴾: وَعَنْ مُجَمِّعِ بْنِ جَارِيَةَ قَالَ قُسِمَتْ خَيْبَرُ عَلَى أَهْلِ الْحُدَيْبِيَةِ

د حضرت مجمع بن جارية ؓ څخه روايت دئ چي د خيبر د غنيمت مال او ځمكه په هغه كسانو

فَقَسَمَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ سَهْمًا وَكَانَ الْجَيْشُ

وويشل سوه چي د حديبيې په صلح كي شريك وه، رسول الله ﷺ د هغه اتلس برخي كړې او د

أَلْفًا وَخَمْسَ مِائَةٍ فِيهِمْ ثَلَاثُ مِائَةِ فَارِسٍ فَأَعْطَى الْفَارِسَ سَهْمَيْنِ والرَّاجِلَ

لښكر شمير پنځلس سوه وو ، چي په هغه كي درې سوه سپاره وه ، سپرو ته رسول الله ﷺ دوې برخي وركړې او پيادوو ته يې

سَهْمًا. رواه ابوداؤد وقال حديث ابن عمر اصح والعمل عليه و اتي الوهم مجمع انه قال ثلاث مائة فارس وانما كانوا مائتي فارس.

يوه برخه ورکړه . ابوداؤد ويلي دي چي د ابن عمر ﷺ حديث زيات صحيح دیٔ او پر دې د اکثره امامانو عمل دیٔ او د حضرت مجمع ابن جاريه په حديث کي گمان دیٔ چي هغه وويل درې سوه سپاره وه حال دا چي دوه سوه سپاره وه .

**تخريج** سنن ابي داود ۲\ ۱۷۴، رقم: ۲۷۳٦.

**تشريح** کوم حضرات چي دا وايي چي د غنيمت په مال کي د اسلامي لښکر د سپرو مجاهدينو دوې برخي دي لکه څرنگه چي د امام اعظم ابوحنيفة رحمه الله مذهب دی نو هغوی دغه حديث د خپل مذهب دليل گرځوي ځکه چي د اتلس برخو څخه په درې سوه ۳۰۰ سپرو کسانو کي هر سل سل سپرو کسانو ته دوې دوې برخي ورکړل سوې نو شپږ برخي ولاړې او دوولس برخي پاته سوې او هغه دوولس برخي د دوولس سوه ۱۲۰۰ پياده کسانو په منځ کي داسي ووېشل سوې چي هر سل سپرو کسانو ته يوه برخه ترلاسه سوه ، او کوم حضرات چي وايي چي د غنيمت په مال کي د سپرو مجاهدينو درې برخي دي د هغوی په اعتبار دا حساب صحيح نه دی ځکه چي په دغه صورت کي پر سپرو کسانو باندي د نهه برخو ويشل لازمېږي او دوولس برخي د پياده کسانو سوې په دې حساب سره د هغه برخو مجموعې شمېر يويشت کيږي حال دا چي په حديث کي مجموعې شمېر اتلس بيان سوی دی، دوهم دا چي د ابن عباس ﷺ او خپله د حضرت ابن عمر ﷺ څخه هم د حضرت مجمع ﷺ په ډول روايت نقل سوی دی چي د هغه څخه هم دا ثابتيږي چي سپرو کسانو ته دوې دوې برخي ورکړل سوې او د کومو حضراتو په نزد چي د سپرو کسانو درې برخي وي هغوی دا وايي چي په دغه مسئله کي د ابن عمر ﷺ روايت زيات صحيح او فيصله کونکی دی ، او کوم چي د حنفيه تعلق دی نو هغوی د ابن عمر ﷺ په دغه روايت باندي په کومه وجه چي عمل نه کوي هغه د دغه روايت په تشريح کي بيان سوی دی .

د روايت په آخر کي چي د کومي واهمه ذکر سوی دی د هغه بنياد د رواياتو پر اختلاف باندي دی په دې باره کي مختلف روايتونه نقل سوي دي چي د حديبيې د صلح په وخت کي د اسلامي لښکر شمېر څومره وو ، په يوه روايت کي دادي کوم چي حضرت مجمع ﷺ نقل کړی دی چي پنځلس سوه ۱۵۰۰ شمېر وو او په هغو کي درې سوه کسان سپاره وه مگر په يوه روايت کي دغه شمېر څوارلس سوه بيان سوی دی چي دوولس سوه پر پښو وه او دوه سوه پر سپرليو باندي وه .

## په جهاد کي د زیات کوښښ کونکو خاص برخه

﴿۳۸۳۲﴾: وَعَنْ حَبِيْبِ بْنِ مَسْلَمَةَ الْفِهْرِيِّ قَالَ شَهِدْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَفَّلَ الرُّبُعَ فِي الْبَدْأَةِ وَالثُّلُثَ فِي الرَّجْعَةِ. رواه ابوداؤد

د حبيب بن مسلمه الفهري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وم، رسول الله ﷺ هغه خلکو ته چي هغوی په جنګ کي تر ټولو اول برخه اخيستې وه څلورمه برخه د غنيمت مال زيات ورکړ او هغه خلکو ته چي د لښکر شاته د دښمن په مقابله کي وه دريمه برخه زيات ورکړ. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۸۲، رقم: ۲۷۵۰.

**د لغاتو حل**: البداة: اى ابتداء سفر الغزو. (د غزا د سفر پيل)

**تشريح**: په دغه حديث کي د غنيمت د مال د وېشلو په باره کي يوې خاص معاملې ته اشاره سوې ده چي د هغه وضاحت دادی که چيري د جنګ په ميدان کي د جهاد شروع په وخت کي د اسلامي لښکر يو ډله د خپل لښکر څخه په مخکي تللو سره د دښمن مقابلې ته ورسيږي او د خپل پوره لښکر د رسيدو څخه مخکي د دښمن سره په جنګ کي بوخت سول نو رسول الله ﷺ به هغه ډلي ته په خاصه توګه د غنيمت د مال څلورمه برخه ورکول (او پاته درې برخي به يې ويشلې) نو په دې کي هم د ټول لښکر سره هغه ډله به يې ګډول همدا رنګه د جنګ په ميدان کي د دښمن د مقابلې څخه د اسلامي لښکر د بېرته راتلو څخه وروسته که د مجاهدينو يوه ډله په جنګ کي بوخت وه نو رسول الله ﷺ به هغه ډلي ته هم په خاصه توګه د غنيمت د مال دريمه برخه ورکول او بيا پاته دوې برخي به يې ويشلې او په دغه ويش کي به يې هم هغه ډله ګډول او هغه ډلي ته به يې دريمه برخه ورکول کوم چي د ټول لښکر د ستنېدو څخه وروسته يوازي يو څو مجاهدينو د دښمن په مقابله کي ودرېدل او جنګ جاري ساتل يو سخت پړاو او ډېر خطرناک اقدام دی. حال دا چي په شروع کي به دومره سخت پړاو نه وو ځکه چي هغه وخت به ټول لښکر را روان وو او د هغه مجاهدينو مرسته به يې کول، ددې پر خلاف د لښکر د ستنېدو په صورت کي چي کله ټول مجاهدين به ستانه سول نو هغه وخت به جنګ کول او د دښمن مقابله کول مشکل او سخت کار وو. په هر حال هغه مجاهدينو ته د غنيمت د مال څخه د هغوی د برخي څخه زيات ورکول په جنګ کي د هغوی د مېړاني او حوصلې د امتيازي کارنامې په توګه وو.

﴿۳۸۳۳﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُنَفِّلُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ وَالثُّلُثَ بَعْدَ الْخُمُسِ إِذَا قَفَلَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت حبیب بن مسلمه الفهري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د پنځمي برخي ایستلو څخه وروسته تر ټولو اول جنګ کونکو ته څلورمه برخه زیاته ورکړه او د ستنېدو څخه وروسته جنګ کونکو ته یې دریمه برخه زیاته ورکړه. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۱۸۲، رقم: ۲۷۴۹.

**تشریح** په مخکني حدیث کي خو دا بیان سوي وه چي د جنګ په شروع کي جنګ کونکو مجاهدینو ته به څلورمه برخه او د لښکر د ستنېدو څخه وروسته جنګ کونکو مجاهدینو ته دریمه برخه ورکول کیږي مګر دا وضاحت نه وو سوی چي دغه څلورمه یا دریمه برخه به د پنځمه برخي د ایستلو څخه وروسته ورکول کیږي که مخکي، نو په دغه حدیث کي دا وضاحت سوی دی چي رسول الله ﷺ به د غنیمت دمال څخه اول خمس (پنځمه برخه) و ایستل او د هغه څخه وروسته به یې څلورمه یا دریمه برخه ورکول او بیا به یې هغه په ټول لښکر کي ویشل.

## د فئ په مال کي هیڅ خاص برخه نه سته

﴿۳۸۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي الْجُوَيْرِيَةِ الْجَرْمِيِّ قَالَ أَصَبْتُ بِأَرْضِ الرُّومِ جَرَّةً حَمْرَاءَ

د حضرت ابو الجویریة الجرمي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د امیر معاویه رضي الله عنه د خلافت په ورځو کي د روم په مځکه کي یو سور منګی پیدا کړ

فِيهَا دَنَانِيرُ فِي إِمْرَةِ مُعَاوِيَةَ وَعَلَيْنَا رَجُلٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چي د دینارو څخه ډک وو او زموږ مشر د رسول الله ﷺ د صحابوو څخه یو سړی وو چي د بنو

وَسَلَّمَ مِنْ بَنِي سُلَيْمٍ يُقَالُ لَهُ مَعْنُ بْنُ يَزِيدَ فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَسَمَهَا بَيْنَ

سلیم د قبیلې څخه وو چي نوم یې معن بن یزید وو، ما هغه منګی خپل مشر ته راوړ، مشر هغه

الْمُسْلِمِينَ وَأَعْطَانِي مِنْهَا مِثْلَ مَا أَعْطَى رَجُلًا مِنْهُمْ ثُمَّ قَالَ لَوْلَا أَنِّي سَمِعْتُ

دینارونه پر مسلمانانو وویشتل او ما ته یې هم هغومره راکړل څومره چي یې نورو ته ورکړل،

نورو صحابه کرامو هم د مکې څخه هجرت کړی وو ، کله چې دغه ټولو خلکو په حبشه کي دا خبره واورېدل چي رسول الله ﷺ هم د مکې څخه هجرت کړی دی او مدينې منورې ته تللی دی نو دا خلک هم د حبشې څخه د کښتيو په ذريعه مدينې منورې ته روان سول او رسول الله ﷺ ته هغه وخت ورسيدل کله چي رسول الله ﷺ خيبر فتح کړی وو .

ځيني حضرات وايي چي د حبشې څخه راتلونکو کسانو ته د خيبر د غنيمت د مال څخه ځکه برخه ورکړل سول چي د هغوی راتلل د جنګ څخه وروسته سوي وه مګر هغوی د غنيمت د مال د جمع کولو او د هغه د وېشلو څخه مخکي را رسيدلي وه ، دا تاويل د هغه علماؤ له خوا کيږي کوم چي ددې خبري قائل دي که يو مجاهد په جنګ کي ګډون ونه کړای سي مګر د غنيمت د مال د جمع کېدو پر وخت او د هغه د وېشلو پر وخت موجود وي نو هغه ته به د غنيمت د مال څخه برخه ورکول کيږي لکه څرنګه چي د امام شافعي رحمه الله يو قول دی مګر کوم علماء چي ددې قائل نه دي هغوی وايي چي دغه کسانو ته د خيبر د غنيمت د مال څخه برخه ورکول د رسول الله ﷺ له خوا د يو خاص تحفې په توګه وو چي د خيبر په غزا کي د ګډون کونکو مجاهدينو په رضامندۍ سره ورکړل سوی وو او دا قول زيات صحيح دی .

## د غنيمت په مال کي د خيانت کونکو د جنازې څخه انکار

﴿٣٨٣٦﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ رسول الله صَلَّى

د حضرت زيد بن خالد جهني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په صحابه کرامو کي يو

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُوُفِّيَ يَوْمَ خَيْبَرَ فَذَكَرُوا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

سړی د خيبر د فتح په ورځ مړ سو ، رسول الله ﷺ ته ددې يادونه وسول نو رسول الله ﷺ

فَقَالَ صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ فَتَغَيَّرَتْ وُجُوهُ النَّاسِ لِذَلِكَ فَقَالَ إِنَّ صَاحِبَكُمْ

وفرمايل : تاسو پر خپل ملګري باندي د جنازې لمونځ وکړئ ، په دې اوريدو سره (د بيري څخه) د خلکو د مخونو رنګ بدل سو ، په دې تغير ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو

غَلَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَفَتَّشْنَا مَتَاعَهُ فَوَجَدْنَا خَرَزًا مِنْ خَرَزِ يَهُودَ لَا يُسَاوِي دِرْهَمَيْنِ . رواه مالك و ابوداؤد والنسائي.

ملګري د الله ﷻ په لار کي (د غنيمت په مال کي خيانت کړی دئ مو ږ د هغه د سامان تلاشي واخيستل نو په هغه کي د يهودي ښځو (ملغلري تر لاسه سوې چي د هغه بيه تر دوو درهمو زياته نه وه. مالک، ابوداؤد او نسائي.

**تخريج** موطا الامام مالک ٢\ ٤٥٨، رقم: ٢٣، وابوداود ٣\ ١٥٥، رقم: ٢٧١٠، والنسائي ٤\ ٦٤، رقم: ١٩٥٩

---

## د غنيمت د مال په جمع کولو کي د زنډکولو په باره کي وعيد

﴿٣٨٣٧﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به کله د غنيمت د مال د

إِذَا أَصَابَ غَنِيمَةً أَمَرَ بِلَالًا فَنَادَى فِي النَّاسِ فَيَجِيئُونَ بِغَنَائِمِهِمْ فَيَخْمُسُهُ

ويشلو اراده وکړل نو بلال رضي الله عنه ته به يې حکم کوئ چي هغه به په خلکو کي اعلان وکړ (چي غنيمتونه يو ځای کړئ) نو خلکو به غنيمتونه راوړل، رسول الله ﷺ به د ټول مال څخه پنځمه

وَيُقَسِّمُهُ فَجَاءَ رَجُلٌ يوم بَعْدَ ذٰلِكَ بِزِمَامٍ مِنْ شَعَرٍ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هٰذَا

برخه وايستل بيا به يې ويش وکړ، يو وار يو سړي د پنځمي برخي ايستلو او ويشلو څخه وروسته د وريښتانو جوړه سوې يوه رسۍ راوړل او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! دا

فِيمَا كُنَّا أَصَبْنَاهُ مِنَ الْغَنِيمَةِ فَقَالَ أَسَمِعْتَ بِلَالًا يُنَادِي ثَلَاثًا قَالَ نَعَمْ قَالَ

د غنيمت شی دئ چي موږ تر لاسه کړی وو، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا تا د بلال رضي الله عنه اعلان اوريدلی وو، چي هغه درې واره کړی وو، هغه وويل چي هو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

فَمَا مَنَعَكَ أَنْ تَجِيءَ بِهِ فَاعْتَذَرَ فَقَالَ كُنْ أَنْتَ تَجِيءُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَلَنْ أَقْبَلَهُ عَنْكَ. رواه ابوداؤد.

بيا هغه وخت دي ولي نه راوړ، هغه يو عذر وکړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ته به د قيامت په ورځ د همدې سره راځې، زه هيڅکله ستا څخه دا رسۍ نه اخلم. ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\ ١٥٦، رقم: ٢٧١٢.

**تشريح**: رسول الله ﷺ مهار ځکه قبول نه کړ چي په هغه کي د ټولو مجاهدينو حق وو او هغه وخت ټول مجاهدين آخوا دې خوا سوي وه ځکه د هغه څخه د هر يوه برخه هغه ته رسول مشکل وه.

## د غنيمت په مال کي د خيانت کونکي سزا

﴿٢٨٣٨﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ حَرَّقُوا مَتَاعَ الْغَالِّ وَضَرَبُوهُ. رواه ابوداؤد.

عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي د خيانت کونکي مال رسول الله ﷺ، ابوبکر صديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه وسوځئ او هغه يې ووهئ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\١٥٨، رقم: ٢٧١٥.

**تشريح**: د هغه خيانت سزا يې دا ورکړه چي د هغه سامان يې وسوځوی او د تعزير په توګه يې هغه ووهی، ځيني علماؤ لکه امام احمد ابن حنبل رحمه الله او داسي نورو ددغه حديث په ظاهري مفهوم باندي عمل کړی دی او وايي چي کوم سړی د غنيمت په مال کي خيانت وکړی د هغه سزا داده چي د هغه د کور ټول سامان دي وسوځول سي ماسيوا د حيوانانو او قرآن کريم څخه، او هغه شيان دي نه سوځل کيږي کوم چي د غنيمت د مال څخه په خيانت اخيستل سوي وي، امام اعظم ابوحنيفة، امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهم وايي چي د هغه سامان دي نه سوځل کيږي بلکه هغه ته دي يو بل تعزير ورکړل سي کوم چي قاضي يې مناسب وګڼي، دغه حضراتو دا حديث پر سخت خبرداري او وعيد باندي محمول کړی دی.

## د خائن حال نه ويونکی هم خائن دی

﴿٢٨٣٩﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ يَكْتُمْ غَالًّا فَإِنَّهُ مِثْلُهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمايل څوک چي خيانت کونکی پټوي (پرده يې کوی) هغه د هغه په ډول دئ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\١٥٨، رقم: ٢٧١٦.

## د غنيمت د مال د وېشلو څخه مخکي رانيول او پلورل منع دي

﴿۳۸۴۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ شِرِي الْغَنَائِمِ حَتّٰى تُقَسَّمَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ دغنيمت د مال د ويش څخه ترمخه رانيول منع کړي دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۱۲، رقم: ۱۵۶۳.

﴿۳۸۴۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهٰى اَنْ تُبَاعَ السِّهَامُ حَتّٰى تُقْسَمَ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوامامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د غنيمت مال د ويشلو څخه مخکي د هغه د برخي د خرڅولو څخه منع فرمايلي ده. ترمذي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۹۸، رقم: ۲۴۷۶.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو سړی د غنيمت د مال څخه خپل برخه د ويشلو څخه مخکي خرڅوي نو دا جائز نه دي، په دې وجه چي کومه برخه هغه خرڅول غواړي تر اوسه هغه دده په ملکيت کي نه ده راغلې لکه څرنګه چي د ځينو علماؤ قول دی چي د وېشلو څخه مخکي د يو برخي ملکيت موقوف وي، دوهم په دې وجه که چيري برخه لرونکی د وېشلو څخه مخکي مالک ومنل سي نو خپله هغه مالک ته د وېشلو څخه مخکي دا معلومه نه ده چي د هغه په برخه کي څه شي راځي او هغه شی به څرنګه وي نو په دغه صورت کي د هغه خرڅول ګويا د يو داسي شي خرڅول دي کوم چي غير معلوم او غير متعين دي او دا ناجائز دي.

## د غنيمت په مال کي په ناحقه تصرف کونکی

﴿۳۸۴۲﴾: وَعَنْ خَوْلَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت خوله بنت قيس (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي

يَقُوْلُ إِنَّ هٰذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ مَنْ أَصَابَهُ بِحَقِّهِ بُوْرِكَ لَهُ فِيْهِ وَرُبَّ مُتَخَوِّضٍ

چي دا مال شين او خوږ دئ (يعني د غنيمت مال خوښ شی دئ) چا ته چي دا د حق په توګه تر لاسه سي د هغه لپاره په هغه كي بركت اچول كيږي،

فِيمَا شَاءَتْ بِهِ نَفْسُهُ مِنْ مَالِ اللَّهِ وَرَسُولِهِ لَيْسَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا النَّارُ .

رواه الترمذي.

ډير خلك دي چي د الله ﷻ او رسول ﷺ د مال څخه (يعني د غنيمت د مال څخه) كوم شی چي د هغو زړه غواړي په خپل تصرف كي راولي ، د قيامت په ورځ د داسي خلكو لپاره يوازي د دوږخ اور دئ . ترمذي .

**تخريج** سنن الترمذي ۴\۵۰۷، رقم: ۲۳۷۴.

## ذوالفقار

﴿۳۸۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَنَفَّلَ سَيْفَهُ ذَا الْفَقَارِ يَوْمَ بَدْرٍ . رواه ابن ماجة . وزاد الترمذي وهو الذي راى فيه الرءيا يوم احد

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د بدر په ورځ (خپله توره) چي د هغه نوم ذوالفقار وو د خپلي برخي څخه زياته اخيستې وه . ابن ماجه ، او ترمذي ليكلي دي چي دا هغه توره وه كومه چي رسول الله ﷺ د اُحد په ورځ په خوب كي ليدلې وه .

**تخريج** سنن ابن ماجه ۲\۹۳۹، رقم: ۲۸۰۸، والترمذي ۴\۱۱۰، رقم: ۱۵۶۱.

**تشريح** د برخي څخه يې زياته اخيستې وه : ددې مطلب دادی چي د بدر په غزا كي د غنيمت مال چي لاس ته راغلی وو په هغه كي دغه توره هم وه كوم چي رسول الله ﷺ په خوښولو سره د خپل برخي څخه زياته اخيستې وه ، دا يوازي د رسول الله ﷺ لپاره جائز دي د بل چا لپاره جائز نه دي لكه څرنګه چي د حديث څخه معلومه سوه چي ددغه توري نوم (ذو الفقار) وو چي د يو كافر منبه ابن حجاج په ملكيت كي وه او د بدر په غزا كي د مسلمانانو په لاس قتل سوی وو ، د رسول الله ﷺ دغه توره خوښه سول نو رسول الله ﷺ د غنيمت د مال د وېشلو په وخت كي هغه د خپل برخي څخه زيات واخيستل ، په ډېرو جنګو كي د نورو تورو سره دغه توره هم د رسول الله ﷺ سره وه او په قاموس كي ليكلي دي چي دغه توره د منبه د زوی عاص وه چي د بدر په غزا

کي د حضرت علي ﷛ په لاس وو ژل سو او بیا رسول الله ﷺ هغه توره حضرت علي ﷛ ته ورکړه.

ددغه توري نوم ذوالفقار په دې وجه ایښودل سوی وو چي په اصل کي فقار د ملا تیر ته وایي او ددغه توري پر شا باندي کوچنی کوچنی ښکلې تاکی وې او یا د ملا د تیر په ډول جوړه سوې وه خکه نو دې ته ذوالفقار وویل سول.

د اُحد په غزا کي د ذوالفقار په باره کي د خوب لیدو قصه داده چي رسول الله ﷺ په خوب کي ولیدل چي رسول الله ﷺ هغه توره وښوروله نو هغه پر مینځ ماته سوه او بیا دوهم واریې وښوروله نو هغه تر مخکي هم زیاته ښه سول او د اُحد د غزا په ورځ ددغه خوب تعبیر داسي سو چي مخکي خو مسلمانانو ماته وخوړل مګر په پای کي یې فتح او کامیابي په برخه سول.

## د تقسیم څخه مخکي د غنیمت د مال د استعمال څخه منع

﴿۳۸۴۴﴾: وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَ

د حضرت رویفع بن ثابت ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي

يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَرْكَبْ دَابَّةً مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا

پر الله ﷻ او د آخرت پر ورځ ایمان لري نو هغه دي د غنیمت په ګډ مال کي پر هیڅ حیوان نه

أَعْجَفَهَا رَدَّهَا فِيهِ وَمَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ فَلَا يَلْبَسْ ثَوْبًا مِنْ فَيْءِ الْمُسْلِمِينَ حَتَّى إِذَا أَخْلَقَهُ رَدَّهُ فِيهِ. رواه ابوداؤد.

سپریږي نو چي هغه کمزورې سي نو هغه د غنیمت مال بیرته ورکړي او څوک چي پر الله ﷻ او د آخرت پر ورځ ایمان لري هغه دي د مشترک مال څخه جامه نه اغوندي نو هر کله چي هغه زړه سي نو بیرته یې ورکړي. ابوداؤد.

**تخریج** سنن ابي داود ۱۲/۶۱٦، رقم: ۲۱۵۹.

**د لغاتو حل** اخلقه: ابلاه.

**تشریح** ددغه حدیث د ظاهري مفهوم څخه دا نتیجه اخیستل سوې ده که د خپل سپرلۍ په مصرف کي د راوستلو په وجه هغه حیوان کمزوری نه وي نو په دغه صورت کي پر هغه سپریدل څه پروا نه لري مګر په حقیقت کي دا مفهوم مراد نه دی او نه دا نتیجه اخیستل کیدای سي بلکه دا خبره محض د محاورې په توګه فرمایل سوې ده چي په عامه توګه حیوانان په سپرلۍ سره

کمزوري کيږي.

## د غنيمت په مال کي د خوراک د شيانو حکم

﴿۳۸۴۵﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي الْمُجَاهِدِ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ قُلْتُ

محمد بن ابو المجاهد رحمه الله د عبدالله بن ابي اوفى رضي الله عنه څخه روايت کوي چي ما پوښتنه وکړه

هَلْ كُنْتُمْ تُخَمِّسُونَ الطَّعَامَ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

أيا تاسو به د رسول الله ﷺ په زمانه کي د خوراک په شيانو کي پنځمه برخه ايستل، هغه وويل:

أَصَبْنَا طَعَامًا يَوْمَ خَيْبَرَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَجِيءُ فَيَأْخُذُ مِنْهُ مِقْدَارَ مَا يَكْفِيهِ ثُمَّ يَنْصَرِفُ. رواه ابوداؤد.

د خيبر په ورځ موږ ته د خوراک شيان تر لاسه سول نو هر سړی به راتلئ او د هغه څخه به يې د ضرورت په اندازه اخيستل. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۵۱، رقم: ۲۷۴۰.

**تشريح**: د سوال مطلب دا وو چي ايا د دغه شيانو څخه هم خمس (پنځمه برخه) ايستل کيږي او يا کوم شيان چي د خوراک لپاره وي نو هغه د وېشلو څخه مستثنى دي چي کوم چا به غوښتل هغه به يې په خپل مصرف کي راوستل، د جواب خلاصه دا وه چي د خوراک او څښاک د شيانو څخه خمس ايستل نه دي پکار مګر ددې لحاظ ساتل هم ضروري دي چي د داسي شيانو څخه که څه واخيستل سي نو هغه دي په دومره اندازه کي وي په کوم سره چي حاجت او ضرورت پوره سي.

﴿۳۸۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ جَيْشًا غَنِمُوا فِي زَمَانِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا وَعَسَلًا فَلَمْ يُؤْخَذْ مِنْهُمُ الْخُمُسُ. رواه ابوداؤد

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي يو لښکر د غنيمت په مال کي د خوراک شيان او شات د خوراک لپاره واخستل چي د هغه څخه پنځمه برخه نه واخستل (چي دوی خوړلي وه په قدر د حاجت). ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱۵۱، رقم: ۲۷۰۱.

﴿٣٨٤٧﴾: وَعَنِ الْقَاسِمِ مَوْلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى

حضرت قاسم د عبدالرحمن بادار د رسول الله ﷺ د یو څو صحابوو څخه روايت کوي چي موږ به

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُنَّا نَأْكُلُ الْجَزَرَ فِي الْغَزْوِ وَلَا نَقْسِمُهُ حَتَّى إِنْ كُنَّا لَنَرْجِعُ إِلَى رِحَالِنَا وَأَخْرِجَتُنَا مِنْهُ مُمْلَأَةٌ. رواه ابوداؤد.

په غزا کي د اوښانو غوښه خوړل او ويشل به مو نه، تر څو چي موږ به خپلو خيمو ته بيرته راتلو نو زموږ خورجين به د غوښو څخه ډک وو. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ١٣\١٥٢، رقم: ٢٧٠٦.

**تشريح**: ابن همام رحمة الله عليه وايي چي کله مسلمانان د جهاد څخه وروسته دارالاسلام ته په راتلو سره د دارالحرب د سرحد و سره تېر سي نو ددې څخه وروسته د هغوی لپاره دا جائز نه دي چي هغوی په خپلو حيوانانو باندي د غنيمت د مال څخه واښه او دانه وخوري يا د غنيمت د مال څخه د خوراک او څښاک شيان استعمال کړي ځکه چي په دغه صورت کي هغه ضرورت پاته نه سو چي د هغه په وجه په دارالحرب کي د غنيمت د مال د خوراک او څښاک مصرفول د مجاهدينو لپاره جائز وه او د چا سره چي په دارالحرب کي د غنيمت د مال څخه داسي د خوراک او څښاک شيان وي چي هغه وېشل سوي نه وي او د هغه د ضرورت او حاجت څخه زيات وي نو هغه دي د غنيمت په مال کي واچوي.

## خيانت کونکی به د قيامت په ورځ بې عزته وي

﴿٣٨٤٨﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ

د حضرت عبادة بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ وَإِيَّاكُمْ وَالْغُلُولَ فَإِنَّهُ عَارٌ عَلَى أَهْلِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الدارمي ورواه النسائي عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده.

د غنيمت په مال کي ستن او تار هم ادا کوئ او د خيانت څخه ځان وساتئ ځکه چي خيانت کول به د قيامت په ورځ د خيانت کونکو لپاره د شرم سبب وي، دارمي، او نسائي دا د عمرو بن

شعیب د هغه د پلار او د هغه د نیکه په روایت نقل کړی دئ.

**تخريج** سنن الدارمي ٢\٣٠٢، رقم: ٢٤٨٧.

## د غنیمت په مال کي د ډېر کم شي خیانت د مؤخذې سبب دی

﴿٣٨٤٩﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ دَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

عمرو بن شعیب د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روایت کوي چي یوه ورځ نبي کریم ﷺ یو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَعِيرٍ فَأَخَذَ وَبَرَةً مِنْ سَنَامِهِ ثُمَّ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّهُ

اوښ ته نژدې سو او د هغه قب څخه یې لږ وریښتان واخیستل بیا یې وفرمایل اې خلکو! د

لَيْسَ لِي مِنْ هَذَا الْفَيْءِ شَيْءٌ وَلَا هَذَا وَرَفَعَ أُصْبُعَيْهِ إِلَّا الْخُمُسَ وَالْخُمُسُ

غنیمت په مال کي زما لپاره د پنځمي برخي څخه زیات هیڅ نسته او په دې ویلو سره یې د قب وریښتان وښودل چي د رسول الله ﷺ په مبارکو ګوتو کي وه او دا پنځمه برخه هم

مَرْدُودٌ عَلَيْكُمْ فَأَدُّوا الْخِيَاطَ وَالْمِخْيَطَ فَقَامَ رَجُلٌ فِي يَدِهِ كُبَّةٌ مِنْ شَعْرٍ

پر تاسو مصرف کیږي نو تاسو (د غنیمت د مال څخه چي ویشل سوی نه وي) ستن او تار هم مه اخلئ ددې په اورېدو سره یو سړي ودریدئ د هغه په لاس کي د وریښتانو د رسۍ یوه ټوټه وه

فَقَالَ أَخَذْتُ هَذِهِ لِأُصْلِحَ بِهَا بَرْدَعَةً لِي فَقَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

هغه عرض وکړ ما د رسۍ دا ټوټه ددې لپاره د ځان سره ایښې ده چي په دې سره زه د خپل پالان لاندي کمبل سم کړم، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل:

أَمَّا مَا كَانَ لِي وَلِبَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَهُوَ لَكَ فَقَالَ أَمَّا إِذْ بَلَغَتْ مَا أَرَى فَلَا أَرَبَ لِي فِيهَا وَنَبَذَهَا. رواه ابو داؤد.

په دې رسۍ کي چي څومره زما او د بنو عبدالمطلب برخه وه هغه ما ستا لپاره معاف کړه (مطلب دا چي که مجاهدین یې درته وبخښي او که یې نه بخښي)، هغه سړي عرض وکړ هر کله چي دا رسۍ دې حد ته رسیدلې ده (یعني د ګناه درجې ته) نو ما ته ددې ضرورت نسته، په دې

ویلو سره هغه رسی، وغور ځول. ابو داؤد

**تخریج** سنن ابي داود ۳\۱۴۲، رقم: ۲۶۹۴.

**د لغاتو حل** بردعة: الحلس، کساء الذي تحت رحل البعیر. الکبة: قطعة مکبکبة من غزل شعر.

## رسول الله ﷺ به پنځمه برخه مال هم د مسلمانانو په اجتماعي ګټه کي مصرف کوی

﴿۳۸۵۰﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن عبسة ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ موږ ته د غنیمت د مال د یو

إِلَى بَعِيرٍ مِنَ الْمَغْنَمِ فَلَمَّا سَلَّمَ أَخَذَ وَبَرَةً مِنْ جَنْبِ الْبَعِيرِ ثُمَّ قَالَ وَلَا يَحِلُّ

وښ (یعني د سترې په توګه کښېښنولو سره) لمونځ راکړ، کله چي رسول الله ﷺ سلام وګرځوئ نو د اوښ د بغل څخه یې لږ وړی را وکښلې او خلکو ته یې وښودل چي ستاسو د غنیمتونو

لِي مِنْ غَنَائِمِكُمْ مِثْلُ هَذَا إِلَّا الْخُمُسُ وَالْخُمُسُ مَرْدُودٌ فِيكُمْ. رواه ابوداؤد

څخه زما لپاره دومره شی هم حلال نه دئ، مګر پنځمه برخه او هغه هم ستاسو پر ضرورتونو مصرف کیږي. ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۱۸۸، رقم: ۲۷۵۵.

**تشریح** که د اړخ څخه مراد دا وي چي رسول الله ﷺ د هغه اوښ د بوک له خوا څخه وېښتان راکښل نو په دغه صورت کي به هغه واقعه وي کوم چي په ذکر شوي حدیث کي راغلي دي او که ظاهري مفهوم یعني د اوښ اړخ مراد واخیستل سي نو په هغه صورت کي به دا بله واقعه وي

## په قریبانو کي د خمس د تقسیم پر محال د حضرت عثمان وغیره محرومي

﴿۳۸۵۱﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ قَالَ لَمَّا قَسَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د جبیر بن مطعم ﷛ څخه روایت دئ چي کله رسول الله ﷺ د غنیمت د مال څخه د خپلوانو برخه

سَهْمَ ذَوِي الْقُرْبَى بَيْنَ بَنِي هَاشِمٍ وَبَنِي الْمُطَّلِبِ أَتَيْتُهُ أَنَا وَعُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ

په بنو هاشم او بنو مطلب کي وویشل نو زه (جبیر راوي) او عثمان بن عفان ﷛ د رسول الله ﷺ

فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَؤُلَاءِ إِخْوَانُنَا مِنْ بَنِي هَاشِمٍ لَا نُنْكِرُ فَضْلَهُمْ لِمَكَانِكَ

په خدمت كي حاضر سوو او عرض مو وكړ اې د الله رسوله ! موږ د خپلو بني هاشمو وروڼو د فضيلت څخه منكر نه يو

الَّذِي وَضَعَكَ اللهُ مِنْهُمْ اَرَاَيْتَ إِخْوَانِنَا مِنْ بَنِي الْمُطَّلِبِ أَعْطَيْتَهُمْ وَتَرَكْتَنَا

چي تاسو په هغوى كي پيدا اسوي ياست مگر دا راته وفرماياست چي تاسو زموږ وروڼو بنو مطلب ته پنځمه برخه خو وركړل او موږ ته مو نه راكړل،

وَاِنَّمَا قَرَابَتُنَا وَ قَرَابَتُهُمْ وَاحِدَةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا

حال دا موږ او دوى د يوه نيكه اولاد يو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

بَنُو هَاشِمٍ وَّ بَنُو الْمُطَّلِبِ شَيْءٌ وَاحِدٌ هٰكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ . رواه الشافعي

بنو هاشم او بنو مطلب يو شى دئ، په دې فرمايلو سره رسول الله ﷺ د يوه لاس گوتي په دويم لاس كي كښېښودلې (يعني څرنگه چي د گوتي په خپلو كي يو ځاى دي همداسي) د دواړو كورنۍ يو دي . شافعي ،

و في رواية ابي داؤد والنسائي نَحْوَهُ وَ فِيْهِ إِنَّا وَبَنِي الْمُطَّلِبِ لَا نَفْتَرِقُ فِي جَاهِلِيَّةٍ وَلَا إِسْلَامٍ وَإِنَّمَا نَحْنُ وَهُمْ شَيْءٌ وَاحِدٌ وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ .

او دا بوداؤد او نسائي په روايت كي دا الفاظ هم دي چي زه او بنو مطلب بيل نه يو ، نه د جاهليت په ورځو كي او نه د اسلام په ورځو كي ، يعني موږ (بنوهاشم) او هغوى (بنو مطلب) يو شي يو . په دې فرمايلو سره رسول الله ﷺ د دواړو لاسونو گوتي په يو بل كي داخلي كړې . بخاري

**تخريج** سنن ابي داود ١٣\٣٨٣، رقم: ٢٩٨٠، والنسائي ١٧\١٣٠، رقم: ٤١٣٧.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دابوجهل د قتل واقعه

﴿٣٨٥٢﴾ : عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ اِنِّي لَوَاقِفٌ فِي الصَّفِّ يَوْمَ بَدْرٍ

د عبدالرحمن بن عوف ﷛ څخه روايت دئ چي د بدر د غزا په ورځ زه په صف كي ولاړ وم چي

نَظَرْتُ عَنْ يَمِينِي وَشِمَالِي فَإِذَا بِغُلَامَيْنِ مِنَ الْأَنْصَارِ حَدِيثَةٍ أَسْنَانُهُمَا

زما راسته او چپه خوا ته دوه انصاري هلكان ولېدل چي بالكل د لږ عمر وه ،

فَتَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُونَ بَيْنَ أَضْلَعَ مِنْهُمَا فَغَمَزَنِي أَحَدُهُمَا فَقَالَ اَيْ عَمِّ هَلْ

ما په خپل زړه كي وويل كاش چي زه د دوو طاقتورو او تجربه كارو خلكو په مينځ كي واى (يعني دا هلكان مي معمولي وګڼل چي دوى به څنګه جنګ وكولاى سي) ناڅاپه په هغوى كي يو كس ما ته رانژدې سو او پوښتنه يې وكړه كاكا جانه! آيا

تَعْرِفُ أَبَا جَهْلٍ قُلْتُ نَعَمْ فَمَا حَاجَتُكَ إِلَيْهِ يَا ابْنَ أَخِي قَالَ أُخْبِرْتُ أَنَّهُ

تاسو ابو جهل پيژنئ ! ما ورته وويل هو، مګر ته يې ولي پوښتنه كوې ، هغه وويل ما ته معلومه سوې ده چي هغه

يَسُبُّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَئِنْ رَأَيْتُهُ لَا

رسول الله ﷺ ته ښكنځل كوي زما دي په هغه ذات قسم وي چي د هغه په لاس كي زما ساه ده كه زه هغه ووينم نو

يُفَارِقُ سَوَادِي سَوَادَهُ حَتَّى يَمُوتَ الْأَعْجَلُ مِنَّا قَالَ فَتَعَجَّبْتُ لِذَلِكَ قَالَ

زما بدن به تر هغه وخته پوري د هغه د بدن څخه بيل نسي تر څو پوري چي په موږ دواړو كي ژر راتلونكى مرګ يو د بل څخه بيل نه كړي ، (عبد الرحمن راوي) وايي د دې هلك د دې الفاظو په اوريدو سره زه حيران پاته سوم

وَغَمَزَنِي الْآخَرُ فَقَالَ لِي مِثْلَهَا فَلَمْ أَنْشَبْ أَنْ نَظَرْتُ إِلَى أَبِي جَهْلٍ يَجُولُ فِي

بيا هغه دويم هلك زه وښورولم او ما ته يې هغه الفاظ وويل كوم چي لومړني هلك ويلي وه ، ما سمدستي د دښمن په ډله كي ابو جهل وليدئ چي د خلكو په منځ كي ګرځيدئ

النَّاسِ قُلْتُ أَلَا تَرَيَانِ إِنَّ هٰذَا صَاحِبُكُمَا الَّذِي سَأَلْتُمَانِي عنه قال فَابْتَدَرَاهُ

او هغه هلكانو ته مي وويل تاسو وينئ ستاسو مطلوب د چا چي پوښتنه كوئ هغه دئ ګرځي،

عبد الرحمن وايي د دې په اوريدو سره هغه دواړو هلکانو خپل توري راوکښلې

بِسَيْفَيْهِمَا فَضَرَبَاهُ حَتَّى قَتَلَاهُ ثُمَّ انْصَرَفَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او د ابو جهل په لوريې ور منډې کړې او هغه يې ووهئ تر دې چې مړيې کړ، بيا هغه دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر سول

فَأَخْبَرَاهُ فَقَالَ أَيُّكُمَا قَتَلَهُ فَقَالَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَا قَتَلْتُهُ فَقَالَ هَلْ

او د پيښې ځخه يې خبر کړل، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه په تاسو کې کوم يوه هغه قتل کړی دئ. په هغوی کې هر يوه وويل چې ما قتل کړی دئ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه ايا

مَسَحْتُمَا سَيْفَيْكُمَا فَقَالَا لَا فَنَظَرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَي السَّيْفَيْنِ

تاسو توري وچې کړي دي هغوی عرض وکړ چې يا، رسول الله ﷺ د دواړو توري وکتلې او وه

فَقَالَ كِلَاكُمَا قَتَلَهُ وَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَلَبِهِ لِمُعَاذِ بْنِ

يې فرمايل: تاسو دواړو قتل کړی دئ، بيا رسول الله ﷺ د ابو جهل سامان معاذ بن عمرو بن

عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ وَالرَّجُلَانِ مُعَاذُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْجَمُوحِ وَمُعَاذُ بْنُ عَفْرَاءَ.

متفق عليه.

جموح ته ورکړ او هغه دواړه هلکان چې هغوی ابو جهل قتل کړی وو معاذ بن عمرو بن جموح او معاذ بن عفراء دي. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٤٦، رقم: ٣١٤١، ومسلم ٣\١٣٧٢، رقم: ٤٢- ١٧٥٢.

**د لغاتو حلل** اضلع: اى بين رجلين اقوى من الرجلين اللذين كنت بينهما. الاعجل: اى الاقرب اجلا. انشب: اى البث وامكث.

**تشريح** د صحيح بخاري په روايت کې د معاذ ابن عفراء پر ځای معوذ ابن عفراء دی او مخته چې کوم روايت راځي په هغه کې دا بيان سوی دی چې ابو جهل د عفراء زامنو قتل کړ حال دا چې مخکې کوم روايت نقل سوی دی د هغه ځخه معلوميږي چې په هغه دواړو وړونکو کې يوازې يو د عفراء زوی وو، همدارنګه په دواړو روايتو کې په ظاهره تضاد معلوميږي مګر محققينو

علماؤ دغه تضاد د دغه توجيه په ذريعه ليري كړى دى چي هغه دواړه د يوې مور زامن وه مگر د هغوى پلار جلا جلا وو .

په دې اعتبار سره هغه دواړه د مور له خوا سكه وړونه وه او د پلار له خوا ميريزي وړونه وه ، د هغوى د مور نوم بي بي عفراء وو ، په هغوى كي او د يوه د پلار نوم عمرو ابن جموح او د بل د پلار نوم د قسطلاني د قول مطابق حارث وو ، په هغوى كي يوه ته د هغه د پلار په نسبت معاذ ابن عمرو ابن جموع ويل كيږي او بل ته د مور په نسبت كولو سره معاذ ابن عفراء يا (معوذ ابن عفراء) ويل كيږي .

دلته دوه سوالونه نور هم پيدا كيږي يو خو دا چي رسول الله ﷺ وفرمايل چي ابوجهل په تاسو دواړو كي چا قتل كړى دى نو بيا رسول الله ﷺ د ابوجهل سامان هغه دواړو ته د وركولو پر ځاى په هغوى كي يوه ته د وركولو حكم ولي وكړ ؟ ددې جواب دادى چي د ابوجهل په وژلو كي دواړه شريک وه مگر په اصل كي چا چي مخكي پر ابوجهل په حمله كولو سره هغه د تښتېدو او ګرځېدو څخه مجبور او بې آرامه كړى وو هغه به يو وو او بيا وروسته دوهم هم پر هغه باندي د حملې په كولو سره هغه زيات زخمي كړ ، په دې اعتبار سره هغه د سامان مستحق وګرځول سو چا چي مخكي په حمله كولو سره د هغه تښتېدل يا دفاع كول بېكاره كړي وه مگر رسول الله ﷺ د دوهم د خوشحاله كولو لپاره دا هم وفرمايل چي تاسو دواړو هغه قتل كړى دى .

دوهم سوال هغه دى كوم چي په دوهم فصل كي د ابن مسعود ﷛ د روايت په تشريح كي هم ذكر سوى دى چي رسول الله ﷺ د ابوجهل توره زما دبرخي څخه زياته ما ته راكړه ، په دغه روايت كي هم دا بيان سوى وو چي ابوجهل حضرت ابن مسعود ﷛ قتل كړ (يعني د ابن مسعود ﷛ په لاس قتل سو ،) په دې اعتبار سره په دواړو روايتو كي تضاد واقع سو ؟ ددې جواب دادى چي هغه دواړه كوچنيانو ابوجهل په زخمي كولو سره پر مځكه را اېله كړى كله چي ابن مسعود ﷛ هغه وليدى چي په هغه كي ساه پاته ده نو د هغه سر يې جلا كړى همدارنګه د ابن مسعود ﷛ دغه عمل د ابوجهل په قتل سره تعبير كړل سو او رسول الله ﷺ په دې وجه چي د هغه په قتل كي په هر حال د ابن مسعود ﷛ څه ناڅه برخه وه ځكه هغه ته هم د هغه سامان څخه يو شى (توره) وركړه . دا خبره هم بايد په ذهن كي وي چي د امام مالک ﷫ د ځينو پيروانو دا قول دى چي په دې باره كي امام او مشر ته اختيار دى چي هغه څرنګه غواړي فيصله وكړي او د مقتول سامان چا ته چي وركول غواړي ور يې كړي ، په دغه صورت كي د ذكر سوو دواړو سوالو پيدا كېدو موقع نه پاته كيږي .

﴿۳۸۵۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ بَدْرٍ مَنْ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د بدر په ورځ وفرمايل :څوک سته چي

يَنْظُرُ لَنَا مَا صَنَعَ اَبُو جَهْلٍ فَانْطَلَقَ ابْنُ مَسْعُودٍ فَوَجَدَهُ قَدْ ضَرَبَهُ ابْنَا

دا معلومه کړي چي ابو جهل څه وکړل (يعني هغه څنګه سو وژل سوی دی که ژوندی دئ) نو ابن مسعود ولاړی او په ميدان کي يې وليدل چي د عفراء دواړو زامنو هغه زخمي کړی دئ او

عَفْرَاءَ حَتَّى بَرَدَ قَالَ فَأَخَذَ بِلِحْيَتِهِ فَقَالَ آنْتَ اَبُو جَهْلٍ فَقَالَ وَهَلْ فَوْقَ رَجُلٍ قَتَلْتُمُوهُ وفي رواية قَالَ فَلَوْ غَيْرُ اَكَّارٍ قَتَلَنِي . متفق عليه

د قبر پر غاړه دئ ، ابن مسعود هغه تر ږيري ونيوئ او ورته وه يې ويل ايا ته ابو جهل يې ، هغه وويل هو ، ايا په مرتبه کي دده څخه زيات څوک نسته چي هغه تاسو قتل کړئ (يعني ته په خپل لاس سره ما قتل کړه په قريشو کي به زما درجه لوړه سي) ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي ابو جهل وويل کاش چي زه بېله زميندار څخه بل چا وژلی وای . بخاري او مسلم .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۳۲۱، رقم: ۴۰۲۰، ومسلم ۳\۱۴۲۴، رقم: ۱۱۸– ۱۸۰۰.

**د لغاتو حل** برد: اى قرب من الموت. (مرګ ته نژدې سو). اكار: اى زراع.

**تشريح** کاش چي زه بېله زميندار څخه بل چا وژلی وای : ددغه جملې څخه د ابو جهل مطلب دا وو چي ما ته په دې کي پيغور نه دی چي تاسو خلکو زه قتل کړی يم مګر پر دې باندي افسوس دی چي زه هغه سړی وژلی يم کوم چي کښت کونکی دی کاش چي زه دده څخه پرته نورو خلکو قتل کړی وای نو زما په نزد به دا زياته غوره وای ، ګويا ابو جهل د عفراء زامنو ته اشاره وکړه چي هغوی دی قتل کړی وو ، د هغو تعلق د انصارو سره وو او انصارو به کرنه کول په دې توګه چي د هغوی سره ځمکي هم وې او د خرماوو باغونه هم وه .

## يو چا ته د مال په ورکولو سره د هغه ديني فضيلت نه لازميږي

﴿۳۸۵۴﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ أَعْطَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه ناست وم چي رسول الله ﷺ

رَهْطًا وَأَنَا جَالِسٌ فَتَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْهُمْ رَجُلًا هُوَ

يوې ډلي ته يو څه مال ورکړ، په هغه ډلي کي يوازي يوه سړي ته رسول الله ﷺ څه ور نه کړل.

أَعْجَبُهُمْ إِلَيَّ فَقُمْتُ فَقُلْتُ مَا لَكَ عَنْ فُلَانٍ وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَرَاهُ مُؤْمِنًا فَقَالَ

چي زما په نزد تر هغو ټولو غوره وو، (د دې په ليدو سره) زه ولاړ سوم او عرض مي وکړې په ده څه سوي دي ؟(چي تاسو ده ته نه ورکړل) قسم په الله زه خو دی مؤمن او صادق ګڼم. رسول الله

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْ مُسْلِمًا ذَكَرَ ذَالِكَ سَعْدٌ ثَلٰثًا وَاَجَابَهُ بِمِثْلِ

ﷺ وفرمايل: داسي وايه چي زه دی مسلمان ګڼم، سعد درې واره د رسول الله ﷺ په وړاندي

ذَالِكَ ثُمَّ قَالَ إِنِّي لَأُعْطِي الرَّجُلَ وَغَيْرُهُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِنْهُ خَشْيَةَ أَنْ يُكَبَّ فِي

دغه خبره وکړه او رسول الله ﷺ هم هر وار دغه جواب ورکړ، او بيا رسول الله ﷺ وفرمايل چي زه يو سړي ته مال ورکوم حال دا چي دويم سړي ما ته تر هغه زيات خوښ وي او دا يوازې ددې

النَّارِ عَلَى وَجْهِهِ . متفق عليه و في رواية لهما قَالَ الزُّهْرِيُّ فَنَرٰى اَنَّ الْاِسْلَامَ اَلْكَلِمَةُ وَالْاِيْمَانَ الْعَمَلُ الصَّالِحُ .

اندېښني څخه داسي کوم چي چيري هغه پوړمخی په دوږخ کي ونه لويږي . بخاري او مسلم . او د بخاري او مسلم په يو بل روايت کي داسي دي چي زهري وايي اسلام يوه کلمه ده او ايمان د صالح عمل نوم دئ .

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١\ ٧٩، رقم: ٢٧، ومسلم ١\ ١٣٣، رقم: ٢٣٧-١٥٠.

**تشريح** بلکه داسي ووايه ...الخ: ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ دا واضحه کړل چي حقيقي ايمان چي د هغه تعلق د زړه د ژوروالي او باطني صدق سره دی د ډېري لوړي مرتبې دی او دا يو ظاهري شی نه دی ځکه چي په دې باندي خبرېدل ممکن نه دي ، ددې پر خلاف اسلام يو لېدونکی شی دی ځکه چي اسلام نوم دی د ظاهري اطاعت او فرمانبرداری ځکه که ستا په نظر کي ددغه سړي ظاهري اعمال ډېر ښه وي نو ته د هغه په باره کي په يقين سره دا ويلای سې چي زه هغه ښه مسلمان ګڼم مګر په يقين سره دا نه سې ويلای چي زه هغه صادق مؤمن ګڼم ، يعني د

رسول الله ﷺ مقصد د سعد ﷺ د غیر مناسب خبري کولو خبرداری ورکول وو چي هغه د رسول الله ﷺ په مخکي د هغه سړي د مال مستحق کېدو په خپل دلیل سره بیان وکړ او د رسول الله ﷺ له خوا یې هغه سړي ته د مال نه ورکول د حقیقت څخه لیري وګڼل او د هغه سړي د حقیقي ایمان دعوه یې وکړه.

ځکه نو دا اندېښنه وي ...الخ : ددې څخه دا معلومه سوې ده چي یو سړی ته د مال په ورکولو سره هغه غوره ګڼل یا هغه افضل ګڼل نه لازمیږي او نه دا ضروري دي چي د مال ورکول د فضیلت او امتیاز په اعتبار وي بلکه ډېر واره داسي هم کیږي چي د کوم سړي ایمان کمزوری وي د هغه د زړه د مائلولو لپاره مال ورکول کیږي چي هغه د مال نه تر لاسه کولو په وجه د ناامیدۍ او غصې ښکار نه سي او د کفر تیارو ته ولاړ نه سي او بیا په دوږخ کي واچول سي، نو اې سعد! هغه سړي ته د مال ورکولو غوښتنه په دومره لوی دعوې سره مه کوه چي هغه کامل الایمان مؤمن دی حال دا چي د هغه د حقیقي او کامل یقین کول ستا لپاره ناممکن دي.

اسلام د کلمې نوم دی : څرګنده دي وي چي په اصل کي زهري رحمة الله علیه ته داسي ویل پکار وه چي اسلام د عمل صالح او د شریعت د احکامو د اطاعت او پیروۍ څخه عبارت دی او ایمان د زړه د تصدیق نوم دی مګر هغه د دغه مشهور تعریف پر ځای اسلام په کلمې سره او ایمان په عمل صالح سره تعبیر کړ ددې وجه داده چي د اسلام د اقرار تعلق د کلمه شهادت په ژبه ادا کولو سره دی کوم څوک چي کلمه شهادت ووایي هغه د خپل اسلام اقرار وکړ او دا اقرار ددې لپاره کافي دی چي هغه په ظاهري توګه مسلمان ومنل سي، رسول الله ﷺ حضرت سعد ﷺ ته دا فرمایلي وه چي ته د هغه سړي د مسلمان کېدو یقین کولای سې ځکه چي هغه په خپل ژبه د شهادت د کلمې په ویلو سره د اسلام اقرار کړی دی او د هغه دغه اقرار د هغه په ظاهره د مسلمان کېدو لپاره کافي دی، دا خبره زهري رحمة الله علیه په دې سره تعبیر کړه چي اسلام د کلمې نوم دی چي کوم څوک کلمه شهادت ووایي پر هغه د مسلمان کېدو حکم کیږي اوس پاته سو د ایمان د عمل صالح سره د تعبیر کولو خبره نو په دې داسي پوه سئ چي د صالح عمل د صادرېدو بنیاد څه شي وي، دا بالکل معلومه خبره ده چي د دغه بنیاد تصدیق په زړه سره ایمان راوړل وي کوم څوک چي په اخلاص سره عمل صالح کوي نو هغه دا خبره ظاهروي چي د هغه په زړه کي ایمان ځای سوی دی او د هغه څخه د عمل صالح صادرېدل د تصدیق قلبې او د کمال دین په وجه دي په دې اعتبار سره زهري رحمة الله علیه د ایمان وضاحت په عمل صالح سره وکړ.

## د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ برخه

﴿۳۸۵۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَامَ يَعْنِي يَوْمَ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د بدر په ورځ ولاړ سو

بَدْرٍ فَقَالَ إِنَّ عُثْمَانَ انْطَلَقَ فِي حَاجَةِ اللّٰهِ وَحَاجَةِ رَسُولِ اللّٰهِ وَإِنِّي أُبَايِعُ لَهُ

او وه يې فرمايل: عثمان رضی اللہ عنہ د الله جل جلاله او رسول ﷺ په کار پسي تللی دئ او زه د هغه (لپاره) بيعت کوم،

فَضَرَبَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَهْمٍ وَلَمْ يَضْرِبْ لِأَحَدٍ غَابَ

غَيْرَهُ. رواه ابوداؤد

بيا د غنيمت په مال کي يې د هغه برخه وايستل او د هغه څخه پرته د بل سړي چي په جنګ کي شريک نه وو برخه ونه ايستل. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۱٦۸، رقم: ۲۷۲٦.

**تشريح**: کله چي رسول الله ﷺ د خپل صحابه کرامو سره بدر ته ورسيدی نو هغه وخت د رسول الله ﷺ لور بي بي رقيه رضی اللہ عنہا چي د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ په نکاح کي وه سخته ناروغه وه، رسول الله ﷺ حضرت عثمان رضی اللہ عنہ مديني منورې ته واستوی چي د بي بي رقيه رضی اللہ عنہا درملنه وکړي او بيا کله چي د غنيمت د مال د وېشلو وخت راغلی نو رسول الله ﷺ وفرمايل چي په دغه جنګ کي پر حضرت عثمان رضی اللہ عنہ باندي کومه ذمه دارې عائد سوې وه هغه پوره کړه او هغه په جنګ کي د ګډون کولو لپاره دلته راغلی وو مګر د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ دا حکم وسو چي هغه مديني ته بېرته ولاړ سي او د بي بي رقيه رضی اللہ عنہا درملنه او پاملرنه وکړي، په دې اعتبار سره هغه د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ په کار پسي تللی دی نو زه خپله د هغه له خوا بيعت کوم، په دې ويلو سره رسول الله ﷺ خپل راسته لاس پر خپل چپه لاس باندي ووهی او وه يې فرمايل چي دا د عثمان رضی اللہ عنہ لاس دی او بيا رسول الله ﷺ د غنيمت په مال کي د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ برخه هم ورکړل.

## يو اوبن د لسو پسو برابر دی

﴿۳۸۵٦﴾: وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يَجْعَلُ فِي قَسْمِ الْغَنَائِمِ عَشْرًا مِنَ الشَّاءِ بِبَعِيرٍ . رواه النسائي .

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د غنيمت د مال په ويشلو كي لس پسونه او يو اوښ برابر كړي . نسائي .

**تخريج** سنن النسائي ٧\ ٢٢١، رقم: ٤٣٩١.

## په مخكنيو امتو كي د غنيمت مال اسماني اور سوځى

﴿٣٨٥٧﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزَا نَبِيٌّ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په انبياؤو كي يو نبي (يعني يوشع بن نون) د جهاد اراده وكړه

مِنَ الْأَنْبِيَاءِ فَقَالَ لِقَوْمِهِ لَا يَتْبَعْنِي رَجُلٌ مَلَكَ بُضْعَ امْرَأَةٍ وَهُوَ يُرِيدُ أَنْ

او خپل قوم ته يې وويل : هغه سړي دي زما سره نه ځي چي هغه او س نكاح كړې وي او د خپلي

يَبْنِيَ بِهَا وَلَمَّا يَبْنِ بِهَا وَلَا أَحَدٌ بَنَى بُيُوتًا وَلَمْ يَرْفَعْ سُقُوفَهَا وَلَا أَجل اشْتَرَى

ښځي سره يې جماع نه وي كړې او هغه سړى دي هم زما سره نه ځي چي هغه كور جوړ كړى وي او پر هغه يې بام نه وي اچولى ، او هغه سړى دي هم زما سره نه ځي چي هغه رانيولي وي

غَنَمًا أَوْ خَلِفَاتٍ وَهُوَ يَنْتَظِرُ وِلَادَهَا فَغَزَا فَدَنَا مِنَ الْقَرْيَةِ صَلَاةَ الْعَصْرِ أَوْ

بلاربي ميږي او اوښي او هغه د هغو د لنګېدو په انتظار كي وي ، بيا دا نبي د جهاد لپاره روان سو او مازديګر هغه ابادي ته نژدې سو چي په هغه كي د جهاد يا حملي كولو اراده يې وه

قَرِيبًا مِنْ ذَلِكَ فَقَالَ لِلشَّمْسِ إِنَّكِ مَأْمُورَةٌ وَأَنَا مَأْمُورٌ اللَّهُمَّ احْبِسْهَا عَلَيْنَا

او ويل يې اې لمره ! ته هم د الله جل جلاله مامور يې او زه هم د الله جل جلاله مامور يم ، اې الله ! ته دا لمر بند

فَحُبِسَتْ حَتَّى فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ فجمع الْغَنَائِمَ فَجَاءَتْ يَعْنِي النَّارَ لِتَأْكُلَهَا

كړې ، نو الله تعالى لمر بند كړ تر څو چي الله تعالى هغه نبي ته فتح وركړه ، بيا يې د غنيمت مال جمع كړ ، او ور اغلئ

فَلَمْ تَطْعَمْهَا فَقَالَ إِنَّ فِيكُمْ غُلُولًا فَلْيُبَايِعْنِي مِنْ كُلِّ قَبِيلَةٍ رَجُلٌ فَلَزِقَتْ

مګر د غنيمت مال يې و نه سوځی (په پخوانيو امتونو کي دا رواج وو چي د غنيمت مال به يې جمع کړ په ځنګل کي به يې کښېښود د آسمان د لوري به اور راغلی او هغه به يې وسوځئ او دا د قبوليت نښه وه) هغه نبي خلکو ته وفرمايل: په تاسو کي چا د غنيمت په مال کي خيانت کړی دئ، تاسو ته پکار ده چي د هري قبيلې څخه يو يو سړي زما څخه بيعت وکړي (بيعت پيل سو)

يَدُ رَجُلٍ بِيَدِهِ فَقَالَ فِيكُمُ الْغُلُولُ فَجَاءُوا بِرَأْسٍ مِثْلِ رَأْسِ بَقَرَةٍ مِنَ

او د يوه سړي لاس د هغه نبي دلاس سره وموښتی، هغه نبي ورته وفرمايل: ستا په قبيله کي خيانت دئ بيا د هغه قبيلې خلکو د سروزرو يو سر راوړ چي د غوايي د سر په ډول وو

الذَّهَبِ فَوَضَعُوهَا فَجَاءَتِ النَّارُ فَأَكَلَتْهَا. وفي رواية فَلَمْ تَحِلَّ الْغَنَائِمُ لِأَحَدٍ

او هغه يې کښېښود، اور راغلئ او هغه يې وسوځئ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زموږ څخه وړاندي د هيڅ امت لپاره د غنيمت مال حلال نه وو

قَبْلَنَا ثُمَّ أَحَلَّ اللَّهُ لَنَا الْغَنَائِمَ رَأَى ضَعْفَنَا وَعَجْزَنَا فَأَحَلَّهَا لَنَا. متفق عليه

بيا الله تعالی زموږ لپاره غنيمتونه حلال کړل ځکه چي الله تعالی زموږ کمزوري او عاجزي ته وکتل نو د غنيمت مال يې زموږ لپاره حلال کړ. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٢٢٠، رقم: ٣١٢٤، ومسلم ٣\ ١٣٦٦، رقم: ٣٢- ١٧٤٧.

**د لغاتو حل** خلفات: جمع الخلفة وهي الحامل من النوق.

**تشريح** حضرت يوشع عليه السلام د جهاد لپاره د تلو په وخت کي هغه ثو کسان د ځان سره د بېولو څخه ځکه منع کړي وه چي کله زړه په يو بل شي کي لګيدلی وي نو د هغه شي څخه ماسو طبيعت په بل کي نه لګيږي، که ذکر سوي خلک په لښکر کي شريک سوي وای نو هغوی به په پوره جوش او جذبې سره د دښمن مقابله نه وای کړې، ظاهره ده چي په دغه صورت کي هغه مقصد تر لاسه نه سو د کوم مقصد لپاره چي هغوی بېول کېدل. د دې څخه معلومه سوه چي د جنګ په وخت کي د خپل ټولو ضروري کارو او معاملو څخه فراغت او جلاوالی حاصلول پکار دي تر څو د کوم کار لپاره روان وي هغه په ښه ډول سرته ورسيږي.

لمر ودرول سو ... الخ : په مواهب لدنيه کي ليکلي دي چي په حديث کي راغلي دي چي د شمسي نظام په ټول عمر کي د حضرت يوشع ابن نون عليه السلام څخه ماسوا د بل هيچا لپاره لمر هيڅکله نه دی درول سوی ، د دې څخه دا خبره ثابته سوه چي د لمر درېدل يوازي د حضرت يوشع عليه السلام د خصائصو څخه دی حال دا چي د رسول الله ﷺ لپاره هم د لمر درېدل ثابت دي همدارنگه په دغه دواړو خبرو کي چي کوم تضاد دی نو هغه د دغه توجيه په ذريعه ليري کيدای سي چي د حضرت يوشع عليه السلام په باره کي چي د رسول الله ﷺ کوم ارشاد دی چي د يوشع عليه السلام څخه ماسوا د بل چا لپاره لمر نه دی درول سوی نو د دې څخه د رسول الله ﷺ دا مراد وو چي په پيغمبرانو کي د حضرت يوشع عليه السلام څخه ماسوا بل داسي پيغمبر نه سته چي د هغه لپاره لمر درول سوی وي ما سوا زما څخه ، دا احتمال هم کيدای سي چي د رسول الله ﷺ لپاره کوم وخت لمر درول سوی وي د هغه څخه مخکي رسول الله ﷺ دغه ارشاد فرمايلی وي، د مواهب لدنيه د روايت مطابق د رسول الله ﷺ لپاره د لمر درولو واقعه دوه واره پېښه سوې ده يو وار د معراج د شپې په دوهمه ورځ او دوهم وار د خندق د غزا په ورځ چي کفارو د رسول الله ﷺ په جنگ کي اخته کولو سره د مازديگر لمونځ څخه منع کړي وه تر دې چي لمر ولويدی نو الله تعالى د رسول الله ﷺ لپاره لمر بېرته راوگرځوی او رسول الله ﷺ د مازديگر لمونځ وکړ، همدارنگه يو وار د رسول الله ﷺ په حکم سره حضرت علي رضي الله عنه ته هم لمر بېرته راغلی دی هغه داسي چي رسول الله ﷺ د هغه پر زنگنو باندي خپل سرمبارک ايښی پروت وو چي په هغه حالت کي پر رسول الله ﷺ باندي د وحي نازلېدل شروع سول په دغه صورت کي حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سر مبارک د خپل زنگنو څخه پورته نه کړای سو تر دې چي د مازديگر وخت ختم سو او هغه لمونځ ونه کړ. رسول الله ﷺ د هغه لپاره دعاء وکړه نو الله تعالى لمر بېرته راوخيژوی او هغه د مازديگر لمونځ پر وخت ادا کړی ، په مواهب لدنيه کي دا واقعه هم په تفصيل سره نقل سوې ده مگر علماؤ په دغه واقعه کي کلام کړی دی .

د هغه د سوځلو لپاره اور راغلی ... : لکه څرنگه چي مخکي هم معلومه سوې ده چي دا يوازي د دغه امت خاصيت دی چي د دوی لپاره د غنيمت مال حلال گرځول سوی دی مخکنيو امتونو ته د غنيمت د مال په خپل مصرف کي راوستلو اجازه نه وه بلکه د الله جل جلاله د حکم سره سم دا رواج وو چي د جنگ څخه وروسته د غنيمت ټول مال به جمع کيدی او هغه به په ځنگل کي اېښودل کېدی او د هغه وروسته به د آسمان څخه اور راغلی او هغه به يې وسوځی چي دا به د قبلېدو نښه وه .

## د غنيمت په مال كي خيانت كونكى دوږخي دى

﴿۳۸۵۸﴾: وَعَنِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ قَالَ لَمَّا كَانَ يَوْمُ خَيْبَرَ أَقْبَلَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه ما ته دا واقعه بيان كړل چي د خيبر د فتح په ورځ

نَفَرٌ مِنْ صَحَابَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا فُلَانٌ شَهِيدٌ وَّ فُلَانٌ

يو ځو صحابه كرام راغلل او هغوى ويل پيل كړل چي فلانى سړى شهيد دئ او فلانى سړى

شَهِيدٌ حَتَّى مَرُّوا عَلَى رَجُلٍ فَقَالُوا فُلَانٌ شَهِيدٌ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

شهيد دئ (يعني نن فلانى او فلانى سړى شهيد) تر ځو چي هغوى د يو سړي د مړي سره تير سول او وه يې ويل : فلانى سړى شهيد دئ ، رسول الله ﷺ (د دې په اوريدو سره) وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَّا إِنِّي رَأَيْتُهُ فِي النَّارِ فِي بُرْدَةٍ غَلَّهَا أَوْ عَبَاءَةٍ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

هيڅكله نه ، ما دا سړى په دوږخ كي ليدلى دئ ، ده دغنيمت د مال ځخه يو څادر او يوه كمبله پټه كړې ده ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل :

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ اذْهَبْ فَنَادِ فِي النَّاسِ أَنَّهُ لَا يَدْخُلُ

اې دخطاب زويه ! ولاړ سه او د خلكو په منځ كي درې واره اعلان وكړ چي په جنت كي به

الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ ثَلَاثًا قَالَ فَخَرَجْتُ فَنَادَيْتُ أَلَا إِنَّهُ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ إِلَّا الْمُؤْمِنُونَ ثَلَاثًا. رواه مسلم

يوازي پوره ايمان والا داخليږي ، عمر بن خطاب رضي الله عنه وايي زه ولاړم او درې واره مي اعلان وكړ چي په جنت كي به يوازي پوره ايمان والا داخليږي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱\۱۰۷، رقم: ۱۸۲- ۱۱۴.

**تشريح**: په جنت كي به يوازي مؤمن داخليږي : ابن مالك رحمه الله وايي چي په شرعي اصطلاح كي او په عام رواج كي مؤمن هغه سړي ته وايي چي پر رسول الله ﷺ او دهغه پر شريعت ايمان

راوړي په دې اعتبار سره کوم سړی چې خيانت وکړي هغه د رسول الله ﷺ د رسالت او شريعت د تصديق څخه انکار وکړ په دې توګه چې د دغه تصديق په نتيجه کي پر هغه چې کوم احکام جاري کيږي په هغه باندي ده عمل ونه کړ مګر د هغه دا مطلب نه سي کيدای چې کوم سړی خيانت وکړي هغه د رسول الله ﷺ د تصديق خلاف عمل وکړ او هغه مؤمن نه سو نو د دغه اعلان په ذريعه چې په جنت کي يوازي مؤمن داخليږي د رسول الله ﷺ د هغه سړي په ظاهره د مؤمنانو د ډلي څخه خارجول د سخت زجر او خبرداري په توګه وو ، يا دا ويل کيږي چې په دغه اشارد کي د مؤمن څخه متقي او پرهيزګار مؤمن مراد دی او د داخلېدو څخه مراد بېله عذابه داخلېدل دي همدارنګه د ارشاد مطلب به دا وي چې کوم مؤمن د تقوا او پرهيزګارۍ پر لار روان وي هغه به په جنت کي بېله عذابه داخليږي مګر کوم مؤمن چې متقي او پرهيزګار نه وي او ګناه کوي نو هغه به اول په عذاب کي اخته کړل سي کله چې د خپلو ګناهو سزا وڅکي نو بيا وروسته به هغوی هم په جنت کي داخل کړل سي .

ما هغه په دوزخ کي وليدی : دا په ظاهره د هغه نصوصو خلاف دی کوم چې پر دې باندي دلالت کوي چې د يو چاحقيقتا په دوزخ کي اچول به د حشر څخه وروسته واقع کيږي نو د غه ارشد به پر تمثيل باندي محمول وي يعني رسول الله ﷺ د دغه ډول بيان په ذريعه په حقيقت کي دې ته اشاره وکړه چې دا سړی به په دوزخ کي اچول کيږي لکه څرنګه چې پر يو موقع باندي رسول الله ﷺ د حضرت بلال رضي الله عنه د وفات څخه مخکي د هغه په جنت کي داخلېدل د مثال په توګه فرمايلي وه .

دا احتمال هم دی چې دغه ارشاد د مجازي اسلوب بيان په توګه مظهر وي يعني د رسول الله ﷺ مراد دا وي چې زه يو سړی د داسي ګناه کونکی پېژنم چې د دوزخ عذاب واجبونکی دی لکه څرنګه چې په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي چې (ان الابرار لفي نعيم) يعني بېشکه نيک خلک به په جنت کي وي ، ظاهره ده چې د دغه آيت دا مطلب نه دی چې نيک خلک د اوس څخه جنت ته رسيدلي دي بلکه دا مراد دی چې نيک خلک د هغه حميده صفتو خاوندان دي چې هغه به جنت بوځي .

===========

# بَابُ الْجِزْيَةِ (د جزيې بيان)

**جزيه څه شي ته وايي ؟:** جزيه د اسلامي قانون يو خاص اصطلاح ده ، ددې اطلاق پر هغه خاص محصول باندې کيږي کوم چې په اسلامي هيواد کې د غير مسلم کسانو څخه د هغوی د فيصله سوي خوښې مطابق اخيستل کيږي .

جزيه په اصل کې د جزاء څخه دی چې د هغه لغوي معنی د بدلې ده ، دغه خاص محصول ته جزيه ځکه ويل کيږي چې هغه په اسلامي هيواد کې د اسلام پر پاته کېدو باندې منکر او پر کفر باندې د قائم پاته کېدو يو بدل او عوض دی چې دهغه د مال ، جائيداد ، عزت او آبرو د ساتنې لپاره اخيستل کيږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مجوسيانو څخه جزيه اخيستل کيدای سي

﴿٣٨٥٩﴾: عَنْ بَجَالَةَ قَالَ كُنْتُ كَاتِبًا لِجَزْءِ بْنِ مُعَاوِيَةَ عَمِّ الْاَحْنَفِ فَأَتَانَا

د حضرت بجاله رضي الله عنه څخه روايت دئ چې زه د جزء بن معاويه منشي وم چې د احنف اکا دئ ، موږ

كِتَابُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَبْلَ مَوْتِهِ بِسَنَةٍ فَرِّقُوا بَيْنَ كُلِّ ذِي مَحْرَمٍ مِنَ

ته د حضرت عمر رضي الله عنه يو ليک د هغه د وفات څخه يو کال ترمخه راغلئ چې په هغه کې ليکلي وه د مجوسيانو څخه ذي محرم بيل کړئ (په مجوسيانو کې ذي محرم يعني مور ، لور وغيره هغه ټولي ښځي حلالي وې چې هغه په اسلام کې حرامي دي او مجوسيانو به نکاح د محارمو رواه ګڼل. حضرت عمر رضي الله عنه د خپل خلافت په ورځو کې دا حکم جاري کړ چې کومي محرمي ښځي د مجوسيانو په نکاح کې وي هغه بيلي کړئ ،

الْمَجُوسِ وَلَمْ يَكُنْ عُمَرُ أَخَذَ الْجِزْيَةَ مِنَ الْمَجُوسِ حَتَّى شَهِدَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ

بجاله وايي حضرت عمر رضي الله عنه به د مجوسيانو جزيه نه اخيستل ، کله چې عبد الرحمن بن عوف دا شاهدي ورکړه

بْنُ عَوْفٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَخَذَهَا مِنْ مَجُوسِ هَجَرَ .

چي رسول الله ﷺ د هجر (د يو ځای نوم) د مجوسيانو څخه جزيه اخيستې ده، نو حضرت عمر رضي الله عنه هم جزيه ځيني واخيستل.

رواه البخاري و ذكر حديث بريدة اذا امر اميرا على جيش في باب الكتاب الى الكفار

بخاري او د بريدة حديث اذا مر امير على اجش، د كتاب الي الكفار په باب كي بيان سوی دئ

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٥٧، رقم: ٣١٥٦

**د لغاتو حل:** هجر: بلدة في البحرين. (په بحرين كي يوه سيمه)

**تشريح:** محرم هغه قريب ته وايي چي د هغه سره د مور، لور او خور وغيره نكاح كول جائز نه وي، په مجوسيانو كي دا رواج وو چي هغوی به د خپل محرم سره واده كوی نو حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دا حكم واستوی چي كومو مجوسيانود خپلو محارمو سره واده كړی وي د هغو ښځو او خاوندانو په مينځ كي جلاوالی راولئ يعني د هغوی واده فسخ كړئ كه څه هم د اسلامي قانون دا قاعده ده چي كوم غير مسلم د اسلامي هيواد په ذمه داری او ساتنه كي وي د هغه په مذهبي معاملاتو كي مداخلت نه كيږي بلكه هغوی ته دي پر خپل مذهب باندي د عمل كولو پوره ازادي وركړل سي او داخبره (يعني د خپل محرم سره واده كول) د هغوی په مذهب كي جائز وه ځكه د حضرت عمر رضي الله عنه دا حكم په ظاهره يو سوال دی، ددې جواب دادی چي كه څه هم د اسلامي هيواد له خوا ذميانو ته په خپل مذهبي معاملاتو كي پوره ازادي حاصله وي مگر دا هم يو حقيقت دی چي د وخت امام ته دا اختيار حاصل دی چي هغه په خپل اسلامي پاچاهی كي چيري چي يوازي د الله جل جلاله نازل سوی قانون جاري وي هر داسي عمل منع كړي كوم چي په ښكاره د اسلامي شعائرو او د دين د بنيادي اصولو او د حكومت د قانون مخالف وي، د مجوسيانو د خپل محرم سره واده كول هم د اسلامي شعائرو خلاف وو بلكه په اخلاقي او ټولنيزه توگه هم يو بد او مذموم عمل وو ځكه حضرت عمر رضي الله عنه د داسي ودو ختمولو حكم وكړ.

د مجوسيانو په باره كي د جمهورو علماؤ پر دې اتفاق دی چي د هغوی څخه دي جزيه واخيستل سي بلكه د حنفيه په نزد د عجمي بت پرستو څخه هم جزيه اخيستل پكار دي مگر په دې كي د امام شافعي رحمة الله عليه اختلاف دی.

هجر د يو ځای نوم دی د ځينو حضراتو په نزد په يمن كي بحرين ته نژدې يو ښار وو مگر د

اوسني محققينو د قول مطابق د عربو د جزيرې مشرقي ساحل چي احساء ورته ويل كيږي مځكي په هجر سره نوميدى . او دې ته بحرين هم ويل كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د جزيې اندازه

﴿٣٨٦٠﴾: عَنْ مُعَاذٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ

د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ هغه يمن ته وليږئ نو دا حكم يې وركړ

أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي مُحْتَلِمًا دِيْنَارًا أَوْ عَدْلَهُ مِنَ الْمُعَافِرِيِّ ثِيَابٌ تَكُوْنُ بِالْيَمَنِ . رواه ابوداؤد.

چي د هر بالغ سړي څخه به په جزيه كي يو دنيار اخلې يا د يو دينار تو كر چي په يمن كي تيارېږي . ابوداؤد

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٤٢٨، رقم: ٣٠٣٨.

**تشريح** ابن همام رحمه الله وايي چي جزيه پر ښځو باندي نه عائد كيږي او نه پر كوچنيانو باندي عائد كيږي . همدارنګه پر ليوني، ګوډ، شل، او فلج وهلي باندي هم جزيه نه واجبيږي او سپين ږيري چي پر جنګ كولو او ګټي كولو باندي قادر نه وي او هغه محتاج چي پر يو كار كولو باندي قادر نه وي د جزيې څخه مستثنى دي .

دغه حديث په ظاهره د امام شافعي رحمه الله د مذهب دليل دى چي د هغه په نزد د جزيې د اندازې ټاكلو په باره كي غني او فقير برابر دى ځكه چي په دغه حديث كي تخصيص نه دى ذكر سوى مګر د حنفيه په نزد پر غني باندي هر كال اته څلوېښت ۴۸ درهمه واجب دي چي هره مياشت د څلور درهمو په حساب ادا كيږي ، پر درميانه درجې والا باندي هر كال څليرويشت ۲۴ درهمه واجب دي چي د هغه څخه به هره مياشت دوه درهمه ادا كوي او پر فقير باندي هر كال دوولس درهمه واجب دي چي هغه به يې هره مياشت يو يو درهم ادا كوي .

د حنفي مذهب په باره كي په هدايه كي ليكلي دي چي دا مذهب د حضرت عمر ، حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهم څخه نقل سوى دى او د انصارو او مهاجرينو څخه هيچا ددې خلاف نقل سوي نه دي ، او كوم چي د حديث سوال دى چي په هغه كي د هر بالغ څخه يو يو

دينار اخيستل روايت سوي دي نو دا دصلح پر صورت محمول دی چي يمن د جنګ په ذريعه فتح سوی نه وو بلکه د صلح په ذريعه د يمن اوسيدونکو خپل ځان د مسلمانانو په واک کي ورکړی وو نو دجزيې په باره کي هم د هغوی سره پر ذکر سوي مقدار باندي مصالحت وسو ، يا دا چي د يمن اوسيدونکي په مالي توګه سره ډېر کمزوري وه ځکه د هغوی دجزيې مقدار هغه ټاکل سو کوم چي پر فقيريانو باندي واجب دی .

## پر مسلمانانو جذيه واجب نه ده

﴿۳۸۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَا تَصْلُحُ قِبْلَتَانِ فِي أَرْضٍ واحدةٍ وَلَيْسَ عَلَى مُسْلِمٍ جِزْيَةٌ . رواه احمد والترمذي و ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په يوه مځکه کي دوې قبيلې صحيح نه دي (يعني په يوه ځای کي د دوو مذهبو خلکو اوسيدل صحيح نه دي) او پر مسلمانانو جزيه واجب نه ده . احمد، ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ١\٢٢٣، رقم: ٦٣٣، وابوداود ٣\٤٣٨، رقم: ٣٠٥٣.

**تشريح**: په يوه مځکه کي دوې قبيلې : ددې مطلب دادی چي په يوه سيمه کي دوه مذهبونه د برابرۍ پر بنياد کېدل نه دي پکار ، يعني ددې په ذريعه مسلمانان خبردار کيږي چي هغوی د کافرانو يعني د خپل دين د دښمنانو په مېنځ (دارالحرب)کي هستوګنه اختيار نه کړي او نه ددې په ذريعه خپل ځان ذليل او رسوا کړي ، همدارنګه اسلامي پاچاهۍ ته پکار دي چي هغوی په خپلو حدودو کي کافران يعني د دين دښمنان بېله جزيې هستوګني اختيارولو ته نه پرېږدي او دهغوی د جزيې ورکولو په صورت کي هم هغوی ته داسي د سرپورته کولو موقع ور نه کړي چي هغوی په ډاګه د اسلامي هيواد د بنيادي اصولو او قوانيو او ديني عقائدو او نظرياتو خلاف کارونه کوي ، او دا خبرتيا له دې کبله وه چي په دغه دواړو صورتو کي د اسلام او کفر مساوي کېدل لازميږي حال دا چي د اسلام په نظر کي ددې هيڅ ځای نه سته بلکه اسلام ددې متقاضي دی چي مسلمانان چيري اوسيږي په قوت، شوکت او عزت سره وي او د اسلام دښمنان ضعيف او کمزوري وي .

ځينو علماؤ دا ويلي دي چي په دغه حديث کي يهوديانو او عيسايانو ته د جزيرة العرب څخه د جلا وطنه کولو ته اشاره ده چي د اهل کتاب کېدو په وجه اهل قبله هم دي او د دوی

دوا ړو جلاجلا قبله ده چي د اسلام د قبلې خلاف ده چي په دې کي د دوو قبلو منونکو وجود پاته نه سي بلکه يوازې د يوې حقيقې قبلې منونکي يعني مسلمانان پاته سي.

پر مسلمان باندي جزيه نه سي عائد کيدای: دلته هغه صورت ته اشاره سوې ده چي د مثال په توګه يو غير مسلم د ذمي کېدو په حيثيت کي په اسلامي هيواد کي هستوګنه اختيار کړل مګر هغه د جزيې ادا کولو څخه مخکي مسلمان سو نو اوس د هغه څخه د جزيې غوښتنه نه سي کيدای ځکه چي هغه مسلمان دی او پر مسلمان باندي جزيه نه عائد کيږي.

## پر جزيه صلح

﴿٣٨٦٢﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَالِدَ بْنَ الْوَلِيدِ إِلَى أُكَيْدِرِ دُومَةَ فَأُخِذَ فَأَتَوْهُ بِهِ فَحَقَنَ لَهُ دَمَهُ وَصَالَحَهُ عَلَى الْجِزْيَةِ.

رواه ابوداؤد

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه د دومه پاچا اکيدر ته وليږئ، خالد او د هغه ملګرو اکيدر ونيوئ او رسول الله ﷺ ته يې راويستئ، رسول الله ﷺ د هغه وينه توی نه کړه (معاف يې کړی) او پر جزيه يې د هغه سره صلح وکړه. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٤٢٧، رقم: ٣٠٣٧.

**د لغاتو حل**: اکيدر: قلعة من بلاد الشام قريب تبوک. (د يوې کلا نوم.)

**تشريح** أکيدر د الف په پيښ او د کاف په زېر يا جزم او د دال په زېر سره د دُومه ښار پاچا وو، دومه په شام کي د تبوک سره نژدې واقع وو، اکيدر يو نصراني (عيسائي) وو، د هغه په باره کي رسول الله ﷺ دا حکم کړی وو چي هغه دې نه قتل کيږي بلکه ژوندی دې ونيول سي او ما ته دې راوستل سي. کله چي هغه حاضر کړل سو نو رسول الله ﷺ پر هغه جزيه وټاکل، بيا وروسته الله تعالى هغه ته هدايت وکړ او هغه کامل مسلمان سو.

## د يهود او نصارا څخه د تجارت پر مال باندي د محصول اخيستو مسئله

﴿٣٨٦٣﴾: وَعَنْ حَرْبِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ جَدِّهِ أَبِي أُمِّهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ

حضرت حرب بن عبيد الله د خپل نيکه څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا الْعُشُورُ عَلَى الْيَهُودِ وَالنَّصَارٰى وَلَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ عُشُورٌ . رواه احمد و ابوداؤد.

ﷺ وفرمايل : لسمه برخه (په مال او تجارت کي) پر يهودو و اجب ده ، او پر مسلمانانو نسته . احمد او ابوداؤد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٣\٤٧٤، وابوداؤد ٣\٤٣٥، رقم: ٣٠٤٨.

**تشريح**: دلته د عشر يعني لسمي برخي تعلق د تجارت د مال سره دی د واجب صدقو عشر مراد نه دی ځکه چي پر مسلمانانو باندي د کښت د حاصلاتو عُشر واجب دی .

خطابي رحمة الله عليه وايي چي پر يهودو او نصارا باندي چي کوم عُشر واجب دی دا هغه دی چي په هغه باندي د دوی سره د ذمي جوړېدو پر وخت صلح سوې وي او د هغه سره معاهده سوې وي ، او که چيري هغوی د ذمي کېدو پر وخت د هغوی سره پر يو شي باندي صلح نه وي سوې نو په دغه صورت کي به پر هغوی باندي د جزيې څخه ماسوا نور هيڅ نه واجبېږي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب هم دا دی .

په دې باره کي د حنفيه مذهب دا دی که يهود او نصارا په خپلو ښارو کي د مسلمانانو د داخلېدو پر وخت د هغوی پر تجارتي مال باندي محصول وغيره اخلي نو مسلمانانو ته هم دا حق حاصل دی چي کله د هغوی ښارو ته يهود او نصارا راسي نو د هغوی پر تجارت باندي د هغوی څخه محصول واخيستل سي او که هغوی د مسلمانانو څخه محصول نه اخلي نو بيا مسلمانان هم بايد د هغوی څخه محصول نه واخلي .

## پر ذميانو د معاهدې شرائط په زور پوره کيدای سي

﴿٣٨٦٤﴾ : وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نَمُرُّ بِقَوْمٍ فَلَا هُمْ

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! موږ (جهاد ته د تللو په وخت کي) پر داسي خلکو تيرېږو چي نه خو

يُضَيِّفُونَا وَلَا هُمْ يُؤَدُّونَ مَا لَنَا عَلَيْهِمْ مِنَ الْحَقِّ وَلَا نَحْنُ نَأْخُذُ مِنْهُمْ

زموږ مېلمستيا کوي او نه هغه حق ادا کوي چي زموږ لپاره پر هغوی واجب دئ او موږ يې په زور نه ځيني اخلو ،

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِنْ أَبَوْا إِلَّا أَنْ تَأْخُذُوا كَرْهًا فَخُذُوا . رواه الترمذي

رسول الله ﷺ وفرمايل : كه هغوی د ورکړي څخه انکار وکړي يا ستاسو مرسته ونه کړي نو تاسو په زور د هغوی څخه خپل حق تر لاسه کولای سئ . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۱۲۵، رقم: ۱۵۸۹.

**تشريح**: د کومو کسانو په باره کي چي ذکر سوی دی هغوی په اصل کي ذميان وه چي اسلام يې نه وو قبول کړی بلکه د جزيې په ادا کولو سره په اسلامي سلطنت کي هستوګن وه او د هغوی د ذمي کېدو پر وخت د هغوی سره چي کومه معاهده سوې وه په هغه کي پر دوی باندي دا شرط لګول سوی وو چي کوم مسلمان د جهاد لپاره راځي او د دوی په کلي کي تيرېږي نو د هغوی مېلمستيا به کوي مګر هغوی ددغه شرط څخه مخ واړوی او کوم مسلمانان چي به د جهاد لپاره د هغوی سره پاته کېدل نو هغوی به د دوی مېلمستيا نه کول بلکه پر هغوی به يې غله هم نه پلورل ، مسلمانان چي ددغه حال څخه تنګ سول نو رسول الله ﷺ ته يې وويل او رسول الله ﷺ ذکر سوی ارشاد وفرمايه .

دا خبره بايد په ذهن کي وي چي پر هغه ذميانو باندي چي پر هغوی مخکي داسي يو شرط لګول سوی نه وي نو په دغه صورت کي د هغوی سره پاته کېدونکو مسلمانانو لپاره چي غير مضطر وي دا جائز نه دي چي د هغوی مال او سامان د هغوی د خوښي څخه پرته واخلي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### پر ذميانو باندي د محصول سربيره د مسلمانانو مېلمستيا هم لازمه ده

﴿۳۸۶۵﴾: عَنْ اَسْلَمَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ ضَرَبَ الْجِزْيَةَ عَلَى أَهْلِ الذَّهَبِ

د حضرت اسلم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه پر هغه خلکو چي سره زر يې

أَرْبَعَةَ دَنَانِيرَ وَعَلَى أَهْلِ الْوَرِقِ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا مَعَ ذٰلِكَ أَرْزَاقُ الْمُسْلِمِينَ وَضِيَافَةُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ . رواه مالك .

درلودل څلور دينار جزيه وټاکل ، او د کومو خلکو سره چي سپين زر وه نو څلوېښت درهمه يې ورته وټاکل ، ددې څخه پرته پر هغوی يې دا هم واجب کړی وه چي هغوی د مسلمانانو

مېلمستيا كوي . مالك

**تخريج** موطا الامام مالک ۱\ ۲۷۹، رقم: ۴۳.

**تشريح** او د درو ورځو مېلمستيا : دا په اصل کي د خوراک او څښناک وضاحت دی يعني هغه غير مسلم د ذمي کېدو په وخت کي پرهغوی باندي د جزيې کوم ذکر سوی اندازه چي ټاکل سوې وه د هغه سره دا هم ضروري وه چي کله هغوی ته يو څوک ورسي نو هغوی دي کم از کم تر درو ورځو پوري د هغوی مېلمستيا کوي.
په شرح السنه کي ليکلي دي چي د ذميانو څخه د يوه دينار زيات اندازه باندي مصالحت کول او پر هغوی دا شرط لګول که مسلمانان هغوی ته ورسي نو د هغوی مېلمستيا دي کوي دا جائز دي او د هغه مېلمستيا مصرف به د اصل جزيې څخه نه ټاکي بلکه هغه به د جزيې د ټاکل سوې اندازې څخه زيات ورکوي ، ددغه مسئلې نور تفصيل په مرقاة او نورو کتابو کي کتلای سئ.

===========

## بَابُ الصّلْــحِ (د صلحي بيان)

صلح په اصل کي د صلاح او صلوح نوم دی چي د فساد په معنی د تباهۍ په مقابل کي استعماليږي، د اسلامي هيواد امير ته دا اختيار حاصل وي چي هغه د توحيد مطابق د نړيوال امن ذمه داريو پوره کولو لپاره د اسلام د تبليغ د انساني سلامتۍ او ازادۍ د ساتني او د سياسي او جنګي مصالحو سره سم د دښمن سره معاهده ، صلح او امن وکړي، رسول الله ﷺ په شپږم هجري کال کي تر ټولو لوی دښمن د مکې د کفارو سره صلح وکړه چي د حديبيې د صلح په نامه مشهوره ده ، ددغه صلح د معاهدې وخت لس کاله ټاکل سوی وو او د حديث او تاريخ ددغه متفقه فيصلې سره سم چي د حديبيه د هغه صلح معاهده ده چي په هغه کي نه يوازي دا چي د اسلام په تبليغ او خپرېدو کي ډيري اسانۍ پيدا سوې بلکه دنيا ته معلومه سوه چي اسلام د انسانيت او امن د قيامت حقيقي پلوی دی او مسلمانان په دغه لاره کي تر دې حده صادق دي چي د جنګېدونکو عربو په خاصه توګه د مکې د کفارو د وحشيانه تشدد او عيارانه فلانونو سربېره ددغه معاهدې پوره پابندي يې کول مګر ددغه صلح د معاهدې پر وخت درې کاله تېر سوي وه چي د مکې کفارو د رسول الله ﷺ حليف بنو خزاعه په مقابله کي د جنګ کونکو بنو بکر د مرستي لپاره هغه معاهده ماته کړه .

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د حديبيې صلح

﴿۳۸۶۶﴾: عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ وَمَرْوَانَ ابْنِ الْحَكَمِ قَالَا خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

د مسور بن مخرمه او مروان بن حکم (رض) څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ روان سو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِيْ بِضْعِ عَشْرَةَ مِائَةٍ مِّنْ اَصْحَابِهٖ فَلَمَّا اَتَىٰ ذَا الْحُلَيْفَةِ

د حديبې په کال تقريبا د زرو صحابه کرامو سره، کله چي ذوالخليفه ته ورسيدل نو د خپلي

قَلَّدَ الْهَدْيَ وَ اَشْعَرَ وَ اَحْرَمَ مِنْهَا بِعُمْرَةٍ وَّسَارَ حَتّٰى إِذَا كَانَ بِالثَّنِيَّةِ الَّتِي يُهْبَطُ

قرباني د حيوانانو په غاړه کي يې پټې وتړل اشعار (يعني قوب زخمي کول چي دا د قرباني نښه ده) دا يې وکړل، او د ذوالحليفه څخه يې د عمرې احرام وتړئ، او بيا مخ ته روان سول، کله چي ثنيه نامي ځای ته ورسيدل

عَلَيْهِمْ مِنْهَا بَرَكَتْ بِهٖ رَاحِلَتُهٗ فَقَالَ النَّاسُ حَلْ حَلْ خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ خَلَأَتْ

نو د رسول الله ﷺ اوښه کښېنستل خلکو چغي کړې حل حل (دا د اوښ د پورته کولو لپاره الفاظ دئ) قصوا اړي کوي قصوا اړي کوي،

الْقَصْوَاءُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا خَلَأَتِ الْقَصْوَاءُ وَمَا ذَاكَ لَهَا بِخُلُقٍ

رسول الله ﷺ وفرمايل: قصوا اړي نه کوي او نه د هغې د اړي کولو عادت دئ،

وَلٰكِنْ حَبَسَهَا حَابِسُ الْفِيلِ ثُمَّ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهٖ لَا يَسْأَلُونِي خُطَّةً

د فيل راګرځوونکي وګرځول، (ابرهه چي کوم وخت د کعبې ورانولو اراده وکړه نو د لښکر سره روان سو کله چي د غه ځای يعني ذالمحارمين ته راورسيدل نو د هغه فيل ودرول سو، او د مکې په لور نه تلئ بيا چي فيل يې بل لوري ته وګرځوئ نو روان سو ددې پېښې په لور دا اشاره ده) بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: په هغه ذات دې مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه ده، قريش که زما څخه داسي خبره و غواړي

يُعَظِّمُونَ فِيهَا حُرُمَاتِ اللهِ إِلَّا أَعْطَيْتُهُمْ إِيَّاهَا ثُمَّ زَجَرَهَا فَوَثَبَتْ فَعَدَلَ عَنْهُمْ

چي په هغه کي د الله تعالی د حرم عظمت وي نو زه به هغه قبوله کړم، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ اوښه کښېښول، او د مکې لارې پرېښودل پر بل لور روان سول،

حَتَّى نَزَلَ بِأَقْصَى الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَمَدٍ قَلِيلِ الْمَاءِ يَتَبَرَّضُهُ النَّاسُ تَبَرُّضًا فَلَمْ

تر څو چي د حديبيه آخري غاړي ته د رسيدو سره چي هلته لږ اوبه ولاړي وې ودرېدل، خلکو د

يُلَبِّثْهُ النَّاسُ حَتَّى نَزَحُوهُ وَشُكِيَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَطَشُ

هغه ډېر څخه لږ لږ اوبه اخيستل پيل کړل تر څو چي په لږ وخت کي ډېر خالي سو، بيا يې رسول الله ﷺ ته د تندي شکايت وکړ،

فَانْتَزَعَ سَهْمًا مِنْ كِنَانَتِهِ ثُمَّ أَمَرَهُمْ أَنْ يَجْعَلُوهُ فِيهِ فَوَاللهِ مَا زَالَ يَجِيشُ لَهُمْ

رسول الله ﷺ د خپل ترکش (د غشو د کڅوړې) څخه يو غشي راوکښی او صحابه کرامو ته يې حکم وکړ چي غشي په اوبو کي وغورځوي، قسم په الله! اوبه په ډېر کي په جوش راغلې

بِالرِّيِّ حَتَّى صَدَرُوا عَنْهُ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ إِذْ جَاءَ بُدَيْلُ بْنُ وَرْقَاءَ الْخُزَاعِيُّ فِي

او ټول يې په اوبو اوبه کړل تر څو چي په اوبو اخيستلو اخيستلو سره ټول خلک ولاړل غرض دا چي صحابه کرام په دې حال کي وه چي د قريشو د کفارو د لوري د صلح پيغام سره بديل بن ورقاء خزاعي د خپل قوم د خلکو سره راغلئ،

نَفَرٍ مِنْ خُزَاعَةَ ثُمَّ أَتَاهُ عُرْوَةُ بْنُ مَسْعُودٍ وَسَاقَ الْحَدِيثَ إِلَى أَنْ قَالَ إِذْ جَاءَ

بيا عروه بن مسعود د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، ددې څخه وروسته بخاري شريف اوږد حديث بيان کړی دئ چي په هغه کي د قريشو د نمائندګانو خبري درج دي، بيا يې بيان

سُهَيْلُ بْنُ عَمْرٍو فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اكْتُبْ هَذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ

کړی دئ چي سهيل بن عمرو (د مکې نمائنده) د رسول الله ﷺ په خدمت کي د معاهدې ليکلو لپاره حاضر سو، نو رسول الله ﷺ (حضرت علي ته) وفرمايل: وليکه، دا هغه معاهده ده چي

مُحَمَّدٌ رَسُولُ اللّٰهِ فَقَالَ سُهَيْلٌ وَاللّٰهِ لَوْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُولُ اللّٰهِ مَا صَدَدْنَاكَ

په هغه کي محمد رسول الله ﷺ صلح کړې ده ، سهيل وويل : قسم په الله! که مو ږ ته د الله ﷻ رسول ګڼلای نو موږ به نه منعه کولای

عَنِ الْبَيْتِ وَلَا قَاتَلْنَاكَ وَلَكِنِ اكْتُبْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى

د بيت الله څخه او نه به درسره جنګيدلای ، مګر محمد بن عبدالله وليکه ، نبي کريم ﷺ وفرمايل :

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ إِنِّي لَرَسُولُ اللّٰهِ وَإِنْ كَذَّبْتُمُونِي اكْتُبْ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ

قسم په الله! زه د الله ﷻ رسول يم ، که څه هم تاسو ما دروا غجن ګڼئ ، ښه دئ اې علي ته محمد بن عبدالله وليکه ،

فَقَالَ سُهَيْلٌ وَعَلَى أَنْ لَا يَأْتِيكَ مِنَّا رَجُلٌ وَإِنْ كَانَ عَلَى دِينِكَ إِلَّا رَدَدْتَهُ عَلَيْنَا

سهيل وويل : په دې معاهده کي دا هم وليکئ چي په موږ کي کوم کس تاسو ته راسي که څه هم هغه ستاسو په دين وي ستاسو فرض ده چي هغه سمدستي موږ ته بيرته راکړئ ،

فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ قَضِيَّةِ الْكِتَابِ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ قُومُوا

رسول الله ﷺ دا (شرط) هم قبول کړ بيا چي معاهده وليکل سوه ، نو رسول الله ﷺ خپلو صحابه کرامو ته وفرمايل ولاړ سئ

فَانْحَرُوا ثُمَّ احْلِقُوا ثُمَّ جَاءَهُ نِسْوَةٌ مُؤْمِنَاتٌ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى يَا أَيُّهَا الَّذِينَ

او د خپلي قرباني حيوانان حلال کړئ ، او بيا سرونه وخرياست ، ددې څخه وروسته څو مسلماني ښځي راغلي او دا آيت نازل سو : (ياايها الذين .....) (اې مؤمنانو !

آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ مُهَاجِرَاتٍ الاية فَنَهَاهُمُ اللّٰهُ تَعَالَى أَنْ يَرُدُّوهُنَّ

کله چي تاسو ته مسلماني ښځي په هجرت راسي... ترپايه. يعني الله تعالى د هغه ښځو د بيرته استولو څخه منع وفرمايل

وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرُدُّوا الصِّدَاقَ ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الْمَدِينَةِ فَجَاءَهُ أَبُو بَصِيرٍ رَجُلٌ مِنْ

او مسلمانانو ته يې دا حکم ورکړ که دوی دغه ښځو کافر خاوندانو د هغوی مهر ادا کړي وي نو د هغوی مهر دي بيرته ورکړل سي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ مدينې ته ولاړې په لږ ورځو کي د قريشو يو سړی ابو بصير

قُرَيْشٍ وَهُوَ مُسْلِمٌ فَأَرْسَلُوا فِي طَلَبِهِ رَجُلَيْنِ فَدَفَعَهُ إِلَى الرَّجُلَيْنِ فَخَرَجَا بِهِ

چې مسلمان سوی وو رسول الله ﷺ ته راغلی ، قريشو د هغه په غوښتنه کي دده خلک راوليږل ، رسول الله ﷺ ابو بصير هغه دوو سړو ته ورکړ ، هغوی دواړه د ابو بصير سره مکې ته روان سول

حَتَّى إِذَا بَلَغَا ذَا الْحُلَيْفَةِ نَزَلُوا يَأْكُلُونَ مِنْ تَمْرٍ لَهُمْ فَقَالَ أَبُو بَصِيرٍ لِأَحَدِ الرَّجُلَيْنِ

کله چي ذوالحليفه ته راورسيدل نو د خپلو خرماوو خوړلو لپاره يې قيام وکړ او ابو بصير په هغوی کي يو سړي مخاطب کړ

وَاللَّهِ إِنِّي لَأَرَى سَيْفَكَ هَذَا يَا فُلَانُ جَيِّدًا ارني أَنْظُرْ إِلَيْهِ فَأَمْكَنَهُ مِنْهُ فَضَرَبَهُ

او ورته وه يې ويل قسم په الله! اې فلانی سړيه ! زما په خيال کي ستا دا توره ډيره خوښه ده ما ته يې راښکاره کړه چي زه يې هم وګورم ، هغه سړي ابو بصير ته د توري کتلو موقع ورکړه ، ابو بصير په هغه توري سره وار وکړ

حَتَّى بَرَدَ وَفَرَّ الْآخَرُ حَتَّى أَتَى الْمَدِينَةَ فَدَخَلَ الْمَسْجِدَ يَعْدُو فقَالَ النبي صَلَّى

او يخ يې کړ دويم سړي چي وليدل نو وتښتېدئ او مدينې ته په رسيدو سره مسجد نبوي ته په منډه داخل سو ، نبي کريم ﷺ د هغه په ليدو سره وفرمايل :

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ رَأَى هَذَا ذُعْرًا فقَالَ قُتِلَ وَاللَّهِ صَاحِبِي وَإِنِّي لَمَقْتُولٌ فَجَاءَ

دی بيري وهلی دئ ، هغه عرض وکړ قسم په الله! زما ملګری قتل کړل سو او زه به هم ووژل سم ،

أَبُو بَصِيرٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلُ أُمِّهِ مِسْعَرَ حَرْبٍ لَوْ كَانَ لَهُ أَحَدٌ

په دغه وخت کي ابو بصير هم راورسيدئ نو نبي کريم ﷺ هغه ته وفرمايل : ستا پر مور افسوس دئ ته دده جنګ اور تو دونکی يې ،

فَلَمَّا سَمِعَ ذَلِكَ عَرَفَ أَنَّهُ سَيَرُدُّهُ إِلَيْهِمْ فَخَرَجَ حَتَّى أَتَى سِيفَ الْبَحْرِ قال

د دې الفاظو په اوريدو سره ابو بصير ته يقين وسو چي رسول الله ﷺ ما بيا مشركانو ته وركوي، نو هغه د مدينې څخه ووتئ او د درياب په لور روان سو تر څو چي د درياب غاړي ته ورسيدئ، د راوي بيان دئ چي

وَانْفَلَتَ أَبُو جَنْدَلِ بْنُ سُهَيْلٍ فَلَحِقَ بِأَبِي بَصِيرٍ فَجَعَلَ لَا يَخْرُجُ مِنْ قُرَيْشٍ

ابو جندل بن سهيل هم د كافرانو څخه راتښتېدلي وو او د ابو بصير سره يو ځاى سو، غرض دا چي د مكې څخه به كوم مسلمان د قريشو د لاسه خلاصيدئ

رَجُلٌ قَدْ أَسْلَمَ إِلَّا لَحِقَ بِأَبِي بَصِيرٍ حَتَّى اجْتَمَعَتْ مِنْهُمْ عِصَابَةٌ فَوَاللهِ مَا يَسْمَعُونَ

نو د ابو بصير سره به يو ځاى كيدئ تر څو چي په يو څو ورځو كي د هغوى څخه يوه ډله جوړه سوه، كله چي به دې ډلي واوريدل چي

بِعِيرٍ خَرَجَتْ لِقُرَيْشٍ إِلَى الشَّأْمِ إِلَّا اعْتَرَضُوا لَهَا فَقَتَلُوهُمْ وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ

د قريشو يو قافله شام ته ځي نو په هغه به پسې سول هغوى به يې قتلول او د هغوى مال به يې لوټ كړ،

فَأَرْسَلَتْ قُرَيْشٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تُنَاشِدُهُ اللهَ وَالرَّحِمِ لَمَّا أَرْسَلَ

آخر قريشو يو سړى راوليږئ رسول الله ﷺ ته يې د خپل خپلوۍ واسطه وركولو سره دا خواست وكړ چي هغوى ابو بصير را وغواړي او په مدينه كي يې وساتي او (د دې څخه وروسته) زموږ د

إِلَيْهِمْ فَمَنْ أَتَاهُ فَهُوَ آمِنٌ فَأَرْسَلَ النَّبِيُّ ﷺ إِلَيْهِمْ. رواه البخاري.

لوري چي كوم سړى تاسو ته راسي هغه په امن كي دى او موږ ته د هغه بيرته راكولو ضرورت نسته (لكه څرنګه چي وړاندي په صلح نامه كي ليكلي وه)، نو نبي كريم ﷺ خلك وليږل او ابو بصير او د هغه ملګري يې را وغوښتل چي مدينې ته راسئ. بخاري.

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٣\٥٤٢، رقم: ١٦٩٤.

**د لغاتو حل** خلات: اى بركت من غير علة. ثمد: اى ياخذونه ماء قليل. يتبرضه: اى ياخذونه قليلا قليلا (لږلږ اخلي). مسعر حرب: اى يحمى الحرب ويهيج القتال. سيف البحر: اى ساحله

**تشريح** حديبيه د مكې مكرمې څخه ختيځ خوا ته تقريبا پر پنځلس يا شپاړس ميله فاصله باندي واقع د يو ځاى نوم دى، دلته د جبل الشميسي په نامه غر هم دى چي د هغه په وجه اوس

هغه ته شميسيه وايي، د حرم د حدود د دغه ځاى څخه هم تيرېږي بلكه د دغه ځاى زياته برخه په حرم كي داخله ده .

تقريبا د زرو صحابه كرامو سره ...الخ: دلته د بضع لفظ اطلاق د درو څخه تر نهه پوري شمېر باندي كيږي، دلته د شمېر متعين كولو پر ځاى مبهم ځكه ذكر سوى دى چي په دغه وخت كي د صحابه كرامو كوم شمېر چي در سول الله ﷺ سره ملګري وه د هغه په باره كي مختلف روايتونه دي، په ځينو روايتو كي څوارلس سوه شمېر بيان سوى دى ، په ځينو كي پنځلس سوه او په ځينو روايتو كي يو زرا و څلور سوه يا تر دې هم زيات الفاظ راغلي دي، علماؤ په دغه روايتو كي داسي مطابقت پيدا كړى دى چي په شروع كي خو رسول الله ﷺ د څوارلس سوه صحابه كرامو سره روان سوى وو مګر وروسته په مختلفو مرحلو كي په شمېر كي زياتوب كېدى نو كوم راوي چي تر ټولو مخكي شمېر كړى وو هغه د څوارلس سوه شمير روايت كړى بيا وروسته چي د كوم خلكو زياتوب وسو هغه دوى ونه ليدل نو هغه په خپل روايت كي د څورلس سوه شمېر بيان كړ مګر كوم راوي چي وروسته راتلونكي خلک هم وليدل هغه د پنځلس سوه شمېر ذكر وكړ او كوم راوي چي د شمېر تعين او تحقيق ونه كړ هغه په خپل روايت كي د يو زر او څوارلس سوه يا تر دې زيات بيان كړ .

ذبح وكړئ او بيا سرونه وخروئ: احصار يعني د حج يا عمرې د احرام تړلو څخه وروسته د هغه حج يا عمرې د ادا كولو څخه د منع كولو په صورت كي دا حكم دى ، امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي كوم سړى د حج يا عمرې د احرام تړلو څخه وروسته د هغه حج يا عمرې څخه منع سي چي هغه ته محصر وايي نو هغه دي خپله هدي په هغه ځاى كي ذبح كړي چيري چي هغه منع سوى وي كه څه هم هغه ځاى د حرم په حدودو كي واقع نه وي ، هغه د خپل په دليل كي دا خبره كوي چي رسول الله ﷺ د حديبيه په موقع كي د هدي ذبح كولو حكم وركړى وو حال دا چي حديبيه په حرم كي نه ده مګر د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد د هدي ذبح كول د حرم په حدودو كي شرط دى ځكه د هغه له خوا دا ويل كيږي چي د حديبيه ټوله سيمه د حرام د حدودو څخه وتلې نه ده بلكه د هغه ځيني برخي د حرم په حدودو كي داخلي دي او ظاهره ده چي په دغه وخت كي هدي په هغه ځاى كي ذبح سوي وي كوم چي د حرم په حدودو كي دي .

د هغوى مهر بېرته وركړئ : د دغه حكم مطلب دا وو كه د مسلمانانو ښځو كافر خاوندان د اخيستلو لپاره راسي او هغوى د دوى مهر ادا كړى وي نو هغه مهر دي هغوى ته بېرته وركړل سي ، د تفسير مدرک او نورو څخه معلوميږي چي د مهر بېرته وركولو دغه حكم د هغه وخت

لپاره خاص وو بيا وروسته منسوخ كړل سو .

دا خبره بايد په ذهن كي وي چي د صلح د معاهدې دغه شرط چي د مكې څخه كوم څوك تاسو ته راسي كه څه هم هغه په مسلمان كېدو سره راسي نو هغه به د مكې كفارو ته حواله كول ضروري وي دغه حكم يوازي د خلكو سره متعلق وو ځكه د مكې دغه ښځي چي په مسلمان كېدو سره رسول الله ﷺ ته راغلې نو الله تعالى حكم نازل كړ چي په صلح كي يوازي سړي بېرته وركول فيصله سوي وه نه ښځي ، ځكه چي هغه ښځو خپل ځان په سخت تكليف كي اچولو سره راغلي وې نو هغوى دي بېرته نه استول كيږي .

كه د هغه يو څوك مرسته كونكى وي . . . : ددې يو مطلب خو هغه دى كوم چي په ترجمه كي واضح سوى دى او يو مطلب يې دادى چي كاش دا وخت يو خيرخواه د ابوبصير رضي الله عنه سره واى چي هغه ته يې ښوولي واى چي هغه دي اوس ما ته نه راځي چي زه هغه بېرته ورنه كړم ، د حديث د سياق مطابق دا مطلب زيات مناسب دى .

كله چي ابوبصير رضي الله عنه د رسول الله ﷺ دا خبره واوريدل : يعني رسول الله ﷺ چي كله دا وفرمايل چي ابوبصير رضي الله عنه د جنګ اور تيزوي نو هغه پوه سو چي دلته په مدينه كي ما ته پناه نه سي تر لاسه كيداى بلكه زه به بېرته كفارو ته سپارل كېږم ځكه چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد صريحا دې ته اشاره كوي چي رسول الله ﷺ په هر حالت كي د صلح پابندي كوي نه به ابوبصير د ځان سره وساتي او نه به د هغه مرسته كوي .

حضرت ابوجندل رضي الله عنه د هغه سهيل زوى وو كوم چي د حديبيې د صلح په وخت كي د مكې د قريشو سفر او نمائنده وو او د رسول الله ﷺ سره يې معاهده كړې وه ، ابوجندل په مكه كي اسلام قبول كړى وو چي د هغه په نتيجه كي د هغه پلار سهيل هغه بندي كړى وو مخكي هغه په يو طريقه سره د مكې د كفارو څخه په تښتېدو سره حديبيه ته راغلى وو مګر رسول الله ﷺ د صلح د معاهدې د ذكر سوي شرط مطابق هغه ته په تسلي وركولو سره او د ډېر بحث څخه وروسته مكې ته بېرته واستوى مګر هغه بيا د مكې څخه وتښتيدى او په راتلو سره د ابوبصير رضي الله عنه سره يو ځاى سو .

## د حديبې د صلح درې شرطونه

﴿٣٨٦٧﴾ : وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُشْرِكِينَ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي كريم ﷺ په ورځ د حديبيه كي د مشركانو

يَوْمَ الْحُدَيْبِيَةِ عَلَى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءَ عَلَى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِينَ رَدَّهُ إِلَيْهِمْ

سره پر درې خبرو صلح کړې وه : يو خو دا چې په مشرکانو کې کوم سړې مسلمانانو ته راسي هغه به بيرته استوي ،

وَمَنْ أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ لَمْ يَرُدُّوهُ وَعَلَى أَنْ يَدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ وَيُقِيمَ بِهَا

دويم دا چې په مسلمانانو کې کوم سړی مشرکانو ته ولاړ سي هغه به نه استول کيږي ، دريم دا چې راتلونکی کال چې مسلمانان مکې ته داخل سي صرف

ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَا يَدْخُلَهَا إِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ السَّيْفِ وَالْقَوْسِ وَنَحْوِهِ فَجَاءَ أَبُو جَنْدَلٍ يَحْجُلُ فِي قُيُودِهِ فَرَدَّهُ إِلَيْهِمْ . متفق عليه

درې ورځې په مکه کې اوسيږي او خپل ټوله وسله توري ، ليندۍ وغيره به بند ساتي ، په دغه ورځو کې ابوجندل په زولنو کې ترلی راغلی نو رسول الله ﷺ هغه بيرته ورکړی . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٥\ ٣٠٣، رقم: ٢٦٩٨، ومسلم ٣\ ١٤١٠، رقم: ٩٢- ١٧٨٣.

**د لغاتو حل**: يجلبان: هو جراب من ادم، اى من جلد يوضع فيه السيف . (د توري پوښ). يحجل: اى يمشي كما يمشي الحجل.

**تشريح**: جلبان د پوست څخه جوړه سوې يو کڅوړه وه چې کله به خلکو سفر کوی نو خپل وسله او نور شيان به يې په هغه کې اېښودل او د ځين د شا خوا ته به يې زړول ، دلته جلبان يعني په پوښ کې د وسلې اېښودو سره د راوړلو د شرط څخه د مشرکينو دا مراد وو چې راتلونکی کال مسلمانان کله مکې ته راځي نو خپل وسله به د پوښ څخه په اېستلو ښار ته نه داخليږي بلکه هغه دې په پوښ کې ايږدي چې په داسي کولو سره د مسلمانانو د غلبې د هغوی دطاقت او فوقيت او د جنګي ارادو اظهار ونه سي .

ابو جندل رضي الله عنه ابن سهيل چې د هغه په باره کې په مخکني حديث کې هم بيان سوی دی ، نوموړي په مکه کې اسلام قبول کړی وو او په کومو ورځو کې چې د حديبيه صلح سوې وه هغه د مکې د مشرکينو په بند کې وو هغه په يو طريقه سره د مکې څخه په تښتېدو سره رسول الله ﷺ ته حديبيه ته ورسيدی مګر رسول الله ﷺ د صلح د معاهدې سره سم هغه مشرکينو ته وسپاری او هغه ته يې د صبر او استقامت په تلقين کولو سره وفرمايل چې اې ابوجندل! د صبر او

استقامت لار اختیار کړه او د آخرت د اجر او ثواب امید لره، الله تعالی به ستا لپاره هم او د نورو ضعیفو او لاچارو خلکو لپاره هم د خلاصون، نجات او خوشحالۍ وخت راولي.

علماء کرام لیکي چې د رسول الله ﷺ د اهل مکه د غه شرطونه قبلول په ظاهره د مسلمانانو لپاره تکلیف او د هغوی د ملي جمعیت او وقار خلاف وو مګر هغه وخت مسلمانان کمزوري او ضعیف وه او په هغوی کې دومره مادي طاقت او د هغوی سره دومره وسائل نه وه چې د هغه په ذریعه هغوی د اهل مکه مقابله کړې وای، دوهم دا چې رسول الله ﷺ هم د مدینې څخه د جنګ په اراده نه وو تلی بلکه د عمرې لپاره روان سوی وو او د هغه لپاره یې احرام تړلی وو، او بلې خوا ته د حرم شریف د حدودو عظمت او د هغه د شرعي تقاضا په لحاظ هم ضروري وه او د الله تعالی له خوا د جنګ کولو حکم هم نه وو نازل سوی.

د دې څخه ماسوا نور هم ډېر حکمتونه وه کوم چې د رسول الله ﷺ په نظر کې وه او د کار په پای کې د د غه صلح او معاهدې ډېري ګټې ظاهري سوې چې د اسلام د خپرېدو او د اسلام د حق آواز په څلور کونجه د نیا کې خپور سو او بیا الله تعالی د مکې مکرمې عظیمه فتحه ور کړه او د هغه ځای خلک یې د اسلام غېږ ته راوستل او داسې ثابته سوه چې په د غه وخت کې رسول الله ﷺ اهل مکه ته پر وړاندې سوو شرطونو باندې د صلح کولو سره نه یوازې دا چې د خپل امن غوښتنې د جذبې او د انسانیت اظهار یې وکړ بلکه د خپل بې مثاله سیاسي بصیرت، بالغ نظرۍ او دور بینۍ نمونه یې هم وړاندې کړه او تر ټولو زیات یې د الله تعالی د منشاء او د الله تعالی د حکم د فرمانبردارۍ او د کمال عبودیت اظهار یې هم وکړ.

﴿۳۸۶۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ قُرَيْشًا صَالَحُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاشْتَرَطُوا

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دئ چې قریشو د نبي کریم ﷺ سره صلح وکړه او دا شرطونه یې

عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ مَنْ جَاءَ مِنْكُمْ لَمْ نَرُدَّهُ عَلَيْكُمْ وَمَنْ

کېښودل چې که څوک ستاسې راسې موږ ته بیا به یې نه درکوو او که په موږ کې کوم سړی

جَاءَكُمْ مِنَّا رَدَدْتُمُوهُ عَلَيْنَا فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَنَكْتُبُ هَذَا قَالَ نَعَمْ إِنَّهُ

تاسو ته درسي تاسو به هغه موږ ته بیرته راکوئ، (د دې شرط په اورېدو سره) صحابه کرامو وویل ای دالله رسوله! ایا دا شرطونه موږ ولیکو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هو البته کوم

مَنْ ذَهَبَ مِنَّا إِلَيْهِمْ فَأَبْعَدَهُ اللَّهُ وَمَنْ جَاءَنَا مِنْهُمْ سَيَجْعَلُ اللَّهُ لَهُ فَرَجًا وَمَخْرَجًا. رواه مسلم

سړی چي زموږ څخه وتښتي هغه به الله تعالی د خپل رحمت څخه ليري کړي او کوم سړی چي د دوی څخه موږ ته راسي کيدای سي الله تعالی پر هغه د پراختيا او خلاصون لار خلاصه کړي. مسلم

**تخريج** صحيح مسلم ۳\ ۱۴۱۰، رقم: ۹۲- ۱۷۸۳.

## د ښځو بيعت

﴿۳۸۶۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ فِي بَيْعَةِ النِّسَاءِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي د ښځو د بيعت په اړه چي د بيعت لپاره به راتلې نو رسول الله

وَسَلَّمَ كَانَ يَمْتَحِنُهُنَّ بِهَذِهِ الْآيَةِ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا جَاءَكَ الْمُؤْمِنَاتُ يُبَايِعْنَكَ

ﷺ به په دې آيت سره د هغوی امتحان اخيستئ: (يا ايها النبي ....) (اې نبي هر کله چي تاسو ته مؤمناني ښځي د بيعت لپاره حاضري سي .... الخ)

فَمَنْ أَقَرَّتْ بِهَذَا الشَّرْطِ مِنْهُنَّ قَالَ لَهَا قَدْ بَايَعْتُكِ كَلَامًا يُكَلِّمُهَا بِهِ وَاللَّهِ مَا مَسَّتْ يَدُهُ يَدَ امْرَأَةٍ قَطُّ فِي الْمُبَايَعَةِ. متفق عليه

په هغوی کي هغه ښځي چي ددغه شرطونو کوم چي په دې آيت کي ذکر دي اقرار به وکړ نو رسول الله ﷺ به هغوی ته وفرمايل: ما ستا سره بيعت وکړ او رسول الله ﷺ به د هغوی سره خبري فرمايلې او په الله ﷻ دي مي قسم وي رسول الله ﷺ هيڅکله د يوې ښځي لاس په بيعت کي نه دی مسه کړی. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\ ۳۱۲، رقم: ۲۷۱۳، ومسلم ۳\ ۱۴۸۹، رقم: ۸۸- ۱۸۶۶.

**تشريح** ددغه آيت کريمه په رڼا کي به يې ازمويل: يعني په دغه آيت کي د ښځو لپاره چي د کومو احکامو پابندي د بيعت شرط اېښودل سوی وو رسول الله ﷺ به هغه د ښځو څخه پر هغه احکامو د عمل کولو اقرار کوی هغوی چي به عهد او اقرار وکړ نو رسول الله ﷺ به د هغوی

سره بيعت کوی نو ددغه پوره آيت مفهوم او مضمون دادی چي مسلماني ښځي په دغه شرطو (يعني په دغه احکامو باندي د عمل کولو) بيعت وکړي چي هغه ښځي به يو ذات يا يو شی د الله تعالی سره نه شريکوي ، غلا به نه کوي، زنا به نه کوي ، خپل اولاد به نه قتلوي، پر چا به تهمت نه وايي او عصيان به نه کوي يعني د الله ﷻ او د رسول ﷺ د احکامو څخه به مخ نه اړوي، په دې اعتبار سره دغه آيت کريمه د هغه آيت تفسير او وضاحت دی کوم چي په مخکي حديث کي تېر سوی دی يعني :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا جَاءَكُمُ الْمُؤْمِنَاتُ....

د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي که څه هم بيعت لاس په لاس کي نيولو سره اخيستل کيږئ مګر رسول الله ﷺ به د ښځو څخه زباني (په ژبه) بيعت اخيستی يعني هغوی ته به يې داسي فرمايل چي ما ستاسو بيعت قبول کړ ، ددې څخه معلومه سوه چي ځيني مشائخ د ښځو څخه د بيعت اخيستلو پر وخت دا طريقه اختياروي چي د هغو د مُريد کولو په وخت کي په يو لوښي کي اوبه اچول سوو اوبو کي خپل لاس اچوي او هغه ښځه هم په هغه اوبو کي خپل لاس اچوي يا ځيني حضرات دا کوي چي د يو جامې څوکه په خپل لاس کي ونيسي او دوهمه څوکه هغه ښځه په لاس کي ونيسي نو د داسي تکلفاتو هيڅ ضرورت نه سته بلکه کومه طريقه چي د رسول الله ﷺ څخه ثابته ده په هغه باندي اکتفاء کول غوره او احسن دي .

د کتاب مؤلف د بيعت سره اړوند دغه حديث دلته د صلح په باب کي ځکه نقل کړی دی چي د حديبيه د صلح په وخت کي د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو څخه د بيعت اخيستلو مرحله هم راغلې وه چي د بيعت الرضوان په نامه مشهوره ده او هغه د قرآن کريم په دغه آيت کريمه کي هم بيان سوې ده : لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ ... ددغه مناسبت سره اړوند دغه حديث هم دلته نقل سوی دی که څه هم د حديبيه د صلح په وخت کي د ښځو څخه بيعت نه وو اخيستل سوی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د حديبيې د صلح يو څو نور شرطونه

﴿٣٨٧٠﴾: عَنِ الْمِسْوَرِ وَمَرْوَانَ أَنَّهُمْ اصْطَلَحُوا عَلَى وَضْعِ الْحَرْبِ عَشْرَ سِنِينَ يَأْمَنُ فِيهِنَّ النَّاسُ وَعَلَى أَنَّ بَيْنَنَا عَيْبَةً مَكْفُوفَةً وَأَنَّهُ لَا إِسْلَالَ وَلَا

إِغْلَالَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت مسور او مروان (رض) څخه روايت دئ چي قريشو پر لس کاله جنګ نه کولو باندي صلح وکړه چي په دغه وخت کي به خلک په امان سره وي او دا شرط يې وکړ چي زموږ زړونه دي د چم، فريب او فساد څخه پاک وي، او د وفا او صلح به هر وخت خيال ساتي او دا چي زموږ په منځ کي به غلا نه په پټه وي او نه په ښکاره. ابوداؤد.

**تخريج** سنن ابي داود ٣\٢١٠، رقم: ٢٧٦٦.

**د لغاتو حل** عيبة مکفوفة: ما يجعل فيه الثياب والمعنى صدر مطويا على حسن العهد. اسلال: اى سرقة خفية. (پټه غلا). اغلال: اى خيانة. (خيانت)

**تشريح** (عيبة مکفوفة): ددې مراد دادی چي موږ به په خپلو کي د يو بل لپاره خپل سينې د مکر، چم، کينه، عداوت، شر او فساد څخه پاکي ساتو او د صلح او وفا به هر وخت خيال ساتو نه به په پټه غلا کوو او نه خيانت: ددې مطلب دادی چي هره ډله دي ددې خيال وساتي چي د هغه هيڅ کس د بل کس مال او د هغه شي څخه نه په غلطۍ سره شی واخلي او نه په ښکاره سره غصب کړي.

## د غير مسلمانو سره د معاهدې پر پابندي نه کولو تنبيه

﴿٣٨٧١﴾: وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ سُلَيْمٍ عَنْ عِدَّةٍ مِنْ أَبْنَاءِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللّٰهِ

حضرت صفوان بن سليم رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د څو اصحابو د زامنو څخه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ آبَائِهِمْ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

او هغوی د خپلو پلرونو څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي :

أَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا أَوْ انْتَقَصَهُ أَوْ كَلَّفَهُ فَوْقَ طَاقَتِهِ أَوْ أَخَذَ مِنْهُ شَيْئًا بِغَيْرِ طِيبِ نَفْسٍ فَأَنَا حَجِيجُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه ابوداؤد.

خبردار! چا چي پر هغه چا ظلم وکړ پر ذمي يا مستامن باندي يا نقصان وکړي د هغه يا د هغه د طاقت څخه زيات تکليف ورکړ يا د هغه د خوښۍ څخه پرته يې د هغه څخه يو شی واخيست نو زه به د قيامت په ورځ دده سره دعوه کونکی يم . ابوداؤد

**تخریج** سنن ابي داود ۱۳\۴۳۷، رقم: ۳۰۵۲.

## د ښځو د اجتماعي بیعت طریقه

﴿۳۸۷۲﴾: وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتَ رُقَيْقَةَ قَالَتْ بَايَعْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د امیمة بنت رقیقه (رض) څخه روایت دئ چي ما د څو ښځو سره د رسول الله ﷺ سره بیعت وکړ

فِي نِسْوَةٍ فَقَالَ لَنَا فِيمَا اسْتَطَعْتُنَّ وَأَطَقْتُنَّ قُلْتُ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَرْحَمُ بِنَا مِنَّا

، رسول الله ﷺ موږ ته وفرمایل : (ما ستاسو څخه بیعت واخیست) د دې شي چي تاسو د هغه توان او استطاعت لرئ ، ما عرض وکړ الله او د هغه رسول زموږ په حق کي تر دې زیات رحم کونکي دي څو مره چي موږ

بِأَنْفُسِنَا قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بَايِعْنَا تَعْنِي صَافِحْنَا قَالَ إِنَّمَا قَوْلِي لِمِائَةِ امْرَأَةٍ

پر خپلو ځانونو یو ، ما بیا عرض وکړ اې د الله رسوله ! زموږ څخه بیعت واخلئ ، یعني زموږ سره لاس نیونه یا لاس ورکول وکړئ ، رسول الله ﷺ وفرمایل : زما خبري د سلو ښځو لپاره هم هغه

كَقَوْلِي لِامْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ .رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه ومالك في الموطأ

دي کومي چي د یوې ښځي لپاره دي (یعني زما کلام هم د بیعت لپاره کافي دي ) ترمذي، نسائي ، ابن ماجه او مالک

**تخریج** سنن الترمذي ۱۲۹\۱۴، رقم: ۱۵۹۷.

**تشریح**: د مشکوة شریف په اصل نسخه کي د رواه څخه وروسته خالي ځای دی ، د دې مطلب دادی چي د مشکوة مؤلف ته د دغه حدیث د ماخذ تحقیق نه دی سوی مګر په حاشیه کي ځینو شارحینو دا عبارت لیکلی دی چي رواه الترمذي والنسائي وابن ماجه ومالک في المؤطا کلهم من حدیث محمد بن المنکدر انه سمع من ائمة الحدیث وقال الترمذي حدیث حسن صحیح لا یعرف الا من حدیث ابن المنکدر .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حديبيې د معاهدې كتابت د رسول الله ﷺ په قلم

﴿٣٨٤٣﴾: عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اعْتَمَرَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ د عمرې لپاره تشريف يوووړ د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي ذِي الْقَعْدَةِ فَأَبَى أَهْلُ مَكَّةَ أَنْ يَدَعُوهُ يَدْخُلُ مَكَّةَ حَتَّى قَاضَاهُمْ

ذي القعده په مياشت كي ، د مكې خلكو رسول الله ﷺ مكې ته د داخلېدو څخه منع كړ ، رسول الله ﷺ پر دې امر مصالحت (صلح) وكړه چې

عَلَى أَنْ يَّدْخُلَ يَعْنِيْ مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ يُقِيمُ بِهَا ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَلَمَّا كَتَبُوا

هغوى به راتلونكى كال مكې ته راځي او يوازي درې ورځي به تيروي ، بيا چې د معاهدې تحرير وليكل سو

الْكِتَابَ كَتَبُوا هٰذَا مَا قَاضٰى عَلَيْهِ مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللّٰهِ فَقَالُوا لَا نُقِرُّ بِهَا فَلَوْ

نو په هغه كي د رسول الله ﷺ مبارک نوم داسې وليكل سو : هذا ما قاضى عليه محمد رسول الله (دا هغه صلحنامه ده چې محمد ﷺ پر صلح كړې ده ) مشركانو وويل : موږ ستاسو د

نَعْلَمُ أَنَّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ مَا مَنَعْنَاكَ وَ لٰكِنْ أَنْتَ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ فَقَالَ أَنَا

رسالت اقرار نه كوو ، كه موږ دا عقيده درلودلاى چې تاسو د الله جل جلاله رسول ياست نو تاسو به مو د مكې څخه نه منع كولاى ، تاسو د عبدالله زوى محمد (ﷺ) ياست ، رسول الله ﷺ ورته

رَسُوْلُ اللّٰهِ وَأَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ ثُمَّ قَالَ لِعَلِيِّ بن ابي طالب امْحُ رَسُوْلُ

وفرمايل : زه د الله جل جلاله رسول يم او د عبدالله زوى محمد هم يم ، بيا رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته وفرمايل : د رسول الله لفظ ايسته كړه ،

اللّٰهِ قَالَ لَا وَاللّٰهِ لَا أَمْحُوكَ أَبَدًا فَأَخَذَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت علي رضي الله عنه عرض وكړ : نه زه ستاسو نوم مبارک په خپل لاس سره هيڅكله نه سم خرابولاى

، نو رسول الله ﷺ صلح نامه د حضرت علي رضي الله عنه د لاس څخه واخيستل

وَلَيْسَ يُحْسِنُ يَكْتُبُ فَكَتَبَ هٰذَا مَا قَاضَى عَلَيْهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ لَا

او كه څه هم چي رسول الله ﷺ بنه ليكل نسواى كولاى داسي وليكل دا معاهده چي محمد بن عبدالله صلح پر كړې ده . (او ددې شرائط دادي) :

يَدْخُلُ مَكَّةَ بِالسِّلَاحِ إِلَّا السَّيْفَ فِي الْقِرَابِ وَأَنْ لَا يَخْرُجَ مِنْ أَهْلِهَا بِأَحَدٍ

مكې ته چي راتلونكى كال راځئ نو پرته د توري څخه هغه هم په تيكي كي بنده بل هيڅ وسله به نه راوړئ ، (۲) مكې ته د داخليدو څخه وروسته كه د مكې يو سړى د هغوى سره د يو ځاى كيدو

إِنْ أَرَادَ أَنْ يَتَّبِعَهُ وَأَنْ لَا يَمْنَعَ مِنْ أَصْحَابِهِ أَحَدًا إِنْ أَرَادَ أَنْ يُقِيمَ بِهَا فَلَمَّا

اراده وكړي نو هغه به د ځان سره نه بيايي ، (۳) كه د هغوى په ملګرو كي يو څوک په مكه كي د پاته كيدو اراده وكړي نو هغه به نه منع كوي ، راتلونكى كال چي

دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ أَتَوْا عَلِيًّا فَقَالُوا قُلْ لِصَاحِبِكَ اخْرُجْ عَنَّا فَقَدْ مَضَى الْأَجَلُ فَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه

رسول الله ﷺ مكې ته تشريف راوړ او درې ورځي تيري سوې نو د قريشو كفار حضرت علي رضي الله عنه ته راغلل او ورته وه يې ويل : خپل ملګري (يعني رسول الله ﷺ) ته ووايه چي اوس زموږ د ښار څخه ولاړ سي ځكه چي وخت تير سو ، نو رسول الله ﷺ د مكې څخه روان سو . بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۳۰۳، رقم: ۲۶۹۹، ومسلم ۳\۱۴۰۹، رقم: ۹۰- ۱۷۸۳.

**تشريح**: حضرت علي رضي الله عنه چي كله د رسول الله ﷺ د لفظ خرابولو څخه انكار وكړ نو ګويا هغه دا وګڼل چي دغه حكم د وجوب په توګه نه دى كنه نو هغه به هيڅكله انكار نه واى كړى، او حقيقت دادى چي د هغه داسي كول انكار نه وو بلكه د عين اتباع د درجي شى وو ځكه چي د دغه انكار بنياد د رسول الله ﷺ سره زيات مينه او عقيدت وو چي د حضرت علي رضي الله عنه يوازينى سرمايه د روح او ځان هم وو نو هغه به څرنګه دا زغملاى سول چي په خپل لاس سره تر ټولو لوى حقيقت خراب كړي كوم چي د هميشتني صداقت د ټولي نړۍ په زړه او ذهن كي راسخ كول د هغه د ايمان خلاصه هم وه او د ژوند مقصد هم .

دا خبره د علماؤ په مينځ کي اختلافي ده چي دغه صلح نامه خپله رسول الله ﷺ ليکلې وه لکه څرنګه چي د حديث څخه معلوميږي ، اکثر حضرات دا وايي چي دغه صلح نامه رسول الله ﷺ نه وه ليکلې او نه رسول الله ﷺ ليکلای سول ځکه چي الله تعالی رسول الله ﷺ ته امي فرمايلي دي او امي هغه سړی وي چي ليک او لوست نه سي کولای ، ځيني نور حضرات وايي چي د رسول الله ﷺ دغه صلح نامه ليکل يو حقيقت دی که څه هم رسول الله ﷺ ته امي فرمايل سوي دي مګر کله چي د رسول الله ﷺ په نبوت او رسالت کي پيدا کيدونکي شکونه او شبهې ختمي سوې او د رسول الله ﷺ د رسول کېدو دليلونه د روښانه ورځي په ډول څرګند سول نو الله تعالی رسول الله ﷺ پر ليکلو قادر کړ ، داهم ويل کيږي چي هغه وخت د رسول الله ﷺ ليکل د معجزې په توګه وه ، ددغه حديث ظاهري مفهوم د دغه حضراتو دليل دی مګر د اول الذکر حضراتو له خوا ددغه حديث تاويل دا کيږي چي رسول الله ﷺ وليکل : ددې څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته د ليکلو حکم ورکړ او دا جمله بالکل داسي ده لکه چي وويل سي چي پاچا فلانی ښار جوړ کړی ظاهره ده چي ددغه جملې مطلب دا نه دی چي پاچا په خپل لاس سره ښار جوړ کړی بلکه ددې مطلب دادی چي پاچا د هغه ښار د جوړولو حکم ورکړ .

==========

# بَابُ اِخْرَاجِ الْيَهُوْدِ مِنْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ

## (د جزيره عرب څخه د يهودو د شړلو بيان)

جزيره د وچي هغه ټوټې ته وايي چي څلور خواوو ته يې اوبه وي ، او جزيرة العرب هغه سيمي ته وايي کوم چي بحر هند ، بحر شام ، دجله او فرات د څلورو خواوو څخه راچاپيره کړي دي او په نورو لفظو کي داسي ويل کيدای سي چي د جزيرة اطلاق د عربي دنيا پر هغه خطه باندي کيږي کوم چي په اوږدوالي کي د عدن څخه د شام تر سرحد پوري او په پلنوالي کي د جدې څخه تر عراق پوري مشتملي دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د جزيرة العرب څخه د يهودو ايستل

﴿٣٨٧٤﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ خَرَجَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ په مسجد كي ناست وو چي رسول الله ﷺ

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ انْطَلِقُوا إِلَى يَهُودَ فَخَرَجْنَا حَتَّى جِئْنَا بَيْنَ

تشريف راوړ او وه يې فرمايل : د يهودو په لور ولاړ سئ ، موږ د رسول الله ﷺ سره روان سوو او

الْمِدْرَاسِ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقال يَا مَعْشَرَ يَهُودَ أَسْلِمُوا تَسْلَمُوا

د يهودو مِدراس ته ورسېدو ، نبي كريم ﷺ د هغوى په منځ كي ودريدئ او وه يې فرمايل : اې د يهودو ډلي ! تاسو مسلمانان سئ چي سلامت سئ

وَاعْلَمُوا أَنَّ الْأَرْضَ لِلَّهِ وَرَسُولِهِ وَإِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُجْلِيَكُمْ مِنْ هَذِهِ الْأَرْضِ فَمَنْ وَجَدَ مِنْكُمْ بِمَالِهِ شَيْئًا فَلْيَبِعْهُ . متفق عليه.

واضحه دي وي چي مځكه د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ ده او ما دا اراده كړې ده چي زه تاسو د دې مځكي څخه وشړم ، نو تاسو د خپل مال څخه چي هر څومره خرڅ كول غواړئ خرڅ كړئ .
بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٧٠، رقم: ٣١٦٧، ومسلم ٣\١٣٨٧، رقم: ٦١- ١٧٦٥.

**د لغاتو حل:** بيت المدراس: الموضع الذي يقرا فيه اهل الكتاب كتبهم ويدرسونها.

﴿٣٨٧٥﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَامَ عُمَرُ خَطِيبًا فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه خطبه وفرمايل او وه يې ويل : رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عَامَلَ يَهُودَ خَيْبَرَ عَلَى أَمْوَالِهِمْ وَقَالَ نُقِرُّكُمْ مَا أَقَرَّكُمْ

ﷺ د خيبر د يهوديانو سره معامله كړې وه يعني داسي چي د هغوى مځكي به د هغوى سره وي او د پيداوار څخه به نيمه د هغوى څخه اخيستل كيږئ او پر هغوى يې جزيه هم ټاكلې وه ، او دا يې فرمايلي وه موږ تاسو تر هغه وخته پوري پاته ساتو تر څو پوري چي الله تعالى تاسو پاته ساتي (يعني تر څو پوري چي ستاسو د ايستلو موږ ته حكم را نه كړي)

اللَّهُ وَقَدْ رَأَيْتُ إِجْلَاءَهُمْ فَلَمَّا أَجْمَعَ عُمَرُ عَلَى ذَلِكَ أَتَاهُ أَحَدُ بَنِي أَبِي الْحُقَيْقِ

اوس زه د هغوی د وطن څخه ايستل مناسب گنم، بيا چي حضرت عمر رضي الله عنه د يهوديانو د ايستلو اراده وکړه نو د قبيله ابو الحقيقي يو سړی د هغوی په خدمت کي حاضر سو.

فَقَالَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَتُخْرِجُنَا وَقَدْ أَقَرَّنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

او عرض يې وکړ اې امير المؤمنين! ايا تاسو موږ باسئ؟ حال دا چي رسول الله صلی الله علیه وسلم موږ پر

وَعَامَلَنَا عَلَى الْأَمْوَالِ فَقَالَ عُمَرُ أَظَنَنْتَ أَنِّي نَسِيتُ قَوْلَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

اينبي يو او پر مال يې زموږ سره معامله کړې وه، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وفرمايل: ايا ته دا خيال کوې چي ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم دا قول هير کړ چي تا ته يې فرمايلي وه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ بِكَ إِذَا أُخْرِجْتَ مِنْ خَيْبَرَ تَعْدُو بِكَ قَلُوصُكَ لَيْلَةً بَعْدَ

يعني دا چي هغه وخت به ستا څه حال وي کوم وخت چي ته د خيبر څخه شپه په شپه وايستل سې، او ستا اوښه به ستا سره ځغلي،

لَيْلَةٍ فَقَالَ كَانَتْ هَذِهِ هُزَيْلَةً مِنْ أَبِي الْقَاسِمِ فَقَالَ كَذَبْتَ يَا عَدُوَّ اللَّهِ

هغه يهودي وويل چي ابو القاسم (رسول الله صلی الله علیه وسلم) دا خبره د مسخرو په توگه کړې وه، حضرت عمر رضي الله عنه ورته وويل د الله دښمنه! ته دروغجن يې،

فَأَجْلَاهُمْ عُمَرُ وَأَعْطَاهُمْ قِيمَةَ مَا كَانَ لَهُمْ مِنَ الثَّمَرِ مَالًا وَإِبِلًا وَعُرُوضًا مِنْ أَقْتَابٍ وَحِبَالٍ ذَلِكَ. رواه البخاري.

بيا حضرت عمر رضي الله عنه يهود د وطن څخه وايستل او د هغوی د ميوو وغيره په قيمت کي يې مال، اوښان او اسباب يعني رسۍ وغيره ورکړې. بخاري

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري)، ٥\٣٢٧، رقم: ٢٧٤٠.

**د لغاتو حل** تلوصک: اى ناقتک الشابة. (ځوانه اوښه). هزيلة: تصغير هزلة نقيض الجد. (خراب). اقتاب: جمع قتب. اى رجل البعير. (د اوښ خاوند)

**د مشركانو د جزيره عرب څخه د ايستلو د رسول الله ﷺ وصيت**

﴿٣٨٧٦﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصَى بِثَلَاثَةٍ

د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ (د وفات پر وخت) د درو خبرو وصيت

قَالَ أَخْرِجُوا الْمُشْرِكِينَ مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ وَأَجِيزُوا الْوَفْدَ بِنَحْوِ مَا كُنْتُ

وفرمايه: (١) يو خو دا چي يهوديان د جزيره عرب څخه وايستل سي (٢) دويم دا چي د قاصدانو سره داسي چلن كوئ

أُجِيزُهُمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَسَكَتَ عَنِ الثَّالِثَةِ اَوْ قَالَ نَسِيتُهَا. متفق عليه.

نكه څرنگه چي ما كوئ ابن عباس وويل او په دريمه خبره كي هغوى ﷺ پټه خوله سو، يا ابن عباس وويل چي دريمه خبره زما څخه هيره سوه. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ١٦\١٧٠، رقم: ٣٠٥٣، ومسلم ٣\١٢٥٧، رقم: ٢٠- ١٦٣٧.

**تشريح** قاضي عياض رحمه الله وايي چي دا احتمال دی چي هغه دريمه برخه د رسول الله ﷺ دغه ارشاد وي: (لا تتخذوا قبري وثنا يعبد) يعني زما قبر د بت په ډول مه گرځوئ چي د هغه عبادت كيږي، دغه ارشاد امام مالك رحمه الله په خپل كتاب مؤطا كي نقل كړی دی.

**د جزيره عرب څخه د يهود او نصارا جلاوطني**

﴿٣٨٠٠﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَنَّهُ سَمِعَ

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه ما ته بيان وكړ

رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارٰى مِنْ جَزِيرَةِ

چي هغه د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي زه به خامخا يهود او نصارا د جزيره عرب څخه

الْعَرَبِ حَتَّى لَا أَدَعَ فِيهَا اِلَّا مُسْلِمًا. رواه مسلم، و في رواية لَئِنْ عِشْتُ اِنْشَاءَ اللّٰهِ لَأُخْرِجَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارٰى مِنْ جَزِيرَةِ الْعَرَبِ.

باسم تر دې چي د مسلمان څخه پرته به هيڅوک نه پرېږدم. مسلم. او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ دا وفرمايل: كه زه ژوندی پاته سوم ان شاء الله يهود او نصارا به د جزيره عرب څخه باسم

**تخریج** صحیح مسلم ۳\۱۳۸۸، رقم: ٦٣- ١٧٦٧.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

لَيْسَ فِيْهِ إِلاَّ حَدِيْثُ ابْنِ عَبَّاسٍ " لاَ تَكُوْنُ قِبْلَتَانِ " وَقَدْ مَرَّ فِيْ بَابِ الْجِزْيَةِ.

په دې فصل کې يوازې يو حديث د ابن عباس رضي الله عنه وو چې هغه (لا تکون قبلتان) دی او هغه مونږ په باب الجزية کې بيان کړی دئ

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د حضرت عمر رضي الله عنه په لاس د حجاز څخه د يهود او نصاراوو ايستل

﴿٣٨٧٨﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَجْلَى الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى مِنْ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې عمر بن خطاب رضي الله عنه يهود او نصارا د حجاز د مځکې

أَرْضِ الْحِجَازِ وَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا ظَهَرَ عَلَى اهل خَيْبَرَ

يعنې جزيره عرب څخه و ايستل او کله چې رسول الله ﷺ پر خيبر غلبه تر لاسه کړه نو د خيبر

أَرَادَ إِخْرَاجَ الْيَهُودِ مِنْهَا وَكَانَتْ الْأَرْضُ لَمَّا ظَهَرَ عَلَيْهَا لِلّٰهِ وَلِرَسُولِهِ صَلَّى اللّٰهُ

څخه د يهودو د ايستلو اراده يې وکړه، څرنګه چې پر خيبر باندې د قبضې راويستلو څخه وروسته اوس هغه د الله، د هغه د رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلِلْمُسْلِمِينَ فَسَأَلَ الْيَهُودُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ

او د ټولو مسلمانانو وو، يهودو (د رسول الله ﷺ د ارادې معلومولو لپاره) عرض وکړ که په

يَتْرُكَهُمْ عَلَى أَنْ يَكْفُوا الْعَمَلَ وَلَهُمْ نِصْفُ الثَّمَرِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

دې شرط هغوی ته د پاته کېدو اجازه ورکړل سي نو غوره به وي چې د زراعت کار به هغوی کوي

او حاصلات به نيم رسول الله ﷺ ته ورکوي . (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نُقِرُّكُمْ عَلَى ذَلِكَ مَا شِئْنَا فَأُقِرُّوا حَتَّى أَجْلَاهُمْ عُمَرُ فِي إِمَارَتِهِ إِلَى تَيْمَاءَ وَأَرِيحَاءَ . متفق عليه

موږ د دې شرط سره سم تر څو پورې چې زموږ زړه غواړي تاسو پرېږدو نو هغوی ته اجازه ورکړل سوه ، بيا حضرت عمر ﷺ د خپل خلافت په دور کې هغوی د تيما او اريحا په لور جلا وطنه کړل . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٢٥٢، رقم: ٣١٥٢، ومسلم ٣\١١٨٧، رقم: ٦ – ١٥٥١.

**د لغاتو حل**: اريحاء قرية بقرب بيت المقدس (بيت المقدس ته نژدې يو کلی)

==========

# بَابُ الْفَيْئِ

## د کفارو څخه د جنګ پرته د تر لاسه سوي مال بيان

**فئ څه شي ته وايي؟** : فئ هغه مال ته وايي چې مسلمانانو ته د کفارو څخه بېله جنګ او جګړې په لاس ورسي ، ددغه مال حکم دادی چې هغه د ټولو مسلمانانو حق دی د هغه څخه نه خمس (پنځمه برخه) ايستل کيږي او نه د مجاهدينو په مينځ کې ويشل کيږي، د رسول الله ﷺ په زمانه کې چې کله به يو لښکر د فئ مال راوړی نو پر هغه به رسول الله ﷺ ته پوره اختيار حاصل وو چې د هغه څخه چا ته وغواړي ور يې کړي او چا ته چې وغواړي نه يې ورکړي، همدارنګه چا ته چې به يې غوښتل زيات به يې ورکول او چا ته چې به يې غوښتل کم به يې ورکول.

کوم مال چې د جنګ په ذريعه پر کفارو باندې د غالب کېدو څخه وروسته مسلمانانو ته تر لاسه سي هغه ته د غنيمت مال وايي ددغه مال حکم دادی چې مخکې د هغه څخه خمس ايستل کيږي بيا پاته د مجاهدينو په مينځ کې داسې ويشل کيږي چې پياده مجاهدينو ته يوه برخه او سپرو مجاهدينو ته دوې برخې ورکول کيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د فئ د مال مصرف

﴿٣٨٧٩﴾: عَنْ مَالِكِ بْنِ اَوْسِ بْنِ الْحَدْثَانِ قَالَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ خَصَّ رَسُولَهُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْفَيْءِ بِشَيْءٍ لَمْ يُعْطِهِ أَحَدًا غَيْرَهُ ثُمَّ قَرَءَ مَا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ اِلٰى قَوْلِهِ قَدِيْرٌ فَكَانَتْ هَذِهِ خَالِصَةً لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ مِنْ هَذَا الْمَالِ ثُمَّ يَأْخُذُ مَا بَقِيَ فَيَجْعَلُهُ مَجْعَلَ مَالِ اللّٰهِ . متفق عليه .

د حضرت مالک بن اوس بن حدثان رضی الله عنه څخه روايت دئ چي عمر بن خطاب رضی الله عنه وفرمايل: الله تعالى د غنيمت څخه يو خاص شی د خپل رسول لپاره تاکلی وو چي هغه بل چا ته نه وو ورکړل سوی . بيا حضرت عمر رضی الله عنه دا آيت تلاوت کړ (ما افاء الله على رسوله منهم ...الى قدير.) نو دا مال يوازي د پيغمبر لپاره وو ، رسول الله ﷺ به دا پر خپل کورنی مصرف کوئ ، او د کال خرڅ به يې د دې مال څخه ايستئ ، بيا چي څو مره به پاته سول هغه به يې د الله تعالى مال ګرځولو سره د مسلمانانو په مصلحتونو کي خرڅ کوئ . بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٩٨، رقم: ٣٠٩٤، ومسلم ٣\١٣٧٨، رقم: ٤٩- ١٧٥٧.

**تشريح** په حديث کي ذکر سوی آيت کريمه د سورة حشر آيت دی چي پوره داسي دئ :

وما أفاء اللّٰه على رسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلاَ رِكَابٍ وَلَكِنَّ اللّٰهَ يُسَلِّطُ رُسُلَهُ عَلَى مَن يَشاء وَاللّٰهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ . سورة حشر.

ژباړه : او کوم مال چي الله تعالى خپل رسول ته د هغوی څخه ورکړی دی هغه د رسول لپاره خاص سوی دی ځکه چي تاسو پر هغه نه آسونه ځغلولي دي او نه اوښان (يعني تاسو د هغه تر لاسه کولو لپاره جنګ او تکليف نه دی زغملی بلکه تاسو پر پښو تللي واست مګر د الله تعالى عادت دی چي خپل رسولان پر چا چي غواړي) مسلط کوي او الله پر هر شي پوره قادر دی.

د دغه آيت کريمه په ذريعه مسلمانانو ته دا واضحه سوې ده چي الله تعالى رسول الله ﷺ د

يهوديانو د قبيلې بنو نضير د مال او جائيداد چې مالک او متصرف کړی دی نو هغه داسي مال دی چې تاسو د جنګ او جګړې په ذريعه پر بنو نضير باندي د غلبې تر لاسه کولو او د ليري ليري د سفر تکليف زغملو سره نه دی حاصل کړی دی بلکه بېله کوښښ په لاس درغلی دی ، ددې تفصيل دادی چې کله بنو نضير ته د مدينې منورې څخه د جلاوطنه کېدو حکم ورکړل سو او بنو نضير ددغه حکم په تعميل کي وروسته والی او مخته والی وکړ نو رسول الله ﷺ د خپلو صحابه کرامو سره هغه ځای ته روان سو چيري چې د بنو نضير کورونه، قلعې او جائيداد وو، هغه ځای د مدينې منورې څخه پر دوه مېله فاصله باندي وو ځکه د رسول الله ﷺ څخه ماسوا نور ټول خلک پر پښو وه او هلته په رسېدو سره د جنګ نوبت نه راغلی تر څه وخته محاصرې څخه وروسته بنو نضير وسله وغورځول او هغوی چې کوم سامان د ځان سره ورلای سو هغه يې پر اوښانو باندي په اچولو سره خيبر ته روان سول همدارنګه الله تعالی رسول الله ﷺ ته پر هغوی غلبه او تسلط ورکړ لکه څرنګه چې د الله تعالی عادت دی چې هغه خپلو رسولانو او ددين پيروانو ته پر دښمن باندي غلبه او تسلط ورکوي ،نو د هغوی ټول جائيداد، ځمکې او نور شيان رسول الله ﷺ ضبط کړل او د هغه ځای ټول مال د فئ په حکم کېدو په وجه د رسول الله ﷺ په تصرف او اختيار کي راغلی ځکه مسلمانانو چې ددغه مال د وېشلو غوښتنه وکړه نو ذکر سوی آيت نازل سو او د هغه مال دا حکم وښوول سو چې داسي مال د غنيمت د مال په ډول نه ويشل کيږي بلکه د هغه تصرف او مصرف ټول اختيار رسول الله ﷺ ته وي چې هغه څرنګه غواړي هم هغسي يې مصرف کړي او چا ته چې غواړي د هغه څخه يې ورکړي، په حديثو کي ددغه مال مصرف هم بيان سوی دی چې رسول الله ﷺ به د هغه مال څخه خپلو بيبيانو ته د هغوی د کال مصرف ورکوئ او څه چې پاته سول هغه به يې د مسلمانانو په ټولنيزو ګټو او مصالحو کي مصرف کول او کومو فقيرانو او مسکينانو ته چې به يې غوښتل هغوی ته به يې ورکول.

د فئ د مال په باره کي د حنفيه مذهب هم هغه دی کوم چې لوړ بيان سو ، مګر طيبي رحمه الله د امام شافعي رحمه الله مذهب داسي بيان کړی دی چې د فئ په مال کي به د څلور خمس او يو خمس پنځمه برخه باندي د رسول الله ﷺ حق وو يعني هغه مال به په پنځه ويشت برخه کي ويشل کيدی يو وشت برخي به د رسول الله ﷺ په ذاتي مصرف او اختيار کي وې او پاته څلور برخي به رسول الله ﷺ خپلو قريبانو ، يتيمانو ، مسکينانو او مسافرو باندي مصرف کولې .

په تفسير معالم التنزيل کي ليکلي دي چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته د فئ د مال په باره کي د علماؤ اختلاف دی ، د يوې ډلي قول دادی چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته د فئ مال د

اسلامي هيواد امير او خليفه حق دی چي د هغوی په مينځ کي دي وويشل سي او دوهم قول دادی چي هغه مال دي د عامو مسلمانانو په ټولنيز ګټمي او مصالحو کي استعمال کړل سي.
د کال مصرف به يې ورکوی: دلته دا سوال پيدا کيدای سي چي په حديثو کي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ به د سبا لپاره هيڅ شی نه ساتی نو بيا د کال د مصرف په جمع کولو سره به يې څرنګه ايښودی؟ ددې جواب دادی چي په کومو حديثو کي دا بيان سوی دی چي رسول الله ﷺ به د سبا لپاره هيڅ شی نه ايښودی نو ددې تعلق د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره دی چي رسول الله ﷺ به د خپل ذات لپاره هيڅ شی نه ساتی او نه به يې په جمع کولو سره ايښودی او دلته چي کومي خبري ذکر سوي دي د هغو تعلق د رسول الله ﷺ د کورنۍ سره دی.
څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ خپلو بيبيانو مبارکانو ته د کال مصرف کله کله ورکوی په مستقله توګه يې دا معمول نه وو بيا هم امام نووي رحمه الله وايي چي ددې څخه معلومه سوه چي د کال لپاره د ژوند د ضرورت شيان برابرول او ايښودل جائز دي او دا د توکل خلاف نه دی.

﴿٣٨٨٠﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ كَانَتْ أَمْوَالُ بَنِي النَّضِيرِ مِمَّا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د بني نضير يهودو مال ددې ډول څخه وو چي هغه الله جل جلاله

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا لَمْ يُوجِفِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ بِخَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ فَكَانَتْ

خپل رسول ته ورکړی وو، ددې لپاره مسلمانانو نه آسان ځغلولي وه نه اوښان (يعني دا مال بېله تکليفه په لاس ورغلی)، له دې کبله دا مال

لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَاصَّةً يُنْفِقُ عَلَى أَهْلِهِ نَفَقَةَ سَنَتِهِمْ ثُمَّ يَجْعَلُ مَا بَقِيَ فِي السِّلَاحِ وَالْكُرَاعِ عُدَّةً فِي سَبِيلِ اللَّهِ. متفق عليه.

د رسول الله ﷺ لپاره خاص سو، چي رسول الله ﷺ به د کال لپاره پر خپلي کورنۍ مصرف کوئ او څه چي به پاته سول هغه به يې د وسلې او حيوانانو په رانيولو مصرف کول چي د الله تعالی په لار کي په تياری او سامان کي پکار راسي. بخاري او مسلم

**تخريج** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٩٣، رقم: ٢٩٠٤، ومسلم ٣\١٣٧٨، رقم: ٤٨- ١٧٥٧.

**د لغاتو حل** الكراع: الخيل والبغال والحمير.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د رسول الله ﷺ له خوا د فئ د مال تقسیم

﴿٣٨٨١﴾: عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَتَاهُ الْفَيْءُ قَسَمَهُ فِي يَوْمِهِ فَأَعْطَى الْآهِلَ حَظَّيْنِ وَأَعْطَى الْعَزَبَ حَظًّا فَدُعِيتُ فَأَعْطَانِي حَظَّيْنِ وَكَانَ لِي أَهْلٌ ثُمَّ دُعِيَ بَعْدِي عَمَّارُ بْنُ يَاسِرٍ فَأَعْطَى حَظًّا وَاحِدًا . رواه ابوداؤد.

د حضرت عوف بن مالک رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ ته به د یو ځای څخه د فئ مال (بې جنګه د غنیمت مال) راغلئ نو رسول الله ﷺ به هغه په هغه ورځ کور داره یعني د ښځي خاوند ته به یې دوې برخي ورکولې او بې واده ته به یې یوه برخه ورکول، یو وار زه را وغوښتل سوم او ما ته یې دوې برخي راکړې ځکه چي زما ښځه وه، زما څخه وروسته عمار بن یاسر را وغوښتل سو او هغه ته یې یوه برخه ورکړه (ځکه چي هغه واده نه وو کړی). ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٣٥٩، رقم: ٢٩٥٣.

---

﴿٣٨٨٢﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلَ مَا جَاءَهُ فَيْءٌ بَدَأَ بِالْمُحَرَّرِينَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي ما ولیدل چي رسول الله ﷺ ته د فئ مال راغلئ نو رسول الله ﷺ به تر ټولو مخکي هغه خلکو ته ورکوئ چي هغوی به د غلامۍ څخه ازاد کړل سوي وه. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ٣\٣٥٨، رقم: ٢٩٥١.

**تشريح**: د فئ مال څخه تر ټولو مخکي د غلامۍ څخه د خلاصون لپاره خلکو ته ځکه ورکول کېدل چي هغوی به بې ځایه اوبې چاري وه او ځیني حضرات وایي چي د ازاد سوو خلکو څخه مکاتب مراد دي او د ځینو حضراتو په نزد منفردین لطاعة الله مراد دي.

﴿۳۸۸۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ

د حضرت عائشې ﷞ څخه روایت دئ چې نبي کریم ﷺ ته یوه کڅوړه راوړل سوه چې د غمیانو

بِظَبْيَةٍ فِيهَا خَرَزٌ فَقَسَمَهَا لِلْحُرَّةِ وَالْأَمَةِ قَالَتْ عَائِشَةُ كَانَ أَبِي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَقْسِمُ لِلْحُرِّ وَالْعَبْدِ. رواه ابوداؤد

څخه ډکه وه، رسول الله ﷺ هغه غمیان په آزادو او مینځو باندي وویشل، د بي بي عائشې ﷞ بیان دئ چې زما پلار (ابوبکر صدیق ﷛) به په آزاد او غلامانو دواړو باندي ویشل. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود: ۳\۳۵۹، رقم: ۲۹۵۲.

**تشریح**: که څه هم رسول الله ﷺ به د غمیانو ویش یوازي تر ښځو پوري محدود کوی مګر د حضرت ابوبکر صدیق ﷛ د عمل څخه ښکاره سوه چې د غمیانو ویش یوازي د ښځو سره خاص نه وو بلکه په نارینوو کي به یې هم ویشل.

## د فئ د مال په وېشلو کي د مرتبو لحاظ

﴿۳۸۸۴﴾: وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَوْسِ بْنِ الْحَدَثَانِ قَالَ ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَوْمًا

د حضرت مالک بن اوس بن حدثان ﷛ څخه روایت دئ چې یو وار حضرت عمر ﷛ د فئ د مال

الْفَيْءَ فَقَالَ مَا أَنَا أَحَقَّ بِهٰذَا الْفَيْءِ مِنْكُمْ وَمَا أَحَدٌ مِنَّا بِأَحَقَّ بِهِ مِنْ أَحَدٍ

ذکر وفرمایه او وه یې ویل چې زه د فئ د مال تر تاسو زیات حقدار نه یم او نه په موږ کي یو سړی

إِلَّا أَنَّا عَلَى مَنَازِلِنَا مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَقَسْمِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د دې مال تر بل زیات مستحق دئ بلکه د کتاب الله او د رسول الله ﷺ د ویش سره سم زموږ درجې او مرتبې دي، یو سړی دي او د هغه قدامت یو سړی دئ او د هغه میړانه، کوښښ یو

وَسَلَّمَ فَالرَّجُلُ وَقِدَمُهُ وَالرَّجُلُ وَبَلَاؤُهُ وَالرَّجُلُ وَعِيَالُهُ وَالرَّجُلُ وَحَاجَتُهُ.

رواه ابوداؤد.

سړی وي او د هغه کورنۍ دي یو سړی وي او د هغه ضرورت او حاجت دئ (یعني هر سړي ته د

هغه د مرتبې او ضرورت سره سم ورکول کیږي) . ابو داوٗد .

**تخریج** سنن ابي داود ۳\۳۵۸، رقم: ۱۹۵۰.

**تشریح** زه ستاسو څخه زیات مستحق نه یم : حضرت عمر ﷛ دا خبره ددغه وهم او ګمان لیرې کولو لپاره وفرمایل چې هغه د رسول خلیفه دی ځکه څرنګه چې رسول الله ﷺ د هغه مال تر ټولو زیات حق درلودی کېدای سي چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته اوس هغه ددې تر ټولو زیات مستحق وي ، حضرت عمر ﷛ ددې نفي وکړه چې د یو بل مسلمان په ډول زه هم ددغه مال تر ټولو زیات مستحق نه یم بیا هغه دده مال تر ټولو زیات حق لرونکي نفي د عمومیت په توګه وفرمایل چې په موږ کي هیڅ سړی هم د بل سړي څخه زیات حقدار نه دی بلکه ددغه مال د استحقاق اصل بنیاد پر فرق مرتب دی چې په کتاب الله کي ددغه ارشاد څخه څرګندېږي:

لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ... ، او : وَالسَّابِقُونَ الْأَوَّلُونَ مِنَ الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنصَارِ...

دغه آیاتونه پر دې دلالت کوي چې د مسلمانانو په مرتبو کي فرق دی چې هر سړي ته د هغه د مرتبې سره سم کم او زیات ورکول کیږي .

د الله ﷻ په کتاب او د هغه د رسول ﷺ په وېش کي : د رسول الله ﷺ د ویش عطف پر کتاب الله باندې سوی دی یعني څرنګه چې د کتاب الله د ذکر سوو آیاتو څخه د مسلمانانو د مرتبو اظهار کیږئ همدارنګه د رسول الله ﷺ په وېش سره هم په مرتبو کي فرق معلومیږي چې رسول الله ﷺ ددغه مال د ویشلو په وخت کي دنورو مسلمانانو په نسبت د بدر په جنګ کي ګډون کونکو صحابه کرامو ته زیاته برخه ورکول، همدارنګه کوم صحابه کرام چې د حدیبیه د صلح پر وخت په بیعت الرضوان کي شامل وه د هغوی لحاظ یې د عامو مسلمانانو څخه زیات کړیا کوم څوک چې به کورنی والا وو هغه ته به یې د مجرد (بې کوره) سړي څخه زیات ورکول .

یو هغه سړی .... : حضرت عمر ﷛ د خپل ارشاد په ذریعه د ذکر سوي خبري نور وضاحت وکړ چې د فئ د مال د ویشلو په وخت کي د هر سړي مرتبه او د هغه د حیثیت لحاظ ساتل ضروري دي که یو سړی پخوا مسلمان سوی وي نو د هغه دغه ځانګړتیا ته کتل پکار دي که یو سړی د الله ﷻ په لار کي د میړاني او شجاعت کارونه کړي وي او د دین په خپرولو کي یې سخت کوښښونه او تکلیفونه زغملي وي نو د هغه دغه صفت مخته اېښودل پکار دي ، همدارنګه که یو سړی کورنی والا وي او زیات اړ وي نو د هغه ددغه حیثیت او حال خیال ساتل پکار دي ، مطلب دا چې هر سړي ته چې څومره اړتیا او احتیاج وي هغه ته د هغه مطابق ورکول پکار دي.

﴿٣٨٨٥﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَرَأَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ إِنَّمَا الصَّدَقَاتُ لِلْفُقَرَاءِ وَالْمَسَاكِيْنِ

د حضرت مالک بن اوس بن حدثان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه دا آيت تلاوت کړ (انما الصدقات للفقراء.....)

حَتّٰى بَلَغَ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ فَقَالَ هٰذِهٖ لِهٰؤُلَاءِ ثُمَّ قَرَأَ وَاعْلَمُوْا أَنَّ مَا غَنِمْتُمْ مِنْ

او تر (عليم حکيم) پوري يې تلاوت کړ، بيا يې دا آيت تلاوت کړ (واعلموا انما غنمتم من شئ فان لله خمسه...... ابن السبيل) پوري، او وه يې فرمايل:

شَيْءٍ فَأَنَّ لِلّٰهِ خُمُسَهٗ وَلِلرَّسُوْلِ حَتّٰى بَلَغَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ثُمَّ قَالَ هٰذِهٖ لِهٰؤُلَاءِ

د غنيمت مال دا پنځمه برخه چي کوم په آيت کي ذکر ده د قريبانو لپاره ده، بيا يې دا آيت

ثُمَّ قَرَأَ مَا أَفَاءَ اللّٰهُ عَلٰى رَسُوْلِهٖ مِنْ أَهْلِ الْقُرٰى حَتّٰى بَلَغَ لِلْفُقَرَاءِ ثُمَّ قَرَأَ

وفرمايه: (ما افاه الله على رسوله... والذين جاءوا من بعدهم) پوري، او وه يې فرمايل دغه

وَالَّذِيْنَ جَاؤُوْا مِنْ بَعْدِهِمْ ثُمَّ قَالَ هٰذِهٖ اسْتَوْعَبَتِ الْمُسْلِمِيْنَ عَامَّةً فَلَئِنْ

آيت ټول مسلمانان پوره کړل که زه ژوندی پاته سوم نو شپون ته به هم د هغه برخه ورسيږي چي په

عِشْتُ فَلَيَأْتِيَنَّ الرَّاعِيَ وَهُوَ بِسَرْوِ حِمْيَرَ نَصِيْبُهٗ مِنْهَا لَمْ يَعْرَقْ فِيْهَا

جَبِيْنُهٗ. رواه في شرح السنة

بسر او حمير کي دي، د في د مال څخه چي د هغه لپاره به د هغه پر تندي خوله نوي راغلي. شرح السنه

**تخريج** البغوي في شرح السنة ١١\١٣٨، رقم: ٢٧٥٤١.

**تشريح** دغه آيت ټول مسلمانان پوره کړل: ددې مطلب دادی چي په دغه آيت کريمه کي کومو خلکو ته د ورکولو ذکر سوی دی په هغه کي ټول مسلمانان راځي پر خلاف د اولو دوو آياتو چي په هغه کي يوازي د زکوة د مستحقينو ذکر سوی دی او په دوهم کي د خمس د مستحقينو ذکر هم سوی دی.

حضرت عمر ﷜ د فئ په مال كي د خمس ايستلو قائل نه وو لكه څرنګه چي د غنيمت په مال كي خمس ايستل كيږي د هغه په نزد ټول د فئ مال د مسلمانانو د اجتماعي ګټي او مصالحو او د هغوى د فلاح او مرستي لپاره مصرفول پكار دي كوم چي په قرآن كريم او حديثو كي ذكر سوى فرق د مراتبو سره د هغوى حق دئ ، د امام شافعي رحمة الله عليه څخه ماسوا د اكثرو امامانو مذهب دادى او حضرت عمر ﷜ ددې هم قائل وو چي د فئ د مال د وېشلو په باره كي د مسلمانانو د درجو او مرتبو لحاظ ساتل ضروري دي حال دا چي حضرت ابوبكر صديق ﷜ به برابري برخي وركولې هغه به د اسلام د قدامت او د نسب لحاظ كول ضروري نه ګڼل بلكه فرمايل به يې چي ددغه شي تعلق د آخرت سره دى كه يو سړى مخكي مسلمان سوى وي او يو سړي د دين په لار كي ميړانه او شجاعت او زيات كوښښ كړى وي نو د هغوى دغه عمل د الله جل جلاله لپاره دى او د هغوى اجر به په الله جل جلاله پوري موقوف وي، دغه شيان د زيات مال د استحقاق بنياد جوړول نه دي پكار مګر حضرت عمر ﷜ د مرتبو د فرق لحاظ ساتى ځكه چي هغه به كله مال ويشى نو بي بي عائشې ﷞ ته به يې زيات وركوى او بي بي حفصې ﷞ ته به يې كم وركوي او هغې ته به يې فرمايل چي اې لوري! ستا په نسبت بي بي عائشې ﷞ ته د هغې د خصوصيت په وجه زيات وركوم چي د رسول الله ﷺ په نزد عائشه ﷞ زياته خوږه وه او رسول الله ﷺ ته ستا د پلار (يعني زما) په نسبت د عائشې ﷞ پلار (يعني حضرت ابوبكر صديق﷜) سره زيات تعلق وو. همدارنګه حضرت عمر ﷜ د خپل زوى ابن عمر ﷜ په نسبت د حضرت اسامه ابن زيد ﷜ برخه زياته وركول او ابن عمر ﷜ ته به يې دا وفرمايل چي اسامه ﷜ ته پر تا دا فضيلت حاصل دى چي د رسول الله ﷺ ستا په نسبت د اسامه ﷜ سره زيات تعلق وو او ستا د پلار څخه زيات د هغه پلار د رسول الله ﷺ په نظر كي خوښ وو.

حمير د يمن د يو سيمي نوم دى چيري چي د يمن د مشهوري قبيلي حمير خلك پراته وه، همدارنګه بسر هم د يو ځاى نوم دى چي د حمير په سيمي كي وو.

د روايت په پاى كي د حضرت عمر ﷜ د ارشاد مطلب دا وو كه الله تعالى زه ژوندى وساتلم او زما د خلافت په زمانه كي اسلام پر زياتو ښارو او هيوادو باندي تسلط ترلاسه كړ او د هغه په نتيجه كي د فئ مال هم ډېر په لاس راغلى نو د هغه څخه به ټولو مسلمانانو ته د هغه برخي ورسيږي كه څه هم هغوى په لوى لوى ښارو او كليو كي اوسيږي او ددې سربېره چي هغوى د مال په ترلاسه كولو كي هيڅ تكليف او ستړيا نه وي زغملې.

## د حضرت عمر ﷺ د فدک په قضیه کي استدلال

﴿٣٨٨٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ فِيمَا احْتَجَّ بِهِ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنْ قَالَ كَانَتْ

د مالک بن اوس بن حدثان رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د فدک په قبضه کي حضرت عمر رضي الله عنه د دي

لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثُ صَفَايَا بَنُو النَّضِيرِ وَخَيْبَرُ وَفَدَكُ

خبري دلیل ووایه چي د رسول الله ﷺ سره دري صفایا وې یعني درې داسي شیان وه چي رسول الله ﷺ د غنیمت څخه خاص کړي وه: یو خو د نبي کریم ﷺ نضیر املاک، ، دویم د خیبر مځکه،

فَأَمَّا بَنُو النَّضِيرِ فَكَانَتْ حُبُسًا لِنَوَائِبِهِ وَأَمَّا فَدَكُ فَكَانَتْ حُبُسًا لِأَبْنَاءِ

دریم په فدک کي د بني نضیر د مځکي حاصلات به د رسول الله ﷺ پر ذات خاص مصرف کېدل یعني د رسول الله ﷺ پر میلمنو، وسلو، حیوانانو وغیره په رانیولو د فدک حاصلات د مسافر د

السَّبِيلِ وَأَمَّا خَيْبَرُ فَجَزَّأَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَجْزَاءٍ

مرستي لپاره خاص وه او د خیبر حاصلات رسول الله ﷺ درې برخي کړي وه دوې برخي پر

جُزْأَيْنِ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ وَجُزْءًا نَفَقَةً لِأَهْلِهِ فَمَا فَضَلَ عَنْ نَفَقَةِ أَهْلِهِ جَعَلَهُ بَيْنَ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ. رواه ابوداؤد

مسلمانانو مصرف کېدل او یوه برخه د کورنۍ لپاره خاص وه، او د بیبیانو د مصارفو څخه چي به څومره پاته سول هغه به د فقراؤو مهاجرینو لپاره وه. ابوداؤد. (صفایا: هغه فئ مال ته وایي چي رسول الله ﷺ د ځان لپاره چن کړي او خاص کړي وه).

**تخریج** سنن ابي داود ٣٧٥\١٣، رقم: ٢٩٦٧.

**د لغاتو حل** صفایا: جمع صفیة ما یصطفی ویختار. نوائبه ای لحوائجه.

**تشریح** د کومي خبري څخه چي یې استدلال وکړ ....: یعني کله چي حضرت عباس رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه د فدک د مال په باره کي د خپل غوښتني لپاره حضرت عمر رضي الله عنه ته راغلل نو حضرت عمر رضي الله عنه د هغوی د غوښتني منلو څخه انکار وکړ او پر کوم جائیداد او مځکو باندي چي د رسول الله ﷺ ذاتي حق وو (لکه بنو نضیر، خیبر، فدک) نو د هغه په باره کي یې ذکر

سوی تفصیل بیان کړ او د دغه تفصیل بیانولو په وخت کي نور صحابه کرام هم موجود وه چي په هغو کي هیچا د حضرت عمر ﷺ د بیان سوي تفصیل تردید ونه کړ ځکه دا خبره د هغه د فیصلې دلیل وګرځیدی ، ددې څخه وروسته حضرت عمر ﷺ دا ضروري وګڼل چي حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما يې د فدک د محاصل متولي وګرځول چي هغه دواړه محاصل داسي مصرف کړي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ مصرفول.

صفایا د صفیه جمع ده او صفیه دې ته وایي چي د وخت امام د غنیمت د مال ویشلو څخه مخکي یو شي په چڼ کولو سره د ځان لپاره خاص کړي ، دا خبره یوازي د رسول الله ﷺ سره خاص وه چي رسول الله ﷺ به د غنیمت دمال څخه د خمس څخه ماسوا نور هم کوم شی لکه مینزه، غلام ، توره ، آس او داسي نور شیان غوښتل د هغه د اخیستلو حق يې درلودی ، مګرد رسول الله ﷺ څخه وروسته بل چا ته دا جائز نه دي.

فدک د یو کلي نوم وو چي د خیبر د شاوخوا څخه وو او د مديني منورې څخه د دوو ورځو پر فاصله واقع وو، دا یو شین او ښکلی ځای وو چي هلته زیات د خرماوو او نورو میوو باغونه وه ، رسول الله ﷺ ته پر فدک باندي د صُلح کولو په ذریعه تسلط حاصل سوی وو او د صلح بنیاد دا معاهده وه چي د هغه ځای نیمه مځکه به د فدک د اوسیدونکو وي او نیمه به د رسول الله ﷺ حق وي نو د فدک هغه نیمه مځکه د رسول الله ﷺ ذاتي ملکیت وو چي د هغه د حاصلاتو څخه به رسول الله ﷺ د دغه حدیث سره سم د اړو مسافرو مرسته او اعانت کوی.

د خیبر حاصلات به رسول الله ﷺ په درو برخو کي ځکه ویشل چي د خیبر سیمه په اصل کي پر دېرو ځایو او کلیو باندي شامل وه په هغه کي ځیني کلي د طاقت په زور فتح سوي وه چي د هغه څخه تر لاسه کېدونکي مال د غنیمت مال وو ځکه د هغه څخه به رسول الله ﷺ خمس اخیستی او کوم کلی چي به د صلح په ذریعه په واک کي راغلی وو د هغه څخه تر لاسه کېدونکي مال د فئ مال وو ځکه هغه ټول به د رسول الله ﷺ ذاتي ملکیت وو چي رسول الله ﷺ به هغه د خپل اړتیاوو او د خپل کورنی د مصرف او عامو مسلمانانو د ټولنیزو کټو لپاره چیري چي به يې مناسب وګڼل مصرفول، په دې وجه د وېش او مساوات تقاضا دا وه چي د خیبر ټول مال خپل او د مسلمانانو په مینځ کي د وېشلو لپاره په درو برخو کي په ویشلو سره دوې برخي مسلمانانو ته ورکړي او یوه برخه يې د ځان لپاره وساتل.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

## د قضیه فدک تفصیل

﴿۳۸۸۷﴾: عَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ اَنَّ عُمَرَ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ جَمَعَ بَنِي مَرْوَانَ حِينَ

د مغیره رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله عمر بن عبدالعزیز خلیفه سو نو هغه د مروان زامن را جمع

اسْتُخْلِفَ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَتْ لَهُ فَدَكُ فَكَانَ يُنْفِقُ

کړل او ورته وه یې ویل: د رسول الله ﷺ سره فدک وو چي د هغه د آمدنی څخه هغوی پر خپل

مِنْهَا ويعون منها عَلَى صَغِيرِ بَنِي هَاشِمٍ وَيُزَوِّجُ مِنْهَا أَيِّمَهُمْ وَإِنَّ فَاطِمَةَ

کورنی خرڅ کوئ او د بنوهاشم کوچنیانو ته به یې ورکولو او د مجرد (بې وداه) نر او ښځي نکاح به یې کول، یو وار بي بي فاطمې رسول الله ﷺ ته خواست وکړ

سَأَلَتْهُ أَنْ يَجْعَلَهَا لَهَا فَأَبَى فَكَانَتْ كَذَلِكَ فِي حَيَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

چي فدک دي هغې ته ورکړل سي مګر رسول الله ﷺ انکار ور څخه وکړ، د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي پر دې عمل کېدی

وَسَلَّمَ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ فَلَمَّا أَنْ وُلِّيَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَمِلَ فِيهَا بِمَا

تر څو چي رسول الله ﷺ وفات سو بیا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خلیفه سو او هغه هم پر هغه طریقه عمل وکړ کومه چي

عَمِلَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَيَاتِهِ حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ فَلَمَّا أَنْ

رسول الله ﷺ اختیار کړې وه په خپل ژوند کي تر څو چي هغه هم وفات سو نو کله چي حضرت

وُلِّيَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَمِلَ فِيهَا بِمِثْلِ مَا عَمِلَا حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ ثُمَّ

عمر بن خطاب رضی الله عنه خلیفه سو نو هغه هم پر دې عمل وکړ څرنګه چي هغوی دواړو کړی وو، تر څو چي هغه هم وفات سو بیا

أَقْطَعَهَا مَرْوَانُ ثُمَّ صَارَتْ لِعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَرَأَيْتُ أَمْرًا مَنَعَهُ رَسُولُ

مروان فدک خپل ملک جوړ کړ، او بیا فدک ما عمر بن عبدالعزیز ته راغلئ ما ولیدل چي کوم شی رسول الله ﷺ خپل لور بي بي فاطمي ته نه وو ورکړی

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَام لَيْسَ لِي بِحَقٍّ وَأَنَا أُشْهِدُكُمْ

هغه هیڅکله زما حق نسي کیدلای زه تاسو شاهدان کوم چي ما بیا فدک په هغه طریقه کړ پر

أَنِّي قَدْ رَدَدْتُهَا عَلَى مَا كَانَتْ يَعْنِي عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَبِي بَكْرٍ وَّعُمَرَ . رواه ابوداؤد.

کومه طریقه چي هغه مخکي وو ، یعني څرنګه چي د رسول الله ﷺ په عهد کي ، د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په زمانه کي او د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کي ددې حاصلات مصرف کېدل. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ٣\٣٧٨، رقم: ٢٩٧٢.

**تشریح**: لکه څرنګه چي مخکي ښوول سوي دي چي د بنونضیر، فدک او خیبر مځکه او جائیداد د رسول الله ﷺ ذاتي ملکیت وو او هغه مځکه او جائیداد د رسول الله ﷺ څخه وروسته هم پاته وه ځکه د رسول الله ﷺ اهل بیت او د کورنۍ ځینو کسانو په هغه د خپل میراث دعوه وکړه او د خلافت څخه یې د هغه غوښتنه وکړل او بیا په هغوی کي خپل منځي اختلافات هم پیدا سول همدارنګه د هغه مځکي او جائیداد قصه ډېره عجیبه سوه که څه هم یوه یو وقتي قضیه وه چي د هغه بنیاد پر یو غلطي جذبې باندي نه وو مګر بیا هم په وروسته زمانو کي کم فهمه خلکو د هغه څخه غلط نتائج اخذ کول شروع کړل او داسي افسانې یې وتراشلې چي په هغه سره د نورو خلکو ذهنونه هم فاسد سول ، دلته مناسب دي چي د صحاح کتابو څخه څه تفصیل او په دې باره کي څه خبري نقل کړل سي :

په صحیح بخاري کي د حضرت مالک ابن اوس ابن حدثان څخه نقل سوي دي چي یو وار امیر المؤمنین حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه زه ځان ته را وغوښتلم ، زه د هغه سره ناست وم چي د هغه غلام یرفاء راغلی او وه یې ویل اې امیر المؤمنین! حضرت عثمان ابن عفان، حضرت عبدالرحمن ابن عوف، حضرت زبیر ابن عوام او حضرت سعد ابن ابووقاص رضي الله عنهم په

دروازه کي ناست دي او د حاضرېدو اجازه غواړي، حضرت عمر ﷺ ورته وفرمايل چي را دي سي، هغوی ټول راغلل او لږ وخت وروسته يرفاء راغلی او وه يې ويل چي حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما د حاضرېدو اجازه غواړي که اجازه وي نو را دي سي، حضرت عمر ﷺ وفرمايل: را دي سي، کله چي هغوی راغلل نو حضرت عباس ﷺ وويل: اې امير المؤمنين! زما او د دوی په مينځ کي فيصله وکړئ، (يعني زما او د علي په مينځ کي فيصله وکړئ) دوی د بنو نضير د هغه مال او جائيداد په باره کي جګړه کوي کوم چي الله تعالی د خپل رسول په حق کي فئ ګرځولی دی، بيا حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما په خپلو کي يو بل ته بد او رد ويل شروع کړل، هلته موجود نورو خلکو هم وويل چي هو اې امير المؤمنين! د دغه دواړو معامله فيصله کړئ او دوی د يو بل د جګړې څخه خلاص کړئ، د دې په اورېدو سره حضرت عمر ﷺ وفرمايل چي د لږ صبر او سکون څخه کار واخلئ زه تاسو ته د هغه خدای ﷻ په قسم درکولو سره پوښتنه کوم چي د هغه په حکم سره آسمانونه او مځکه قائم دي ايا تاسو ته معلومه ده چي رسول الله ﷺ به دا فرمايل چي موږ انبياء مېراث نه پرېږدو يعني زموږ پرې ايښی مال د چا مېراث نه وي موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده، حاضرينو کسانو وويل هو موږ ته دا ياد دي بېشکه رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي، بيا حضرت عمر ﷺ حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما ته په متوجه کېدو سره وفرمايل چي زه تاسو دواړو ته د خدای ﷻ په قسم درکولو سره پوښتنه کوم چي ايا تاسو ته معلومه نه ده چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي، حضرت عمر ﷺ وفرمايل هو موږ ته دا په ياد دي چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي. نو حضرت عمر ﷺ ورته وويل زه تاسو په دې خبره هم شاهدان کوم چي الله ﷻ د دغه فئ مال په باره کي خپل رسول ته هغه خاص خصوصيت ورکړی وو کوم چي د رسول الله ﷺ څخه ماسوا بل چا ته يې نه دی ورکړی، بيا حضرت عمر ﷺ دغه آيت: (ما افاء الله علی رسوله) تر پايه پوري ووايه او وه يې فرمايل: دغه ټول مال د رسول الله ﷺ خاص وو مګر قسم په خدای رسول الله ﷺ دغه مال ستاسو سره جمع نه کړ او نه يې ددې په ذريعه پر تاسو څه قرباني وکړه بلکه رسول الله ﷺ به د هغه څخه په خپل کورنی مصرف کوی، ددې څخه وروسته چي به څه پاته سول هغه به رسول الله ﷺ په نېکو کارو او د عامو مسلمانانو په ګټه او مصالحو کي مصرف کوی، د رسول الله ﷺ د خپل ژوند تر پايه پوري دا معمول وو، بيا د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته حضرت ابوبکر صديق ﷺ په دې ويلو سره زه چي د رسول الله ﷺ خليفه يم هغه مال په خپل قبضه کي واخيستی او د هغه د مصرف هغه نظام يې باقي وساتی کوم چي

رسول الله ﷺ كوى .

حضرت عمر رضی الله عنه حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما ته متوجه سو او وه يې فرمايل تاسو هغه وخت د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ذکر په بدی سره کوی او ويل مو چي په دې باره کي ابوبکر صديق رضی الله عنه پر صحيح لاره نه دی حال دا چي تاسو څه ويل هغه صحيح نه وه او الله جل جلاله ښه پوهيږي چي ابوبکر رضی الله عنه په خپل دغه عمل کي صادق ، نېک ، هدايت يافته او د حق تابع وو ، بيا چي کله حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه وفات سو نو زه خليفه سوم او ما ويل چي زه د رسول الله ﷺ خليفه او حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ولي يم ځکه نو دغه مال او جائيداد تر دوو کالو پوري زه په خپل واک او قبضه کي اخلم او د هغه د مصرف او تصرف مي هغه طريقه اختيار کړل کوم چي د رسول الله ﷺ او ابوبکر صديق رضی الله عنه وه ، او الله جل جلاله ښه پوهيږي چي زه په خپل دغه عمل کي صادق، نېک، هدايت يافته او د حق تابع يم ، بيا د دوو کالو څخه وروسته تاسو دواړه (حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما ) ما ته راغلاست او تاسو يوه خبره وکړه چي د رسول الله ﷺ مال موږ ته راکړل سي ، ما ستاسو د غوښتي په جواب کي تاسو ته ويلي وه چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی چي موږ انبياء ميراث نه پرېږدو بلکه موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده مګر کله چي زما په پوهه کي دا خبره راغلل چي زه بايد دغه مال او جائيداد تاسو ته وسپارم نو ما تاسو ته وويل که تاسو غواړئ نو زه دغه مال او جائيداد تاسو ته په دې شرط درکولای سم چي تاسو ددې خبري عهد وکړئ چي ددغه مال د مصرف کولو به هغه نظم او طريقه باقي ساتئ کوم چي رسول الله ﷺ جاري کړې وه او په هغه باندي حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه او ما هم عمل کړی وو ، او که تاسو ته دا شرط قبول نه وي نو بيا د راتلونکي لپاره زما سره د څه خبري کولو ضرورت نه سته تاسو دا شرط قبول کړ او وه مو ويل چي تاسو دغه مال او جائيداد په دې شرط موږ ته حواله کړی نو ما تاسو ته وسپارئ ، نو ايا تاسو اوس زما څخه دا غواړئ چي په دې باره کي کومه خبره زما او ستاسو په مينځ کي فيصله سوې ده زه د هغه خلاف فيصله وکړم . په خدای دي مي قسم وي چي د هغه په حکم سره ځمکه او آسمان قائم دي زه به تر قيامته پوري هم د هغه خلاف فيصله ونه کړم هو که تاسو ددغه مال او جائيداد د انتظام څخه عاجزه ياست نو دا بېرته ما ته راکړئ زه به تاسو ددغه انتظام د جنجال څخه بې پروا کړم او په خپله به په تکليف کولو سره ددې انتظام وکړم .

ددغه روايت راوي امام زهري رحمة الله عليه وايي چي ما ددغه حديث په باره کي د حضرت عروه ابن زبير رضی الله عنه سره خبري وکړې نو هغه وويل چي مالک رضی الله عنه ابن اوس بالکل صحيح بيان کړی دی

ما د بي بي عائشې ﷺ څخه اوريدلي دي چي د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته ځينو بيبيانو مبارکانو حضرت عثمان ﷺ حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته واستوی او ددغه مال او جائيداد د خپل ميراث کېدو غوښتنه يې وکړه چي الله تعالی خپل رسول ته دغه مال د فئ په توګه ورکړی وو کله چي ما ته معلومه سوه نو د هغوی مخالفت مي وکړ او هغوی ته مي وويل چي تاسو د الله ﷻ څخه نه بيريږئ ايا د رسول الله ﷺ دغه ارشاد ستاسو په علم کي نه دی چي موږ انبياء ميراث نه پرېږدو بلکه موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده او د محمد ﷺ کورنۍ به د هغه څخه څه نه خوري ، بيا بيبياني مبارکاني د رسول الله ﷺ د ميراث د غوښتني څخه منع سوې او زما د بيان سوي حديث په وجه هغوی رجوع وکړه.

حضرت عروه ﷫ وايي چي حضرت عمر ﷺ د رسول الله ﷺ هغه صدقه يعني د بنو نضير هغه مال چي په مدينه کي وو او دهغه په باره کي ذکر سوې قضيه وه د حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما په توليت کي ورکړې وه ، ددې څخه وروسته د حضرت حسن ابن علي ﷺ په قبضه کي راغلل ، د حضرت حسن ﷺ څخه وروسته د حضرت حسين ﷺ په قبضه کي وه او د دوی څخه وروسته د علي ابن حسين او حسن ابن حسين په قبضه کي وه چي دواړو به په وار وار ساتل ، د دوی څخه وروسته زيد ابن حسن ته راغلی.

دا د بخاري د حديث لنډيز دی چي هغه په کتاب المغازي کي د بنو نضير په واقع کي نقل کړی دی . په کتاب الخمس کي هم د ځينو الفاظو په فرق سره داسي حديث بيان سوی دی .

دغه روايت هم د بخاري دی چي بي بي عائشې ﷺ بيان کړی دی چي د رسول الله ﷺ لور بي بي فاطمه ﷺ او عباس ﷺ حضرت ابوبکر صديق ﷺ ته د فدک د ځمکي او جائيداد او د خيبر د برخي د ميراث غوښتنه وکړه ، حضرت ابوبکرصديق ﷺ هغوی ته وفرمايل چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي موږ انبياء يو ځوک د خپل ميراث نه وارث کوو بلکه موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده او ددغه مال څخه د محمد ﷺ کورنۍ خوراک کوي، قسم په خدای زما په نزد د رسول الله ﷺ د قريبانو د حقوقو ساتنه د هغوی سره ښه چلن او د خير معامله کول د خپلو قريبانو سره د ښه چلن کولو څخه زيات غوره او محبوبه ده .

وروسته چي کوم اوږد حديث نقل سوی دی او په هغه کي د حضرت عمر ﷺ په خدمت کي حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما خپله قضيه راوړې وه دا صاحب جامع الاصول هم په خپل کتاب کي د بخاري ، مسلم، ترمذي، ابوداؤد او نسائي په حواله سره نقل کړې ده او ويلي يې دي چي ددغه حديث په باره کي ابوداؤد دا وضاحت کړی دی چي حضرت عباس او

حضرت علي رضي الله عنهما چي د حضرت عمر رضي الله عنه څخه كومه غوښتنه كړې وه د هغه مقصد يوازې دا خواست كول وو چي تاسو كوم مال او جائيداد په مشتركه توګه زموږ دواړو په توليت كي راكړى وو اوس هغه نيم په نيم وېشلو سره زموږ دواړو توليت او سپارلو كي جلا جلا برخي راكړې نه دا چي هغوى دواړو د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد چي موږ انبياء مېراث نه پرېږدو څخه غافل او بې خبره وه او په واقعيت كي د هغوى مقصد هغه مال او جائيداد خپل مېراث جوړول نه وو د هغه دواړو نيت هم صادق وو او د هغوى غوښتنه هم يو صحيح عمل وو، بيا هم د دې سربېره حضرت عمر رضي الله عنه د هغوى غوښتنه پوره نه كړل بلكه هغوى ته يې واضحه كړل چي زه دا زغملاى نه سم چي په كوم صورت كي ددغه مال او جائيداد د ويشلو نوم راسي بلكه دا هم داسي ساتل زما په نزد زيات ضروري دي.

بخاري په كتاب الخمس كي د حضرت عروه رضي الله عنه دا روايت نقل كړى دى چي عروه ته بي بي عائشې رضي الله عنها دا بيان وكړ چي د نبي كريم ﷺ د وفات څخه وروسته د رسول الله ﷺ لور بي بي فاطمې رضي الله عنها د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه دا غوښتنه وكړه چي هغې ته مېراث وركړل سي كوم چي رسول الله ﷺ د خپل مال او جائيداد څخه پرې ايښى دى چي الله تعالى رسول الله ﷺ ته د فئ د مال په توګه وركړى وو، حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه هغې ته دا جواب وركړ چي د رسول الله ﷺ ارشاد دى چي : (لا نورث ما تركناه صدقة) يعني موږ انبياء مېراث نه پرېږدو موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده.

په يوه روايت كي دا هم دي چي هغه ددغه حديث بيانولو څخه وروسته وفرمايل چي هغه مال زما په قبضه او اختيار كي دى او كله چي زه مړ سم نو د هغه چا په واک او قبضه كي وي كوم چي زما څخه وروسته د خلافت او امارت ذمه وار وي، بي بي فاطمې رضي الله عنها ته دا خبره ناخوښه سول تر دې چي هغې د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سره ترک سلام او ترک كلام وكړ او تر خپل وفات پوري پر ترک سلام او ترک كلام باندي قائمه وه، واضحه دي وي چي بي بي فاطمه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته شپږ مياشتي ژوندۍ وه.

په يو بل روايت كي دي چي بي بي عائشې رضي الله عنها وفرمايل : بي بي فاطمې رضي الله عنها به د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه په هغه مال او جائيداد كي د خپل مال او برخي غوښتنه كول كوم چي رسول الله ﷺ د خيبر او فدک مځكه او باغونه او په مدينه كي خپله صدقه (يعني د بنو نضير د مال او جائيداد) په صورت كي پرې ايښى وه مګر حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه به د هغې غوښتنه نه منل او فرمايل به يې چي زه هيڅ داسي شى نه پرېږدم چي په هغه د رسول الله ﷺ

معمولي راغلی وي ددغه مال او جائيداد په باره كي به زما هغه عمل وي كوم چي د رسول الله وو، زه بېربېږم كه زه پرېږدم كه زه پريو داسي شي باندي دعمل كولو څخه منع سم كوم چي د رسول الله ﷺ د حكم او منشاء مطابق وي نو يقينا زما دغه كار به د حق د لاري څخه دمخ اړولو برابر وي.

حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه تر پايه پوري پر خپل دغه فيصلې قائم وو او بيا د هغه د وفات څخه وروسته حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دغه صورت اختيار كړ چي رسول الله ﷺ په مدينه كي كومه صدقه پرې ايښې وه هغه يې حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما ته وسپارل چي هغوی دواړه په ګډه د هغه د توليت فرض سرته ورسوي او د خيبر او فدک مځكه او جائيداد يې په خپل توليت كي وساتی او وه يې فرمايل دا د رسول الله ﷺ پرې ايښې صدقه ده چي د هغه سره د رسول الله ﷺ حقوق متعلق وه او هغه ددغه مځكي او جائيداد متولي او نګران هغه سړی وګرځوی كوم چي د خلافت او امارت ذمه داري تر سره كوي نو هغه تر اوسه پوري د هغه صورت حال مطابق دی.

په هر حال په دې باره كي چي كوم حديثونه نقل سوي دي يا هغه حديثونه چي ددغه مفهوم او مضمون سره متعلق په صحاح ستة كي په ډېرو طريقو او سندو منقول دي د هغه ټولو څخه چي كومه خبره واضحه كيږي هغه داده چي د (لا نورث ما تركناه صدقة) صحيح معمول به كيدی.

رسول الله ﷺ چي كوم مال او جائيداد پرې ايښی وو د هغه د ټولو مسلمانانو په مينځ كي مشترک كېدل او د هغه په اجتماعي ګټو كي مصرف كېدل او د هغه سړي په واک او اختيار كي كېدل كوم چي د خلافت او امارت عهده تر لاسه كړې وي دا د ټولو صحابه كرامو تر دې چي د حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما په نزد هم يو اتفاقي مسئله وه.

مګر دلته يو سوال پيدا كيږي كه چيري هغه مال او جائيداد د حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما په توليت كي وركول يو صحيح عمل او غوره طريقه وای نو حضرت عمر رضي الله عنه په شروع كي دغه صورت ولي اختيار نه كړ او كه چيري هغه صحيح عمل او غوره طريقه نه وه نو بيا د هغه وروسته دغه مال او جائيداد د هغه خلكو په توليت كي يې ولي وركړ؟.

ددې جواب دادی چي په شروع كي د هغو دواړو غوښتنه دا وه چي هغه مال او جائيداد دي د هغوی په ملكيت كي وركړل سي ځكه حضرت عمر رضي الله عنه دا غوښتنه ونه منل او بيا وروسته چي كله يې دغه خلكو ته وركړل نو د هغه بنياد دا وو چي دا خلک يې د هغه مال او جائيداد مالكان ونه ګرځول بلكه يوازي هغوی يې متولي او منتظم وګرځول او دا شرط يې عائد كړی وو چي په هغه مصارفو كي مصرف كړل سي كوم چي به رسول الله ﷺ مصرفول، مګر خبره دلته نه روښانه

کيږي بلکه څرنګه چي خطابي رحمه الله ويلي دي چي په دغه مسئله کي د يو بلي خوا څخه ربط پيدا کيږي او هغه دا سوال دی چي کله حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما ته هغه مال او جائيداد په ذکر سوي شرط سره ورکړل سو او هغه خلکو دا اعتراض هم کړی وو چي دغه مال او جائيداد د رسول الله ﷺ ورثه نه ده او جليل القدر مهاجر صحابه کرامو ددې خبري تصديق هم کړی وو نو بيا د دغه خلکو په مينځ کي دغه اختلاف ولي پيدا سو ؟

د دې جواب دادی چي په دغه توليت کي شرکت پر دواړو باندي سخت سو نو هغوی دا خواست وکړ چي دغه مال او جائيداد دي وويشل سي او هر يو دې د خپل برخي متولي او منتظم جوړ کړل سي چي دواړه د يو بل سره د څه تعلق ساتلو ماسوا د خپل برخي څارنه او د هغه د مصرف انتظام په ازادۍ او يوازيوالي سره وکړي ، مګر حضرت عمر رضي الله عنه د هغوی دا درخواست ځکه قبول نه کړ چي داسي نه دغه تقسيم د ملکيت د صورت مشابه سي ځکه ويشل په املاک کي داسي کيږي، دوهم دا چي في الوقت خو نه مګر د زيات وخت تېرېدو څخه وروسته به په دې کي د ملکيت شک کېدل پيدا سي .

د حضرت عباس او حضرت علي رضي الله عنهما څخه زياته مسئله د بي بي فاطمې رضي الله عنها وه ځکه که چيري د هغې د غوښتني په باره کي دا وويل سي چي هغه د رسول الله ﷺ د دغه حديث او د رسول الله ﷺ د دغه عمل څخه بې خبره وه نو دا خبره به د حقيقت څخه لېري وي او که چيري دا وويل سي چي دا په هر حال ممکنه ده چي هغې د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نه وي اوريدلي نو بيا دا سوال پيدا کيږي چي کله حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغې ته د رسول الله ﷺ دغه ارشاد بيان کړ او نورو صحابه کرامو هم د هغه تصديق وکړ نو بيا هغې د دغه خبري قبلولو څخه انکار ولي وکړ او د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره يې د دومره ناخوښۍ صورت ولي اختيار کړ او که چيري د ناخوښۍ صورت د دغه حديث اورېدو څخه مخکي پيدا سوي وي نو د اورېدو څخه وروسته هغې خپل ناخوښي ولي ختمه نه کړه چي د هغې د ژوند تر آخري وخت پوري يې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره پر ترک کلام او ترک سلام قائمه وه .

کرماني رحمه الله د بخاري په تشريح کي ددې جواب دا ليکلی دی چي د بي بي فاطمې رضي الله عنها ناراضي په اصل کي يو داسي صورت وو چي په هغه کي د بشريت تقاضا پيدا سوې وه او د هجران څخه هجران محرم يعني د سلام او کلام ترک کول مراد نه دي بلکه په طبيعت کي د تعلق انقباض پيدا کېدل مراد دي .

د دې څخه ماسوا په ځينو روايتو کي نقل سوي دي چي کله د حضرت ابوبکر صديق ﵁ او بي بي فاطمې ﵂ په مينځ کي دغه صورت پيدا سو چي حضرت ابوبکر صديق ﵁ د بي بي فاطمې ﵂ د غوښتني نه منلو په وجه بي بي فاطمه ﵂ د حضرت ابوبکر صديق ﵁ څخه ناراضه سول نو يوه ورځ حضرت ابوبکر صديق ﵁ بي بي فاطمې ﵂ ته راغلی او د لمر د سختۍ سربېره د هغې په دروازه کي ولاړ وو او هغې ته يې عذر کوی او دا يې فرمايل چي قسم په خدای! د رسول الله ﷺ د قريبانو د حقوقو رعايت او ساتنه کول ما ته د خپل قريبانو څخه هم زيات محبوب او خوښ دي مګر زه څه وکړم ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي او نور صحابه کرام پر دې شاهدان دي نو بيا د بي بي فاطمې ﵂ زړه صفا سو او د هغې ناراضګي پای ته ورسېده.

==============